حسبنا الله ونعم الوكيل

د نحوې مشهور او مشکل ترین کتاب اسانه شرحه

# فیض الجامی

پښتو شرح

# ملا جامی

تالیف

حضرت مولانا عبدالرحمن جامی رحمه الله

خصوصیات

* اعراب
* تحت السطور ترجمه
* خلاصه د متن
* اغراض د جامی
* فوائد نادره
* نکات، لطیفه
* نقشه جات







مرتب

مولانا محمد فیض الهادی حقانی


پسند فرموده

شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد ادریس ترنگزئی چارسده


مکتبه رحمانیه

محله جنگی قصه خوانی بازار پشاور

0302- 62 09 815

# فيض الجامي

معرب پښتو شرح د مبني

# شرح جامي = جزء ثاني =

مُرتِب :

مولوي محمد فيض الهادي " حقاني"
فاضل دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک
مدرس بمدرسة عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
لنډي سړک چارسده روډ . پشاور

ناشر :
مکتبه رحمانيه محله جنګي پشاور

بسم الله الرحمن الرحيم

# دکتاب نوم : فيض الجامي پښتو شرح دشرح جامي


مصنف : حضرت مولانا عبدالرحمن جامی رحمۃ اللہ

مُرتب: ابو الطيب مولوي محمد فيض الهادي " حقاني "
فاضل دارالعلوم حقانیہ اکوړه ختک
مدرس بمدرسة عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چارسده روډ، پشاور

تصحيح : مولوی نصیر الدین " حقانی "
فاضل دارالعلوم حقانیہ اکوړه ختک

تصحيح ونظرِ ثاني : مولوی محمد جان " حقانی "
فاضل دارالعلوم حقانیہ اکوړه ختک

نظرِ ثالث : مولوی حافظ عبدالصبور " حقانی "
فاضل دارالعلوم حقانیہ اکوړه ختک



کمپوزنګ : ابوبدر کمپوزنګ سنټر، پشاور
پروپرائيټر : ابوالطيب "حقاني" موبائل نمبر: 0311-9316109

سالِ اشاعت بار اول: ۱۴۳۵ھ موافق ۲۰۱۴ء
سالِ اشاعت بار سوم : ۱۴۳۷ھ موافق ۲۰۱۶ء
ناشر : مکتبه رحمانيه محله جنګي پشاور

# فهرست جزء ثاني :

## د حال مثالونه:

| مِثْلُ ضَرَبْتُ زَيْداً قَائِماً مِثَالٌ لِلَّفْظِيِّ الْمَلْفُوْظِ حَقِيْقَةً فَإِنَّ فَاعِلِيَّةَ تَاءِ الْمُتَكَلِّمِ وَ مَفْعُوْلِيَّةَ زَيْداً |
|---|
| لکه ضربت زيداً قائماً دا مثال دي دهغه لفظي چې ملفوظ وي حقيقةً ځکه فاعليت دتاء دمتکلم او دمفعوليت دزيداً |
| إِنَّمَا هِيَ بِاِعْتِبَارِ لَفْظِ هٰذَا الْكَلَامِ وَمَنْطُوْقِهٖ مِنْ غَيْرِ اِعْتِبَارِ مَعْنًى خَارِجٍ عَنْهُ وَهُمَا مَلْفُوْظَانِ حَقِيْقَةً وَ |
| دا په اعتبار دلفظ ددې کلام او دمنطوق سره دي په غير داعتبار دخارج دمعنی نه او دا دواړه ملفوظ دي حقيقةً او |
| زَيْداً فِي الدَّارِ قَائِماً مِثَالٌ لِلَّفْظِيِّ الْمَلْفُوْظِ حُكْماً فَإِنَّ فَاعِلِيَّةَ الضَّمِيْرِ الْمُسْتَكِنِّ فِي الظَّرْفِ إِنَّمَا هِيَ بِاِعْتِبَارِ لَفْظِ |
| زيد في الدار قائماً دا مثال دي دلفظي ملفوظ حکماً ځکه چې فاعلية دضمير مستکن په ظرف کې دا په اعتبار دلفظ |
| هٰذَا الْكَلَامِ وَ مَنْطُوْقِهٖ مِنْ غَيْرِ اِعْتِبَارِ مَعْنًى خَارِجٍ عَنْهُ وَ الضَّمِيْرُ الْمُسْتَكِنُّ مَلْفُوْظٌ حُكْماً وَ |
| ددې کلام او دمنطوق سره دي په غير داعتبار دمعنی نه چې خارج وي ددې نه او ضمير مستکن ملفوظ وي حکماً او |
| هٰذَا زَيْدٌ قَائِماً مِثَالٌ لِلْمَعْنَوِيِّ لِأَنَّ مَفْعُوْلِيَّةَ زَيْدٍ لَيْسَتْ بِاِعْتِبَارِ لَفْظِ هٰذَا الْكَلَامِ وَ مَنْطُوْقِهٖ بَلْ |
| هذا زيد قائماً دا مثال دي دمعنوي ځکه مفعوليت دزيد نه دي په اعتبار دلفظ ددې کلام او دمنطوق سره بلکې په |
| بِاِعْتِبَارِ مَعْنَى الْإِشَارَةِ أَوِ التَّنْبِيْهِ الْمَفْهُوْمَيْنِ مِنْ لَفْظِ هٰذَا وَلَا شَكَّ أَنَّهُمَا |
| اعتبار دمعنی داشارې او دتنبيه سره دي چې معلوميږي ددې لفظ نه او نشته څه شک چې دا دواړه دهغه قبيلې نه، |
| لَيْسَا مِمَّا يَقْصِدُ الْمُتَكَلِّمُ الْأَخْبَارَ بِهِمَا عَنْ نَفْسِهٖ حَتّٰى يُقَدَّرَ فِيْ نَظْمِ الْكَلَامِ أُشِيْرُ أَوْ |
| نه دي چې قصد کوي متکلم اخبار په دي سره دخپل نفس نه تردې پورې چې مقدر کړي په نظم دکلام کې اشير او |
| أُنَبِّهُ وَ يَصِيْرُ زَيْدٌ مَفْعُوْلاً بِهٖ لَفْظِيّاً بَلْ مَفْعُوْلِيَّتُهٗ إِنَّمَا هِيَ بِاِعْتِبَارِ مَعْنٰى أُشِيْرُ أَوْ أُنَبِّهُ الْخَارِجِ عَنْ |
| انبه او کرځي زيد مفعول به لفظي بلکې مفعوليت يې دا په اعتبار دمعنی داشير او انبه سره دي چې خارج دي د |
| مَنْطُوْقِ الْكَلَامِ الْمُعْتَبَرِ لِصِحَّةِ وُقُوْعِ الْقَائِمِ حَالاً فَهِيَ مَعْنَوِيَّةٌ لَا لَفْظِيَّةٌ. |
| منطوق دکلام دوجې دمعتبرولو دصحت وقوع دقائم نه حالاً نو دا معنوي دي نه لفظي. |

**خلاصه دمتن:** صاحب دکافيې په دې عبارت کې دحال مثالونه بيانوي چې ضربتُ زيد قائما داد عامل لفظي حقيقي لفظي مثال دي او زيد في الدار قائما داد عامل لفظي حکمي مثال دي او هذا زيد قائما داد عامل معنوي مثال دي

**اغراض دجامي** : مثال للفظي: په دې عبارت کې غرض دشارح دممثل له دتعين بيان دي ضربتُ زيداً قائماً دا دهغه عاملِ لفظي مثال دي کوم چې حقيقتا ملفوظ وي ځکه چې تاء د متکلم دفاعليت او زيد دمفعوليت لفظ دکلام او منطوق دکلام اعتبار څخه دي ديودا سې

معنی دمعتبرولو دوجې نه . نه دي کوم چې خارج عن الکلام دي پس دا دواړه حقيقةً ملفوظ دي

مثال للفظي الملفوظ حکما: په دې عبارت سره غرض دشارح دممثل له دتعيين بيان دي زيد في الدار قائما دا دهغه لفظي مثال دي کوم چې حکماً ملفوظ وي ځکه چې هغه ضمير کوم چې په ظرف کې پټ دي ددې فاعليت منطوقِ کلام اودلفظ کلام څخه دي اوخارج عن الکلام ديوې معنې دمعتبرولو دوجې نه . نه دي .

مثال للمعنوي: په دې عبارت سره غرض دشارح دممثل له دتعيين بيان دي هذا زيد قائما داد معنوي مثال دي ځکه چې دزيد مفعوليت دلفظ کلا. اودمنطوق کلام داعتبار څخه نه دي بلکه معنى اشاره اوتنبيه دوجې نه دي کوم چې دلفظ هذا نه فهميږي

ولا شک: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : په هذا کې د هاء معنى انبه اود ذا معنى اشيرُ ده نو د زيد مفعوليت معنوي نه شو ځکه چې دده مفعوليت دلفظ دهذا څخه فهميږي کوم چې منطوق کلام دي لهذا ستا کلام چې زيد مفعوليت اومنطوق کلام څخه نه دي دا څنګه صحيح دي ؟

**جواب** : دمتکلم مقصود مطلق اشاره اوتنبيه ده نه هغه اشاره کومه چې متکلم طرف ته منسوب ده ددې دپاره چې په نظم دکلام کې دننه اشير او انبه مقدر ومنل شي او د زيد مفعوليت په اعتبار دلفظ شي بلکه اشير او انبه داد لفظِ کلام نه خارج دی اودفحوی دکلام نه فهميږي لکه څنګه چې ويلي ملامحمد عمر کابلي په سوال کابلي کې ليکلي دي چې

**بل هما خارجان عن منطوق الکلام و مفهومان عن فحواه فلا يکون منطوقين بل مفهومين . (سوال کابلي ص ٢٣٣).**

چې بلکې دادواړه خارج دي دمنطوقِ کلام نه اوفهميږي دفحوی دکلام نه نودانه دي منطوقين بلکې دا دفحوی اودسياق کلام نه فهيمږي

المعتبر: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : که چيرته اشير او انبه دا دواړه دمنطوقِ کلام نه خارج دي نو بيا ددې دمعتبرولو څه ضرورت دي ؟

**جواب** : دا ځکه معتبرولې شي چې قائماً حال جوړول صحيح شي .

## د حال د عامل ذکر :

| |
|---|
| وَعَامِلُهَا اَيْ عَامِلُ الحَالِ اِمَّا الفِعْلُ المَلْفُوْظُ اَوِ المُقَدَّرُ نَحْوُ ضَرَبْتُ زَيْداً قَائِماً وَزَيْدٌ فِي الدَّارِ قَائِماً اِنْ كَانَ |
| اوعامل د دې يعنې عامل دحال يا به فعل ملفوظ وي اويا به مقدر لکه ضربت زيداً قائماً وزيد في الدار قائماً که چيرته |
| الظَّرْفُ مُقَدَّراً بِالفِعْلِ اَوْ شِبْهُهُ وَ هُوَ مَا يَعْمَلُ عَمَلَ الفِعْلِ وَ هُوَ مِنْ تَرْكِيْبِهِ |
| ظرف دفعل سره مقدر روي ياشبه فعل وي اوشبه فعل هغه دي چې عمل کوي په شان دفعل او دا دفعل دترکيب څخه |
| كَاسْمِ الفَاعِلِ نَحْوُ زَيْدٌ ذَاهِبٌ رَاكِباً وَ زَيْدٌ فِي الدَّارِ قَاعِداً اِنْ كَانَ الظَّرْفُ مُقَدَّراً بِاسْمِ الفَاعِلِ وَ |
| وي په شان د اسم فاعل لکه زيد ذاهب راکبا او زيد في الدار قاعدا که چيرته ظرف مقدر روي د اسم فاعل پورې اولکه په |
| كَاسْمِ المَفْعُوْلِ نَحْوُ زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ قَائِماً وَالصِّفَةِ المُشَبَّهَةِ نَحْوُ زَيْدٌ حَسَنٌ ضَاحِكاً اَوْ مَعْنَاهُ المُسْتَنْبَطُ مِنْ فَحْوَى |
| شان د اسم مفعول لکه زيد مضروب قائماً وصفت مشبه لکه زيد حسن ضاحکا يا معنی د دې چې مستنبط وي د سياق |
| الكَلَامِ مِنْ غَيْرِ التَّصْرِيْحِ بِهِ اَوْ تَقْدِيْرِهِ كَالاِشَارَةِ وَ التَّنْبِيْهِ فِي نَحْوُ هٰذَا زَيْدٌ قَائِماً كَمَا مَرَّ وَ كَالنِّدَاءِ وَ التَّمَنِّي |
| د کلام نه په غير د تصريح او تقدير نه لکه اشاره او تنبيه په هذا زيد قائماً لکه مخکې د دې ذکر تير شوې او نداء او تمني |
| وَالتَّرَجِّيْ وَالتَّشْبِيْهِ فِي نَحْوِ يَا زَيْدُ قَائِماً وَلَيْتَكَ عِنْدَنَا مُقِيْماً وَلَعَلَّهُ فِي الدَّارِ قَائِماً وَكَاَنَّهُ اَسَدٌ صَائِلاً . |
| او ترجي او تشبيه په يا زيد قائماً او ليتک عندنا مقيماً او لعله في الدار قائماً او کانه اسد صائلاً . |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې وايي چې دحال عامل به يا فعل وي اويا شبه فعل او يا به په معنی دفعل وي بيا فعل عام دي برابره خبره ده که لفظاً وي او يا مقدر دلفظاً مثال لکه ضربت زيداً قائماً دفعل مقدر مثال لکه زيد في الدار قائماً دا به دفعل مقدر مثال هله جوړيږي چې کله دظرف متعلق فعل مقدر وي لکه څنګه چې دبصري دنحويانو مذهب دي .

**اغراض دجامي** : وهو: په دې عبارت سره شارح دشبه فعل تعريف بيانوي چې شبه فعل هغه دي کوم چې دفعل والا عمل کوي او دفعل دترکيب څخه وي يعنې دفعل دمادې څخه وي لکه اسم فاعل اسم مفعول، صفت مشبه وغيره د اسم فاعل ملفوظ مثال لکه زيد ذاهب راکبا ، د اسم فاعل مقدر مثال لکه زيد في الدار قاعداً په شرط د دې چې دظرف متعلق اسم فاعل مقدر وي لکه څنګه چې د کوفي دنحويانو مذهب دي د اسم مفعول مثال لکه زيد مضروب قائماً دصفت مشبه مثال لکه زيد حسن ضاحکاً .

اومعناه: په دې عبارت سره غرض دشارح دفعل دمعنی وضاحت کول دي چې معنی دفعل هغه

ده کوم چې دفحوی اودسوق کلام نه مستنبط وي لکه څنګه چې نه دفعل تصريح وي اونه مقدر وي لکه اشاره تنبيه ، نداء ، تمني ، ترجي وغيره اوداشارې اودتنبيه مثال لکه هذا زيد قائما ددې معنی اشير يا انبه زيدا قائما دي دتمني مثال لکه ليتک عندنا مقيما ددې معنی ده تمنيتک عندنا قائما اودترجي مثال لعلي في الدار قائما ددې معنی ترجيته في الدار قائما ده دتشبيه مثال لکه کانه اسد صائلا ددې معنی اشبهه اسدا قائما ده

## دحال شرائط :

| |
|---|
| وَ شَرْطُهَا اَیْ شَرْطُ الحَالِ اَنْ تَکُوْنَ نَکِرَةً لِاَنَّ النَّکِرَةَ اَصْلٌ وَ الغَرَضُ وَ هُوَ تَقْيِيْدُ |
| اوشرط ددې يعني شرط دحال دادې چې وي به نکره څکه چې نکره اصل دي اودحال نه غرض هغه مقيد کول د |
| الحَدَثِ المَنْسُوْبِ اِلیٰ صَاحِبِهَا يَحْصُلُ بِهَا وَ التَّعْرِيْفُ زَائِدٌ عَلَی الغَرَضِ |
| حدث دې چې منسوب وي ذوالحال طرف ته چې حاصليږي غرض دنکرې نه اوتعريف دا يوزائد دي په غرض باندې |
| وَ اَنْ يَکُوْنَ صَاحِبُهَا مَعْرِفَةً لِاَنَّهُ مَحْکُوْمٌ عَلَيْهِ فِي المَعْنٰی فَکَانَ الاَصْلُ فِيْهِ التَّعْرِيْفَ |
| يادا چې وي صاحب ددې معرفه څکه چې ذوالحال دامحکوم عليه دي په معنی کې نو اصل په دې کې تعريف دي |
| غَالِباً اَیْ لَيْسَ اِشْتِرَاطُهَا بِکَوْنِ صَاحِبِهَا مَعْرِفَةً فِي جَمِيْعِ مَوَادِهَا بَلْ فِي غَالِبِ مَوَادِهَا اَیْ |
| غالبا يعني نه دي شرط ددې په کيدو دصاحب ددې کې معرفه په ټولو موادو کې بلکې په غالب موادو کې يعني |
| اَکْثَرِهَا وَ بَيَانُ ذٰلِکَ اَنَّ مَوَادَ وُقُوْعِ الحَالِ عَلٰی قِسْمَيْنِ اَحَدُهُمَا مَا يَکُوْنُ ذُوالحَالِ فِيْهِ |
| په اکثر ددې کې اوبيان ددې چې مواددوقوع دحال په دوه قسمه دي يوددې نه هغه دي چې وي ذوالحال په دې کې |
| نَکِرَةً مَوْصُوْفَةً نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ فَارِساً اَوْ مُغْنِيَةً غِنَاءَ المَعْرِفَةِ لِاِسْتِغْرَاقِهَا نَحْوُ |
| نکره موصوفه لکه جاءني رجل من بني تميم فارسا اويابه فائده ورکوي فائده دمعرفې دوجې داستغراق نه لکه |
| قَوْلِهِ تَعَالیٰ فِيْهَا يُفْرَقُ کُلُّ اَمْرٍ حَکِيْمٍ اَمْراً مِنْ عِنْدِنَا اِنْ جَعَلْتَ اَمْراً حَالاً مِنْ کُلِّ اَمْرٍ اَوْ وَاقِعَةً فِي |
| داقول دالله تعالی فيها يفرق کل امر حکيم امراً من امرنا که چيرته وګرځوې امرا حال دکل امرنه اويا واقع وي په |
| حَيِّزِ الاِسْتِفْهَامِ نَحْوُ هَلْ اَتَاکَ رَجُلٌ رَاکِباً اَوْ بَعْدَ اِلاَّ نَقْضاً لِلنَّفْيِ نَحْوُ مَا جَاءَنِيْ رَجُلٌ اِلاَّ رَاکِباً اَوْ |
| خاې داستفهام کې لکه هل اتاک رجل راکبا اويا وي نکره پس دالا دپاره دماتولو دنفي لکه ماجاءني رجل الا راکبا اويا |
| مُقَدَّماً عَلَيْهِ الحَالُ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَاکِباً رَجُلٌ وَ ثَانِيْهِمَا مَا يَکُوْنُ ذُو الحَالِ فِيْهِ غَيْرَ هٰذِهِ |
| مقدم وي په دې باندې حال لکه ماجاءني راکبا رجل اودويم ددې نه هغه دي چې وي ذوالحال په دې کې غير ددې |
| الاُمُوْرِ وَ غَالِبُ مَوَادِ وُقُوْعِ الحَالِ وَ اَکْثَرُهَا هُوَ هٰذَا القِسْمُ وَ وُقُوْعُ الحَالِ فِي هٰذَا القِسْمِ مَشْرُوْطٌ |
| امورونه اوغالب موادو وقوع دحال او اکثر ددې هغه همدغه دويم قسم دي اوواقع کيدل ددې قسم مشروط دي |

| |
|---|
| بِكَوْنِ صَاحِبِهَا مَعْرِفَةً فَقَوْلُهُ غَالِباً قَيْدٌ لِاشْتِرَاطِ كَوْنِ صَاحِبِهَا مَعْرِفَةً لاَ بِكَوْنِ |
| په کيدو دصاحب ددې کې معرفه نو داقول غالباً داقيد دي دپاره دشرط کيدو دصاحب ددې معرفه نه په کيدو د |
| صَاحِبِهَا مَعْرِفَةً حَتّٰى يُقَالَ اِنَّ غَالِبِيَّةَ كَوْنَ صَاحِبِهَا مَعْرِفَةً اَلْمُنْبِئَةَ عَنْ تَخَلُّفِهِ فِيْ بَعْضِ |
| صاحب ددې معرفه تردې چې وويلې شي چې غالبيت دکيدو دصاحب ددې معرفه خبرورکوي دتخلف نه په بعضې |
| اَلْمَوَادِ تُنَافِيْ الشَّرْطِيَّةَ وَ يُحْتَاجَ اِلٰى اَنْ يُصْرَفَ الْكَلَامُ عَنْ ظَاهِرِهِ وَ يُجْعَلَ |
| موادوکې چې منافي وي دشرط سره اومحتاج وي دې خبرې طرف ته چې واړولې شي کلام دظاهرنه اوو گرځوي |
| قَوْلُهُ وَ صَاحِبُهَا مَعْرِفَةً مُبْتَدَأً وَخَبْراً مَعْطُوْفاً عَلٰى قَوْلِهِ وَشَرْطُهَا اَنْ تَكُوْنَ نَكِرَةً. |
| قول دده وصاحبها معرفة مبتدا اوخبرچې عطف دي په دې قول وشرطها ان تكون نكرة باندې. |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې په دې عبارت کې دحال شرط بيانوي چې دحال شرط دادې چې هغه به په خپله نکره وي اوددې صاحب يعنې ذوالحال به غالباً معرفه وي .

**اغراض دجامي** : اى شرط الحال: په دې عبارت سره غرض دشارح د هاء دضمير مرجع متعين کول دي چې د هاء ضمير مرجع حال دي .

لان النكرة: په دې عبارت سره غرض دشارح دحال دنکره کيدو دشرط وجه بيانوي داشرط يې ددې وجې نه ولړول ځکه چې په کلام کې اصل تنکير دي اودلته غرض معنى حدثي منسوب الى ذى الحال لره متعين کول دي اوهغه دنکرې سره حاصليږي لهذا تعريف امر زائد على الغرض دي نو حال لره دمعرفې جوړولو ضرورت نشته دي .

وان يكون: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي اشاره ده دې خبرې طرف ته چې د صاحبها عطف په تكون ضمير مستتر باندې دي لهذا دصاحبهانه مخکې يكونُ به مقدر وي يا په دې عبارت سره دشارح جامي غرض په علامه فاضل هندي وغيره باندې رد کول دي کوم چې دا وايي چې د صاحبها عطف په شرطها باندې دي اودامبتدا ده معرفة به مرفوع شي اوددې خبر به شي هغه دادليل بيانوي چې که چيرته د صاحبها عطف په تكون ضمير مستتر باندې وي نو تقدير دعبارت به داسې وي چې وشرطها ان تكون نكرة وشرطها ان يكون صاحبها معرفة غالباً په دې صورت کې دعبارت اول دآخر سره تعارض لري ځکه چې شرط دلزوم اودوام تقاضاکوي او ذوالحال لره معرفه کيدل لازمي اودائمي ده ځکه چې شرط مشروط لره لازم وي اوغالباً لفظ عدم لزوم اوعدم دوام اودتخلف تقاضا کوي ددې نه معلوميږي چې ذوالحال لره معرفه کيدل

اکثر اوغالب دي کله کله ذوالحال هم نکره کيدي شي نو په دواړو کې منافات دي ددې وجې نه علامه فاضل هندي وغيره وايي چې **صاحبها** په ضمير مستتر باندې نه شي عطف کولې بلکه په **شرطها** باندې به عطف کولې شي نو **صاحبها** مبتدا او**معرفة** به يې خبر شي اوداب**ه عطف الجملة على الجملة السابقة** شي نو شارح دجامي **ان يكون** سره ددې ترديد کوي چې د **صاحبها** عطف **يكون** په ضمير باندې دي باقي دفاضل هندي داستدلال جواب په **اى ليس اشتراطها** سره شارح بيانوي.

**لانه محكوم عليه**: په دې عبارت سره غرض دشارح دذوالحال دمعرفه کيدو وجه بيانوي ځکه چې ذوالحال دمحکوم عليه په معنی کې وي اوپه محکوم عليه کې اصل تعريف دي ځکه چې دامعرفه کيدل په کار دي.

**اى ليس اشتراطها**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: دشرط اودغلبې په مينځ کې منافات دي ځکه چې دشرط تقاضا داده چې ذوالحال به هميشه معرفه وي چيرته به هم نکره نه وي اودغلبې تقاضا داده چې ذوالحال به هميشه معرفه وي کله کله به نکره هم وي نودادواړه امرِواحد يعنې ذوالحال طرف ته څنګه متوجه کولې شي ؟

**جواب**: شرط اوغلبه دواړه امرِ واحد يعنې ذوالحال طرف ته متوجه نه دي بلکه شرط متوجه دي ذوالحال طرف ته او ذوالحال متوجه دي شرط طرف ته لکه څنګه چې په **شرط الصلوة الوضوء غالباً** کې شرط متوجه دي صلوة طرف ته اوغالباً متوجه دي شرط طرف ته ځکه چې تيمم هم د لمونځ شرط دي ليکن اقل دي اوشرطِ اکثر واغلب هغه وضوء او اودس دي همدارنګې دلته کې هم شرط متوجه دي ذوالحال طرف ته او غلبه متوجه ده شرط طرف ته ځکه چې تخصيص (نکره مخصصه) هم دذوالحال شرط دي ليکن شرط اقل دي اوشرطِ اکثر اوغالب تعريف دي خلاصه داده چې دغالباً تعلق داشتراط خمسه سره دي مطلب دادې چې د ذوالحال معرفه کيدل شرط لازمي اودائمي نه دي بلکه شرط اکثري واغلبي دي په دې جواب سره دفاضل هندي وغيره ددليل جواب هم وشو چې په اول اوآخر کې څه تعارض نشته دي.

**وبيان ذلک**: په دې عبارت سره غرض دشارح مخکنې شرط يعنې دحال دموادو وضاحت کول دي حال دوقوع مواد په دوه قسمه دي: (۱) هغه مواد چې په هغې کې حال واقع کيدل اقل وي (۲) هغه مواد چې په هغې کې حال واقع کيدل اکثر وي.

**اول قسم** : چې په دې کې حال واقع کيدل اقل وي داپه پنځه قسمه دي (۱) ذوالحال نکره موصوفه وي نو دصفت دوجې نه په دې کې تخصيص راغلي وي لهذا دې لره ذوالحال جوړول صحيح دي مثال لکه **جاءني رجل من بني تميم فارساً** په دې مثال کې **رجل** لره ذوالحال جوړول صحيح دي

(۲) ذو الحال نکره وي چې د استغراق د وجې نه د تخصيص نه مستغني وي لکه څنګه چې معرفه د تخصيص نه مستغني وي لکه په قرآن مجيد کې الله تعالى فرمايلي دي چې : ﴿**فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ أَمْراً مِّنْ عِندِنَا**﴾ ، که **امراً** لره حال جوړ شي نو **کل امر** اګرکه نکره ده ليکن هر هر فرد ته شامله ده ددې وجې نه دادمعرفې په حکم کې شو اودې تخصيص ته ضرورت نشته دي لهذا دې لره ذوالحال جوړول صحيح دي .

**فائده : ان جعلت امراً** ، داقيد يې ددې وجې نه ولږول ځکه چې بعضې وايي چې **امراً** حال دي د **حکيم** دضمير نه کله چې دا **حکيم** دضمير نه حال وي نوداز موږ دبحث نه خارج دي ځکه چې زموږ بحث دذوالحال په نکره کې دي که دې لره دضمير نه حال جوړکړي شي نودانکره نه شوه بلکه معرفه شوه ځکه چې ضمائر معرفه وي .

(۳) ذوالحال نکره داستفهام نه وروستو واقع وي مثال لکه **هل اتاک رجل راکباً** په دې مثال کې **رجل** ذوالحال نکره دي اوداستفهام نه وروستو واقع ده .

(۴) ذوالحال نکره وي اوحال د **إلاّ** نه وروستو واقع وي دنفي دانقطاع دپاره مثال لکه **ماجاءني رجل الا راکباً** .

(۵) حال په ذوالحال باندې مقدم وي مثال لکه **جاءني راکباً رجل** ، په دې ټولو صورتونو کې په نکره کې تخصيص راځي ددې وجې نه دې لره ذوالحال جوړول صحيح دي

**دوهم قسم** : هغه مواد چې په دې کې دحال وقوع اکثر وي اوددې مذکوره پنځو (۵) صورتونو نه غير وي په دې کې به دذوالحال دپاره شرط دادې چې دابه معرفه وي .

**فقوله غالباً قيد لاشتراط کون صاحبها معرفة** : دشارح دجامي داعبارت په **ليس اشتراطها** باندې تفريع ده اوعلامه فاضل هندي اوسيد سند شريف وغيره باندې صراحةً رد دي کوم چې دا وايي چې **صاحبها** مبتدا او **معرفة** خبر دي اوداجمله په **شرطها** باندې معطوف ده نه په **تکون** کې په **هي** ضمير باندې نو شارح دجامي ددې ترديد اوددوي ددليل جواب ورکوي چې حاصل يې

داڼې چې دمصنف رحمه الله قول غالباً دا داشتراط قيد دي مقصد دادې چې ذوالحال معرفه کيدل شرط ، شرطِ اکثري او اغلبي دي دائمي نه دي لهذا که بعضې موادو کې ذوالحال نکره وي نو دا دهغه شرط منافي نه دي او دا غالبا د صاحباً معرفةً قيد نه دي بلکه صاحبها معرفةً صاحبها مبتدا دي او معرفه ددې خبر دي او مبتدا دخپل خبر سره په شرطها باندې معطوف دي داځکه چې دا خلافِ ظاهر دي ځکه چې اصل عطف المفرد على المفرد دي لکه څنګه چې فاضل هندي او سيد سند شريف وايي.

| وَ لَمْ يُشْفِقْ عَلٰى نَغْصِ الدِّخَالِ | وَ اَرْسَلَهَا الْعِرَاكُ وَ لَمْ يَذُدْهَا |
|---|---|
| او نه پريدل دهغوي په نه خړوبيدو باندې | او پريخودې وحشي خرو مادې خپلې او منع يې نه کړې ديوځاي کيدو نه |

اَلْبَيْتُ لِلَبِيْدٍ يَصِفُ حِمَارَ الْوَحْشِ وَالْاُتُنَ يَقُوْلُ اَرْسَلَ حِمَارُ الْوَحْشِ الْاُتُنَ وَكَاَنَّ الْمُرَادَ بِالْاِرْسَالِ

دابيت دلبيت دې چې صفت کوي دوحشي خره او دخرې وايي چې وحشي خر خرولره ولېږلو ګوياچې مراد دارسال نه

الْبَعْثُ وَ التَّخْلِيَةُ بَيْنَ الْمُرْسَلِ وَ مَا يُرِيْدُ اَيْ اَرْسَلَهَا مُعْتَرِكَةً

لېږل او تخليه ده په مينځ دمرسل او دهغه څه چې دا يې اراده لري يعني ولېږل وحشي خر وخرې لره چې دوي په يو

مُتَزَاحِمَةً وَ لَمْ يَذُدْهَا اَيْ لَمْ يَمْنَعْهَا مِنَ الْعِرَاكِ وَ لَمْ يُشْفِقْ اَيْ لَمْ يَخَفْ

باندې ازدحام راوړاودوي دازدحام نه منع نه کړل يعني منع يې نه کړل دازحادم نه او ويره يې ونه کړه يعني ونه پريده

عَلٰى نَغْصِ الدِّخَالِ اَيْ عَلٰى اَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ شُرْبُ بَعْضِهَا لِلْمَاءِ بِالدِّخَالِ وَ الدِّخَالُ

په داخليدو دخرو يعني د دې خبرې ويره يې ونه کړه چې پوره به ونه څکي بعضې او بولره دوجې [illegible] زدحام نه او دخال

هُوَ اَنْ يَشْرَبَ الْبَعِيْرُ ثُمَّ يُرَدُّ مِنَ الْعَطَنِ اِلَى الْحَوْضِ وَ يَدْخُلُ

دې ته وايي چې وڅکي اوبه اوښ بيا واپس شي دخپل ځاې نه دتندې په حالت کې واپس کړې شي او داخل شي

بَيْنَ بَعِيْرَيْنِ عَطْشَانَيْنِ لِيَشْرَبَ مِنْهُ مَا عَسَاهُ لَمْ يَكُنْ شَرِبَ مِنْهُ

په مينځ ددوه تږواوښانو کې ددې دپاره چې وڅکي اوبه دحوض نه ګوياچې دې اوښ اوبه نه وي څکلي دحوض نه

وَ لَعَلَّ الْمُرَادَ بِهٖ هٰهُنَا نَفْسُ مُدَاخَلَةِ بَعْضِهَا فِيْ بَعْضٍ اَوِ الْمَعْنٰى عَلٰى نَغْصٍ مِثْلِ نَغْصِ الدِّخَالِ

او شايد ددخال نه مراد دلته نفسِ مداخلت دبعضو دي په نورو بعضو کې ياد على نغص معنى په شان د نغص الدخال ده

وَ مَرَرْتُ بِهٖ وَحْدَهٗ وَ نَحْوُهٗ مِثْلُ فَعَلْتَهٗ جُهْدَكَ مُتَاَوَّلٌ بِالنَّكِرَةِ فَلَا يَرِدُ نَقْضاً عَلٰى

او مررت به وحده او ددې په شان مثال لکه فعلت جهدک ددې تاويل شوې په نکرې نو لهذا نه واردېږي اعتراض په

قَاعِدَةِ اِشْتِرَاطِ كَوْنِهَا نَكِرَةً وَتَاوِيْلُهَا عَلٰى وَجْهَيْنِ اَحَدُهُمَا اَنَّهَا مَصَادِرُ لِاَفْعَالٍ مَحْذُوْفَةٍ

شعر قاعدې د شرط کيدو د نکرې باندې او تاويل ددې په دوه قسمه دي يو ددې نه داچې مصادر د افعالو محذوفو

| |
|---|
| اَیْ تَعْتَرِکُ الْعِرَاکَ وَیَنْفَرِدُ وَحْدَهُ اَیْ اِنْفِرَادَهُ وَتَجْتَهِدُ جُهْدَکَ فَهٰذِهِ الْجُمَلُ الْفِعْلِیَّةُ وَقَعَتْ حَالاً وَهٰذِهِ |
| يعنې تعترک العراک او وينفرد وحده يعنې انفراده او تجتهد جهدک دي نو دا جملې فعليې واقع شوي حال او دا |
| الْمَصَادِرُ مَنْصُوْبَةٌ عَلَی الْمَصْدَرِيَّةِ وَثَانِيْهِمَا اَنَّهَا مَعَارِفُ مَوْضُوْعَةٌ مَوْضِعَ النَّکِرَاتِ اَیْ مُعْتَرِکَةً |
| مصادر منصوب دي بناء مصدريت او دويم ددې نه داچې دامعرفه چې وضع شوې په ځاي دنکرې يعنې معترکةً |
| وَمُنْفَرِداً وَمُجْتَهِداً فَالصُّوْرَةُ وَاِنْ کَانَتْ مَعْرِفَةً فَهِيَ فِي التَّقْدِيْرِ نَکِرَةٌ کَمَا اَنَّ حَسَنَ الْوَجْهِ فِيْ صُوْرَةِ |
| ومنفرداً ومجتهداً پس صورت اګرچې دمعرفې دي نو داپه تقدير کې نکره ده لکه څنګه چې حسن الوجه په صورت |
| الْمَعْرِفَةِ وَ هِيَ فِي الْمَعْنٰی نَکِرَةٌ. |
| دمعرفې کې ده حالانکه داپه معنی دنکرې کې دي. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب دکافيې ديوسوال مقدر جواب ورکوي:

**سوال**: دحال شرط نکره کيدل منقوض دي په ارسلها العراک ، مررت به وحده ، فعلته جهدک سره څکه چې په ارسلها العراک کې العراک حال دي حالانکه دانکره نه ده بلکه دالف لام دوجې نه معرفه ده او مررت به وحده کې وحده حال دي حالانکه دانکره نه ده بلکه ضمير ته داضافت د وجې نه معرفه ده او فعلت جهدک کې جهدک حال دي حالانکه دانکره نه ده بلکه ضمير ته داضافت دوجې نه معرفه ده.

**جواب**: صاحب دکافيې ددې ټولو مثالونو جواب ورکوي چې دا مثالونه متاول دي يعنې دنکرې په تاويل کې دي ، (دتاويل تفصيل به ان شاء الله په شرح کې راشي).

**اغراض دجامي**: ولم يشفق على نغص الدخال: په دې عبارت سره غرض دشارح دشعر پوره کول او دشعر وضاحت کول دي پوره شعر داسې دي چې:

وارسلها العراک ولم يذدها ولم يشفق على نغص الدخال

**ترجمه**: وحشي خر خپلې مادې لره يعنې وحشي خرې لره په حالت دازدحام کې يوائې پريخوده او هغې لره يې دجمع کيدو نه منع نه کړه او ددې خبرې ويره يې ونه کړه چې دازدحام اود رش دوجې نه به سيراب نه شي.

دادلبيد شعر دي هغه يوه ورځ دغره دسر نه وحشي خر او وحشي خره وليده چې دې وحشي خر دا وحشي خره د اوبو څکلو د پاره پريخوده او په خپله يو طرف ته ودريدو او ددې وحشي خرې نګراني او څارنه يې کوله چې يو ښکاري ددې وحشي خرې ښکار ونه کړي چې کله لبيد دا

منظر ولـدو نو داشعر يې وويلو چې په دې شعر کې دوحشي خر اودوحشي خرې تعريف کوي

**وكان**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د ارسال نسبت وحشي خر طرف ته صحيح نه دي ځکه چې دارسال معنى ده ليږل اودا د ذوي العقولو صفت دي او وحشي خر خو غير ذوي العقول دي

**جواب** : دلته د ارسال نه مراد برآنګيخته کول او راپارول دي اودمرسل اومرسله اليه په مينځ کې تخليه کول دي ددې وجې نه څه اشکال نشته .

**معتركة**: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمعنى ده العراک داسم فاعل **معتركة** په معنى باندې دي داتاويل يې ځکه وکړه چې ددې په ذوالحال باندې حمل صحيح شي .

**متزاحمة**: په دې عبارت سره شارح د**معتركةً** معنى بيان کړه يعنې **متنازعة بعضها مع بعض** .

**لم يمنعها**: په دې عبارت سره شارح د **لم يذدها** دمعنى بيان کوي .

**اى لم يخف**: په دې عبارت سره شارح د **لم يشفق** دمعنى بيان کوي، داشفاق دوه (۲) معنى دي : (۱) مهرباني کول . (۲) ويريدل ، شارح په **لم يخف** سره ددويمې معنى تعين کوي چې دلته **لم يشفق** په معنى د **لم يخف** سره دي .

**نغص**: ددې معنى ده په پوره اومکمله طريقې سره نه سيراب کيدل اومړيدل .

**دخال**: د دخال معنى ده چې يو اوښ اوبه وڅکي او واپس خپل ځاې ته لاړ شي اويادا خپل ځاې نه دوباره لرې شي اوحوض طرف ته واپس شي اوددوه تږو اوښانو په مينځ کې داخل شي کوم چې اوبه څکي ددې دپاره چې داهغه اوبه وڅکي کوم چې ده مخکې نه وي څکلي .

**ولعل المراد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : د دخال معنى ده چې ددوه تږو اوښانو په مينځ کې يو اوښ داخل شي نه وحشي خر داخليدل . لهذا دلته لفظ د دخال صحيح نه دي .

**جواب** : شارح ددې دوه جوابونه ورکوي

**جواب (۱)** : اول جواب داچې د **دخال** نه مراد نفس مداخلت دي يعنې **بعضې** ځناور په بعضو نورو کې داخل سي برابره خبره که اوښ وي اويا بل ځناور وي

**جواب (۲)** : دويم جواب داچې په عبارت کې **مثلُ** مضاف محذوف دي تقدير دعبارت داسې

دي چې على نغص مثل نغص الدخال

**ونحوه**: يعني د مذكوره دوه مثالونو نه غير نور مثالونه هم شته چې په هغې كې حال نكره نه وي مثال لكه فعلته جهدك

**تاويلها**: په دې عبارت سره شارح په مثالونو كې شوي تاويلات بيانوي په دې مثالونو كې دوه (۲) قسمه تاويل شوي دي

**تاويل (۱)**: العراك او وحده او جهدك دا د افعال محذوفه د مصادرو مفعول مطلق دي د دې افعال په سماعي وجوبي طريقې باندې حذف كړي شو په اصل كې عبارت داسې دي **تعترك العراك وتنفرد وحده وتجتهد جهدك** ، دا ټولې جملې فعليې حال واقع دي او مصادر منصوب دي د مفعول مطلق په بناء باندې ځكه چې **جمله من حيث الجملة** د نكرې په حكم كې وي لهذا حال نكره شو نه معرفه.

**تاويل (۲)**: مصادر اګرچې صورةً معرفه دي ليكن معناً نكره دي لكه څنګه چې **حسن الوجه** صورةً معرفه ده ليكن معناً نكره ده دا معناً ځكه نكره ده چې د العراك الف لام زائد دي د عراك معنى ده **معتركة** او د **وحده** معنى ده **منفردا** ، او د **جهدك** معنى ده **مجتهدا**.

## په ذوالحال باندې د حال د تقديم صورت:

| |
|---|
| **فَإِنْ كَانَ صَاحِبُهَا أَىْ صَاحِبُ الْحَالِ نَكِرَةً مَحْضَةً لَمْ تَكُنْ فِيْهَا شَائِبَةُ تَخْصِيْصٍ بِمَا سِوَى التَّقْدِيْمِ** |
| كه چيرته صاحب د دې يعني صاحب د حال نكره محضه وي چې نه وي په دې كې شائبه د تخصيص په غير د تقديم |
| **وَ لَمْ تَكُنِ الْحَالُ مُشْتَرِكَةً بَيْنَهَا وَ بَيْنَ مَعْرِفَةٍ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ وَزَيْدٌ رَاكِبَيْنِ وَجَبَ تَقْدِيْمُهَا** |
| نه او نه وي حال مشترك په مينځ د نكرې او د معرفې كې لكه جاءني رجل وزيد راكبين نو واجب دي تقديم د دې |
| **أَىْ تَقْدِيْمُ الْحَالِ عَلَى صَاحِبِهَا لِيَتَخَصَّصَ النَّكِرَةُ بِتَقْدِيْمِهَا لِاَنَّهُمَا فِي الْمَعْنٰى** |
| يعني تقديم د حال په ذوالحال باندې چې تخصيص حاصل كړي نكره په تقديم د دې سره ځكه چې دا دواړه په معنى |
| **مُبْتَدَأٌ وَ خَبَرٌ وَ لِئَلَّا تَلْتَبِسَ بِالصِّفَةِ فِي النَّصْبِ فِيْ مِثْلِ قَوْلِنَا ضَرَبْتُ رَجُلاً** |
| كې مبتدا او خبر دي او د دې وجې نه التباس را نه شي د صفت سره په حالت د نصب كې په شان د قول زمونږ ضربت رجلاً |
| **رَاكِباً ثُمَّ قُدِّمَتْ فِيْ سَائِرِ الْمَوَاضِعِ وَ اِنْ لَمْ تَلْتَبِسْ طَرْداً لِلْبَابِ.** |
| راكبا يا مقدم كړې شو حال په ټولو ځايونو كې اګر كه ملتبس نه وي حال د صفت سره طرداً للباب. |

**خلاصه دمتن** : صاحب دكافيې وايي چې كه ذوالحال نكره وي نو دحال تقديم په ذوالحال باندې واجب دي

**اغراض دجامي** : اى صاحب الحال: په دې عبارت سره شارح د صاحبها د هاء دضمير مرجع متعين كوي چې د هاء ضمير حال ته راجع دي

محضة: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي

**سوال** : جاء ني رجل من بني تميم فارساً په دې كې رجل ذوالحال نكره ده ددې باوجود دحال تقديم په ذوالحال باندې واجب نه دي نو ستا قول څنګه صحيح دي چې ذوالحال نكره وي نو: حال تقديم واجب دي .

**جواب** : دلته دنكرې نه مرادنكره محضه ده چې په كې دتخصيص هيڅ شائبه نه وي اوپه ذكر شوي مثال كې رجل نكره محضه نه ده بلكه من بني تميم والادصفت دوجې نه نكره مخصصه ده.

وبما سوى: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : كله چې ذوالحال نكره محضه وي اوحال په ذوالحال باندې مقدم كړې شي نوپه دې كې دحال د تقديم د وجې نه تخصيص راتلې شي لهذا په دغه ذوالحال باندې د حال تقديم واجب كيدل نه دي په كار .

**جواب** : دتخصيص نه مراد هغه تخصيص دي كوم تقديم چې په ماسواء سره حاصليږي .

ولم تكن الحال مشتركة: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : جاء ني رجل وزيد راكبين په دې كې رجل نكره محضه ده ددې باوجود دراكبين تقديم په ذوالحال باندې واجب نه دي ؟

**جواب** : دذوالحال دنكره كيدو په صورت كې دحال تقديم په ذوالحال باندې په هغه وخت كې واجب دي چې هغه نكره حال اودمعرفې په مبنځ كې مشترک نه وي اوپه ذكر شوي مثال كې حال نكره اودمعرفې په مينځ كې مشترک ده

اى تقديم الحال: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دمرجع دي .

على صاحبها: په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دصلې دي چې دادتقديم صله ده .

لتخصص: په دې عبارت سره غرض دشارح حل په ذوالحال باندې دمقدم كولو وجه بيانوي چې

کله ذوالحال نکره وي نو د حال تقديم وجوب په دوه (۲) وجهو سره دي :

**اوله وجه** : حال د تقديم دوجې نه په ذوالحال نکره کې تخصيص پيدا کوي ځکه چې ذوالحال او حال د مبتدا او خبر په حکم کې دي لکه څنګه چې خبر د تقديم په وجې سره مبتدا نکره کې تخصيص راځي او دې لره مبتدا جوړول صحيح کيږي همدا رنګې د حال د تقديم دوجې نه په ذوالحال نکره کې تخصيص راځي او ددې ذوالحال جوړول به صحيح وي

**دوهمه وجه** : د حال په ذوالحال باندې تقديم د دې وجې نه واجب دي ځکه چې په حالت د نصب کې د حال د صفت سره التباس لازم رانه شي لکه مثال ضربت رجلاً راکباً په دې کې دا احتمال دي چې راکباً د رجلاً نه حال وي او دا احتمال يې هم شته چې داد رجلاً صفت وي کله چې راکباً لره په رجلاً باندې مقدم شي نو ددې تقديم نه به دا معلومه شي چې راکباً د رجلاً نه حال واقع دي صفت نه دي ځکه چې صفت په خپل موصوف باندې نه شي مقدم کيدې .

ثم قدمت : په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : التباس خو په حالت د نصب کې لازم راځي په حالت د جر او په حالت د رفع کې التباس لازم نه راځي ځکه چې د مرفوع صفت مرفوع وي او د مجرور صفت مجرور وي لهذا په حالت د رفع او جر کې چې کله ذوالحال نکره وي نو د حال تقديم واجب کيدل نه دي په کار .

**جواب** : اګرچې په حالت د نصب د غير کې التباس لازم نه راځي ليکن په دې کې هم طرداً للباب تقديم واجب دي .

## په ذوالحال باندې د حال د تقديم جائز او ناجائز صورتونه :

| |
|---|
| وَلاَ تَتَقَدَّمُ اَيِ الحَالُ فِيْمَا عَدَا مِثْلُ زَيْدٌ قَائِماً كَعَمْرٍو قَاعِداً عَلَى العَامِلِ المَعْنَوِيِّ قَدْ عَرَفْتَ فِيْمَا قَبْلُ |
| او نه مقدم کيږي يعني حال د زيد قائماً کعمرو قاعداً مثال نه غير په عامل معنوي باندې چې تا پيژندلې مخکې په |
| العَامِلَ المَعْنَوِيَّ وَ اَنَّ مَا هُوَ مُقَدَّرٌ بِالفِعْلِ اَوْ اِسْمِ الفَاعِلِ مِثْلُ الظَّرْفِ وَ مَا يُشْبِهُهُ اَعْنِيْ |
| عامل معنوي کې چې کوم چې مقدر په فعل يا په اسم فاعل پورې لکه ظرف او کوم چې ددې مشابه دي يعني |
| الجَارَ وَ المَجْرُوْرَ خَارِجٌ عَنْهُ دَاخِلٌ فِي الفِعْلِ اَوْ شِبْهُهُ فَعَلَى هٰذَا مَعْنَى |
| جار او مجرور دا خارج دي د عامل معنوي نه او داخل دي په فعل يا په شبه فعل کې نو بناء په دې باندې معنى د |
| الكَلاَمِ اَنَّ الحَالَ لاَ تَتَقَدَّمُ عَلَى العَامِلِ المَعْنَوِيِّ اِتِّفَاقاً بِخِلاَفِ الظَّرْفِ اَىْ بِخِلاَفِ مَا اِذَا كَانَ العَامِلُ |
| کلام دا ده چې نه مقدم کيږي په عامل معنوي باندې بالاتفاق په خلاف د ظرف يعني په خلاف د هغه چې وي عامل |

| |
|---|
| ظَرفاً اَوْ شِبْهَهُ فَاِنَّ فِيْهِ خِلَافاً فَسِيْبَوَيْهِ لاَ يُجَوِّزُهُ اَصْلاً نَظَراً اِلٰى ضُعْفِ الظَّرْفِ |
| ظرف يامشابه د ظرف څکه په دې کې اختلاف دې نو سيبويه نه جائز کوي بالکل په نظر کولو سره ضعف د ظرف ته |
| فِي الْعَمَلِ وَجَوَّزَهُ الْاَخْفَشُ بِشَرْطِ تَقَدُّمِ الْمُبْتَدَاِ عَلَى الْحَالِ نَحْوُ زَيْدٌ قَائِماً فِي الدَّارِ مَعَ تَاخِيْرِ |
| په عمل کې او جائز کړي اخفش په شرط د تقديم د مبتدا په حال باندې لکه زيد قائما في الدار هر چې سره د تاخير |
| الْمُبْتَدَاِ عَنِ الْحَالِ فَاِنَّهُ وَافَقَ سِيْبَوَيْهِ فِي الْمَنْعِ فَلَا يَجُوْزُ قَائِمًا زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَلَا قَائِمًا فِي الدَّارِ زَيْدٌ |
| مبتدا کې د حال نه نو دا موافق دې د سيبويه سره په منع کې نو نه دې جائز قائما زيد في الدار او نه قائما في الدار زيد |
| اِتِّفَاقًا وَ يَحْتَمِلُ اَنْ يَّكُوْنَ مَعْنَاهُ اَنَّ الْحَالَ وَ اِنْ كَانَ مُشَابِهًا لِلظُّرُوْفِ لِمَا فِيْهِ |
| بالاتفاق او دا احتمال هم لري چې وي معنى د دې چې حال اګر که مشابه وي د ظروفو سره څکه چې په دې کې |
| مِنْ مَعْنَى الظَّرْفِيَّةِ اِلَّا اَنَّ الظَّرْفَ يَتَقَدَّمُ عَلٰى عَامِلِهِ الْمَعْنَوِيِّ لِتَوَسُّعِهِمْ فِي الظُّرُوْفِ وَ الْحَالُ لَا يَتَقَدَّمُ |
| معنى د ظرفيت ده مګر ظرف مخکې کيږي په عامل معنوی باندې د وجې د توسع نه په ظروف کې او حال نه مقدم |
| عَلَيْهِ هٰذَا اِذَا لَمْ يَكُنِ الظَّرْفُ دَاخِلًا فِي الْعَامِلِ الْمَعْنَوِيِّ اَمَّا اِذَا |
| کيږي په عامل معنوي دا په هغه وخت کې چې کله نه وي ظرف داخل په عامل معنوي کې ليکن چې کله تاسو |
| جَعَلْتَهُ دَاخِلًا فِي الْعَامِلِ الْمَعْنَوِيِّ كَمَا هُوَ الظَّاهِرُ مِنْ كَلَامِهِمْ فَالْمُرَادُ هُوَ الْاِحْتِمَالُ الثَّانِيْ |
| وګرځوي داخل په عامل معنوي کې لکه څنګه چې دا ظاهر دې د کلام د نحويانو نه نو مراد هغه دويم احتمال دې |
| لَا غَيْرُ. |
| نه بل. |

**خلاصه دمتن:** صاحب د کافيې وايي چې که ذوالحال نکره وي نو د حال تقديم په ذوالحال باندې واجب دي ليکن حال خپل عامل معنوي باندې نه شي مقدم کيدي په خلاف د ظرف که چيرته عامل معنوي ظرف وي نو بيا پرې مقدم کيدي شي.

**اغراض دجامي :** <u>اى الحال</u>: په دې عبارت سره شارح دلتقدم د ضمير مرجع بيانوي چې د لتقدم ضمير مرجع حال دي.

<u>**فيما عدا**</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال** : ستا داقول چې حال په عامل معنوي باندې نه شي مقدم کيدي دا منقوضه او ماته ده په **زيدٌ قائما کعمرو قاعدا** سره څکه چې په دې مثال کې قائماً د زيد نه حال دي او دا د عامل معنوي نه مقدم دي څکه چې په دې کې عامل معنوي تشبيه دي کوم چې د کاف نه معلوميږي

**جواب** : دلته په عامل معنوي باندې د حال تقديم په يوې قاعدې سره دي او هغه قاعده دا ده

چې کله ددوه شیانو مختلفینو نه دوه حاله واقع وي یا دیو شیز نه دوه حاله واقع وي په دوه مختلف اعتبارونو سره په دې وخت کې هرحال دخپل ذوالحال سره متصل کیدل ضرري دي او دامثال هم ددې قبیل څخه دي ځکه چې په دې کې **قائماً** دزید نه حال دي په دې حیثیت سره چې هغه مشبه دي او **قاعداً** دعمرواً نه حال دي په دې اعتبار سره چې هغه مشبه به دي ددې وجې نه **قائماً** د زید سره متصل کیدل او **قاعداً** دعمرواً سره متصل کیدل ضروري ذي ورنه د تاخیر په صورت کې دیوحال دبل حال سره التباس لازم راځي.

<u>**قدعرفت**</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: کله چې مصنف **ولا تتقدم على المعنوي بخلاف الظرف** وویل نو عامل معنوي او ظرف لره یې ولې بیان نه کړه په کارخو داسې وه چې ویلي وي چې عامل معنوي څه ته وایي ؟

**جواب**: داخبره مخکې معلومه شوي ده چې عامل معنوي څه ته وایي اوداهم معلومه شوي ده چې هغه لفظ کوم چې مقدر بالفعل یامقدر باسم الفاعل وي مثلاً ظرف اوددې مشابه داد عامل معنوي نه خارج دي اوپه فعل اوشبه فعل کې داخل دي لهذا دوباره دتعریف ضرورت نشته دي همدارنګې داعبارت دمابعد **بخلاف الظرف** دپاره هم تمهید دي.

<u>**فعلى هذا**</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: ظرف په عامل معنوي کې داخل دي یافعل اوشبه فعل کې داخل دي نو بیا **بخلاف الظرف** دمخالفت سره دظرف تخصیص صحیح نه دي ځکه چې لکه څنګه حال په ظرف باندې مقدم کیدې شي نو همدارنګې فعل یاشبه فعل نه هم مقدم کیدې شي نو مصنف رحمه الله له داسې ویل په کار وو چې **بخلاف الظرف والفعل وشبه الفعل**.

**جواب**: ظرف په فعل یاشبه فعل کې داخل دي پاتې شوه داخبره چې مخالفت سره دظرف تخصیص یې ولې ذکرو نودې جواب دادې چې په ظرف کې اختلاف وو نو ځکه ددې تخصیص وشو. اوس دعبارت معنی داده چې حال په عامل معنوي باندې بالاتفاق نه شي مقدم کیدې په خلاف ددې صورت چې کله حال عامل ظرف یاشبه ظرف وي نو په دې باره کې اختلاف دي داختلاف تفصیل دادې:

(۱): **دسیبویه په نزد**: دسیبویه په نزد عامل ظرف اوشبه ظرف باندې حال نه شي مقدم کیدې ځکه چې ظرف په عمل کې ضعیف دي اودعامل ضعیف معمول به حال باندې نه شي

مقدم کيدي.

(۲): **داخفش په نزد**: داخفش په نزد عامل ظرف اوشبه ظرف باندې دحال تقديم جائز دي په دې شرط سره چې مبتدا دحال نه مقدم وي لکه **زيد قائماً في الدار** اوکه مبتدا دحال نه مؤخر وي نو بيا اخفش هم دسيبويه موافقت کوي اودحال تقديم ناجائزوي ددې وجې نه **قائماً زيد في الدار** او **قائما في الدار زيد** بالاتفاق ناجائز دي ځکه چې په دې کې حال په مبتدا باندې مقدم دي

**ويحتمل:** په دې عبارت سره غرض دشارح په متن کې د **بخلاف الظرف** يو بل احتمال بيانوي.
دمصنف قول **ولاتتقدم على العامل المعنوي بخلاف الظرف** په مطلب کې دوه احتماله وو:

(۱): يو احتمال خو مخکې تير شوي دي چې حال په عامل معنوي بالاتفاق نه شي مقدم کيدې په خلاف دعامل ظرف ياشبه ظرف چې په دې باندې دحال په مقدم کيدو کې اختلاف دي.

(۲): دويم احتمال دادې چې حال اګرکه دظرف مشابه دي ځکه چې په دې کې هم دظرفيت معنی موندلې شي ليکن حال په عامل معنوي باندې نه شي مقدم کيدې په خلاف دظرف چې هغه په عامل معنوي نه شي مقدم کيدې ځکه چې نحويان په ظرف کې وسعت اوګنجائش پيدا کوي، ضابطه اوقاعده داده چې **يجوز في الظرف مالا يجوز في غيرها**، همدارنګې داقاعده هم ده چې **الظروف كالمحارم** لکه څنګه چې هر انسان دپاره محارم وي اوهغه محارم **ليلاً** او**نهاراً** چې کله وغواړي په غير داجازت نه کور ته داخليږي دده دپاره دتوسع اوفراخی مظاهره کولې شي همدغه حال دظروفو هم دي دکثرت دوران اودکثرت استعمال دوجې نه په دې کې توسع شوي ده چيرته چې وي مقدم وي يامؤخر وي په هرحال کې به دامعمول جوړيږي.

**وهذا اذا لم يكن:** په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې مصنف په دې عبارت کې ددوه معنو احتمال په هغه وخت کې دي چې کله ظرف په عامل معنوي کې داخل نه وي که داخل وي نو بيا فقط دويم احتمال به وي چې ظرف دعامل معنوي نه، نه شي مقدم کيدي ځکه چې په ظرف کې وسعت وي اوپه غير ظرف کې وسعت نه وي.

**تبصره**: په اوله اودويمه توجيه کې فرق دادې چې اوله توجيه په اعتبار دظرف سره عامل جوړيږي او دويمه توجيه په اعتبار سره معمول جوړيږي

**فائده**: شارح دجامي دويمه توجيه په بحتمل سره ذکر کړه اوددې ضعف طرف ته يې اشاره وکړه ځکه چې دادسياق کلام سره ملائم اومناسب نه دي ځکه چې ظرف د معنوي په مقابله کې

ذکر شوي دي هغه عامل دي نو مناسب داده چې د ظرف نه مراد هم عامل وي نه چې معمول.

## په ذوالحال باندې د حال د تقديم جائز او ناجائز صورتونه:

وَ كَمَا لَا تَتَقَدَّمُ الحَالُ عَلَى العَامِلِ المَعْنَوِيِّ كَذٰلِكَ لَا تَتَقَدَّمُ عَلَى ذِى الحَالِ

اولکه څنګه چې نه شي مقدم کيدې حال په عامل معنوي باندې همدارنګې نه شي مقدم کيدې حال په ذوالحال

المَجْرُوْرِ سَوَاءٌ كَانَ مَجْرُوْراً بِالإِضَافَةِ اَوْ بِحَرْفِ الجَرِّ فَإِنْ كَانَ مَجْرُوْراً

مجرورباندې برابره خبره ده که مجرور بالاضافة وي اويامجرورپه حرف جرسره وي که چيرته ذوالحال مجرور

بِالإِضَافَةِ لَمْ تَتَقَدَّمِ الحَالِ عَلَيْهِ اِتِّفَاقًا نَحْوُ جَاءَتْنِيْ مُجَرَّدًا عَنِ الثِّيَابِ ضَارِبَةُ زَيْدٍ وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ

بالاضافة وي نونه شي مقدم کيدې حال په دې باندې بالاتفاق مثال لکه جاءتني مجرداً عن الثياب ضاربة زيداو داځکه

الحَالَ تَابِعٌ وَ فَرْعٌ لِذِى الحَالِ وَ المُضَافِ اِلَيْهِ لَا يَتَقَدَّمُ عَلَى المُضَافِ فَلَا يَتَقَدَّمُ تَابِعُهُ

چې حال تابع اوفرع ده د ذوالحال اومضاف اليه نه شي مقدم کيدې په مضاف باندې نونه شي مقدم کيدې تابع د دې

اَيْضًا وَ اِنْ كَانَ مَجْرُوْراً بِحَرْفِ الجَرِّ فَفِيْهِ خِلَافٌ فَسِيْبَوَيْهِ وَ اَكْثَرُ البَصْرِيِّيْنَ يَمْنَعُوْنَ

همدارنګې اوکه چيرته ذوالحال مجرور بحرف جروي نوبه دې کې اختلاف دې نوسيبويه اواکثربصريين منع کوي

تَقْدِيْمَهَا عَلَيْهِ لِلعِلَّةِ المَذْكُوْرَةِ وَ هُوَ المُخْتَارُ عِنْدَ المُصَنِّفِ وَ لِهٰذَا قَالَ عَلَى الاَصَحِّ

تقديم د حال په ذوالحال باندې دوجې د علت مذکوره نه اوداغوره دي په نزد د مصنف اود دې وجې نه يې على الاصح

وَ نُقِلَ عَنْ بَعْضِهِمِ الجَوَازِ اِسْتِدْلَالاً بِقَوْلِهِ تَعَالٰى وَمَا اَرْسَلْنَاكَ اِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ

وويل اونقل دي د بعضې نحويانونه جوازچې استدلال کوي په دې قول د الله تعالى سره چې ومآارسلناک الاکافة للناس

وَ لَعَلَّ الفَرْقَ بَيْنَ حَرْفِ الجَرِّ وَ الإِضَافَةِ اَنَّ حَرْفَ الجَرِّ مُعَدٍّ لِلْفِعْلِ كَالهَمْزَةِ وَ التَّضْعِيْفِ

اوکيدې شي چې فرق په مينځ د حرف جراو داضافت کې داوي چې حرف جرمتعدي دي فعل لره لکه همزه اوتضعيف

فَكَاَنَّهُ مِنْ تَمَامِ الفِعْلِ وَ بَعْضِ حُرُوْفِهِ فَاِذَا قُلْتَ ذَهَبْتُ رَاكِبَةً بِهِنْدٍ فَكَاَنَّكَ قُلْتَ

نو ګويا چې حرف جر د تمام د فعل اود حروفو يوه حصه ده پس کله چې ته ووايي ذهبتُ راکبةً بهند نوګويا چې تا

اَذْهَبْتُ رَاكِبَةً هِنْداً فَالمَجْرُوْرُ بِحَرْفِ الحَقِيْقَةِ لَيْسَ مَجْرُوْراً وَ اَجَابَ بَعْضُهُمْ عَنْ هٰذَا الاِسْتِدْلَالِ

اذهبتُ راکبة هنداً وويل نومجرورپه اعتبارد حقيقت سره مجرورنه دي اوجواب ورکړي دي بعضو د دې استدلال نه

بِجَعْلِ كَافَّةً حَالاً عَنِ الكَافِ وَ التَّاءِ لِلْمُبَالَغَةِ وَ بَعْضُهُمْ بِجَعْلِهَا صِفَةً

په ګرځولود کافة سره حال د کاف نه اوتاء د پاره د مبالغې ده او بعضوجواب ورکړي په ګرځولود کافة صفت د پاره د

لِمَصْدَرٍ اَىْ رِسَالَةً كَافَّةً وَ بَعْضُهُمْ بِجَعْلِهَا مُصْدَراً كَالكَاذِبَةِ وَ العَافِيَةِ وَ الكُلُّ

مصدر يعني رسالة کافة اوبعضوجواب ورکړي په ګرځولود کافة سره مصدر لکه کاذبة او عافية او دا ټول جوابونه

تَكَلُّفٌ وَ تَعَسُّفٌ.
د تکلف او د تعسف ښخه دي

**خلاصه د متن** : صاحب د کافيې په مخکنۍ قاعده کې اضافه کوي چې لکه څنګه حال په خپل عامل معنوي باندې نه شي مقدم کيدي نو همدارنګې حال په ذوالحال مجرور باندې هم په اصح قول سره نه شي مقدم کيدي

**اغراض د جامي** : كمالايتقدم : په دې عبارت سره شارح بيان د عطف کوي چې د مصنف قول لا على المجرور د اعطف دي په عامل معنوي باندې او د اعطف د مشبه على المشبه به د قبيلې څخه دي د عبارت حاصل دا دې چې لکه څنګه حال په عامل معنوي باندې نه شي مقدم کيدي نو همدارنګې حال په ذوالحال مجرور باندې هم نه شي مقدم کيدي.

سواء : په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د تعميم دي چې په ذوالحال مجرور کې تعميم دي برابره خبره ده چې دو الحال مجرور بالاضافة وي او يا مجرور بحرف الجر وي که مجرور بالاضافة وي نو بيا حال په ذوالحال باندې بالاتفاق نه شي مقدم کيدي مثال لکه جاءتني مجردا عن الثياب ضاربة زيد ، په دې کې زيد د اضافت دوجې نه مجرور دي او مجرداً د دې نه حال دي په دې کې حال په ذوالحال مجرور بالاضافة باندې مقدم دي د دې وجې نه دا ترکيب ناجائز دي.

وذلک : په دې عبارت سره شارح د عدم جواز وجه بيانوي د دې وجه داده چې حال د ذوالحال تابع او د دې فرعه وي او مضاف اليه د مضاف نه . نه شي مقدم کيدي نو کله چې مضاف اليه کوم چې ذوالحال دي د مضاف نه ، نه شي مقدم کيدي نو حال کوم چې د ذوالحال تابع دي د دې تقديم خو په طريق اولى جائز نه دي.

**بيان د اختلاف** : که چيرته ذوالحال مجرور بحرف الجر وي نو په دې باندې د حال تقديم جواز په او عدم جواز کې اختلاف دي او په دې کې دوه (۲) مذهبه دي :

**اول مذهب** : اول مذهب د سيبويه او د اکثرو بصرينو دي ، دوي وايي چې د حال تقديم په ذوالحال مجرور بحرف الجر باندې ناجائز دي او د مصنف په نزد دغه مختار او غوره قول دي د دې وجې نه مصنف رحمه الله على الاصح ووييل.

**دوهم مذهب** : دويم مذهب د بعضې نحويانو نه منقول دي چې حال د ذوالحال مجرور نه ، نه شي مقدم کيدې.

**دليل** : دوي استدلال كوي په دې قول د الله تعالى باندې چې **وما ارسلناک الا كافة للناس** . نو په دې كې **كافة** د **الناس** نه حال دي كوم چې مجرور بحرف الجر دي اوحال ددې نه يعني **الناس** نه مقدم دي نو معلومه شوه چې دحال تقديم په ذوالحال مجرور بحرف الجر باندې جائز دي .

**ولعل الفرق** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : هغه بعضې نحاة چې دچاپه نزد ذوالحال مجرور بحرف الجر باندې تقديم دحال جائز دي ددوي په نزد **مجرور بالاضافة** او **مجرور بحرف الجر** كې څه فرق دي چې په اول ... كر كې دحال تقديم ناجائز كړي اوپه دويم كې يې تقديم جائز كړي دي .

**جواب** : حرف جر اواضافت كې فرق دادې چې حرف فعل لازم لره متعدي ... وي لكه څنګه چې دباب افعال همزه اودباب تفعيل دعين تضعيف فعل لازم لره متعدي جوړوي لهذا حرف جر دفعل تولو اوددې حروفو څخه يوه حصه اوديو جُز حيثيت لري لكه څنګه چې دباب افعال همزه اودباب تفعيل دعين تضعيف دفعل حصه ده اواضافت داسې نه دي مثلاً چې كله ... شي چې **ذهبتُ راكبةً بهندٍ** نوګويا چې هغه داسې وويل چې **اذهبتُ راكبةً هنداً** ، نو لهذا مجرور بحرف الجر په حقيقت كې مجرور نه دي بلكه منصوب دي ددې وجې نه مجرور بحرف الجر باندې دحال تقديم جائز دي په خلاف دمجرور بالاضافت كې داسې نشته ځكه څكه چې په دې كې تقديم دحال جائز نه دي .

**واجاب بعضهم** : په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې بعضې نحويان چې دذوالحال مجرور باندې تقديم دحال دجواز قائل دي هغه دقرآن كريم ددې آيت : **وما ارسلناک الا كافة للناس** نه استدلال كوي ، عدم قائلين بالجواز دري جوابونه وركوي شارح هغه ذكر كوي :

**جواب (۱)** : امام زجاج رحمه الله داجواب وركوي چې **ومآارسلناک الا كافة للناس** ،**كافة** مجرور په حرف جر سره د **الناس** نه حال نه دي بلكه كاف دضمير دخطاب نه حال دي .

**والتاء للمبالغة** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : دحال اوذوالحال په مينځ كې په تذكير اوتانيث كې مطابقت ضروري دي اودلته كې مطابقت نشته دي كاف دضمير ذوالحال مذكر دي او**كافة** مؤنث دي .

**جواب** : په **والتاء للمبالغة** سره شارح جواب وركوي چې د **كافة** **تاء** د تانيث د پاره نه ده بلكه

مبالغې دپاره ده لهذا دحال اوذوالحال په مینځ کښې په تذکیراوتانیث کښې مطابقت موجوددې.

**جواب (۲)**: علامه زمخشري رحمه الله داجواب ورکړې دې چې **كافة** صفت دې دموصوف محذوفه چې رسالةً دې موصوف دخپل صفت سره معفول مطلق دې د ارسلناک تقدیر دعبارت داسې دې چې **وما ارسلناک الا رسالة كافة**.

**جواب (۳)**: بعضو داجواب ورکړې دې چې **كافة** د كف په معنی کښې دې او مفعول مطلق دې دفعل محذوفه تكف نه.

**سوال**: **كافة** خو اسم فاعل دې نودا مصدر څنګه جوړیږي؟

**جواب**: په **الكاذبة** سره شارح جواب . کوې چې کله اسم فاعل دمصدر په معنی کښې وي مثال لکه **كاذبة** په معنی د كذب سره او **عافية** په معنی دعفة سره لیکن شارح دجامي وایي چې د جمهورو علماو دطرف نه چې کوم جوابونه ورکړې شوي دې هغه ټول جوابونه دتكلف او د تعسف نه خالي نه دې.

**تكلفات**: (۱): په اول جواب کښې داتكلف دې چې داسم فاعل په آخر کښې دتاء مبالغې دخول په كلام دعربو کښې معلوم الوقوع نه دې.

(۲): په دويم جواب کښې تكلف دادې چې حذف دموصوف راځي اوحذف خلافِ اصل دې.

(۳): په دريم جواب کښې تكلف دادې چې **كافة** دمصدر په معنی کښې استعمالیږي او تاء د مبالغې دپاره کیدل په كلام دعربو کښې واقع نه دې.

## اسم جامد او مشتق د حال واقع کیدو بیان:

| وَ كُلُّ مَا دَلَّ عَلَى هَيْئَةٍ أَيْ صِفَةٍ سَوَاءٌ كَانَ الدَّالُّ |
|---|
| اوهرهغه څيزچې دلالت کوي په هينت باندې يعني په صفت باندې برابره خبره ده چې دا دلالت کوونکي صيغه د |
| مُشْتَقًّا اَوْ جَامِداً صَحَّ اَنْ يَقَعَ حَالًا مِنْ غَيْرِ اَنْ يُؤَوَّلَ الْجَامِدُ بِالْمُشْتَقِّ |
| مشتق وي اويادجامد صحيح دي چې واقع شي حال په غير دهغه نه چې تاويل وکړې شي د اسم جامد په مشتق سره |
| لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنَ الْحَالِ بَيَانُ الْهَيْئَةِ وَ هُوَ حَاصِلٌ بِهٖ وَ هٰذَا رَدٌّ عَلَى جَمْهُوْرِ النُّحَاةِ |
| ځکه چې مقصود د حال نه بيان دهينت دې اوداحاصل دې په جامدسره اودارددې په جمهورونحويانوباندې په |
| حَيْثُ شَرَطُوْا اِشْتِقَاقَ الْحَالِ وَ تَكَلَّفُوْا فِيْ تَاوِيْلِ الْجَوَامِدِ |
| داسې شان سره چې . دوي شرط کړې دمشتق کيدودحال دپاره اودوي تکلف کړې دې په تاويل دجوامدوکې په |

بِالْمُشْتَقِّ وَمَعَ هٰذَا فَلَا شَكَّ اَنَّ الْاَغْلَبَ فِي الْحَالِ الْاِشْتِقَاقُ مِثْلُ بُسْراً وَرُطَبًا فِيْ قَوْلِهِمْ هٰذَا
مشتق سره اوسره ددې نو څه شک نشته چې اغلب په حال کې مشتق کيدل دي لکه بسراً او رطباً په کلام دعربو کې هذا
بُسْراً وَ هُوَ مَا بَقِيَ فِيْهِ حُمُوْضَةٌ اَطْيَبُ مِنْهُ رُطَبًا وَ هُوَ مَا فِيْهِ
بسرا او دا هغه کجوري دي چې باقي وي په دې کې تريووالي اطيب منه رطبا او رطب هغه کجورې ته وايي چې په دې کې
حَلَاوَةٌ صِرْفَةٌ فَهُمَا مَعَ كَوْنِهِمَا جَامِدَيْنِ حَالَانِ لِدَلَالَتِهِمَا عَلٰى صِفَةِ الْبُسْرِيَّةِ وَ الرُّطَبِيَّةِ
صرف خوږوالي وي پس دادواړه سره دجامد کيدو دادواړه حاله دي دوجې ددلالت نه په صفت دبسريت اورطبيت
وَلَا حَاجَةَ اِلٰى اَنْ يُؤَوَّلَ الْبُسْرُ بِالْمُبْسِرِ وَالرُّطَبُ بِالْمُرْطِبِ مِنْ اَبْسَرَ النَّخْلُ اِذَا صَارَ
باندې اونشته دي حاجت چې تاويل وشي دبسر په مبسر سره اودرطب په مرطب سره دابسر النخل نه کله چې وګرځي
مَا عَلَيْهِ بُسْراً وَ اَرْطَبَ اِذَا صَارَ مَا عَلَيْهِ رُطَبًا وَ
هغه څه چې کوم په دې باندې وي هغه بسر وارطب چې کله وګرځي هغه څه چې کوم په دې باندې وي هغه رطب او
الْعَامِلُ فِيْ رُطَبًا اَطْيَبُ بِاتِّفَاقِ النُّحَاةِ وَ فِيْ بُسْراً اَيْضًا عِنْدَ مُحَقِّقِيْهِمْ وَ تَقَدَّمَ بُسْراً
عامل په رطب کې اطيب دي په اتفاق دنحويانو او په بسرا کې هم همدا رنګې دي په نزد دمحققينو او مقدم کړې شو بسر
عَلٰى اِسْمِ التَّفْضِيْلِ مَعَ ضُعْفِهِ فِي الْعَمَلِ لِاَنَّهُ اِذَا تَعَلَّقَ بِشَيْءٍ وَاحِدٍ حَالَانِ بِاِعْتِبَارَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ
په اسم تفضيل سره دضعف نه په عمل کې ځکه چې کله متعلق وي ديو څيز سره دوه حاله په اعتبارونو مختلفو
يَلْزَمُ اَنْ يَلِيَ كُلٌّ مِنْهُمَا مُتَعَلِّقَهُ وَ الْبُسْرِيَّةُ تَعَلَّقَتْ بِالْمُشَارِ اِلَيْهِ بِهٰذَا
نولازم دي چې متعلق وي هريو ددې دواړو نه دخپل متعلق سره او بسريت دامتعلق دي د هذا مشار اليه سره
مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مُفَضَّلٌ وَهٰذِهِ الْحَيْثِيَّةُ وَاِنْ لَمْ تَكُنْ مُعْتَبَرَةً فِيْهِ اِلَّا بَعْدَ اِضْمَارِهٖ فِيْ اَطْيَبَ لٰكِنَّهُ
ددې حيثيت نه چې دامفضل دي اودا حيثيت اګر که معتبر نه دي په دې کې مګر پس دضمير نه په اطيب کې ليکن
لَمَّا كَانَ الضَّمِيْرُ بِالنِّسْبَةِ اِلَى الْمُظْهَرِ كَالْعَدَمِ اُقِيْمَ الْمُظْهَرُ مَقَامَهُ وَ اَوْجَبُوْا اَنْ
کله ضمير په نسبت سره مظهر ته کالعدم وو نوقائم شو مظهر په خاې دمضمر او واجب کړه نحويانو چې حال به د
يَلِيَهُ وَ الرُّطَبِيَّةُ تَعَلَّقَتْ بِهٖ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مُفَضَّلٌ عَلَيْهِ وَ هُوَ
مظهر سره متصل وي او رطب به متعلق وي د مشار اليه سره په دې حيثيت سره چې هغه مفضل عليه دي او هغه
ضَمِيْرُ مِنْهُ فَيَجِبُ اَنْ يَلِيَهُ قَالَ الرَّضِيُّ وَ اَمَّا الضَّمِيْرُ الْمُسْتَكِنُّ فِيْ اَفْعَلَ
مفضل عليه ضمير دمنه دي نو واجب دي چې متصل وي دمنه سره رضي ويلي دي هرچې ضمير مستتر دي په افعل
فَاِنَّهُ وَ اِنْ كَانَ مُفَضَّلًا لٰكِنَّهُ لَمَّا لَمْ يَظْهَرْ كَانَ كَالْعَدَمِ وَ مَعَ هٰذَا فَلَا اَرٰى بَاْسًا
کې ځکه چې دا اګرکه مفضل دي لکن هرکله چې ظاهر نه وو نو دا شو په شان دکالعدم او سره ددې زه نه وينم څه باک

| |
|---|
| بِأَنْ يُقَالَ وَ إِنْ لَمْ يُسْمَعْ زَيْدٌ أَحْسَنَ قَائِمًا مِنْهُ قَاعِداً وَ ذَهَبَ بَعْضُهُمْ إِلى أَنَّ |
| چې وويلې شي اګرچې نه دي اوريدلې شوي زيدٌ احسن قائماً منه قاعداً اوتللي دي بعضې نحويان دې طرف ته چې |
| الْعَامِلَ فِيْ بُسْراً إِسْمُ الْإِشَارَةِ أَيْ أُشِيْرُ إِلَيْهِ حَالَ كَوْنِهِ بُسْراً وَهٰذَا لَيْسَ بِصَحِيْحٍ لِأَنَّهُ يُمْكِنُ أَنْ يَكُوْنَ |
| عامل په بسراً کې اسم اشاره ده يعنې اشير اليه حال کونه بسراً او دا نه ده صحيح ځکه چې ممکن ده چې وي |
| الْمُشَارُ إِلَيْهِ التَّمْرَ الْيَابِسَ فَلَا تَتَقَيَّدَ الْإِشَارَةِ بِحَالَةِ الْبُسْرِيَّةِ وَلِأَنَّهُ يَصِحُّ حَيْثُ وَقَعَ |
| مشار اليه تمر يابس نو نه شي مقيد کيدې اشاره په حال دبسريت باندې ځکه صحيح دي په دا سې شان سره چې واقع |
| مَوْقِعَ اِسْمُ الْإِشَارَةِ اِسْمٌ لَا يَصِحُّ أَعْمَالِهِ فِيْهِ نَحْوُ تَمْرَةٍ نَخْلَقِيْ بُسْراً أَطْيَبُ مِنْهُ رُطَباً. |
| وي په ځاې دا سم اشارې دا سې اسم چې نه وي صحيح عامل جوړول په حال کې لکه تمرة نخلتي بسرا اطيب منه رطباً |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيې يوه قاعده اوضابطه بيانوي چې هرهغه لفظ چې په يوهيئت يعنې په صفت باندې دلالت کوي برابره خبره ده که جامد وي اويا مشتق وي دې لره حال واقع کيدل صحيح دي يعنې حال لره اسم مشتق کيدل څه ضروري نه دي مثال لکه هذا بسرا اطيب منه رطباً دلته بسر او رطب دجامد کيدو باوجود صفت بسريت اوصفت رطبيت باندې ددلالت په وجې سره حال واقع کيږي .

**اغراض دجامي** : اى صفة : په دې عبارت سره شارح دهيئت معنى بيانوي چې دهيئت معنى ده صفت اودهيئت دمعنى نه معنى الحركات وسكنات وتقديم بعض الحروف على البعض مراد نه ده .

سواء كان الدال : په دې عبارت سره شارح بيان دتعميم کوي چې په حال کې تعميم دي برابره خبره ده که جامد وي اوکه مشتق وي .

من غير ان يؤول : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : شارحين دکافيې په دې اتفاق دي چې صاحب ددې قول نه مقصود په جمهور نحويانو باندې رد دي اودا رد په دې قول سره نه شي کيدې ځکه چې جمهور نحويان هم ددې خبرې قائل دي چې جامد حال واقع کيدې شي البته په دې کې اختلاف دي چې اسم جامد لره دمشتق په تاويل کې کيدل ضروري دي يا ضروري نه دي . جمهور نحويان وايي چې تاويل ضروري دي اودمصنف مذهب دادې چې په غير دتاويل نه حال جوړيدې شي نومصنف لره به غير دتاويل نه حال واقع کيدل په کاروو چې په جمهورو باندې رد وشي .

**جواب**: دوقوع نه خاص وقوع مراد دي يعنې اسم جامد لره دمشتق په تاويل کې په غير دحال نه واقع کيدل صحيح دي لهذا په دې کې په جمهورو باندې رد موجود دي ځکه چې دجمهورو مذهب دادې چې اسم جامد دمشتق په تاويل کې په غير دحال نه ، نه شي واقع کيدي .

لان المقصود: په دې عبارت سره شارح داسم جامد دمشتق په تاويل کې په غير دحال واقع کيدو دليل بيانوي چې حاصل يې دادې چې دحال نه مقصود دهيئت بيانول دي اودامقصود د اسم جامد نه هم حاصليږي کله چې اسم جامد سره دامقصود حاصليږي نو دې لره دمشتق په تاويل کې دکيدلو ضرورت نشته دي

وهذا رد على: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې دماتن غرض په جمهورو نحويانو باندې رد دي جمهور نحويان وايي چې دحال دپاره مشتق کيدل شرط دي اوکه چيرته حال اسم جامد وي نو ده لره مشتق په تاويل کې کيدل ضروري دي مصنف رد کړي دي او وايي چې هرهغه لفظ چې په هيئت باندې دلالت کوي هغه لره حال واقع کيدل صحيح دي برابره خبره ده که جامد وي اوکه مشتق اسم جامد په غير دځه تاويل نه حال جوړيدي شي مګر دومره خبره ضرور ده چې اکثر واغلب حال مشتق واقع کيږي جامد لره حال واقع کيدل قليل دي .

مثل بسراً ورطباً في قولهم: په دې عبارت سره غرض دشارح ددوه سوالينو مقدرو جواب ورکول دي :

**سوال** (۱): مصنف رحمه الله دلته داسم جامد حال واقع کيدو مثال بيانوي او هغه مثال فقط بسراً ورطباً دي مجموعه جمله يعنې هذا بسرا اطيب منه رطباً نه دي نو مجموعه لره دمثلُ مضاف اليه جوړول څنګه صحيح دي ؟.

**سوال** (۲): دمضاف اليه دپاره مفرد کيدل ضروري دي ځکه چې مضاف اليه اسم وي او اسم د مفرد داقسامو څخه دي اودلته کې دمثلُ مضاف اليه هذا بسرا اطيب منه رطبا جمله ده .

**جواب**: د مثلُ نه پس بسراً او رطباً مقدر کوي اوشارح دجامي ددغې دواړو سوالونو جوابونه ورکوي چې دلته کې دمثلُ مضاف اليه محذوف دي چې بسرا او رطبا دي اوس دواړه اشکالونه دفع شو ، اول اشکال په دې طريقې سره دفع شو چې مثال صرف بسراً او رطباً دي اودغه د مثلُ مضاف اليه دي ، دوېم اشکال په دې طريقې سره دفع شوچې د مثلُ مضاف اليه بسراًاو رطباً دي او دا مفرد دي جمله نه دي .

**وهي ما بقي فيه حموضة**: په دې عبارت سره شارح د بُسر معنی بیانوي چې بُسر هغې کهجورې ته وایي چې په هغې کې تربو والي وي

**وهو ما فيه حلاوة صرفة**: په دې عبارت کې شارح د رُطباً معنی بیانوي چې رُطباً هغه کهجوري ته ویلې شي چې په هغې کې خالص خوږوالي وي

**فهما مع كونهما جامدين**: په دې عبارت سره شارح دمثال وضاحت کوي مثال **هذا بسرا اطيب منه** رطبا په دې کې بسرا او رطبا دا دواړه اسم جامد دي اوحال واقع کیږي **بسراً** **داطیب هو** ضمیر مستتر نه حال دي او رطبا د مِنهُ ضمیر نه حال دي ځکه چې بُسر دلالت کوي په صفت د **بسریت** باندې اورطب دلالت کوي په صفت د رطبیت باندې لهذا بسر لره دمبسر او رطب لره د **مرطب** په تاویل کولو څه ضرورت نشته لکه څنګه چې جمهور یې کوي

که بُسر د مبسر په تاویل کې شي نودابه دابسرالنخل نه ماخوذ وي اوداهغه وخت کې ویلې کیږي چې کله هغه میوه کوم چې د کهجورې په ونه کې وي هغه بُسر شي او که رطب دمرطب په تاویل کې شي نو دابه ماخوذ وي دارطب النخل نه اودا په هغه وخت کې ویلې کیږي چې کله میوې کومې چې دکهجورې په ونه کې وي هغه رطب شي .

**والعامل في رطباً**: په دې عبارت سره دحال عامل بیانوي چې په دې مثال یعنې رطباً کې عامل خو بالاتفاق اطيب دي ليکن د بُسر دعامل په باره کې اختلاف دي دمحققینو په نزد په بُسراً کې هم عامل اطیب دي .

**وتقدم بسراً**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : اطیب اسم تفضیل دي اواسم تفضیل ضعیف عامل دي اودعامل ضعیف معمول دهغه نه ، نه شي مقدم کیدې نو بسراً د اطیب معمول جوړول به څنګه صحیح وي .

**جواب** : داتقدیم دیوې قاعدې په بناء باندې دي هغه قاعده داده چې کله دیو څیز نه دوه حاله په دوه مختلف اعتبارونو سره واقع وي نوپه دې هر حال خپل متعلق یعنې ذوالحال سره متصل کیدل ضروري دي اودامثال هم ددغه قبیل څخه دي شئ واحد مشار الیه **بهذا** دي اودوه حالونه رطباً او بسراً دي او دا دواړه متعلق دي دمشارالیه **بهذا** سره په دوه مختلفو اعتباراتو سره ، بسراً دده سره متعلق دي په دې اعتبار سره چې دامفضل وي اورطبا دده سره متعلق دي

په دې اعتبار سره چې دامفضل علیه دی بسرا په دې اعتبار سره متعلق دی چې هغه مفضل دی لهذا هغه د هذا سره متصل کیدل ضروري دي ځکه چې دامن تفضیلیه باندې مقدم شي ځکه چې مفضل په من تفضیلیه باندې مقدم کیدل ضروري دي اورطباً دهغه سره متعلق دی په دې اعتبار سره چې هغه مفضل علیه دی اوهغه مفضل علیه دمنه ضمیر دی لهذا رطبا ددې سره متصل کیدل ضروري دي

وهذه الحیثیة وان لم یکن معتبرة فیه : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : بسریت دمشارالیه بهذا سره دمفضل کیدو حیثیت په هغه وخت کې به معتبر وي چې کله په اطیب کې ضمیرراوړي شي ددې نه مخکې دې ته مفضل ویل باطل دي لهذا مناسب داده چې دې لره د اطیب نه وروستو ذکر کړې شي .

**جواب** : داحیثیت په هغه وخت کې معتبر وي کله چې په اطیب کې ضمیر راوړي شي ځکه چې ضمیرداسم ظاهر په نسبت کالعدم وي لهذا اسم ظاهر یعنې هذا لره دضمیر قائم مقام کړه او هذا سره د بُسراً اتصال لره واجب کړه .

قال الرضي واما الضمیر المستکن : په دې عبارت سره شارح دخپل مخکني قول چې داسم ظاهریدو په وخت کې به ضمیر کالعدم وي په دې باندې دشیخ رضي قول په طور دسند اودلیل پیش کوي شیخ رضي هم ویلي دي چې اګرچې په فعل کې ضمیر مستتر منفصل وي لیکن کله چې هغه ظاهرنه شي نوهغه به کالعدم وي اومعدوم لیس بشيء وي پس اسم اشاره هذا به مفضل شي ځکه چې دادضمیر قائم مقام ده په دې اعتبار سره چې داسم تفضیل ضمیر دغې طرف ته راجع دي او بسریت د هذا سره دمفضل کیدو دحیثیت نه متعلق دي لهذا بُسر لره د هذا سره به متصل ذکر کولې شي .

ومع هذا فلا اری بأساً : په دې عبارت سره غرض دشارح په مصنف باندې اعتراض کول دي .

**اعتراض** : شیخ رضي ویلي دي چې باوجود ددې چې هغه ضمیر کالعدم دي لیکن که چیرته زید احسن قائماً منه قاعدا وویل شي نوکوم حرج نشته اګرچې داداهل عربونه اوریدلي شوي نه دي نوچې کله زیداحسن قیاما منه قاعداویل جائزدي نوهذااطیب بسراً منه رطباویل به هم جائز وي .

**جواب** : مصنف رحمه الله او جمهورو د طرف نه ددې جواب دادې چې قواعد نحويه مبني علی السماع دي او دا ترکيب مسموع من العرب نه دي صرف ستا رای ده او وان لم يسمع سره ته په خپله اعتراف کوي لهذا لا اری به بأساً سره ته په خپله چې د کوم خواهش اظهار کوي نو دهغې تکميل نه شي کيدي، لان مسائل النَّحْوُ بناء علی السمع لا علی الصنع . ځکه چې مسائل دنحوې دا دي په سمع باندې نه په صنع او جوړولو باندې

**ذهب بعضهم** : په دې عبارت سره شارح دبسراً دعامل په باره کې دويم مذهب بيانوي او دا رد کوي ، بعضې نحويان وايي چې په بسراً کې عامل اطيب نه دي بلکه اسم اشاره ده

**ای اشير** : په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : اسم اشاره خو اسم دي او اسم نه شي عامل کيدي بيا ستا داقول چې په بسراً کې عامل اسم اشاره دي داځنګه صحيح دي .

**جواب** : مراد دادې چې هغه فعل عامل دي کوم چې د اسم اشارې نه مستنبط وي . تقدير دعبارت داسې دي چې اشير اليه حال کونه بسراً ، ليکن دامذهب صحيح نه دي شارح ددې دوه وجهي بيان کړي دي:

**اوله وجه**: اوله وجه داچې کيدې شي چې مشار اليه تمر يابس وچې کهجوري وي نو دا اشاره به د حالت بسريت سره مقيد نه وي .

**دوهمه وجه** : په دې مقام کې داسم اشارې په ځای داسې اسم لره ذکر کول هم صحيح دي کوم لره چې په بسراً کې عامل جوړيدل صحيح نه وو مثال لکه تمرة نخلي بسرا اطيب منه رطباً په دې مثال کې داطيب نه غير داسې لفظ نشته چې هغه په بسراً کې دعمل کولو صلاحيت ولري نو خامخا داويلي شي چې اول مذهب صحيح او راجح دي .

## حال جمله واقع کيدل :

| وَ تَكُوْنُ اَيِ الحَالِ جُمْلَةً لِدَلَالَتِهَا عَلَى الْهَيْئَةِ كَالْمُفْرَدَاتِ فَصَحَّ اَنْ تَقَعَ حَالًا مِثْلَهَا |
|---|
| اووي يعني حال جمله دوجې ددلالت کولو نه په هيئت باندې لکه مفردات نو صحيح دي چې واقع شي حال په شان |
| وَ لٰكِنْ يَجِبُ اَنْ تَكُوْنَ الْجُمْلَةُ الحَالِيَةُ خَبْرِيَّةً مُحْتَمِلَةً لِلصِّدْقِ وَ الْكِذْبِ لِاَنَّ الحَالَ |
| دمفرداتو ليکن واجب دہ چې وي جمله حاليه خبريه کومه چې احتمال دصدق او دکذب لري ځکه چې حال په منزله د |

| |
|---|
| بِمَنْزِلَةِ الْخَبَرِ عَنْ ذِى الْحَالِ وَ إِجْرَاؤُهَا عَلَيْهِ فِيْ قُوَّةِ الْحُكْمِ بِهَا عَلَيْهِ وَ الْجُمَلُ |
| خبر دي د ذوالحال نه او جاري کيدل د حال په ذوالحال باندې په قوت د حکم کې په ذوالحال باندې او جملې انشائيه |
| الْإِنْشَائِيَةِ لَا تَصْلَحُ اَنْ يُحْكَمَ بِهَا عَلَى شَيْءٍ . |
| دا صلاحيت نه لري چې حکم وکړې شي په دې باندې په يو څيز باندې |

**خلاصه دمتن او شرح:** صاحب د کافيې په دې عبارت کې د حال په باره کې يوه قاعده بيانوي او شارح د هغې قاعدې وضاحت کوي:

**قاعده:** هغه قاعده دا ده چې حال کله کله جمله هم وي ځکه چې د حال نه مقصود په هيئت باندې دلالت کوي دي او جمله هم د مفرداتو په شان په هيئت باندې دلالت کوي لهذا چې لکه څنګه د مفرداتو حال واقع کيدل صحيح دي نو همدارنګې جمله حال واقع کيدل هم صحيح دي ليکن دا ضروري ده چې جمله حاليه به خبريه وي ځکه چې حال په نسبت سره ذوالحال ته په منزلې د خبر وي او حال په ذوالحال باندې محمول کيدل دا په منزله د محکوم به دي او ذوالحال په منزله د محکوم عليه دي لکه څنګه چې مبتدا محکوم عليه او خبر محکوم به وي او جمله انشائيه محکوم به نه شي جوړيدې نو حال هم نه شي جوړيدې .

## د حال د جملې واقع کيدو شرائط :

| |
|---|
| وَ لَمَّا كَانَتِ الْجُمْلَةُ مُسْتَقِلَّةً فِي الْإِفَادَةِ لَا تَقْتَضِيْ اِرْتِبَاطَهَا بِغَيْرِهَا وَ الْحَالُ مُرْتَبِطَةٌ بِغَيْرِهَا |
| او هر کله چې جمله مستقله وي په افاده کې نو نه کوي تقاضا د ارتباط د دې د غير سره او حال مرتبط دي د غير پورې |
| فَإِذَا وَقَعَتِ الْجُمْلَةِ حَالًا لَا بُدَّ لَهَا مِنْ رَابِطَةٍ تَرْبِطُهَا اِلَى صَاحِبِهَا وَ هِيَ الضَّمِيْرُ |
| نو هر کله چې واقع شوه جمله حال نو لابدي ده د دې د پاره د رابطې چې مرتبط يې کړي د ذوالحال پورې او هغه ضمير |
| وَالْوَاوُ وَالْجُمْلَةُ الْخَبَرِيَّةِ إِمَّا اِسْمِيَّةٌ اَوْ فِعْلِيَّةٌ وَ الْفِعْلِيَّةُ اِمَّا اَنْ يَكُوْنَ فِعْلُهَا مُضَارِعاً مُثْبَتًا اَوْ مُضَارِعًا مَنْفِيًا اَوْ |
| او واو دي او جمله خبريه به يا اسميه او يا به فعليه او فعليه يا به وي فعل د دې مضارع مثبت او يا مضارع منفي او يا |
| مَاضِيًا مُثْبَتًا اَوْ مَاضِيًا مَنْفِيًا فَهٰذِهِ خَمْسُ جُمَلٍ فَالْاِسْمِيَّةُ اَيِ الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ الْحَالِيَّةِ مُتَلَبِّسَةٌ بِالْوَاوِ وَالضَّمِيْرِ |
| ماضي مثبت او يا ماضي منفي نو دا پنځه جملې دي نو اسميه يعني جمله اسميه حاليه به متلبس وي د واو او د ضمير |
| مَعاً لِقُوَّةِ الْاِسْمِيَّةِ فِي الْاِسْتِقْلَالِ فَنَاسَبَ اَنْ تَكُوْنَ الرَّابِطَةِ فِيْهَا فِيْ غَايَةِ الْقُوَّةِ |
| پورې يو ځاې د وجې د قوت د اسميې نه په استقلال کې نو مناسب ده چې وي رابطه په دې کې په انتهائي قوت کې |
| نَحْوُ جِئْتُ وَاَنَا رَاكِبٌ وَجِئْتُ وَاَنْتَ رَاكِبٌ وَجَاءَ زَيْدٌ وَهُوَ رَاكِبٌ اَوْ بِالْوَاوِ وَحْدَهَا لِاَنَّهَا تَدُلُّ عَلَى الرَّبْطِ |
| لکه جئتُ وانا راکب او جئت وانت راکب وجاء زيد وهو راکب يا د واو سره يواځې ځکه چې واو دلالت کوي په ربط باندې |

| |
|---|
| فِيْ اَوَّلِ الْاَمْرِ فَاكْتُفِيَ بِهَا مِثْلَ قَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ كُنْتُ نَبِيًّا وَ اٰدَمُ بَيْنَ الْمَاءِ وَ الطِّيْنِ |
| په اول امر کې نو اکتفاء وکړې شوه په دې باندې لکه دا قول د نبي عليه الصلوة والسلام کنت نبياً وآدم بين الماء والطين |
| وَهٰذَا اَيِ الرَّبْطُ بِالْوَاوِ وَحْدَهَا اَوْ بِهَا مَعَ الضَّمِيْرِ اِنَّمَا يَكُوْنُ فِي الْحَالِ الْمُنْتَقِلَةِ وَ اَمَّا فِي الْحَالِ الْمُؤَكِّدَةِ |
| او دا يعني ربط په واو سره يواځې او يا د واو سره د ضمير دا به وي په حال منتقله کې او هرچې په حال مؤکده کې دي |
| فَلَا تَجُوْزُ الْوَاوُ تَقُوْلُ هُوَ الْحَقُّ لَا شَكَّ فِيْهِ وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ الْوَاوَ لَا تَدْخُلُ بَيْنَ الْمُؤَكِّدِ وَالْمُؤَكَّدِ |
| نو نه دي جائز واو ، وايې به ته چې هو الحق لاشک فيه او دا ځکه چې واو نه داخليږي په مينځ د مؤکد او د مؤکد دوجې د |
| لِشِدَّةِ الْاِتِّصَالِ بَيْنَهُمَا اَوْ بِالضَّمِيْرِ وَحْدَهٗ عَلٰى ضُعْفٍ لِاَنَّ الضَّمِيْرَ لَا يَجِبُ اَنْ يَّقَعَ |
| شدت اتصال نه په مينځ د دواړو کې او يا په ضمير سره يواځې په ضعف باندې ځکه ضمير نه واجبوي چې واقع شي |
| فِي الْاِبْتِدَاءِ فَلَا يَدُلُّ عَلَى الرَّبْطِ فِيْ اَوَّلِ الْاَمْرِ نَحْوُ كَلَّمْتُهٗ فُوْهُ اِلٰى فِيَّ فَلَا بُدَّ مِنَ الْوَاوِ عَلَى الصَّحِيْحِ |
| په ابتداء کې نو دلالت نه کوي په ربط باندې په اول امر کې لکه کلمته فوه الى في نو لابدي ده د واو نه په صحيح قول باندې |

**خلاصه د متن** : صاحب د کافيې په دې عبارت کې حال د جملې کيدو په صورت کې د ربط ضرورت او د دې تفصيل ذکر کوي چې کله حال جمله وي نو د دې د پاره د رابطې کيدل ضروري دي .

**اغراض د جامي** : ولماكانت: په دې عبارت سره شارح د مابعد د پاره تمهيد بيانوي او د دې نه وروستو شارح د متن وضاحت کوي . تمهيد دا دې چې جمله په افاده کې مستقله وي لهذا هغه د بل څيز سره د ارتباط تقاضا نه کوي او حال د ذوالحال سره مرتبط وي لهذا چې کله حال جمله وي نو د هغې د پاره رابط کيدل ضروري دي کوم چې ذوالحال لره ربط ورکوي او هغه رابطه واو او ضمير دي ، بيا به جمله خبريه د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به جمله اسميه وي او يا به جمله فعليه وي که جمله فعليه وي نو د څلورو (۴) حالتونو نه به خالي نه وي يا به مضارع مثبت وي او يا به مضارع منفي وي ، يا به ماضي مثبت وي او يا به ماضي منفي وي نو دا ټول پنځه (۵) جملې شوي .

فالاسمية اى الجملة الاسمية: په دې عبارت سره شارح د هرې جملې د رابطې تفصيل بيانوي چې که چيرته جمله اسميه حال وي نو د رابطې درې صورتونه دي (۱) واو او ضمير دواړه رابطه وي

لان: په دې عبارت سره شارح د دې وجه بيانوي چې جمله اسميه په استقلال کې قوي وي لهذا مناسب دا ده چې په دې کې رابطه هم نهايت قوي وي او واضحه خبره ده چې يو ، يو وي او دوه ، دوه به ي د دوو قوت زيات وي . لهذا دواړه به رابطه وي مثال لکه جئتُ وانا راکب او جئت وانت

راکب . جاءني زيد وهو راکب او په دې دري واړو مثالونو کې واو اوضمير دواړه رابط دي .

(۲) يا به رابط صرف واو وي اوداهم جائز دي ځکه چې واو په اول امر کې په رابطه باندې دلالت کوي ځکه چې هغه دجملې په شروع کې وي لهذا په دې سره اکتفاء کول جائز دي لکه دا قول د نبي کريم صلی الله عليه وسلم چې : **کنت نبياً وآدم بين الماء والطين** ، په دې کې **آدم بين الماء والطين** جمله حاليه ده او واو رابطه ده .

**وهذا**: په دې عبارت سره غرض دشارح دسوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا داذکر شوې قاعده ماته اومنقوضه ده په **هو الحق لا شک فيه** سره ځکه چې لاشک جمله اسميه ده چې د حق نه حال واقع دي حالانکه رابطه نه دواو سره دي او نه دضمير سره اونه يواځي د واو سره .

**جواب** : ذکر شوې قاعده دحال منتقله په باره کې ده اوپه حالِ موکده کې واو درابطې دپاره راوړل جائز نه دي ځکه چې مؤکِد اودمؤکَد په مينځ کې دشدت اتصال دوجې نه ددوي په مينځ کې واو نه شي داخليدې اوپه ذکر شوي مثال کې **لا شک فيه** حالِ مؤکده دي ددې وجې نه څه اشکال نشته .

**او بالضمير وحده**: (۳) په دې عبارت سره شارح دريم صورت بيانوي چې يواځې په ضمير سره ربط وي ليکن دا صورت ضعيف دي .

**لان الضمير** : په دې عبارت سره ددې وجه بيانوي چې څنګه واو دجملې په شروع کې واقع کيږي او اول جمله کې په ربط باندې دلالت کوي په ضمير کې داسې نشته دي ځکه چې ضمير د جملې په شروع کې واقع کيدل ضروري نه دي اوهغه په مينځ دجملـه کې هم واقع کيږي ځکه چې هغه اول امر کې ربط باندې دلالت نه کوي لهذا دا ربط ضعيف دي لکه **کلمته فوه الی في** ، **فوه الی في** داجمله اسميه ده که چيرته ذوالحال **تاء** ضمير وي نو په دې کې د **في** ضمير متکلم رابطه ده اوکه **فوه الی في** لره د**کلمته** د **ه** ضمير مفعول نه حال جوړ کړي نود **فوه** ضمير به رابطه وي ځکه چې ضمير په اول امر کې په ربط باندې دلالت نه کوي ځکه چې داضعيف اوکمزوري رابط دي اول دوه صورتونه اولی او قوي دي

## په مختلفو افعالو کې د ربط د واقع کېدو تفصيل :

| |
|---|
| وَ الْمُضَارِعُ الْمُثْبَتُ اَيِ الْجُمْلَةِ الْفِعْلِيَّةِ الَّتِيْ يَكُوْنُ الْفِعْلُ فِيْهَا مُضَارِعًا مُثْبَتًا مُتَلَبِّسَةٌ بِالضَّمِيْرِ وَحْدَهُ |
| اومضارع مثبت يعني هغه جمله فعليه چې وي فعل په دې کې مضارع مثبت متلبس وي د ضمير پورې يواځې |
| لِمُشَابَهَتِهٖ لَفْظًا وَ مَعْنًى لِاِسْمِ الْفَاعِلِ الْمُسْتَغْنِيْ عَنِ الْوَاوِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ يَسْرَعُ وَ مَا |
| دوجې د مشابهت نه لفظاً او معنیً د اسم فاعل سره کوم چې مستغني وي د واو نه لکه جاءني زيد يسرع او هغه چې غير |
| سِوَاهُمَا اَيْ مَا سِوَى الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ وَ الْفِعْلِيَّةِ الْمُشْتَمِلَةِ عَلَى الْمُضَارِعِ الْمُثْبَتِ مِنَ الْجُمَلِ |
| د دې نه وي يعني غير د جملې اسميې او جمله فعليې نه چې مشتمل وي په مضارع مثبت باندې د هغه جملونه |
| الْمُشْتَمِلَةِ عَلَى الْمُضَارِعِ الْمَنْفِيِّ اَوِ الْمَاضِي الْمُثْبَتِ اَوِ الْمَنْفِيِّ بِالْوَاوِ وَالضَّمِيْرِ مَعًا اَوْ بِاَحَدِهِمَا |
| چې مشتمل په مضارع منفي يا ماضي مثبت يا ماضي منفي باندې د واو او ضمير سره يوځاې او يا د دې نه په يو |
| وَحْدَهُ مِنْ غَيْرِ ضُعْفٍ عِنْدَ الْاِكْتِفَاءِ بِالضَّمِيْرِ لِعَدَمِ قُوَّةِ اِسْتِقْلَالِهَا كَالْاِسْمِيَّةِ |
| سره يواځې په غير د ضعف نه په وخت د اکتفاء کې په ضمير باندې دوجې د عدم قوت استقلال نه لکه جمله اسميه |
| فَالْمُضَارِعُ الْمَنْفِيُّ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَمَا يَتَكَلَّمُ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَمَا يَتَكَلَّمُ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَمَا يَتَكَلَّمُ عَمْرٌو |
| نو د مضارع منفي مثال لکه جاءني زيد وما يتكلم غلامه وجاءني زيد وما يتكلم غلامه او جاءني زيد وما يتكلم عمرو |
| وَالْمَاضِيَ الْمُثْبَتِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَقَدْ خَرَجَ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ قَدْ خَرَجَ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَقَدْ خَرَجَ عَمْرٌو |
| او د ماضي مثبت مثال لکه جاءني زيد وقد خرج غلامه او جاءني زيد قد خرج غلامه او جاءني زيد وقد خرج عمرو |
| وَالْمَاضِيِ الْمَنْفِيِّ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَمَا خَرَجَ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ مَا خَرَجَ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ وَمَا خَرَجَ عَمْرٌو. |
| او د ماضي منفي مثال لکه جاءني زيد وما خرج غلامه او جاءني زيد ما خرج غلامه او جاءني زيد وما خرج عمرو. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت کې په نورو پنځو جملو کې د ربط تفصيل بيانوي چې وضاحت يې لاندې په شرحه کې موجود دي.

**اغراض د جامي** : والمضارع المثبت : په دې عبارت سره شارح د جامي په پنځو جملو کې د دويمې جملې فعليې مضارعې مثبتې د ربط تفصيل بيانوي چې د عبارت حاصل دا دې چې هغه جمله فعليه په کوم کې چې مضارع مثبت حال واقع وي نو په دې کې به رابط يواځې ضمير وي او واو رابط نه شي کېدې.

لمشابهته : په دې عبارت سره شارح د دې وجه بيانوي چې فعل مضارع مثبت لفظاً او معنیً د اسم فاعل سره مشابه دې او اسم فاعل د واو نه مستغني وي لهذا مضارع مثبت به هم د واو نه مستغني وي مثال لکه جاءني زيد يسرع په دې کې زيد ذوالحال دې او يسرع جمله فعليه مثبته

ددې نه حال دي په دې کې هو ضمیر مستتر رابط دي .

وما سواهما: په دې سره شارح دپاتې دري جملو درابط تفصیل بیانوي چې حاصل یې دادې چې دجمله اسمیې اودجملې فعلیې مضارع مثبت نه غیر چې کومې جملې دي یعني جمله فعلیه (۱) مضارع منفي ، (۲) یاماضي مثبت ، (۳) یاماضي منفي کله چې په دې کې کوم حال واقع وي نوبه دې کې درابط دري صورتونه دي :

(۱): واو او ضمیر دواړه رابط وي . (۲): یواځې واو رابط وي . (۳): یواځې ضمیر رابط وي په غیر دضعف نه ، دادریم صورت په جمله اسمیه کې خو ضعیف وو لیکن په دې دري جملو کې ضعیف نه دي ځکه چې دې جملو کې هغه قوت داستقلال موجود نه دي کوم چې په جمله اسمیه کې موجود وو ځکه چې ادنی اوضعیف رابط هم په کار راځي یواځې په ضمیر باندې اکتفاء جائز کیږي بې دضعف نه .

**مثالونه : فالمضارع المنفي:** په دې عبارت سره ددري جملو مثالونه بیانوي :

## (۱) دمضارع منفي مثالونه :

(۱) **جاءني زيد وما يتكلم غلامه** ، په دې کې واو اوضمیر دواړه رابط دي . (۲) **جاءني زيد ما يتكلم غلامه** ، په دې کې یواځې ضمیر رابط دي . (۳) **جاءني زيد وما يتكلم عمروا** ، په دې کې یواځې واو رابط دي .

## (۲) دماضي مثبت مثالونه :

(۱) **جاءني زيد وقد خرج غلامه** ، په دې کې واو او ضمیر دواړه رابط دي . (۲) **جاءني زيد قد خرج غلامه** په دې کې یواځې ضمیر رابط دي . (۳) **جاءني زيد وقد خرج عمرو** په دې کې فقط واو رابط دي .

## (۳) دماضي منفي مثالونه :

(۱) **جاءني زيد وماخرج غلامه**،په دې کې واو اوضمیر دواړه رابط دي . (۲) **جاءني زيد ماخرج غلامه**، په دې کې یواځې ضمیر رابط دي . (۳) **جاءني زيد و ما خرج عمرو** ، په دې کې یواځې واو رابط دي .

## په جمله ماضيه حاليه کې د قد موجوديدل :

| |
|---|
| وَلَا بُدَّ فِي الْمَاضِي الْمُثْبَتِ لَا الْمَنْفِيِّ مِنْ دُخُوْلِ لَفْظَةِ قَدْ اَلْمُقْرِبَةِ زَمَانَ الْمَاضِيْ اِلَى الْحَالِ |
| اونشته خلاصې په ماضي مثبت کې اونه په منفي کې د دخول دلفظ د قد نه چې نژدې کوي زمانه د ماضي حال |
| لُغَةً عَلَى الْمَاضِي الْمُثْبَتِ الْوَاقِعِ حَالًا لِيَدُلَّ بِهَا عَلَى قُرْبِ زَمَانِهِ |
| نه لغة په ماضي مثبت باندې چې واقع وي حال د دې د پاره چې دلالت وکړي په دې باندې په نژدې والي د دې زمانې |
| اِلَى زَمَانِ صُدُوْرِ الْفِعْلِ مِنْ ذِي الْحَالِ اَوْ وُقُوْعِهِ عَلَيْهِ تَجُوُّزاً لِاَنَّ الْمُتَبَادِرَ |
| ترزمانې د صدور د فعل پورې د ذوالحال نه او يا په واقع کيدو د دې باندې په مجازي طور باندې خکه چې متبادر |
| مِنَ الْمَاضِي الْمُثْبَتِ اِذَا وَقَعَ حَالًا اَنَّ مُضِيَّهُ اِنَّمَا هُوَ بِالنِّسْبَةِ اِلَى زَمَانِ الْعَامِلِ |
| د ماضي مثبت نه په هغه وخت کې چې واقع وي حال چې د دې ماضي کيدل دا په نسبت سره زمانې د عامل ته دي نو |
| فَلَا بُدَّ مِنْ قَدْ حَتّٰى تُقَرِّبَهُ اِلَيْهِ فَيُقَارِنَهُ وَهٰذَا بِخِلَافِ مَذْهَبِ الْكُوْفِيِّيْنَ فَاِنَّهُمْ لَا يُوْجِبُوْنَ قَدْ |
| لابدي د د قد نه ترد دې نژدې کړي عامل د زمانې ته او دا په خلاف د مذهب د کوفيانو دي چې هغه قد لره نه واجبوي |
| ظَاهِرَةً وَلَا مُقَدَّرَةً سَوَاءٌ كَانَتْ ظَاهِرَةً فِي اللَّفْظِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ قَدْ رَكِبَ غُلَامُهُ اَوْ مُقَدَّرَةً مَنْوِيَّةً نَحْوُ |
| نه ظاهراً او نه مقدر ابرابره خبره ده که د اقد په لفظ کې ظاهروي لکه جاءني زيد قد رکب غلامه يا مقدر منوي وي لکه |
| قَوْلِهِ تَعَالٰى اَوْ جَاءُوْكُمْ حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ وَ هٰذَا بِخِلَافِ مَذْهَبِ سِيْبَوَيْهِ وَ الْمُبَرِّدِ |
| دا قول د الله تعالى اوجاء وکم حصرت صدورهم يعني قد حصرت صدورهم او دا په خلاف د مذهب د سيبويه او د مبرد |
| فَاِنَّهُمَا لَا يُجَوِّزَانِ حَذْفَ قَدْ فَسِيْبَوَيْهِ يُؤَوِّلُ قَوْلَهُ تَعَالٰى حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ |
| دې خکه دوې جائزنه مني حذف کول د قد پس سيبويه تاويل کوي په دې قول د الله تعالى کې چې حصرت صدورهم |
| بِقَوْمًا حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ فَتَكُوْنُ جُمْلَةُ حَصِرَتْ صِفَةَ مَوْصُوْفٍ مَحْذُوْفٍ وَهُوَ الْحَالُ وَ الْمُبَرِّدُ يَجْعَلُهُ |
| په قوما حصرت صدورهم نووې په جمله حصرت صفت د موصوف محذوف قوماً او هغه حال دي او مبرد گرخوي دې |
| جُمْلَةً دُعَائِيَّةً وَ اِنَّمَا لَمْ يُشْتَرَطْ ذٰلِكَ فِي الْمَنْفِيِّ لِاِسْتِمْرَارِ النَّفْيِ بِلَا قَاطِعٍ فَيَشْمَلُ زَمَانَ |
| لره جمله دعائيه او دا يې شرط نه کړو په منفي کې دوجې د استمرار د نفي نه بې د خه مانع نه نو شامليږي زمانې |
| الْفِعْلِ . |
| د فعل ته. |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې د حال په باره کې يوه بله ضابطه او قاعده بيانوي چې کله ماضي مثبت حال واقع وي نو په دې باندې د قَدْ دخول ضروري دې بيا دا عام دې برابره خبره ده که قَدْ ظاهر وي او که مقدر وي .

**اغراض دجامي** : لا المنفي: په دې عبارت سره شارح بيان دفائدې کوي چې د المثبت قيد احترازي دي په دې سره دماضي منفي نه احتراز دي .

دخول: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د من په قد باندې دخول جائز نه دي ځکه چې من حرف جر دي اوحرف جر په اسم باندې داخليږي او قد اسم نه دي بلکه حرف دي .

**جواب** : جواب دادې چې من په قَدْ نه دي داخل بلکې ددې مدخول محذوف دي کوم چې دخول دي

لفظة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ددخول اضافت قَدْ طرف ته صحيح نه دي ځکه چې دمضاف اليه دپاره اسم کيدل ضروري دي او قد اسم نه دي بلکه حرف دي .

**جواب** : دلته د قَدْ نه مراد لفظِ قَدْ دي اوکله چې د حرف نه مراد دهغه لفظ وي نوهغه حرف علم جوړيږي کوم چې په ترکيب کې موجود وي پس دا اسم جوړيږي لهذا قَدْ لره مضاف اليه جوړول صحيح دي .

المقربة: په دې عبارت سره شارح دصفت وضاحت کوي .

ليدل: په دې عبارت سره شارح دماضي مثبت حال واقع کيدو په صورت کې په دې باندې دخول د قَدْ دلازم کيدو وجه بيانوي چې تفصيل يې دادې چې حال اوددې عامل په زمانه کې اتحاد ضروري دي اوکله چې ماضي مثبت حال واقع وي نو هغه دزمانه عامل نه مقدم کيږي په زمانه کې اتحاد نه پاتي کيږي لهذا په ماضي مثبت باندې د قد دخول ضروري دي ځکه چې هغه د قد دماضي مثبت زمانې سره ذوالحال نه صدور دفعل ياذوالحال باندې وقوع فعل زمانې ته نزدې کوي ځکه چې قريب د شئ حکماً ددې شئ سره مقارن وي لهذا حکما دحال زمانه دعامل زمانې سره به متحد شي .

تجوزا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : قَدْ ماضي لره په لغوي حال ( يعنې په زمان دمتکلم کې ) دقريب کيدو دپاره وضع شوي دي اوزمونږ بحث په حال اصطلاحي کې دي .

**جواب** : قَدْ په اول کې حقيقت اوثاني کې مجاز دي اودلته مجازي معنی مراد ده .

لان المتبادر : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کله چې ماضي مثبت حال واقع وي اوددې عامل مضارع وي نوبه دې کې په ماضي مثبت باندې د قَدْ داخليدل خو صحيح دي ليکن کله چې عامل هم ماضي وي نوبه دې وخت کې ماضي مثبت باندې د قَدْ دخول صحيح نه دي ځکه چې دا دواړه ماضي دي نو ماضي لره د حال قريب کولو څه معنی نشته لهذا ماضي مثبت باندې د قَدْ ددخول څه فائده نشته .

**جواب** : کله چې ماضي مثبت حال واقع وي نو ددې نه متبادر الی الذهن همدغه دي چې ددې ماضي کيدل دعامل دزمانې اعتبار څخه دي گويا چې دعامل زمانه مقدم شوه دحال زمانې نه لهذا کله چې عامل ماضي وي نو په دې وخت کې هم ماضي مثبت باندې دخول د قَدْ به بې فائدې نه وي .

وهذا بخلاف : په دې عبارت سره په دخول دقَدْ کې اختلاف بيانوي چې ددې تفصيل دادې چې کله ماضي مثبت حال واقع وي نوبه دې باندې دخول د قَدْ لازم کيدل دبصري د نحويانو مذهب دي او دکوفي دنحويانو په نزد په ماضي مثبت باندې دخول د قَدْ لازم نه دي نه ظاهراً اونه مقدراً .

سواء : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې ظاهرةً او مقدرةً داد کان محذوفه خبر دي دعبارت حاصل دادې چې په قَدْ کې تعميم دي برابره خبره ده که ظاهر في اللفظ وي اوکه مقدر منوي وي د قَدْ ظاهر في اللفظ مثال جاءني زيد قد رکب غلامه اود مقدر مثال اوجاءوکم حصرت صدورهم يعني قد حصرت صدورهم ، حصرت صدورهم حال دی د جاءوا دواو ضمير نه او قد مقدر دي دا په اصل کې قد حصرت صدورهم وو .

وهذا : په دې عبارت سره غرض دشارح داختلاف وضاحت کول دي يعنې ماضي مثبت قَدْ مقدر سره دحال کيدو جواز دي او ... سيبويه اودمبرد دمذهب خلاف دي ځکه چې دادواړه قد لره حذف جائز نه مني دالله تعالی داقول چې جاءوکم حصرت صدورهم کې تاويل کوي اوحصرت حال کيدو نه انکار کوي سيبويه وايي چې حصرت صدورهم صفت دي دموصوف محذوفه چې قوما دي اوقوما حال دي اصل عبارت داسې دي چې جاءوکم قوما حصرت صدورهم اومبرد وايي

چې حصرت صدورهم جمله بد دعائيه ده جمله حاليه نه ده اوکه جمله حاليه وي نو معنى به يې دا وي چې: هغوي ستاسو خوا ته راغلل اوحال دادې چې ددوي زړونه تنګ شوي وو . اوکه جمله بد دعائيه وي نو معنى به داوي (هغوي ستاسو خوا ته راغلل او خداى دې وکړي چې دهغوي سينې تنګې شي).

وانمالم يشترط: په دې عبارت سره غرض دشارح په ماضي منفي کې دخول دشرط نه کيدو وجه بيانوي وجه داده چې په دې باندې دخول د قد څه فائده نشته دې ځکه چې کله د ماضي نفي وشي نو نفي دوخت دانتفاء نه واخله ذوالحال نه صدور دفعل يا ذوالحال باندې وقوع دفعل پورې دائمي اوهميشه نه وي لهذا دحال زمانه دعامل زمانې سره مقارن کيږي ددې وجې نه د قد دخول څه فائده نشته دې.

## دحال دعامل دحذف جوازي صورت:

| وَ يَجُوْزُ حَذْفُ الْعَامِلِ فِي الْحَالِ لِقِيَامِ قَرِيْنَةٍ حَالِيَةٍ كَقَوْلِكَ لِلْمُسَافِرِ اَيِ |
|---|
| اوجائزدي حذف کول دعامل په حال کې دوجې دقيام دقرينې حاليې لکه داقول ستاوخت دمسافردپاره يعنې |
| الشَّارِعِ فِي السَّفَرِ اَوِ الْمُتَهَيِّءِ لَهُ رَاشِدًا مَهْدِيًّا اَيْ سِرْ رَاشِدًا مَهْدِيًّا بِقَرِيْنَةِ حَالِ الْمُخَاطَبِ |
| شروع کوونکي په سفرکې اوياتياري کوونکي دسفردپاره راشداًمهدياًيعنې شرراشداًمهدياًپه قرينې دحال مخاطب |
| وَ قَوْلُهُ مَهْدِيًّا اِمَّا صِفَةٌ لِرَاشِداً اَوْ حَالٌ بَعْدَ حَالٍ اَوْ مَقَالِيَةٍ كَقَوْلِكَ رَاكِبًا |
| اوداقول ، مهدياًبه صفت وي دراشداً اوياحال دي پس دحال نه يادقرينې مقاليې دوجې نه لکه داقول ستاراکباً |
| لِمَنْ يَقُوْلُ كَيْفَ جِئْتَ اَيْ جِئْتَ رَاكِبًا بِقَرِيْنَةِ السُّؤَالِ وَ مِنْهُ قَوْلُهُ تَعَالَى اَيَحْسَبُ الْاِنْسَانُ |
| هغه چاته چې ووايي کيف جئت يعنې جئتَ راکباًپه قرينې دسوال سره اوددې نه داقول دالله تعالى ايحسب الانسان |
| اَنْ لَّنْ نَجْمَعَ عِظَامَهُ بَلٰى قَادِرِيْنَ اَيْ بَلْ نَجْمَعُهَا قَادِرِيْنَ. |
| ان لن نجمع عظامه بلى قادرين يعنې بلى نجمعها قادرين |

**خلاصه دمتن**: صاحب دکافيې وايي چې عامل لره په وخت دقيام قرينه کول جائز دي لکه راشداًمهدياً داپه اصل کې راشداًمهدياً وو.

**اغراض دجامي**: في الحال: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې په العامل کې الف لام عهدي دي ددې نه خاص دحال عامل مراد دي نه چې مطلق عامل ځکه چې خروج عن المبحث والااشکال لازم رانه شي.

لقيام قرينة : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوض اوماته ده په جاءني زيد راكباً سره ځکه چې راكباً حال دي ليکن ددې عامل حذف کول جائز نه دي .

**جواب** : دلته دحذف دعامل نه مطلقاً حذف دعامل مراد نه دي بلکه مراد دادې چې کله کومه قرينه موجود وي نو عامل لره حذف کول جائز دي .

حالية اومقالية : په دې عبارت سره شارح دقرينې اقسام بيانوي اوددې تعميم بيانوي ، قرينه په دوه قسمه ده : (۱) حاليه (۲) مقاليه ، دلته په قرينه کې تعميم دي برابره خبره ده که حاليه وي اوکه مقاليه وي ، دقرينې حاليې مثال چې کله مسافر دسفر تياري کوي هغه ته وويلې شي راشداً مهدياً دا په اصل کې سر راشداً مهدياً وو نو دمسافر حالت ليدو سره چې هغه دتللو تياري کوي عامل سر لره حذف کړي شو ، مهدياً يا دراشداً صفت دي يا دسر ضمير نه دويم حال دي دا حالين منرادفين دي .

اى الشارع في السفر : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : مسافر خو هغه دي چاچې سفر شروع کړي وي اومسافرت معتدبه حصه يې ختمه کړي وي نو هغه ته راشداً مهدياً ويلو څه فائده ده .

**جواب** : دلته دمسافر نه هغه مسافر مراد دي کوم چې په ابتدا د سفر کې وي اوس يې دسفر آغاز کړي وي يا سفر يې شروع کړي نه وي ليکن سفر دپاره بالکل تيار ولاړ وي .

او مقالية : په دې عبارت سره دقرينې مقاليې مثالونه بيانوي دقرينې مقاليې نه مراد قرينه لفظيه ده برابره خبره ده که هغه دسائل په کلام کې واقع وي يا دمخاطب په کلام کې واقع وي ددې دوه مثالونه يې بيان کړي دي :

(۱) يو سړي دمخاطب نه تپوس وکړي چې کيف جئتَ نو هغه مخاطب جواب ورکړي چې راكباً ، نو راكباً حال دي اوددې عامل جئتُ محذوف دي ، دلته قرينه هغه سوال دسائل دي .

(۲) ايحسب الانسان ان لن نجمع عظامه بلى قادرين ، قادرين حال دي ددې عامل نجمعها محذوف دي قرينه لفظي بلى دي چې دايجاب بعد النفي د پاره راځي .

## د حال د عامل د حذف وجوبي صورت :

وَيَجِبُ حَذْفُ الْعَامِلِ فِيْ بَعْضِ الْاَحْوَالِ الْمُؤَكِّدَةِ وَهِيَ اَيِ الْحَالُ الْمُؤَكِّدَةُ مُطْلَقًا هِيَ الَّتِيْ لَا تَنْتَقِلُ

او واجب دي حذف د عامل په بعضې حال مؤکده کې او هغه يعنې حال موکده مطلقا هغه دي چې نه منتقل کېږي

مِنْ صَاحِبِهَا مَا دَامَ مَوْجُوْدًا غَالِبًا بِخِلَافِ الْمُنْتَقِلَةِ وَالْمُنْتَقِلَةُ قَيْدٌ لِلْعَامِلِ بِخِلَافِ الْمُؤَكِّدَةِ مِثْلُ زَيْدٌ

د خپل صاحب نه ترڅوچې موجود وي غالباً په خلاف د منتقله او منتقله قيد دپاره د عامل په خلاف د موکدة لکه زيد

اَبُوْكَ عَطُوْفًا فَإِنَّ الْعَطُوْفِيَّةَ لَا تَنْتَقِلُ عَنِ الْاَبِ فِيْ غَالِبِ الْاَمْرِ اَیْ اَحِقُّهُ بِفَتْحِ الْهَمْزَةِ اَوْ ضَمِّهَا مِنْ

ابوک عطوفا ځکه عطوفاً د انه منتقل کيږي د اب نه په غالب امر کې يعنې احقه په فتحې د همزې سره يا په ضمې سره د

حَقَقْتُ الْاَمْرَ بِمَعْنٰى تَحَقَّقْتُهُ وَ صِرْتُ مِنْهُ عَلٰى يَقِيْنٍ اَوْ مِنْ اَحْقَقْتُ الْاَمْرَ بِهٰذَا الْمَعْنٰى

حققت الامر نه په معنى د تحققته يعنې زه په دې خبر د په يقين سره پوه شوم او يا د احققت الامر څخه په همدې معنى سره

بِعَيْنِهٖ اَوْ بِمَعْنٰى اَثْبَتَّهُ اَیْ تَحَقَّقْتُ اُبُوَّتَهُ لَكَ وَ صِرْتُ عَلٰى يَقِيْنٍ اَوْ اَثْبَتُّهَا لَكَ

بعينه او يا په معنى د اثبته دي يعنې تحققت ابوته لک زه په دې خبره په يقين سره پوه شوم يا په معنى د اثبتها لک

عَطُوْفًا وَقَالَ صَاحِبُ الْمِفْتَاحِ اَحَقُّ التَّقْدِيْرَاتِ عِنْدِیْ اَنْ يُقَدَّرَ يَحْنُوْ عَطُوْفًا .

عطوفا ده او ويلي صاحب د مفتاح چې زما په نزد د ټولو تقديراتو نه بنه دا ده چې يحنو عطوفا مقدر کړې شي .

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې د حذف جوازي صورت د بيانولو نه وروسته د حذف وجوبي ذکر کوي چې په وخت د قيام د قرينه کې که حالِ مؤکده وي نو د دې عامل لره به حذف کول واجب دي لکه زيد ابوک عطوفا دا په اصل کې زيد ابوک احقه عطوفا وو .

**اغراض دجامي** : حذف العامل: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د مرجع دي چې د يجب ضمير مرجع حذف العامل دي .

بعض الاحوال: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : شهدالله انه لا الا هو الى قوله قائما بالقسط کې قائما حال مؤکده دي حالانکه د دې عامل حذف کول واجب نه دي بلکه شهد عامل مذکور دي .

**جواب** : احوالِ مؤکده نه بعضې احوالِ مؤکده مراد دي نه چې کل احوالِ مؤکده ځکه چې د حالِ مؤکده دوه قسمونه دي : (۱) د جملې اسميه د مضمون دپاره مؤکد وي . (۲) د جملې فعليې د مضمون دپاره مؤکد وي د عامل حذف د وجوب د اول قسم څخه دي په دويم قسم کې حذف د عامل واجب نه دي

وهي الخ: په دې عبارت سره شارح دحالِ مؤکده اودحالِ منتقله په مينځ کې فرق بيانوي داولنې فرق تعريف تير شوي دي چې حالِ مؤکده غالبا د ذوالحال نه نه شي جدا کيدې اوحال منتقله جدا کيدي شي منتقله دعامل دپاره قيد وي اوحالِ مؤکده دعامل دپاره قيد نه وي بلکه د عامل دپاره تاکيد وي .

مثل زيد ابوک عطوفاً: په دې عبارت سره غرض دشارح دحالِ مؤکده دمثال وضاحت کوي چې په دې کې عطوفاً حالِ مؤکده دي ځکه چې عطوفيت يعنې شفقت اکثر دپلار نه ، نه جدا کيږي نو ددې عامل په وجوبي طورباندې محذوف دي چې احق دي اواحقه په ضمې او په فتحې د همزې سره دواړو سره جائز دي که دې لره په فتحې دهمزې سره ولوستلې شي نو دابه ماخوذ وي د حققت الامر نه ( يعنې زه دهغه نه په يقين باندې شوم ) اوکه په ضمې دهمزې سره وي نو دا به ماخوذ وي د احققت الامر نه نو ددې معنى بعينه حققت الامر والاده يادددې معنى اثبته ( يعنې ما دهغه ابويت ستا دپاره ثابت کړه اوزه په يقين سره شوم ) صاحب دمفتاح ويلي دي چې زما په نزد دټولو تقديراتو نه ښه دادي چې دلته يحني فعل مقدر راوړې شي نو معنى به يې داشي چې زيد ستا پلار دي چې مائل کيږي اوحال دادې چې هغه مهربان دي .

## د حذف وجوبي شرط :

| وَ شَرْطُهَا اَیْ شَرْطُ وُجُوْبِ حَذْفِ عَامِلِهَا اَنْ تَكُوْنَ مُقَرِّرَةً اَیْ مُؤَكِّدَةً لِمَضْمُوْنِ جُمْلَةٍ اِحْتَرَزَ |
|---|
| اوشرط ددې يعنې شرط دوجوب دحذف دعامل چې وي مقرره يعنې مؤکدوي دپاره دمضمون دجملې احترازيې |
| بِهٖ عَمَّا يُؤَكِّدُ بَعْضَ اَجْزَائِهَا كَالْعَامِلِ فِیْ قَوْلِهٖ تَعَالٰی وَ اَرْسَلْنَاكَ |
| کړې دي په دې سره دهغه څه نه چې تاکيد کوي دبعضې اجزاولکه عامل په دې قول دالله تعالى کې وارسلناک |
| لِلنَّاسِ رَسُوْلًا فَاِنَّهٗ لَا يَجِبُ حَذْفُهٗ اِسْمِيَّةٍ اِحْتَرَزَ بِهٖ عَمَّا اِذَا |
| للناس رسولاځکه نه دي واجب حذف ددې عامل چې اسميه وي احترازيې وکړوپه دې سره دهغه جملې نه چې |
| كَانَتْ فِعْلِيَّةً فَاِنَّهٗ لَا يَجِبُ حَذْفُ عَامِلِهَا كَمَا قَالَ صَاحِبُ الْكَشَّافِ فِیْ قَوْلِهٖ |
| کله هغه فعليه وي ځکه چې نه دي واجب حذف دعامل ددې لکه څنګه چې صاحب دکشاف ويلي دي په دې قول د |
| تَعَالٰی قَائِمًا بِالْقِسْطِ اِنَّهٗ حَالٌ مُؤَكِّدَةٌ مِنْ فَاعِلِ شَهِدَ وَلَا بُدَّ هٰهُنَا مِنْ قَيْدٍ اٰخَرَ وَ هُوَ اَنْ يَّكُوْنَ |
| الله تعالى قائماً بالقسط کې چې داحال موکده دي دفاعل شهد نه اولابدي دلته ديوبل قيد نه اوهغه دادې چې وي |
| عَقْدُ تِلْكَ الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ مِنْ اِسْمَيْنِ لَا يَصْلُحَانِ لِلْعَمَلِ فِيْهَا وَ اِلَّا لَكَانَ عَامِلُهَا |
| ترکيب ددې جملې اسميې ددوه اسمونو نه چې صلاحيت نه لري دعمل په دې کې اوکه وي نو وي به عامل ددې |

| مَذْكُوْرًا فَكَيْفَ يَكُوْنُ حَذْفُهُ وَاجِبًا نَحْوُ اَللّٰهُ شَاهِدٌ قَائِمًا بِالْقِسْطِ. |
|---|
| مذكور نوڅنګه به وي حذف ددې واجب لکه الله شاهد قائما بالقسط |

**خلاصه دمتن** : صاحب دكافيې په دې عبارت كې دحال عامل دحذف وجوبي دشرط ذكر كوي دحالِ مؤكده دعامل دحذف كولو دپاره شرط دادې چې هغه دجملې اسميې دمضمون تاكيد كوي.

**اغراض دجامي** : __اى شرط وجوب حذف عاملها__ : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : مونږ دانه منو چې دحال دپاره مضمون دجملې مقرر كيدل شرط وي مثال لكه جاءني زيدراكباً په دې كې راكباً حال دي حالانكه دامضمون دجملې دپاره مقرر نه دي اونه دهغه عامل لره حذف كول واجب دي.

**جواب** : دلته مضاف محذوف دي په اصل كې شرط وجوب حذفها وو نودا حذف دعامل دوجوب شرط دي نه چې دنفسِ حال دعامل حذف كيدل حالِ مؤكده دعامل دحذف كولو دپاره شرط دادې چې هغه دجمله اسميه مضمون تاكيد كوي.

__احترز__ : په دې عبارت سره غرض دشارح دمضمون دجملې دقيد فائده بيانوي ، چې دا قيد احترازي دي په دې سره احتراز دي دهغه حال نه كوم چې دمضمون دجملې تاكيد نه كوي بلكې دجملې بعضې اجزاو تاكيد كوي مثال لكه انا ارسلناك للناس رسولاً په دې كې رسولاً دا د مضمون دجملې تاكيد نه كوي فقط درسالت تاكيد كوي لهذا ددې عامل حذف كول واجب نه دي.

__واحترز به__ : په دې عبارت سره غرض دشارح داسميه دقيد فائده بيانوي چې دا قيد احترازي دي په دې سره احتراز دي دهغه حال نه كوم چې جمله فعليه دمضمون تاكيد كوي داسې حال دعامل حذف كيدل واجب نه دي لكه څنګه چې صاحب دكشاف ويلي دي دالله تعالى قول قائماً بالقسط په باره كې چې په دې كې قائماً بالقسط حال دي دهو فاعل نه لهذا ددې عامل لره حذف كول واجب نه دي.

__ولا بد__ : په دې عبارت سره غرض دشارح په صاحب دكافيه باندې اعتراض كول دي ، مصنف رحمه الله لره په كاروو چې جمله اسميه دداسې دوه اسمونو نه مركب وي چې په هغوي كې يو

اسم هم په حال کې د عمل صلاحیت نه لري خکه چې که جمله اسمیه د داسې دوه اسمونو نه مرکب وي چې په هغې کې هر یو اسم په حال کې د عمل کولو صلاحیت لري نو د هغه عامل به محذوف نه وي مثال لکه الله شاهد قائماً بالقسط په دې کې شاهد دا جمله اسمیه ده ددې دویم جزء په دې کې د عمل صلاحیت لري لهذا په دغه قائما کې به عامل وي

## ﴿ اَلتَّمِيِيْزُ ﴾ :

## د تمییز تعریف :

| |
|---|
| اَلتَّمْيِيْزُ مَا يَرْفَعُ اَيِ الْاِسْمِ الَّذِيْ يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ وَ اِحْتَرَزَ بِهِ عَنِ الْبَدَلِ فَاِنَّ الْمُبْدَلَ |
| تمیز هغه دې چې رفع کوي یعني هغه اسم دې چې رفع کوي ابهام احترازیې وکړو په دې سره د بدل نه خکه چې مبدل |
| مِنْهُ فِيْ حُكْمِ التَّنْحِيَةِ فَهُوَ لَيْسَ يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ شَيْءٍ بَلْ هُوَ تَرْكُ مُبْهَمٍ وَ اِيْرَادُ مُعَيَّنٍ |
| منه په حکم د از الې کې دې نو دا نه دې چې رفع کړي ابهام د یو څیز نه بلکې پریخودل د مبهم او وارد ول د معین دي |
| الْمُسْتَقِرَّ اَيِ الثَّابِتَ الرَّاسِخَ فِي الْمَعْنَى الْمَوْضُوْعُ لَهُ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مَوْضُوْعٌ لَهُ فَاِنَّ الْمُسْتَقِرَّ |
| چې مستقر وي یعني ثابت او راسخ په معنی موضوع له کې د دې حیثیت نه چې دا موضوع له وي خکه مستقر |
| وَ اِنْ كَانَ بِحَسْبِ اللُّغَةِ هُوَ الثَّابِتُ مُطْلَقًا لٰكِنِ الْمُطْلَقُ مُنْصَرِفٌ اِلَى الْكَامِلِ وَهُوَ الْوَضْعِيُّ وَ اِحْتَرَزَ |
| اګر که په اعتبار د لغت سره ثابت دې مطلقا لیکن مطلق ګرځي کامل طرف ته او هغه وضعي دې او احترازیې وکړو |
| بِهِ عَنْ نَحْوِ رَاَيْتُ عَيْنًا جَارِيَةً فَاِنَّ قَوْلَهُ جَارِيَةً يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ قَوْلِهِ عَيْنًا لٰكِنَّهُ غَيْرُ مُسْتَقِرٍّ بِحَسْبِ |
| په دې سره د رأیت عیناً جاریةً نه خکه چې دا قول جاریةً د ده رفع کوي ابهام د عیناً نه لیکن دا غیر مستقر دې په اعتبار |
| الْوَضْعِ بَلْ نَشَاَ فِي الْاِسْتِعْمَالِ بِاِعْتِبَارِ تَعَدُّدِ الْمَوْضُوْعِ لَهُ وَ كَذَا يَقَعُ بِهِ |
| د وضع سره بلکه پیدا شوې دې په استعمال کې په اعتبار د تعدد د موضوع له سره او همدا رنګې واقع کیږي په |
| الْاِحْتِرَازُ عَنْ اَوْصَافِ الْمُبْهَمَاتِ نَحْوُ هٰذَا الرَّجُلُ فَاِنَّ هٰذَا مَثَلًا اِمَّا مَوْضُوْعٌ لِمَفْهُوْمٍ كُلِّيٍّ |
| دې سره احتراز د اوصافو د مبهماتو نه لکه هذا الرجل خکه هذا مثلاً یا خو وضع شوې دې د پاره د مفهوم کلي په دې |
| بِشَرْطِ اِسْتِعْمَالِهِ فِيْ جُزْئِيَّاتِهِ اَوْ لِكُلِّ جُزْئِيٍّ جُزْئِيٍّ مِنْهُ وَلَا اِبْهَامَ |
| شرط سره چې هذا د مفهوم کلي په جزئیاتو کې مستعمل وي یا د هر یو جزئي جزئي د پاره موضوع وي او نشته ابهام |
| فِيْ هٰذَا الْمَفْهُوْمِ الْكُلِّيِّ وَلَا فِيْ وَاحِدٍ مِنْ جُزْئِيَّاتِهِ بَلِ الْاِبْهَامُ اِنَّمَا نَشَاَ مِنْ تَعَدُّدِ الْمَوْضُوْعِ لَهُ اَوِ الْمُسْتَعْمَلِ فِيْهِ |
| په دې مفهوم کلي کې او نه په یو جز کې د جزئیاتو نه بلکې ابهام دا پیدا دې د تعدد د موضوع له نه یا مستعمل فیه دي |
| فَتَوْصِيْفُهُ بِالرَّجُلِ يَرْفَعُ هٰذَا الْاِبْهَامَ لَا الْاِبْهَامَ الْوَاقِعَ فِي الْمَوْضُوْعِ لَهُ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ |
| نو موصوف کول په الرجل سره رفع کوي دا ابهام نه هغه ابهام چې واقع دې په موضوع له د دې حیثیت نه چې دا |

| مَوْضُوْعٌ لَهُ وَ كَذَا يَقَعُ بِهِ الْاِحْتِرَازُ عَنْ عَطْفِ الْبَيَانِ فِيْ مِثْلِ قَوْلِكَ اَبُوْ حَفْصٍ عُمَرُ |
|---|
| موضوع له دي او همدارنګې واقع کيږي په دې سره احتراز د عطف بيان نه په مثل د قول ستا کې ابو حفص عمر |
| فَاِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْ اَبِيْ حَفْصٍ وَعُمَرَ مَوْضُوْعٌ لِشَخْصٍ مُعَيَّنٍ لَا اِبْهَامَ فِيْهِ لٰكِنْ لَمَّا كَانَ |
| ځکه چې هر يو د ابي حفص او عمر نه موضوع دي د پاره د شخص معين او نشته ابهام په دې کې ليکن هر کله چې |
| عُمَرُ اَشْهَرَ مِنْهُ زَالَ بِذِكْرِهِ الْخَفَاءُ الْوَاقِعُ فِيْ اَبِيْ حَفْصٍ لِعَدَمِ الْاِشْتِهَارِ |
| عمر زيات مشهور وو نو زائله شوه په ذکر کولو د دې سره هغه خفا چې واقع وه په ابي حفص کې د وجې د عدم شهرت نه |
| لَا الْاِبْهَامَ الْوَضْعِيَّ. |
| نه د ابهام وضعي نه. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب د کافيې د تمييز تعريف کوي چې تمييز هغه اسم دي چې د ذات مقدره نه ياد ذاتِ مذکوره نه ابهام ختم کړي داسې ابهام چې د هغه معنى په موضوع له کې راسخ شوي وي.

**اغراض دجامي** : اى الاسم: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : د تمييز تعريف دخول دغير نه مانع نه دي ځکه چې کلمه د **ما** عام ده ځکه چې دا تعريف په هغه **قتلتُ** باندې صادق راځي کوم چې په **فعلتُ اى قتلتُ** کې واقع دي ځکه چې دا هم ابهام لره لري کوي حالانکه دا تمييز نه دي بلکه تفسير دي.

**جواب** : **ما** عبارت دي د اسم نه او **قتلتُ** اسم نه دي بلکه فعل دي نو اشکال وارد نه شو بلکې دفع شو.

الذي: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : کله چې د **ما** نه مراد اسم دي نو **الاسم** موصوف او **يرفع الابهام** جمله خبريه د هغې صفت جوړيږي حالانکه دا صفت نه دي ځکه چې **الاسم** معرفه او **يرفع الابهام** جمله خبريه ده او جمله خبريه د نکرې په حکم کې وي او نکره د معرفې صفت نه شي جوړيدي.

**جواب** : د الذي په اضافه کولو سره شارح جواب ورکوي چې په **ما يرفع** کې **ما** موصوله په معنى د الذي ده **ما** موصوفه نه ده او مابعد جمله يعنې **يرفع الابهام** د **ما** موصوله د پاره صِله ده صفت نه دي نو اشکال رفع شو.

احترز: په دې عبارت سره شارح د يرفع الابهام دقيد فائده بيانوي چې دا قيد احترازي دی د بدل نه احتراز دی ځکه چې په بدل او مبدل منه کې مقصود بدل وي او مبدل منه دسقوط او ترک په درجه کې وي نو په بدل کې ترکِ مبهم, مبدل منه) او ذکر دمتعين (بدل) وي.

الثابت: په دې عبارت سره شارح د المستقر دمعنى بيان کوي دابهام مستقر معنى داده چې هغه ابهام چې په معنى موضوع له کې دموضوع له کيدو حيثيت څخه ثابت اوراسخ وي.

فان المستقر: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مستقر خو په معنى د مطلقِ ثبوت ده بيا داثبوت عام دي که دا ابهام ثابت په اعتبار دوضع سره وي اوکه په اعتبار داستعمال سره وي اوکه په اعتبار داشتراک سره وي لهذا الثابت لره دالراسخ في المعنى الموضوع سره مقيد کيدل صحيح نه دي.

**جواب**: اګرکه دلغت په اعتبار سره دمستقر معنى مطلق ثبوت ده بيا دا عام ده که په اعتبار د وضع سره وي اوکه په اعتبار داستعمال سره وي ليکن دلته هغه ابهام مراد دي کوم چې په معنى موضوع له کې ثابت اوراسخ شوي وي ځکه چې په متن کې المستقر مطلق مذکور دي اوقاعده داده چې کله مطلق ذکر شي نو ددې نه مراد فردِ کامل وي اودابهام فردِ کامل ابهام وضعي دي ددې وجې نه يې المستقر په الراسخ في المعنى الموضوع له قيد سره يې مقيد کړو.

واحترز به: په دې عبارت سره شارح دالمستقر قيد فائده بيانوي چې دا قيد احترازي دي په دې سره دري (۳) څيزونه خارج شول:

(۱): دلفظ مشترک صفت ځکه چې دلفظ مشترک صفت اګرکه ابهام لره لري کوي ليکن هغه ابهام وضعي نه وي بلکه هغه ابهام دموضوع له دتعدد دوجې نه په استعمال کې پيدا شوي دي مثال رأيت عيناً جارية په دې کې جارية اګرکه ابهام لره لري کوي ليکن دا ابهام وضعي نه دي بلکه موضوع له دتعدد دوجې نه په استعمال کې پيدا شوي دي.

(۲): دمبهماتو صفت، ځکه چې دمبهماتو صفت اګرکه دمبهم نه ابهام لره لري کوي ليکن هغه ابهام وضعي نه دي بلکه هغه ابهام په استعمال کې دننه دموضوع له تعدد يامعنى مستعمل فيه د تعدد دوجې نه پيدا کيږي ځکه چې دمبهماتو په باره کې اختلاف دي د متقدمينو په نزد دا دمفهوم کلي دپاره موضوع دي خو په شرط استعمال في الجزئيات اود متاخرينو په نزد دا موضع دي دمفهوم کلي دجزئياتو څخه هر هر جزدپاره. نو د متقدمينو په

نزد په هغه کې ابهام مستعمل فيه دتعدد دوجې څخه دي اودمتاخرينو په نزد په هغه کې ابهام دموضوع له دتعدد دوجې څخه پيدا شوي وي مثلاً هذا الرجل په دې کې الرجل اګرکه دهذا نه ابهام لرې کوي ليکن هغه ابهام وضعي نه دي بلکه دا ابهام دمتقدمينو په نزد معنى موضوع له دتعدد څخه دي اودمتاخرينو په نزد دا ابهام دمستعمل فيه دتعدد څخه دي .

(۳): عطف بيان ، ځکه چې عطف بيان اګرچې دمبين نه ابهام لرې کوي ليکن هغه ابهام وضعي نه دي بلکه هغه ابهام داستعمال دوجې نه پيدا شوي دي دمبين دعدم شهرت دوجې نه مثال لکه اقسم بالله ابوحفص عمر ، په دې کې ابوحفص په نسبت دعمر سره زيات مشهور وو نو دعمر دذکرکولو سره هغه خفاء زائل شوه کومه چې دعدم شهرت دوجې نه په ابوحفص کې پيدا شوي وه .

**نو ددې خلاصه دا شوه** چې په دغه دري واړو کې ابهام په نفس معنى موضوع کې ثابت، نه ده بلکه په مشترک کې ابهام تعدد د موضوع له د وجې نه پيدا شوي دي او په مبهماتو کې تعدد د مستعمل فيه د اعتبار نه اوپه عطف بيان کې دعدم شهرت دوجې نه ابهام پيدا شوي دي .

## دتمييز په تعريف کې ددويم قيد ذکر :

| |
|---|
| عَنْ ذَاتٍ لَا عَنْ وَصْفٍ وَ اِحْتَرَزَ بِهٖ عَنِ النَّعْتِ وَ الْحَالُ فَاِنَّهُمَا يَرْفَعَانِ الْاِبْهَامِ الْمُسْتَقِرَّ |
| دذات نه، نه دوصف نه اواحترازيې وکړوپه دې سره دنعت اوحال نه ځکه دادواړه رفع کوي هغه ابهام مستقرلره |
| الْوَاقِعَ فِي الْوَصْفِ لَا فِي الذَّاتِ وَ تَحْقِيْقُ ذٰلِکَ اَنَّ الْوَاضِعَ لَمَّا وَضَعَ الرِّطْلَ مَثَلًا لِنِصْفِ مَنٍ |
| کوم چې واقع کيږي په وصف کې نه په ذات کې اوتحقيق ددې دادې چې واضع هرکله وضع کړورطل مثلاً دنيم من |
| فَلَا شَکَّ اَنَّ الْمَوْضُوْعَ لَهٗ مَعْنًى مُعَيَّنٌ مُتَمَيِّزٌ عَمَّا هُوَ اَقَلُّ مِنَ النِّصْفِ |
| دپاره نوپه دې کې شک نشته چې موضوع له معنى معين اوجدا دي دهغه څيزنه کوم چې کم دي دنصف نه لکه |
| کَالرُّبْعِ وَ عَمَّا هُوَ اَکْثَرُ مِنْهُ کَمَنٍ وَ مَنَّيْنِ وَلَا اِبْهَامَ فِيْهِ اِلَّا مِنْ حَيْثُ |
| څلورمه اودهغه څيزنه کوم چې زيات وي ددې نه لکه يومن اودوه منه اونشته ابهام په دې کې مګر د حيثيت |
| ذَاتِهٖ اَيْ جِنْسِهٖ فَاِنَّهٗ لَا يُعْلَمُ مِنْهُ بِحَسْبِ الْوَضْعِ اَنَّهٗ مِنْ جِنْسِ الْعَسَلِ اَوِ الْخَلِّ |
| دذات نه يعني دجنس ددې نه ځکه نه معلوميږي ددې نه په اعتبار دوضع سره چې دا دجنس دشهد دي اويا دسرکې نه |
| اَوْ غَيْرِهِمَا لَا مِنْ حَيْثُ وَصْفِهٖ فَاِنَّهٗ لَا يُعْلَمُ مِنْهُ بِحَسْبِ الْوَضْعِ اَنَّهٗ بَغْدَادِيٌّ |
| اويا غير ددې دواړونه. نه په اعتبار دوصف سره ځکه نه معلوميږي ددې نه په اعتبار دوضع سره چې دا بغدادي دي |

| أَوْ مَكِيٌّ فَإِذَا أُرِيدَ رَفْعُ الْإِبْهَامِ الْوَصْفِيِّ الثَّابِتِ فِيهِ بِحَسْبِ الْوَضْعِ أُتْبِعَ |
|---|
| اويامكي دي هركله چې اراده كړې رفع دابهام وصفي چې ثابت وي په دې كې په اعتبار دوضع سره نوتابع كيږي |
| بِصِفَةٍ أَوْ حَالٍ فَيُقَالُ رِطْلٌ بَغْدَادِيٌّ أَوْ بَغْدَادِيًّا وَ إِذَا أُرِيدَ رَفْعُ الْإِبْهَامِ الذَّاتِيِّ قِيلَ |
| دصفت سره اويادحال سره نوويلې به شي رطل بغدادي اوبغداديا، اوهركله چې اراده كړې رفع دابهام ذاتي نوويلې |
| زَيْتًا فَزَيْتًا يَرْفَعُ الْإِبْهَامَ الْمُسْتَقِرَّ عَنِ الذَّاتِ لَا النَّعْتُ وَالْحَالُ فَإِنَّهُمَا يَرْفَعَانِ الْإِبْهَامَ عَنِ الْوَصْفِ. |
| به شي زيتافزيتانورفع كوي ابهام مستقر دذات نه، نه دنعت اوحال نه ځكه دادواړه رفع كوي ابهام د وصف نه . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت كې صاحب دكافيې دتمييز په تعريف كې يو بل قيد اضافه كوي چې تمييز هغه اسم دي كوم چې دذات نه ابهام لرې كوي نه دوصف نه .

**اغراض دجامي** : لاعن وصف : په دې عبارت سره شارح دذات دقيد فائده بيانوي چې دا قيد احترازي دي په دې سره دصفت اودحال نه احتراز دي ځكه چې دا دواړه هغه ابهام لره لرې كوي كوم چې په وصف كې واقع كيږي نه په ذات كې .

وتحقيق ذلك : په دې عبارت سره شارح ددې خبرې تحقيق كوي چې تمييز د ذات نه اونعت د حال اودوصف نه څنګه ابهام لرې كوي ددې تحقيق دادې مثلاً چې كله واضع رطل لره نيم سير ددې دپاره وضع كړو نو په دې كې هيڅ شک نشته دي چې ددې معنى موضوع له معين ده چې نصف نه كم اودربع نه ممتاز او اوچت اودنصف نه اكثر مثلاً يو سير يادوه سيرنه ممتاز دي ليكن ذات يعني جنس داعتبار څخه په دې كې ابهام موجود دي ځكه چې په اعتبار دوضع سره معلوم نه شول چې هغه رطل دشهدو جنس څخه دي اوكه دسركې دجنس نه يادبل جنس څخه همدارنګې په اعتبار دوصف سره هم ابهام موجود دي ځكه چې معلوم نه شول چې هغه رطل بغدادي دي اوكه مكي يادبل ځ ـ ي . لهذا كله چې ابهام وصفي لره درفع كولو اراده وكړې شي نوددې نه وروستو حال يا وصف لره ذكركولې شي دوصف په صورت كې به داسې ويلې شي چې : عندي رطل بغدادي دحال په صورت كې عندي رطل بغداديا ويلې شي اوكله چې ابهام ذاتي لره دلرې كولو اراده وكړې شي نو تمييز لره به ذكر كولې شي اوداسې به ويلې شي چې عندي رطل زيتا لهذا زيتا دا ابهام ذاتي لره رفع كوي اوصفت اوحال ابهام وصفي لره رفع كوي لهذا ماتن دذات دقيد سره هغه دواړه لره خارج كړل .

## د تمییز اقسام :

| مَذْكُوْرَةٌ اَوْ مُقَدَّرَةٌ صِفَتَانِ لِذَاتٍ اِشَارَةٌ اِلٰى تَقْسِيْمِ التَّمْيِيْزِ فَالْمَذْكُوْرَةُ نَحْوُ رِطْلٌ زَيْتًا |
|---|
| د ذات مذکوره نه یا مقدره نه دواړه صفت دي دپاره د ذات اشاره ده تقسیم د تمییز طرف ته نو مذکوره لکه رطل زیتاً |
| وَ الْمُقَدَّرَةُ نَحْوُ طَابَ زَيْدٌ نَفْسًا فَاِنَّهٗ فِيْ قُوَّةِ قَوْلِنَا طَابَ شَيْءٌ مَنْسُوْبٌ اِلٰى زَيْدٍ وَ نَفْسًا يَرْفَعُ |
| اومقدره لکه طاب زید نفسا ځکه دا په قوت د قول زمونږ طاب شيء منسوب الی زید نفسا کې دي او نفسا رفع کوي |
| الْاِبْهَامَ عَنْ ذٰلِكَ الشَّيْءِ الْمُقَدَّرِ فِيْهِ. |
| ابهام د هغه څیز نه کوم چې مقدر دي په دې کې |

**خلاصه د متن :** په دې عبارت کې صاحب د کافیې د تمییز تقسیم کوي چې تمیز په دوه قسمه دي . (۱) هغه تمییز چې ذات مذکوره نه ابهام لرې کوي مثال لکه **عندي رطل زیتا** . (۲) دویم هغه تمییز کوم چې د ذات مقدره نه ابهام لرې کوي مثلاً **طاب زید نفساً** .

**اغراض د جامي :** اشارة الی تقسیم : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** په تعریف کې کلمه اوْ لره ذکر کول صحیح نه دي ځکه چې کلمه د اَوْ د تشکیک دپاره راځي او تعریف د وضاحت دپاره راځي نو په تشکیک او وضاحت دواړو کې منافات دي .

**جواب :** دلته کلمه د اَوْ د تشکیک دپاره نه ده بلکه د تنویع او د تقسیم د تمییز دپاره ده او د تمیز دوه (۲) قسمونه دي : (۱) هغه تمییز چې ذات مذکوره نه ابهام لرې کوي مثال لکه **عندي رطل زیتا**. (۲) دویم هغه تمییز کوم چې د ذات مقدره نه ابهام لرې کوي مثلاً **طاب زید نفساً**.

**فانه في قوة قولنا :** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** **نفساً** د **زید** نه ابهام رفع کوي هغه مذکور دي مقدر نه دي نو هغه لره ذات مقدره نه ابهام لرې کوونکو په مثال کې پیش کول څنګه صحیح دي ؟

**جواب :** دلته ممیز زید نه دي بلکه ممیز مقدر دي چې **شئ** دي ځکه چې د **طاب زید نفساً** معنی **طاب شيء منسوب الی زید** ده لهذا **نفسا** د هغه **شئ** نه ابهام لرې کوي کوم چې مقدر دي د دې وجې نه هغه لره د ذات مقدره د مثال په طور ذکر کول صحیح دي .

# د تمییز اول قسم :

فَالْاَوَّلُ اَيِ الْقِسْمِ الْاَوَّلِ مِنَ التَّمْيِيْزِ وَهُوَ مَا يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ ذَاتٍ مَذْكُوْرَةٍ يَرْفَعُهُ عَنْ مُفْرَدٍ يَعْنِيْ

نو اول یعني اول قسم د تمییز او دا هغه دي چې رفع کوي ابهام د ذات مذکوره نه چې رفع کوي د مفرد نه او مراد د

بِهٖ مَا يُقَابِلُ الْجُمْلَةَ وَ شِبْهَهَا وَ الْمُضَافَ مِقْدَارٍ صِفَةٌ لِمُفْرَدٍ وَ

مفرد نه هغه دي کوم چې مقابل د جملې او یا د شبه جملې او د مضاف وي چې مقدار وي دا صفت دي د پاره د مفرد او

هُوَ مَا يُقَدَّرُ بِهِ الشَّيْءُ اَيْ يُعْرَفُ بِهٖ قَدْرُهٗ وَ يُبَيِّنُ غَالِباً اَيْ

دا هغه دي چې د دې سره اندازه کولې شي د یو څیز یعني پیژندلې شي په دې سره مقدار او بیانولې شي غالباً یعني

فِيْ غَالِبِ الْمَوَادِّ وَاَكْثَرِهَا اَيْ رَفْعُ الْاِبْهَامِ مُطْلَقًا يَتَحَقَّقُ فِيْ ضِمْنِ هٰذَا الرَّفْعِ الْخَاصِّ فِيْ اَكْثَرِ الْمَوَادِّ

په غالب او اکثر مواد کې یعني رفع د ابهام کوي مطلقاً متحقق کیږي په ضمن د دې رفع خاص کې په اکثر مواد و

وَذٰلِكَ لِاَنَّ الْاِبْهَامَ فِيْهِ اَكْثَرُ وَ الْمِقْدَارُ اِمَّا مُتَحَقِّقٌ فِيْ ضِمْنِ عَدَدٍ نَحْوُ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا وَ سَيَاْتِيْ

کې او دا خکه چې ابهام په دې کې اکثر دي او مقدار یا متحقق وي په ضمن د عدد کې لکه عشرون درهما او زر دي چې

ذِكْرُ تَمْيِيْزِ الْعَدَدِ وَ بَيَانُهٗ فِيْ بَابِ اَسْمَاءِ الْعَدَدِ وَاِمَّا فِيْ ضِمْنِ غَيْرِهٖ اَيْ غَيْرِ الْعَدَدِ كَالْوَزْنِ

را به شي ذکر د تمییز عدد او بیان یې په اسماء عدد کې او یا په ضمن د غیر د دې کې یعني غیر د عدد کې په شان د وزن

نَحْوُ رِطْلٌ زَيْتًا فَاِنَّ الرِّطْلَ نِصْفُ الْمَنِّ وَ نَحْوُ مَنَوَانِ سَمْنًا وَ كَالْكَيْلِ نَحْوُ قَفِيْزَانِ بُرًّا وَ كَالذِّرَاعِ نَحْوُ ذِرَاعٌ

لکه رطل زیتا خکه رطل نیم من دي او لکه منوان سمنا او د کیل په شان لکه قفیزان براً او د ذراع په شان لکه ذراع

ثَوْبًا وَ كَالْمِقْيَاسِ نَحْوُ عَلَى التَّمْرَةِ مِثْلُهَا زُبْدًا وَ الْمُرَادُ بِالْمَقَادِيْرِ فِيْ هٰذِهِ الصُّوَرِ هُوَ الْمُقَدَّرَاتُ لِاَنَّ

ثوبا او د مقیاس په شان لکه علی التمرة مثلها زبدا او مراد په مقادیر سره په دې صورتونو کې هغه مقدرات دي خکه

قَوْلَكَ عِنْدِيْ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا وَرِطْلٌ زَيْتًا وَذِرَاعٌ ثَوْبًا وَعَلَى التَّمْرَةِ مِثْلُهَا زُبْدًا اَلْمُرَادُ بِهَا الْمَعْدُوْدُ وَ الْمَوْزُوْنُ

دا قول ستا عندي عشرون درهما او رطل زیتا او ذراع ثوبا او علی التمرة مثلها زبدا مراد په دې ټولو سره معدود ،موزون،

وَالْمَذْرُوْعُ وَالْمَقِيْسُ لَا غَيْرُ.

مذروع او مقیس دي نه بل څه

**خلاصه دمتن** : د صاحب د کافیې د عبارت حاصل دا دې چې د تمییز اول قسم یعني کوم چې د ذات مذکوره نه ابهام رفع کوي هغه اکثر مفرد مقدار نه ابهام لرې کوي او دا مفرد مقدار یا د عدد په ضمن کې متحقق کیږي یا د غیر عدد په ضمن کې که چیرته د غیر عدد په ضمن کې وي نو بیا هغه غیر د څلورو حالونو نه به خالي نه وي یا به وزن وي یا کیل یا ذراع یا به مقیاس وي د هر یو مثال په شرحه کې ذکر کیږي .

**اغراض دجامي** : القسم : په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې الاول صفت دي د موصوف محذوف چې القسم دي .

وهو ما يرفع الابهام : په دې عبارت سره شارح بيان دمصداق کوي دالاول مصداق بيانوي چې داول قسم نه مراد هغه دي کوم چې دذات مذکوره نه ابهام لري کوي .

يرفعه : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې د عن مفرد متعلق محذوف دي چې يرفعه دي فعل دخپل فاعل اودمفعول به سره خبر دي د الاول دمبتدا دپاره .

يعني به مايقابل الجملة : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستامثال دممثل سره مطابق نه دي ځکه چې مثال دهغه تمييز بيانول په کار دي کوم چې دمفرد مقدار نه ابهام لره رفع کوي ليکن تا دتثنيه اودجمع مثالونه ذکر کړي دي .

**جواب** : دلته دمفرد نه مراد هغه مفرد دي کوم چې دجملې ، شبه جمله اودمضاف په مقابله کې وي هغه مفرد مراد نه دي کوم چې دتثنيې اود جمعې په مقابله کې راځي نو په دې مقام باندې مفرد ، تثنيه اوجمع ته هم شامل دي لهذا منوانِ او عشرون دا مثالونه دممثل له سره مطابق دي .

صفة : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې مقدارٍ دمفردٍ صفت دي .

وهو مايقدر له : په دې عبارت سره غرض دشارح دمقدار تعريف بيانوي چې مقدار هغه دي چې دهغې سره ديو څيز اندازه اودهغه څيز دمقدار پيژندنه وشي .

ويبين : په دې عبارت سره يې اشاره وکړه چې يعرف دمعرفةً نه مشتق دي نه دتعريف نه .

اي في غالب : په دې عبارت سره غرض دشارح بيان دترکيب دي چې دغالباً نصب ظرفيت د مفعول فيه په بناء باندې دي .

واکثرها : په دې عبارت سره يې اشاره وکړه چې غالباً داکثر په معنی باندې ده .

رفع الابهام : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داول مصداق هغه تمييز دي کوم چې دذاتِ مذکوره نه ابهام رفع کوي اومفرد مقدار نه مراد هم ذاتِ مذکوره دي نو معنی به يې داوي چې هغه تمييز چې دذاتِ مذکوره نه ابهام رفع کوي دذاتِ مذکوره نه نو دمصنف رحمه الله په عبارت کې تکرار دي چې داد فصاحت

خلاف دي .

**جواب**: مفرد مقدار اخص دي او اول اعم دي ځکه چې داول نه مراد هغه تمييز دي چې دذاتِ مذکوره نه ابهام لرې کوي داعام دي چې هغه ذات مذکوره مفرد مقدار وي ياغير مقدار او مفرد مقدار نه فقط مفرد مقدار دي لهٰذا دا هغه نه اخص دي مقصد دادي چې رفع دابهام مطلق متحسن وي په هغه رفع خاص مقدار کې ځکه چې مفرد مقداري کې ابهام اکثر او اغلب وي .

والمقدار: په دې عبارت کې غرض دشارح بيان دترکيب دي ، في عددٍ دخپل متعلق سره دا خبر دي دمبتداء محذوف چې المقدار دي .

ضمن: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: عدد هم خو مفرد مقدار دي لهٰذا ظرفية الشيء لنفسه والاخرابي لازم راځي .

**جواب**: دا ظرفية الشيء لنفسه نه دي بلکه ظرفية الاخص للاعم دي ځکه چې مفرد مقدارِ عدد نه اعم دي عدد لره هم شامل دي او غير عدد لره هم شامل دي .

والمقدار اما متحقق: دشارح غرض وضاحت دمتن او دمثالونو دممثل له سره متعين کول دي چې حاصل يې دادي چې مفرد مقداري ياخو به دعدد په ضمن کې متحقق وي يا به دغير عدد په ضمن کې که دغير عدد په ضمن کې وي نو بيا هغه غيرعدد به دڅلورو (۴) حالونو نه به خالي نه وي : (۱) يا به وزن وي .(۲) يا به کيل وي . (۳) يا به ذراع وي . (۴) او يا به مقياس وي .

(۱) مفرد مقدارِ دعدد په ضمن کې وي مثال لکه عندي عشرون درهما . (۲) مفرد مقدار دوزن په ضمن کې وي مثال لکه عندي رطل زيتا ، ځکه چې رطل نيم سير ته ويلې شي ددې دويم مثال عندي منوان سمناً دي . (۳) مفرد مقدار دکيل په ضمن کې وي مثال لکه قفيزان برا . (۴) مفرد مقدار د مقياس په ضمن کې وي مثال لکه على التمرة مثلها زبداً .

والمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: په عندي عشرون درهما کې عشرون دمعنى معين دپاره موضوع ده همدارنګې په عندي رطل زيتا کې رطل يو معنى متعين دپاره موضوع ده نو بيا درهما او زيتا تمييز څنګه شو ځکه چې تمييز خو ابهام لره رفع کوي او دلته ابهام نشته دي .

**جواب**: په دې مذکوره صورتونو کې د مقادير نه مراد مقدرات دي مثلاً په عندي عشرون درهما

کې د عشرون نه مراد معدود دي ، همدارنګې په عندي رطل زيتا کې د رطل نه مراد موزون دي او په قفيزان براً کې د قفيزان نه مراد مکيل دي ، او په ذراع ثوباً کې د ذراع نه مراد مذروع دي او على التمرة مثلها زبدا کې د مثلها نه مراد مقيس دي ، او يقينا په دې کې ابهام موجود دي.

## د يو سوال مقدر جواب:

| |
|---|
| وَ اِنَّمَا اقْتَصَرَ الْمُصَنِّفُ عَلَى الْاَمْثِلَةِ الثَّلَاثَةِ لِاَنَّهُ كَانَ مَطْمَحُ نَظْرِهِ التَّنْبِيْهَ عَلٰى بَيَانِ مَا |
| اوپه تحقيق سره اکتفاء وکړه مصنف په دري مثالونو باندې ځکه چې وومطمح نظر د مصنف تنبيه په بيان دهغه |
| يَتِمُّ بِهِ الْمُفْرَدُ وَ هُوَ التَّنْوِيْنُ كَمَا فِيْ رِطْلٌ زَيْتاً اَوِ النُّوْنُ كَمَا فِيْ مَنَوَانِ سَمْناً اَوِ الْاِضَافَةِ |
| څيزچې تام کيږي په دې سره مفرد اوهغه تنوين دي لکه په رطل زيتاکې يانون لکه په منوان سمناً يااضافت لکه په |
| كَمَا فِيْ عَلَى التَّمْرَةِ مِثْلُهَا زُبْداً وَ لِهٰذَا لَمْ يَسْتَوْفِ اَقْسَامَ الْمَقَادِيْرِ وَ كَرَّرَ بَعْضَهَا |
| على التمرة مثلها زبداًاو ددې وجې نه ذکرنه کړل مصنف ټول اقسام دمقاديرواومکرريې راوړل بعضې اقسام دمقادير |
| وَ مَعْنٰى تَمَامِ الْاِسْمِ اَنْ يَّكُوْنَ عَلٰى حَالَةٍ لَا يُمْكِنُ اِضَافَتُهُ مَعَهَا |
| اومعنى داسم دتمام کيدودا ده چې وي اسم په داسې حالت باندې چې نه وي ممکن اضافت ددې حالت داسم سره |
| وَالْاِسْمُ مُسْتَحِيْلُ الْاِضَافَةِ مَعَ التَّنْوِيْنِ وَنُوْنَيِ التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ وَمَعَ الْاِضَافَةِ لِاَنَّ الْمُضَافَ لَا يُضَافُ |
| اواسم مستحيل الاضافة دي دتنوين سره اودوه نونه دتثنيې اودجمع اوسره داضافت ځکه مضاف نه مضاف کيږي |
| ثَانِياً فَاِذَا تَمَّ الْاِسْمُ بِهٰذِهِ الْاَشْيَاءِ شَابَهَ الْفِعْلَ اِذَا تَمَّ بِالْفَاعِلِ وَ |
| دوهم خل هرکله چې پوره شواسم په دې شيانوسره نودا دفعل سره مشابه شوچې کله تام شي په فاعل باندې او |
| صَارَ بِهٖ كَلَامًا تَامًّا فَيُشَابِهُ التَّمْيِيْزُ الْاٰتِيْ بَعْدَهُ الْمَفْعُوْلَ لِوُقُوْعِهٖ بَعْدَ تَمَامِ |
| وګرځيدوپه دې سره کلام تام نومشابه شودهغه تميزسره چې راځي پس ددې نه مفعول دوجې دوقوع نه پس دتمام |
| الْاِسْمِ كَمَا اَنَّ الْمَفْعُوْلَ حَقُّهٗ اَنْ يَّقَعَ بَعْدَ تَمَامِ الْكَلَامِ فَيَنْصِبُهٗ ذٰلِكَ الْاِسْمُ التَّامُّ |
| والې داسم نه لکه څنګه چې دمفعول حق دادي چې داواقع شي پس دتمام والي دکلام نه نونصب ورکوي دې اسم تام |
| قَبْلَهٗ لِمُشَابَهَتِهِ الْفِعْلَ التَّامَّ بِفَاعِلِهٖ وَ هٰذِهِ الْاَشْيَاءُ اِنَّمَا |
| ته کوم چې دتمييزنه مخکې دي دوجې دمشابهت نه دهغه فعل سره چې تام کيږي په فاعل باندې اوداشيان ځکه |
| قَامَتْ مَقَامَ الْفَاعِلِ لِكَوْنِهَا فِيْ اٰخِرِ الْاِسْمِ كَمَا كَانَ الْفَاعِلُ عَقِيْبَ الْفِعْلِ اَلَا تَرٰى اَنَّ |
| قائم مقام کيږي دفاعل دوجې دکيدونه په آخرداسم کې لکه څنګه چې فاعل وي وروسته دفعل آياته نه ګورې چې |
| لَامَ التَّعْرِيْفِ الدَّاخِلَةِ عَلٰى اَوَّلِ الْاِسْمِ وَاِنْ كَانَ يَتِمُّ بِهَا الْاِسْمُ فَلَا يُضَافُ مَعَهَا وَلَا يَنْتَصِبُ |
| لام تعريف چې داخليږي په اول داسم باندې اګرکه تاميږي په دې سره اسم نونه مضاف کيږي ددې سره اونه منصوب |

| التَّمْيِيْزِ عَنْهُ فَلَا يُقَالُ عِنْدِيْ الرَّاقُوْدُ خَلًّا. |
| --- |
| کیږي تمییز دد ې نه نو نه شي ویلې عندي الراقود خلا |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيې ديو سوال مقدر جواب رانقل کوي .

**اغراض دجامي** : وانما اقتصر : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دمفرد مقدار پنځه (۵) قسمونه دي مصنف رحمه الله ته په کاروو چې دپنځه واړو اقسامو مثالونه يې ذکر کړي وي ليکن مصنف رحمه الله دبعضې اقسامو مثلاً کيل اوذراع مثالونه بيان نه کړه همدارنګې دد ې نه غير دتعجب خبره داده چې دبعضې اقسامو مثالونه يې مکرر ذکر کړه مثلاً عندي رطل زيتا وعندي منوان سمناً .

**جواب** : دمصنف رحمه الله مقصود ټول اقسام دټولو مثالونو سره بيانول نه دي بلکه دمصنف مقصود متممات اسم لره بيانول دي يعنې دابيانوي چې اسم دکوم څيزونو سره تام اومکمل کيږي نو مصنف رحمه الله دمثالونو په ضمن کې وفرمايل چې اسم په دري (۳) شيانو سره تام کيږي : (۱) په تنوين سره مثال لکه رطل زيتاً . (۲) په نون سره مثال لکه عندي منوان سمناً . (۳) په اضافت سره مثال لکه على التمرة مثلها زبداً . دمصنف رحمه الله مقصود مثالونه بيانول نه وو بلکه متممات اسم لره بيانول وو ځکه يې ټول مثالونه ذکر نه کړل او بعضې مثالونه يې مکرر ذکر کړه چې مقصود حاصل شي .

ومعنى تمام الاسم : په دې عبارت سره غرض دشارح داسم دتام کيدو معنى بيانوي داسم د تام کيدو مطلب دادې چې هغه اسم په داسې حالت باندې وي چې دهغه دحالت کيدو سره دهغه اضافت ممکن نه وي داسم په آخر کې چې کله تنوين وي يانون دتثنيې اويانون دجمعې وي نودد ې اضافت منع دي همدارنګې چې ديو اسم اضافت يوځل وشي نودوباره دد ې اضافت ممتنع دي ځکه چې مضاف دوباره نه شي مضاف کيدي نو دد ې څيزونو سره اسم تام کيږي .

فاذا تم الاسم بهذه الاشياء : په دې عبارت سره غرض دشارح دتمييز دعامل اودتمييز د منصوب کيدو وجه بيانول دي چې خلاصه يې داده چې کله اسم تنوين ، نون تثنيه وغيره سره په يوڅيز سره تام شي نو دادفعل سره مشابه کيږي ځکه چې فعل هم دخپل فاعل سره تام کيږي لهذا هغه تمييز کوم چې دد ې نه وروستو واقع شي نو دمفعول سره مشابه کيږي ځکه چې

تمييز داسم تام کيدو نه وروستو واقع کيږي لکه څنګه چې مفعول دکلام دتام کيدو نه وروستو واقع کيږي لهذا هغه اسم تام کوم چې دتمييز نه مخکې دي دا تمييز لره نصب ورکوي ځکه چې هغه اسمِ تام چې دفعل سره مشابه شو کوم چې دفاعل سره تام کيږي لهذا تمييز دمفعول سره دمشابه کيدو دوجې نه منصوب وي

وهذه الاشياء انما قامت: په دې عبارت سره غرض د شارح د دوه سوالينو مقدرو جواب ورکول دي.

**سوال (۱)**: دفاعل دقائم مقام کيدو دپاره دې دا څيزونه ولې اختيار کړه ددې نه غير نور دې ولې اختيار نه کړه.

**سوال (۲)**: لکه څنګه چې اسم په دې څيزونو سره تام کيږي همدغه شان الف لام سره هم تام کيږي ولې چې کله په يو اسم باندې الف لام داخل شي نو الف لام دموجوديدو سره ددې اضافت نه شي کيدي نو ددې وجې نه تمييز ولې نه منصوب کيږي.

**جواب**: داول سوال جواب دادې چې داڅيزونه دفاعل قائم مقام ځکه دي چې دا داسم په آخر کې دي لکه څنګه چې فاعل دفعل نه وروستو واقع کيږي.

او ددويم سوال جواب دادې چې اګرکه الف لام دوجې نه اسم تام کيږي ليکن هغه داسم په آخر کې نه وي بلکه په شروع کې وي ځکه چې ددې مناسبت دفاعل سره نه وي ددې وجې نه ددې نه وروستو تميز نه منصوب کيږي داسې نه شي ويلې چې عندي الراقود خلا د راقود معنی ده غټه چاټي.

## تميز مفرد او جمع راوړو بيان:

| فَيُفرِدُ اَيِ التَّمْيِيْزِ وَاِنْ كَانَ الْاِسْمُ التَّامُّ مُثَنًّى اَوْ مَجْمُوْعًا اِنْ كَانَ اَيِ التَّمْيِيْزُ جِنْسًا وَهُوَ مَا تَتَشَابَهُ |
|---|
| نومفرد به راوړې شي يعني تميزاګرکه اسم تام تثنيه اوجمع وي که چيرته وي يعني تمييزجنس اوداهغه دې مشابه |
| اَجْزَاؤُهٗ وَ يَقَعُ مُجَرَّداً عَنِ التَّاءِ عَلَى الْقَلِيْلِ وَ الْكَثِيْرِ فَلَا حَاجَةَ اِلَى تَثْنِيَتِهٖ وَ جَمْعِهٖ |
| وي اجزاء ديوبل سره اوواقع وي خالي دتاء نه په قليل اوکثيرباندې نونشته حاجت تمييزلره دتثنيې اوجمع کيدو |
| كَالْمَاءِ وَ التَّمْرِ وَ الضَّرْبِ بِخِلَافِ رَجُلٍ وَ فَرَسٍ اِلَّا اَنْ يُقْصَدَ الْاَنْوَاعُ اَىْ مَا فَوْقَ النَّوْعِ الْوَاحِدِ |
| لکه ماء، تمر، زيت، ضرب په خلاف درجل فرس مګرداچې قصدوکړې شي دانواعويعني زيات د نوع واحد نه نو |
| فَيَشْمِلُ الْمُثَنّٰى اَيْضًا لِاَنَّهٗ لَا يَدُلُّ لَفْظُ الْجِنْسِ مُفْرَداً عَلَيْهَا فَلَا بُدَّ مِنْ اَنْ يُثَنّٰى |
| شامليږي تثنيې ته همدارنګې ځکه چې دلالت نه کوي لفظ دجنس په مفرد کيدوباندې نولابدي ده چې تثنيه شي |

| |
|---|
| أَوْ بِجَمْعٍ قِيْلَ وَ فِيْ تَخْصِيْصِ قَصْدِ الْأَنْوَاعِ بِالْإِسْتِثْنَاءِ نَظَرٌ لِأَنَّهُ كَمَا |
| اويا جمع ا. چاويلې دي چې په تخصيص د قصد دانواعو په استثناء کې په دې کې نظر دي خکه چې لکه څنګه چې |
| جَازَ أَنْ يُقَالَ طَابَ زَيْدٌ جِلْسَتَيْنِ لِلنَّوْعِ جَازَ أَيْضاً أَنْ يُقَالَ طَابَ زَيْدٌ جِلْسَتَيْنِ |
| جائز دي چې وويل شي طاب زيد جلستين د پاره د نوع نو جائز دي همدارنګې چې وويل شي طاب زيد جلستين د پاره د |
| لِلْعَدَدِ وَ يُمْكِنُ أَنْ يُجَابَ عَنْهُ بِأَنَّ الْمُرَادَ بِالْأَنْوَاعِ حِصَصُ الْجِنْسِ سَوَاءٌ كَانَتْ |
| عدد او ممکن دي چې جواب ورکړې شي دد ې نه چې مراد دانواعو نه حصص د جنس دي برابره خبره ده که وي داد |
| الْمَنْصُوصِيَّاتِ الْكُلِّيَّةِ أَوِ الشَّخْصِيَّةِ وَ بِجَمْعٍ أَيْ يُوْرَدُ التَّمْيِيْزُ عَلَى مَا فَوْقَ الْوَاحِدِ |
| منصوصياتو کليونه اويا د کليو شخصيونه او جمع به راوړې شي يعني راوړې به شي تمييز په مافوق الواحد باندې |
| جَوَازاً حَيْثُ لَمْ يُقْصَدِ الْوَاحِدُ فِيْ غَيْرِهِ أَيْ فِيْ غَيْرِ الْجِنْسِ نَحْوُ عِنْدِيْ عِدْلٌ ثَوْبَيْنِ |
| جوازا په داسې شان سره چې قصد و نه کړې شي د واحد په غير د دې کې يعني په غير د جنس کې لکه عندي عدل ثوبين |
| أَوْ أَثْوَاباً. |
| او يا اثوابا. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې صاحب د کافيې د تمييز مفرد يا جمع وغيره د راوړو تفصيل بيانوي هغه تمييز کوم چې مفرد مقدار نه ابهام لرې کوي يا خوبه د اجنس وي او يا غير جنس که جنس وي نو بيا به د دې نه دانواعو قصد کولې شي او يا به دانواعو قصد نه شي کولې که دانواعو قصد نه شي کولې نو د دې لره به هميشه مفرد راوړلې شي برابره خبره ده که اسم تام مفرد وي يا تثنيه وي يا جمع وي او که جنس وي نو د هغې نه به انواع قصد کولې شي نو بيا به هغه لره د مقصود موافق تثنيه او جمع راوړلې شي.

**اغراض د جامي** : **وهو مايشابه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د جنس تعريف کوي چې جنس هغه دې چې د هغې اجزء يو د بل سره مشابه وي او د مشابهت د اجزاو نه مراد دادې چې لکه څنګه اسم جنس اطلاق په کُل باندې کيږي همدارنګې په هر جُزء باندې د دې اطلاق صحيح وي مثال لکه د الماء اطلاق په کُل باندې هم کيږي او هر هر جزء او څاڅکي باندې هم د ماء اطلاق کيږي او هغه مجرد عن التاء وي قليل او کثير باندې صادق راځي کله چې هغه په قليل او کثير باندې صادق راځي نو د دې لره تثنيه او جمع راوړولو هيڅ حاجت نشته دي مثال لکه ماء ، تمر ، ضرب ، زيت په خلاف د رجل فرس دا د جنس معنی مذکور اعتبار څخه جنس نه دي لهذا که د هغه اسم تام تثنيه يا جمع وي نو دا به هم تثنيه او جمع راوړې شي.

ای مافوق النوع: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: کله چې دجنس نه دی عينو قصد وکړي شي نو په دې وخت کې هم تمييز لره مفرد نه شي راوړلې بلکه تثنيه به راوړلې شي نو الا ان يقصد سره مصنف صرف د جمع استثناء ولې وکړه حالانکه دتثنيې حکم هم دجمع په شان دي نو مصنف رحمه الله لره الا ان يقصد النوعان او يا الا ان يقصد الانواع ويل په کار وو.

**جواب**: دلته کې دالانواع نه مراد مافوق الواحد دي لهذا داتثنيې ته هم شامل دي.

لانه لا يدل: په دې عبارت سره غرض دشارح دذکر شوي حکم علت او وجه بيانوي يعنې کله چې تمييز دجنس نه دانواعو قصد وکړي شي نو په دې صورت کې دې لره دتثنيې اويادجمع د راوړو وجه داده چې کله لفظ دجنس مفرد وي نو په قليلو اوکثيروباندې خو دلالت کوي ليکن په مختلفو انواعو دلالت نه کوي لهذا کله چې دهغه نه دانواعو قصد وکړي شي نودې لره تثنيه اوياجمع راوړل ضروري دي.

قيل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي ، اودا سوال علامه فاضل هندي کړي دي:

**سوال**: په الا ان يقصد الانواع کې دقصدِ انواع تخصيص جائز نه دي ځکه چې کله تمييز اسم جنس وي نو ددې نه مختلف اعداد قصد کړي شي نودانواعو په شان دې لره هم تثنيه اوياجمع راوړي کيږي مثلا لکه څنګه چې طاب زيد جلستين جائز دي (زيد ښه دي په اعتبار ددوه قسمه کيناستو سره) نوهمدارنګې طاب زيد جلستين (زيد ښه دي په اعتبار ددوه ځل کيناستوسره).

**جواب**: دلته دانواعو نه مراد دجنس حصې دي برابره خبره ده که داخصوصيات دکلياتو سره وي لکه څنګه چې په انواعو کې وي يا دخصوصياتو شخصيو سره وي لکه څنګه چې په اعدادو کې دي.

ای يورد التمييز: په دې عبارت سره شارح وايي چې په يجمع کې دجمعيت معنى مطلق الامکان نه ده بلکې په معنى دامکان الوقوع ده.

على مافوق الواحد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: په غير جنس کې چې لکه څنګه تمييز لره جمع راوړي کيږي نوهمدارنګې تثنيه هم

راوړې شي نو مصنف رحمه الله تثنيه ولې ذکر نه کړه

**جواب** : دلته دجمع نه مراد مافوق الواحد دي داتثنيې ته هم شامل دي ددې وجې نه مصنف رحمه الله دې لره ذکر نه کړو .

حيث لم يقصد الواحدة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا داقاعده منقوضه اوماته ده په عندي عدل ثوبا سره ځکه چې په دې کې ثوبا تميز غير جنس دي حالانکه داجمع نه ده بلکه مفرد دي .

**جواب** : يجمع ، د لم يقصد الواحد قيد سره مقيد دي يعني تميز غير جنس به په هغه وخت کې جمع راوړې شي چې کله ددې نه واحد مراد نه وي که چيرته ددې نه واحد مراد وي نو ظاهره خبره ده چې دې لره واحد راوړلې شي نه جمع مثال لکه عندي عدل ثوبا.

## د مفرد مقدار تميز طرف ته د اضافت بيان :

| |
|---|
| ثُمَّ اِنْ كَانَ اَيِ الْمُفْرَدُ الْمِقْدَارُ تَامًّا بِتَنْوِيْنٍ اَوْ بِنُوْنِ التَّثْنِيَةِ اَوِ الْمَعْنٰى اِنْ وُجِدَ التَّمْيِيْزُ مُتَلَبِّسًا |
| بيا که چيرته وي يعني مفرد مقدار تام په تنوين اويانون تثنيه سره يامعنى داده چې که وموندل شي تميز متلبس |
| بِتَنْوِيْنِ الْمُفْرَدِ اَوْ بِالنُّوْنِ الَّتِيْ لِلتَّثْنِيَةِ فَاِنَّهُ لَمَّا تَمَّ الْاِسْمُ بِهِمَا |
| په تنوين د مفرد پورې اويا په هغه نون سره کوم چې د تثنيې دپاره وي ځکه چې کله اسم تام شي په تنوين اونون |
| اِقْتَضَى التَّمْيِيْزَ جَازَتِ الْاِضَافَةُ اَيْ اِضَافَةُ الْمُفْرَدِ الْمِقْدَارِ اِلَى التَّمْيِيْزِ اِضَافَةً بَيَانِيَّةً |
| تثنيه سره نو تقاضايې وکړه د تميز نو جائز دي اضافت يعني اضافت د مفرد مقدار تميز ته د اضافت بيانيه په طور په |
| بِاِسْقَاطِ التَّنْوِيْنِ وَ نُوْنِ التَّثْنِيَةِ جَوَازاً شَائِعًا كَثِيْراً لِحُصُوْلِ الْغَرَضِ وَ هُوَ رَفْعُ الْاِبْهَامِ بِذٰلِكَ |
| اسقاط د تنوين اونون د تثنيې سره په جواز عام او کثير سره دوجې د حصول د غرض نه او هغه رفع د ابهام ده په دې سره، |
| مَعَ التَّخْفِيْفِ نَحْوُ رِطْلُ زَيْتٍ وَمَنَوَا سَمْنٍ وَاِلَّا اَيْ وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ بِتَنْوِيْنٍ اَوْ بِنُوْنِ التَّثْنِيَةِ بِاَنْ يَّكُوْنَ |
| سره د تخفيف نه لکه رطل زيت او منوان سمن او که نه وي يعني که نه وي په تنوين اويا په نون د تثنيې سره چې وي |
| بِنُوْنِ الْجَمْعِ اَوِ الْاِضَافَةِ فَلَا تَجُوْزُ الْاِضَافَةُ اِلَّا بِقِلَّةٍ فِيْ نُوْنِ الْجَمْعِ نَحْوُ عِشْرُوْ دِرْهَمٍ اَمَّا فِي |
| په نون د جمع اويا د اضافت نو نه دي جائز اضافت مګر په جمع قلت کې په نون د جمع سره لکه عشرو درهم هرچې په |
| الْاِضَافَةِ فَلِئَلَّا تَلْزَمَ اِضَافَةُ الْمُضَافِ وَ اَمَّا فِيْ نُوْنِ الْجَمْعِ فَلِاَنَّهُ |
| اضافت کې دي نو ځکه چې لازم نه شي اضافت د مضاف او هرچې په نون د جمع کې نو هغه ځکه جائز دي چې مضاف |
| جَازَ اَنْ يُّضَافَ اِلٰى غَيْرِ الْمُمَيِّزِ نَحْوُ عِشْرِيْكَ وَ عِشْرِيْ رَمَضَانَ بِالْاِتِّفَاقِ لِكَثْرَةِ الْحَاجَةِ اِلَيْهِ فَلَوْ اُضِيْفَ |
| شي غير مميز طرف ته لکه عشريک وعشري رمضان بالاتفاق دوجې دزيات حاجت نه دې ته نو که چيرته مضاف کړې |

| |
|---|
| اِلَى الْمُمَيِّزِ لَزِمَ الْاِلْتِبَاسُ فِيْ بَعْضِ الصُّوَرِ لِاَنَّهُ لَا يُعْلَمُ مَثَلاً عِنْدَ اِضَافَةِ عِشْرِيْنَ |
| شي مميز طرف ته نولازم به التباس په بعضې صورتونو کې ځکه چې نه معلومېږي مثلاً په وخت د اضافت د عشرين |
| اِلٰى رَمَضَانَ اَنَّهُ اَرَادَ عِشْرِيْنَ رَمَضَانَ اَوْ اَرَادَ الْيَوْمَ الْعِشْرِيْنَ مِنْ رَمَضَانَ فَلَا يُضَافُ فِيْ غَيْرِ صُوْرَةِ |
| کې رمضان ته چې متکلم اراده کوي شلم د رمضان او يا ورځ شلمه د رمضان نو نه مضاف کيږي په غير د صورت د |
| الْاِلْتِبَاسِ اَيْضاً اِلَّا عَلٰى قِلَّةٍ لِيَكُوْنَ الْبَابُ اَقْرَبُ اِلَى الْاِطِّرَادِ. |
| التباس کې هم دا رنګې مګر په طور د قلت د دې دپاره چې شي باب نژدې اطراد طرف ته. |

**خلاصه دمتن** : د ماتن دا عبارت جمله مستانفه ده کوم چې د سائل په جواب کې واقع ده ګويا چې سائل سوال وکړو چې د مفرد مقدار خپل تمييز طرف ته اضافت جائز دي او يانه ،نو مصنف په ثم ان کان سره جواب ورکړو چې حاصل يې دا دې چې مفرد مقدار تام وي تنوين يا نونِ تثنيه سره يا د دې نه غير يعنې نون د جمعې او د اضافت سره که مفرد مقدار تنوين يا نون تثنيه سره تام وي نو د دې اضافت تمييز طرف ته اضافت بيانيه په کثرت سره جائز دي ځکه چې اضافت نه د رفع ابهام غرض او مقصد حاصليږي او د دې سره تخفيف هم حاصليږي مثل رطل زيت او منوا سمن او که مفرد مقدار تنوين او نون د تثنيه سره تام نه وي بلکه اضافت سره تام وي نو د دې اضافت جائز نه دي ځکه چې د رمضان اضافت لازم نه شي د غه شان که نون د جمع سره تام وي نو د دې اضافت جائز نه دي مګر قلت سره ځکه چې د دې اضافت غير تمييز طرف ته د کثرت حاجت د وجې نه جائز دي مثال لکه عشريک او عشري رمضان دا جائز دي اوس که تمييز طرف ته هم مضاف وي نو په بعضې صورتونو کې تمييز غير تمييز سره التباس لازم راځي مثلاً د عشرين رمضان طرف ته اضافت وکړې عشري رمضان وويلې شي نو معلوم به نه شي چې شل ورځې د رمضان مراد دي کوم چې د تمييز معنى ده يا د رمضان شلمه ورځ مراد ده کومه چې غير تمييز د اضافت ، معنى ده ځکه چې په بعضې صورتونو کې التباس لازم راځي نو په دې کې اضافت جائز نه وي بيا د غير التباس په صورت کې اضافت هم نه کيږي الا على قلة د دې دپاره چې د اباب اقرب الى الاطراد شي .

**اغراض دجامي** : اى المفرد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د کان د ضمير مرجع تمييز دي ځکه چې يجمع او د ان کان جنساً د ضمير مرجع تمييز دي

نو داقرينه ده چې دكان ضمير مرجع هم تمييز دې په دې صورت كې معنى داده چې كه تمييز تام وي تنوين يا نون تثنيې سره دا صحيح نه دي ځكه چې نونِ تثنيه او تنوين سره تمييز نه تام كيږي بلكه مميز مفرد مقدار تام كيږي

**جواب**: شارح ددې دوه (۲) جوابات وركړي دي:

**جواب (۱)**: مونږ دانه منو چې دكان دضمير مرجع تمييز دي بلكه ددې مرجع مفرد مقدار دي معنى داده چې كه مفرد مقدار تام وي تنوين يانونِ تثنيې سره نو په دې صورت كې به كان ناقصه وي هُوَ ضمير مستتر راجع دي مفرد مقدار ددې اسم دي او "تاماً" يې خبر محذوف دي اى المفرد المقدار تاماً سره دې طرف ته اشاره ده.

**جواب (۲)**: دامنو چې دكان ضميرمرجع تمييز دي ليكن دلته دتنوين نه مراد مفرد مقدار والاتنوين دي اودا كان تامه دي كوم چې دوجد په معنى دي معنى يې داده چې تمييز ومونده شي په دې حال كې چې هغه متلبس وي مفرد مقدار دتنوين سره يادنون دتثنيې سره.

**فائده**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: كله چې تنوين نه مراد مفرد مقدار دتنوين وي نو بيا تمييز تنوين سره به څنګه متلبس وي تنوين خو په مفرد مقداري باندې وي اوتمييز ددې نه پس دي نو دتنوين سره تمييز خو متلبس نه دي بلكه مفرد مقداري سره متلبس دي.

**جواب**: دلته دمتلبسا نه مراد مقارنت اومجاورت دي نو دمتلبسا معنى به وي مقارناً ومجاوراً بتنوين المفرد الى آخره اومعروض كيدل مراد نه دي.

اى اضافة المفرد المقدار: په دې عبارت سره شارح بيان دتركيب كوي په اضافت باندې چې كوم الف لام داخل دي دادمضاف اليه په عوض كې دي يا د الاضافة الف لام عهدِ خارجي دي.

اضافة بيانية: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: اضافت خو دمضاف اومضاف اليه په مينځ كې دمغائرت تقاضا كوي اوتمييز اومميز خو يو شيز دي بيا دمفرد دمقدار اضافت تمييز طرف ته به څنګه جائز وي.

**جواب**: دمضاف اومضاف اليه په مينځ كې مغائرت داضافت بيانيه نه غير په دويم قسم كې وي او دلته اضافت بيانيه دي په دې كې اتحاد بين المضامين دي.

باسقاط : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي
**سوال** : هغه مفرد مقدار کوم چې تام وي تنوين يانونِ تثنيې سره خود هغه اضافت محال وي ځکه چې تنوين اونون تثنيه دانفصال تقاضا کوي او اضافت داتصال اوامتزاج تقاضا کوي په دې دواړو کې منافات دي .
**جواب** : د اضافت نه مراد جواز د نون تثنيه او د تنوين د اسقاط ځخه دي نه ددې د موجودګۍ سره .

## د تميز د غير مقدار نه د رفع د ابهام بيان :

| |
|---|
| وَ عَنْ غَيْرِ مِقْدَارٍ عَطْفٌ عَلٰى قَوْلِهٖ عَنْ مُفْرَدٍ مِقْدَارٍ اَيِ الْاَوَّلِ كَمَا يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ مُفْرَدٍ مِقْدَارٍ |
| اوغيرمقدارنه داعطف دي په دې قول عن مفرد مقدار يعنې اول لکه څنګه چې رفع کوي ابهام د مفرد مقدار نه نو |
| كَذٰلِكَ يَرْفَعُهُ عَنْ مُفْرَدٍ غَيْرِ مِقْدَارٍ اَیْ مَا لَيْسَ بِعَدَدٍ وَلَا ذِرَاعٍ وَلَا كَيْلٍ وَلَا مِقْيَاسٍ نَحْوُ خَاتَمٌ |
| همدارنګې رفع کوي د مفرد غير مقدار نه يعنې د هغه څه چې نه وي عدد اونه ذراع اونه کيل اونه مقياس لکه خاتم |
| حَدِيْداً فَاِنَّ الْخَاتَمَ مُبْهَمٌ بِاِعْتِبَارِ الْجِنْسِ تَامٌّ بِالتَّنْوِيْنِ فَاقْتَضٰى تَمْيِيْزاً وَالْخَفْضُ اَیْ خَفْضُ التَّمْيِيْزِ |
| حديداًځکه خاتم مبهم دي په اعتبار د جنس سره اوتام دي د تنوين سره نوتقاضايې وکړه د تمييز اوجريعنې جر تميز |
| بِاِضَافَةِ غَيْرِ الْمِقْدَارِ اِلَيْهِ اَكْثَرُ اِسْتِعْمَالاً لِحُصُوْلِ الْغَرَضِ مَعَ الْخِفَّةِ وَ |
| طرف ته په اضافت د غير مقدار سره دي طرف ته اکثر دي استعمال ددې دوجې د حصول د غرض نه سره د خفت او |
| لِقُصُوْرِ غَيْرِ الْمِقْدَارِ عَنْ طَلَبِ التَّمْيِيْزِ لِاَنَّ الْاَصْلَ فِي الْمُبْهَمَاتِ الْمَقَادِيْرِ وَ غَيْرُهَا لَيْسَ بِهٰذِهٖ |
| دوجې د قاصر کيدو د غير مقدار د طلب د تميز نه ځکه اصل په مبهماتو کې مقادير دي او غير مقدار نه دي په دې |
| |
| الْمَثَابَةِ. |
| مرتبه کې |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت کې صاحب د کافيې وايي چې هغه تمييز کوم چې مفرد نه ابهام لرې کوي هغه کله کله د مفرد مقدار نه ابهام لرې کوي لکه مخکې ددې تفصيل تير شوی دي ، اوکله د غير مقدار نه مثال لکه خاتم حديدا همدارنګې هغه تمييز کوم چې مفرد غير مقدار نه ابهام لرې کوي په دې کې په نسبت د جر سره زيات مستعمل دي .
**اغراض د جامي** : عطف على : په دې عبارت سره غرض د شارح د عطف تعين کوي د عن غير مقدار عطف په عن مفرد مقدار باندې دي .

اي الاول: په دې عبارت سره شارح د حاصل د عطف بیانوي د تمییز اول قسم کوم چې د ذات مذکوره نه ابهام رفع کوي د هغه په شان مفرد مقدار نه ابهام لرې کوي د غه شان د غیر مقدار نه هم ابهام لرې کوي

اي مالیس بعدد: په دې عبارت سره د مفرد غیر مقدار د مصداق بیان کوي چې د غیر مقدار نه مراد هغه دي چې نه عدد وي اونه وزن وي اونه کیل وي اونه مقیاس وي اونه ذراع وي.

نحو خاتم: په دې عبارت سره غرض د شارح بیان د مثال دي

فان الخاتم: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال په ممثل له باندې تطبیق کول دي خاتم په اعتبار د جنس سره مبهم دي اوتام دي په تنوین سره ځکه چې هغه د تمییز تقاضا وکړه او حدیداً تمییز هغه ابهام ختم کړو.

اي خفض التمییز: په دې عبارت سره شارح خویا دې خبرې طرف ته اشاره کول دي چې په خفض باندې الف لام د مضاف الیه په عوض کې دي چې تمییز دي او غرض د شارح د یو سوال مقدر نه جواب ورکول دي

**سوال**: مونږ نه منو چې په اسماو کې خفض او جر اکثر دي بلکه رفع اونصب اکثر دي.

**جواب**: د التمییز لفظ حذف کولو سره اشاره یې وکړه چې اکثریت بالنسبة الی التمییز في المفرد الغیر المقدار دي نه چې بالنسبة الی الاسماء کلها.

استعمالا: په دې عبارت سره غرض د شارح د اکثر وضاحت کول دي چې د اکثر نه مراد اکثر المذاهب نه دي بلکه اکثر د جانب د استعمال دي.

باضافة غیر المقدار: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مونږ نه منو چې په تمییز کې خفض او جر اکثر دي بلکه نصب اکثر دي ځکه چې تمییز د منصوباتو نه دي.

**جواب**: د تمییز مجرور کیدو اکثریت مطلق نه دي بلکه د مفرد غیر مقدار د لحاظ ځخه دي چې مفرد غیر مقدار تمییز اکثر مجرور وي

**تمهید**: د مصنف رحمه الله مدعی په دوه شیانو کې مرکب ده (۱) هغه تمییز کوم چې مفرد د غیر مقدار نه ابهام لرې کوي هغه مجرور بالاضافة وي (۲) په دې کې جر اکثر دي په نسبت

سره نصب نه

لحصول الغرض: په دې عبارت سره غرض دشارح داول جُزء وجه بيانوي: تميز مجرور بالاضافة ځکه واقع کيږي چې داضافت سره غرض کوم چې دابهام لري کول دي دا هم حاصليږي اوددې سره تخفيف هم حاصليږي

ولقصور: په دې عبارت سره غرض دشارح ددويم جُزء وجه بيانوي چې مفرد غير مقدار دتمييز طلب کولو نه قاصر دي ځکه چې مبهماتو کې اصل مقادير دي اوغيرمقدار په دې درجه کې نه دي کله چې داطلب په تميز کې قاصر دي نو هغه لره تمييز دمنصوب کيدو طرف ته ضرورت نشته دي ځکه چې نصب نص على التميز وي اونص على التميز هله مناسب وي چې کله طالبِ تمييز موجود وي

## دتميز دوهم قسم:

| |
|---|
| وَالثَّانِيْ اَيِ الْقِسْمُ الثَّانِيْ مِنَ التَّمْيِيْزِ وَهُوَ مَا يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ ذَاتٍ مُقَدَّرَةٍ يَرْفَعُهُ عَنْ نِسْبَةٍ كَانَ الظَّاهِرُ اَنْ |
| اودويم يعني دويم قسم دتمييزنه هغه چې رفع کوي ابهام د ذات مقدره نه رفع کوي د نسبت نه وو ظاهر دا چې |
| يَقُوْلَ عَنْ ذَاتٍ مُقَدَّرَةٍ فِيْ نِسْبَةٍ فِيْ جُمْلَةٍ لٰكِنْ لَمَّا كَانَ الْاِبْهَامُ فِيْ طَرَفِ النِّسْبَةِ يَسْتَلْزِمُ |
| مصنف داسې ويلې وي عن ذاتٍ مقدرة في نسبة في جملة ليکن هرکله چې ووابهام په طرف دنسبت کې نومستلزم |
| الْاِبْهَامَ فِيْهَا وَ رَفْعُهُ عَنْهَا يَسْتَلْزِمُ الرَّفْعَ عَنْهُ قَالَ عَنْ نِسْبَةٍ مُقْتَصِرًا عَلَيْهَا |
| ووابهام په دې کې اورفع ددې ددې نه مستلزم وودرفع ددې نه وي ويل عن نسبة نواکتفاءيې وکړه په دې باندې |
| عَلٰى اَنَّ مُقَابَلَةَ مَا فِيْ هٰذَا الْقِسْمِ لِلْمُفْرَدِ الْمَذْكُوْرِ فِي الْقِسْمِ الْاَوَّلِ اِنَّمَا هِيَ لِمُجَرَّدِ |
| ددې وجې نه چې مقابله دهغه څه چې وي په دې قسم کې دپاره دمفردمذکور په اول قسم کې دادې يواځې د |
| النِّسْبَةِ لَا غَيْرُ فِيْ جُمْلَةٍ اَىْ نِسْبَةٍ كَائِنَةٍ فِيْ جُمْلَةٍ اَوْ مَا ضَاهَاهَا |
| پاره دنسبت نه په غيرکې په جمله کې يعني داسې نسبت چې کائن وي په جمله کې ياپه هغه کې چې مشابه وي |
| اَىْ مَا شَابَهَهَا عَطْفٌ عَلٰى جُمْلَةٍ وَ هُوَ اِسْمُ الْفَاعِلِ نَحْوُ |
| د جملې سره يعني هغه چې مشابه دي د جملې سره دا عطف دي په جمله باندې چې هغه اسم فاعل دي لکه |
| الْحَوْضُ مُمْتَلِئٌ مَاءً اَوْ اِسْمُ الْمَفْعُوْلِ نَحْوُ الْاَرْضُ مُفَجَّرَةٌ عُيُوْنًا اَوِ الصِّفَةُ الْمُشَبَّهَةُ نَحْوُ زَيْدٌ حَسَنٌ وَجْهًا اَوِ اسْمُ |
| الحوض ممتلئ ماء اوياسم مفعول وي لکه الارض مفجرة عيونا اوياصفت مشبه وي لکه زيد حسن وجها اوياسم |
| التَّفْضِيْلِ نَحْوُ زَيْدٌ اَفْضَلُ اَبًا اَوِ الْمَصْدَرُ نَحْوُ اَعْجَبَنِيْ طِيْبُهُ اَبًا وَكَذَا كُلُّ مَا فِيْهِ مَعْنًى |
| تفضيل وي لکه زيد افضل ابا اويامصدر وي لکه اعجبني طيبه ابا اوهمدارنګې هرهغه څه چې په هغې کې معنى |

الْفِعْلِ نَحْوُ حَسْبُكَ زَيْدٌ رَجُلًا نَحْوُ طَابَ زَيْدٌ نَفْسًا مِثَالٌ لِلْجُمْلَةِ وَ التَّمْيِيْزِ فِيْهِ خَاصٌّ بِالْمُنْتَصِبِ عَنْهُ

دفعل وي لکه حسبک زيد رجلاً لکه طاب زيد نفساً دامثال دي دجملې اوتميزپه دې کې خاص دي ترمنتصب عنه

وَزَيْدٌ طَيِّبٌ اَبًا مِثَالٌ لِمَا يَشْبَهُ الْجُمْلَةَ وَ التَّمْيِيْزُ فِيْهِ يَصْلَحُ اَنْ يَكُوْنَ

پورې اوزيد طيب اباً دامثال دي دهغه څه چې مشابه وي دجملې سره او تميز په دې کې ددې خبرې صلاحيت

لِمَا النُّصِبَ عَنْهُ وَ لِمُتَعَلِّقِهِ وَ حَيْثُ لَا فَرْقَ فِي التَّمْيِيْزِ بَيْنَ الْجُمْلَةِ

لري چې دادما انتصب عنه دپاره وي اودده دمتعلق دپاره وي اوهرکله چې فرق نه وي په تميزکې په مينځ دجملې

وَ مَا ضَاهَاهَا فَهَذَانِ الْمِثَالَانِ فِي قُوَّةِ اَرْبَعَةِ اَمْثِلَةٍ فَكَاَنَّهُ قَالَ طَابَ زَيْدٌ وَ زَيْدٌ طَيِّبٌ نَفْسًا

اوپه مشابه دجمله کې نودادواړه مثالونه په قوت کې څلورمثالونه دي ګوياچې ويلي دي طاب زيد وزيدطيب نفسا

وَ اَبًا فَقَوْلُهُ وَ اُبُوَّةً وَ دَارًا وَ عِلْمًا عَطْفٌ عَلَى نَفْسًا وَ اَبًا بِحَسْبِ الْمَعْنَى فَهُوَ نَاظِرٌ اِلَى كُلٍّ

واباًنوداقول چې ابوة وداراً وعلماً داعطف دي په نفساواباباندې په اعتبار دمعنی سره نو دا ناظر دي هريوددې

مِنَ الْمِثَلَيْنِ الْمَذْكُوْرَيْنِ غَيْرُ مُخْتَصٍّ بِالْاَخِيْرِ فَهُوَ بِحَسْبِ الْحَقِيْقَةِ اَوْرَدَ لِكُلٍّ مِنَ التَّمْيِيْزِ

دواړومثالونو مذکورينو ته اومختص نه دي دآخرپورې نوداپه اعتبار دحقيقت سره راوړې دپاره دهريو دتميزنه

الْوَاقِعِ فِي الْجُمْلَةِ اَوْ مَاضَاهَاهَا خَمْسَةَ اَمْثِلَةٍ فَالنَّفْسُ عَيْنٌ غَيْرُ اِضَافِيٍّ خَاصٌّ بِالْمُنْتَصِبِ

چې واقع وي په جمله کې اويامشابه دجمله کې پنځه مثالونه نونفس عين غيراضافي دي اوخاص دي ترمنتصب

عَنْهُ وَ الدَّارُ عَيْنٌ غَيْرُ اِضَافِيٍّ وَ هُوَ مُتَعَلِّقٌ بِالْمُنْتَصِبِ عَنْهُ وَ الْاَبُ عَيْنٌ اِضَافِيٌّ مُحْتَمِلٌ

عنه پورې اودارعين دي غيراضافي اودامتعلق دي ترمنتصب عنه پورې او اب عين اضافي دي چې احتمال لري

لَهُمَا وَ الْاُبُوَّةُ عَرَضٌ اِضَافِيٌّ وَ الْعِلْمُ عَرَضٌ غَيْرُ اِضَافِيٍّ وَ كُلٌّ مِنْهُمَا مُتَعَلِّقٌ بِالْمُنْتَصِبِ عَنْهُ

ددواړو او ابوة عرض اضافي دي او علم عرض غيراضافي دي اوهريو ددې دواړونه دامتعلق دي ترمنتصب عنه پورې

اَوْ فِي اِضَافَةٍ عَطْفٌ عَلَى قَوْلِهِ فِي جُمْلَةٍ اَوْ مَا ضَاهَاهَا مِثْلُ يُعْجِبُنِيْ طِيْبُهُ نَفْسًا وَ تَرَكَهُ

ياپه اضافت کې داعطف دي په دې قول دمصنف چې في جملة اوياپه ماضاهاباندې لکه يعجبني طيبه نفساً وترکه

لِاَنَّهُ اَظْهَرُ التَّمْيِيْزَاتِ وَلَا خِفَاءَ بِهِ وَ اَبًا وَ اُبُوَّةً وَ دَارًا وَ عِلْمًا اَوْرَدَ هٰذِهِ الْاَمْثِلَةَ عَلٰى وَفْقِ

څکه چې ډير ظاهر هغه تميز دي او نشته خفا په دې کې او اباًاوابوة وداراً اوعلماً راوړي دي دا مثالونه موافق

مَا سَبَقَ.

دماسبق.

**خلاصه دمتن** : دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې دتميز دويم قسم کوم چې ذات

مقدره نه ابهام لري کوي هغه په جمله کې دموندلو په نسبت يا په شبه جمله کې دموندلو د

نسبت نه ابهام لري کوي

**اغراض دجامي** : القسم : په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې **الثاني** صفت دي دموصوف محذوف کوم چې **القسم** دي .

**وهو** : په دې عبارت سره شارح بيان دمصداق کوي چې ددويم قسم نه مراد **هغه تميز** دي کوم چې دذات مقدره نه ابهام لري کوي .

**يرفع** : په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي ، **من نسبة** دا ظرف مستقر د**يرفع** متعلق دي اودا خبر دي دمبتدا چې **الثاني** ده .

**كان الظاهر** : په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي او په **لكن لما كان الابهام** سره جواب ورکوي :

**اعتراض** : دمصنف په عبارت کې تعارض اوتناقض دي ځکه چې مصنف مخکې ويلي وو چې دتميز دويم قسم هغه دي کوم چې ذاتِ مقدره نه ابهام لري کوي اودلته دذات ذکر نشته دي اونسبت يو امرِ معنوي دي نسبت ذات نه دي مصنف لره داسې ويل په کار وو چې **والثاني عن ذات مقدرة في نسبة في جملة** .

**جواب** : په طرف دنسبت کې ابهام دي اودا **ابهام في النسبة** لره مستلزم دي اودنسبت نه ابهام لري کول مستلزم دي دطرف نسبت نه ابهام لره لري کول نومصنف داختصار دوجې نه په **عن نسبة** باندې اکتفاء وکړه .

**تنبيهاً** : په دې عبارت سره شارح جواب ورکوي چې دويم قسم داول قسم سره تقابل د ذکر يا دعدم ذکر دوجې نه . نه دي بلکه دنسبت دوجې نه دي چې دويم قسم دنسبت نه ابهام لري کوي او اول قسم د غير نسبت نه ابهام لري کوي .

**ما شابهه** : په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د معنى دي چې د **ماضاهاها** معنى ده : **ما شابهها** .

**عطف** : په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې دامجرور دي په دې بناء باندې چې ددې عطف په جمله باندې دي .

**وهو اسم الفاعل** : په دې عبارت سره شارح بيان دمصداق کوي . دشبه جمله مصداق لره يې

متعین کړو چې ددې مصداق اسم فاعل ، اسم مفعول ، صفت مشبه ،اسم تفضیل ، مصدراو هر هغه لفظ دې چې په هغې کې دفعل والامعنی موندلې شي داسم فاعل مثال لکه **الحوض ممتلي ماء** او داسم مفعول مثال لکه **الارض مفجرة عیونا** اوداسم تفضیل مثال لکه **زید افضل ابا** او د مصدر مثال لکه **اعجبني طیبه** دصفت مشبه مثال لکه **زید حسن وجها** اوهر هغه فعل چې په هغې کې دفعل معنی موندلې شي دهغې مثال **حسبک زید رجلاً** په دې کې **حسبک** د **یکفیک** په معنی کې دي .

**مثال للجملة والتمییز فیه** : په دې عبارت سره غرض دشارح دممثل له تعین دي **طاب زید نفسا** داد هغه تمییز مثال دي کوم چې دجملې نسبت نه ابهام لرې کوي اوپه دې کې تمییز دمنتصب عنه یعنې **ممیز** ( **زید** ) سره خاص دي .

**مثال لما یشبه الجملة** : په دې عبارت سره غرض دشارح دممثل له تعین کول دي **زید طیب ابا** داد هغه تمییز مثال دي کوم چې دجملې نه ابهام لرې کوي اوپه دې کې تمییز دمنتصب عنه صلاحیت هم لري اودمنتصب عنه دمتعلق صلاحیت هم لري اود **فزید طیب ابا** معنی داهم کیدي شي چې زید خوشحالیدو والادي دپلارکیدو په حیثیت سره چې هغه په خپله پلار دي او دامعنی هم کیدي شي چې زید خوشحالیدو والادي دحیثیت دپلاره چې دده پلار موجود دي داول معنی په تمییز دمنتصب عنه دپاره اوددویم معنی په اعتبار سره متعلق دمنتصب عنه دپاره به وي .

**وحیث لافرق** : په دې عبارت سره شارح دیو وهم ازاله کوي :

**وهم** : کله چې شارح په اول مثال کې وویل چې تمییز دمنتصب عنه سره خاص دي اوپه دویم مثال کې یې وویل چې په دې کې دواړه احتمالات دي چې تمییز دمنتصب عنه صلاحیت هم لري اودمنتصب عنه دمتعلق صلاحیت هم لري نو په دې کې داوهم پیدا شو چې هر هغه تمییز چې دجملې نه ابهام لرې کوي هغه به دمنتصب عنه سره خاص وي اوکوم چې دشبه جملې نه ابهام لرې کوي په دې کې به دوه (۲) احتمالات وي چې دادمنتصب عنه صلاحیت به هم لري او دددې دمتعلق صلاحیت به هم لري .

**وحیث لافرق** : **ازاله دوهم** : شارح په دې سره وهم لرې کړو چې هغه تمییز کوم چې دجملې د نسبت نه ابهام لرې کوي یادشبه جملې دنسبت نه ابهام لرې کوي په دغه دواړو کې فرق نشته

دي ځکه چې د دواړو د نسبت نه ابهام لري کوي لهذا دوه (۲) مثالونه د څلورو (۴) مثالونو په قوت کې شول کویا چې نفساً او داباً تعلق د جملې او د شبه جملې دواړو سره دي څلور (۴) مثالونه په دې طریقې سره شول چې : (۱) طاب زید نفساً (۲) طاب زید اباً . (۳) زید طیب اباً . (۴) زید طیب نفساً .

**قوله ابوة:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ابوة دارا علماً په دې کې لکه څنګه چې په شبه جمله د نسبت نه د تمییز واقع کیدو صلاحیت شته دي همدارنګې د جملې د نسبت نه هم د تمییز واقع کیدو صلاحیت شته دې نو دې لره د شبه جملې نه وروستو ولې ذکر کړ او په دې عطف یې په اباً باندې ولې وکړو ؟

**جواب** : ابوة ، داراً ، علماً اګرچې په اعتبار د لفظ سره په نفساً باندې عطف دي لیکن په اعتبار د معنی سره خاص نه دي نو مصنف رحمه الله حقیقتاً هر یو د پاره پنځه (۵) مثالونه ذکر کړه یعنې هر هغه تمییز کوم چې د نسبت نه ابهام لري کوي د دې د پاره یې هم پنځه (۵) مثالونه ذکر کړه او کوم چې د شبه جملې نه نسبت لري کوي د هغې یې هم پنځه (۵) مثالونه ذکر کړه .

**فالنفس اضافي:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مثال نه مقصود د ممثل له وضاحت وي او وضاحت په یو مثال سره هم حاصلیږي نو مصنف رحمه الله پنځه مثالونه ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : د مثالونو تعدد د ممثل له د تعدد د وجې نه وي ځکه چې د تمییز پنځه (۵) قسمونه دي او په تمییزکې په عقلي اعتبار سره دولس (۱۲) احتمالات دي چې تفصیل یې دادې : (۱) تمییز به یا عین وي او یا به عرض ، (۲) بیا به هر یو اضافي وي او یا به غیر اضافي ، دوه لره په دوه کې د ضرب کولو سره د دې نه څلور (۴) قسمونه جوړ شول : (۱) عین اضافي هغه دي چې **مایتوقف تعقله علی تعقل شيء آخر** چې د دې پوهیدل د غیر په تعقل باندې موقوف دي مثال لکه **داب تعقل** په بچي باندې موقوف دي ، غیر اضافي هغه دي چې د دې برعکس وي . (۲) عرض اضافي . (۳) عین غیر اضافي . (۴) عرض غیر اضافي ، بیا په دې هر یو کې دري (۳) احتمالات دي : (۱) تمییز د منتصب عنه سره خاص وي . (۲) د منتصب عنه د متعلق سره خاص وي . (۳) د دواړو احتمال لري ، څلورو لره چې په دریو کې ضرب ورکړي نو دولس (۱۲) ترې جوړیږي ،لیکن په دې دولسو کې اوه (۷) قسمونه غیر مستعمل او پنځه (۵) قسمونه مستعمل

دي چې د دې تفصيل لاندې په نقشه کې موجود دي

| عين اضافي | عين غير اضافي | عرض اضافي | عرض غير اضافي |
|---|---|---|---|
| د منتصب عنه سره خاص وي، غير مستعمل | د منتصب عنه سره خاص وي ،مستعمل مثلاً طاب زيد نفساً | منتصب عنه سره خاص وي، غير مستعمل | د منتصب عنه سره خاص وي ،غير مستعمل |
| د منتصب عنه د متعلق سره خاص وي، غير مستعمل | د منتصب عنه د متعلق سره خاص وي، مسنعمل مثلاً طاب زيد داراً | د منتصب عنه د متعلق سره خاص وي، مستعمل ،مثلاً طاب زيد ابوه | د منتصب عنه د متعلق سره خاص وي مستعمل مثلاً طاب زيد علماً |
| د منتصب عنه او د متعلق دواړو احتمال لري،مستعمل مثلاً طاب زيد اباً | د منتصب عنه او د متعلق دواړو احتمال لري ،غير مستعمل | د منتصب عنه او د متعلق دواړو احتمال لري ، غير مستعمل | د منتصب عنه او د متعلق دواړو احتمال لري،غير مستعمل |

په دې کې اوه (۷) قسمه غير مستعمل دي او پنځه (۵) قسمه مستعمل دي نو ځکه مصنف رحمه الله پنځه (۵) مثالونه ذکر کړه چې تفصيل يې دا دې چې عين غير اضافي په درې (۳) احتمالونو کې دوه مستعمل او يو غير مستعمل دي:

(۱) عين غير اضافي د منتصب عنه سره خاص وي مثال لکه نفساً.

(۲) عين غير اضافي د منتصب عنه د متعلق سره خاص وي مثال لکه داراً عين.

غير اضافي کوم چې د دواړو احتمال لري دا غير مستعمل دي او عين اضافي په درې احتمالونو کې يو مستعمل او دوه غير مستعمل دي: (۱) مستعمل دا دې چې عين اضافي د منتصب عنه او د هغه متعلق دواړو احتمال لري مثال اب. او په پنځو عرض اضافي کې په درې احتمالونو کې يو مستعمل دي او هغه دا دې چې د منتصب عنه سره خاص وي او باقي دوه غير مستعمل دي چې تفصيل يې په نقشه کې موجود وو.

عطف: په دې عبارت سره غرض د شارح تعين د عطف دي چې داضافة عطف په في جملة او ماضاها باندې دي.

وترکه: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مصنف رحمه الله طریقه ولې بدله کړه چې مخکې یې لفظ دنفس ذکر کړو اودلته یې هغه ذکر نه کړو؟

**جواب**: لفظ دنفس تمییز واقع کیدل اظهر وو ددې وجې نه یې ذکر نه کړو او ابوةً، داراً، علماً دې مثالونو لره یې دماقبل موافق ذکر کړه

## درفع دابهام دتمییز مثال:

| |
|---|
| وَ زَادَ عَلَيْهِ قَوْلَهُ وَ لِلّٰهِ دَرُّهٗ فَارِسًا اِشَارَةً اِلٰى اَنَّ التَّمْيِيْزِ قَدْ يَكُوْنُ |
| اوزیات یې کړوپه دې باندې خپل قول ولله دره فارساً په اشارې کولو سره دې خبرې طرف ته چې تمییز کله کله وي |
| صِفَةً مُشْتَقَّةً وَ اَيْضًا لَمَّا اَوْرَدَهٗ صَاحِبُ الْمُفَصَّلِ مِثَالًا لِتَمْيِيْزِ الْمُفْرَدِ عَلٰى اَنْ يَكُوْنَ الضَّمِيْرُ فِيْهِ |
| صفت مشتقه اوهمدارنګې هرکله چې وارد کړو صاحب دمفصل مثال دپاره دتمیز مفرد چې وي ضمیرپه دې کې |
| مُبْهَمًا كَضَمِيْرِ رُبَّهٗ رَجُلًا وَ يَكُوْنَ فَارِسًا تَمْيِيْزًا عَنْهُ اَرَادَ اَنْ يُّنَبِّهَ عَلٰى اَنَّهٗ |
| مبهم لکه ضمیر دربه رجلاً اووي به فارساً تمیز ددې نه نواراد وکړه په دې سره دتنبیه په دې خبره چې فارساً ددې |
| يَصْلُحُ اَنْ يَّكُوْنَ تَمْيِيْزًا عَنْ نِسْبَةٍ عَلٰى اَنْ يَّكُوْنَ الضَّمِيْرُ فِيْهِ مُعَيَّنًا مَعْلُوْمًا وَ الْاِبْهَامُ يَكُوْنُ فِيْ نِسْبَةِ الدَّرِّ اِلَيْهِ وَ |
| صلاحیت لري چې وي تمییز دنسبت نه چې وي ضمیرپه دې کې معین اومعلوم اوابهام وي په نسبت کې درته او |
| الدَّرُّ فِي الْاَصْلِ اللَّبَنُ وَ فِيْهِ خَيْرٌ كَثِيْرٌ لِلْعَرَبِ فَاُرِيْدَ بِهِ الْخَيْرُ اَيْ |
| دربه اصل کې لبن (پئیو) ته وایي اوپه دې کې خیر کثیر وي دعربو په نزد نواراده یې وکړه په دې سره د خیر یعنې |
| لِلّٰهِ خَيْرُهٗ فَارِسًا وَ الْفَارِسُ، اِسْمُ فَاعِلٍ مِنَ الْفَرَاسَةِ بِالْفَتْحِ مَصْدَرُ فَرُسَ بِالضَّمِّ اَيْ حَذَقَ |
| لله خیره فارساً اوفارس اسم فاعل دي دفراسة نه په فتحې سره مصدر د فرس دي په ضمې سره یعنې هوښیار شو په |
| بِاَمْرِ الْخَيْلِ وَ اَمَّا الْفِرَاسَةُ بِالْكَسْرِ فَمِنَ التَّفَرُّسِ. |
| کارونود آسونو کې اوهرچې فراست دي په کسرې سره نود تفرس نه ماخوذ دي. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې صاحب دکافیې په نسبت کې رفع دابهام دپاره دتمییز یو بل مثال ذکر کړي دي چې هغه ولله دره فارساً دي.

**اغراض دجامي**: وزاده: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: کله چې دهغه مثالونو ذکر دماقبل سره موافق وو نو مصنف رحمه الله ولله دره فارساً

اضافه ولې وکړه حالانکه ددې ذکر په ماقبل کې نشته دې

**جواب**: مصنف ددې اضافه ددوه وجهو نه وکړه (۱) اوله وجه داچې په دې سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چې لکه څنګه تمییز جامد وي نو همدارنګې مشتق هم وي (۲) دوبمه وجه داچې صاحب مفصل ولله دره فارساً لره دمفرد مقدار تمییز په مثال کې ذکر کړی به دې اعتبار سره چې د دره ضمیر ربه رجلاً دضمیر په شان مبهم دې اوفارساً ددې نه تمییز دې نومصنف رحمه الله دې مثال لره ذکر کړه په دې خبره باندې تنبیه وکړه چې داتمییز چې لکه څنګه دمفرد مقدار نه ابهام لره رفع کولو صلاحیت لري همدارنګې دنسبت نه تمییز واقع کیدو صلاحیت هم لري په دې اعتبار سره چې په دې کې ضمیر معین اومعلوم وي اودابهام ضمیر طرف ته ددې په نسبت کې وي مثلاً جاءني زيد وويلي شي اوددې سره متصل وويل شي چې ولله دره فارساً اوس د دره دضمير مرجع معلوم اومعين ده چې هغه زيد دې ليکن ضمير طرف ته ددرې په نسبت کې ابهام دې دفارساً په ذريعه دا ابهام لري شو اوکه دضمير مرجع معلومه نه وي نو بيا دا د ذاتِ مذکوره نه ابهام لري کولو مثال جوړيږي.

<u>والدر في الاصل اللبن</u>: په دې عبارت سره شارح ددر اود فارس معنى بيانوي چې ددر معنى ده لبن پئ اوداهلِ عربو په نزد په دې کې خير کثير وي لهذا دلته د درنه مراد مجازاً خير کثير دې د لله دره معنى خيره فارسا ده او فارس صيغه داسم فاعل ده دادفراست نه ماخوذ دې چې مصدر دې.

فرس بالضم معنى ده فرس فلان (چې فلاني بنده دآسونو په معامله کې ماهر شو) اوکه د فِراست په کسرې دفاء سره وي نوداد تفرس نه مشتق دې چې ددې معنى ادراک ده.

## د تمييز نور احکامات:

| |
|---|
| ثُمَّ اِنْ كَانَ اَيِ التَّمْيِيْزِ بَعْدَ مَا لَمْ يَكُنْ نَصًّا فِي الْمُنْتَصِبِ عَنْهُ اِسْماً لاَ صِفَةً يَصِحُّ جَعْلُهُ |
| بیاکه وي يعني تميزپس ددې نه چې نه وي نص په منتصب عنه کې اسم اونه صفت نوصحيح دې ګرځول ددې |
| لِمَا انْتَصِبَ عَنْهُ وَ الْمُرَادُ بِجَعْلِهِ لَهُ اِطْلَاقُهُ عَلَيْهِ وَ التَّعْبِيْرُ عَلَيْهِ بِهِ عَنْهُ جَازَ |
| دماانتصب عنه دپاره اومرادپه ګرځولودې سره په دې باندې اطلاق ددې دې اوتعبير کول ددې نه جائزدې چې |
| اَنْ يَكُوْنَ ذٰلِكَ التَّمْيِيْزُ تَارَةً لَهُ اَىْ لِلْمُنْتَصِبِ عَنْهُ بِاَنْ يَكُوْنَ تَمْيِيْزاً يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْهُ |
| وي داتميزکله ددې دپاره يعني دمنتصب عنه دپاره په داسې شان سره چې وي تميز چې رفع کوي ابهام ددې نه |

| |
|---|
| وَ تَارَةً بِمُتَعَلِّقِهِ بِأَنْ يَكُوْنَ تَمْيِيْزاً يَرْفَعُ الإِبْهَامَ عَنْ مُتَعَلِّقِهِ وَ ذٰلِكَ بِحَسْبِ الْقَرَائِنِ وَ |
| اوکله دمتعلق دپاره وي په داسې شان سره چې وي تميزرفع کوي ابهام ددې دمتعلق نه اودا په اعتباردقرائنو او |
| الأَحْوَالِ مِثْلُ أَبًا فِيْ طَابَ زَيْدٌ أَبًا فَإِنَّهُ يَصِحُّ أَنْ تَجْعَلَهُ عِبَارَةً عَنْ زَيْدٍ فَجَازَ أَنْ يَكُوْنَ تَارَةً |
| احوالوسره دي لکه ابا په طاب زيدابا کې نوپس صحيح دې چې وګرځول شي عبارت د زيدنه نوجائز دي چې وي کله تميز |
| تَمْيِيْزاً عَنْ زَيْدٍ إِذَا أُرِيْدَ إِسْنَادُ الطِّيْبِ إِلَيْهِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ أَبُوْ عَمْرٍو وَجَازَ أَنْ يَكُوْنَ |
| د زيدنه چې کله اراده کړې شي اسناد دطيب زيد طرف ته په دې اعتبارسره چې داد عمروپلار دې اوجائز دې چې وي |
| تَارَةً تَمْيِيْزاً عَنْ مُتَعَلِّقِهِ بِاعْتِبَارِ أَنَّ الطِّيْبَ مُسْنَدٌ إِلَى مُتَعَلِّقِهِ وَ هُوَ أَبُوْهُ وَ إِلَّا أَيْ |
| کله تميز دمتعلق نه په دې اعتبارسره چې طيب مسند وي متعلق پورې اوهغه ددې پلار دې اوکه چيرته نه وي يعنې |
| وَ إِنْ لَمْ يَكُنِ التَّمْيِيْزُ بَعْدَ مَا لَمْ يَكُنْ نَصًّا فِي الْمُنْتَصِبِ عَنْهُ اِسْمًا يَصِحُّ جَعْلُهُ لِمَا انْتَصَبَ |
| که چيرته نه وي تميزپس دهغه نه چې نه وي نص په منتصب عنه کې داسې اسم چې صحيح وي ګرځول ددې دمنتصب |
| عَنْهُ فَهُوَ لِمُتَعَلِّقِهِ خَاصَّةً نَحْوُ طَابَ زَيْدٌ أُبُوَّةً وَعِلْمًا وَدَارًا فَإِنَّ هٰذِهِ الأَسْمَاءَ لَيْسَتْ نَصًّا فِي الْمُنْتَصِبِ عَنْهُ |
| عنه دپاره نو دا ددې دمتعلق دپاره دي خاص لکه طاب زيد ابوةً وعلماً وداراً ځکه دا اسماء نه دي نص په منتصب عنه کې |
| وَ لَا يَصِحُّ جَعْلُهَا لَهُ بِالتَّعْبِيْرِ عَنْهُ بِهَا فَهِيَ لِمُتَعَلَّقِ زَيْدٍ وَ هُوَ الذَّاتُ الْمُقَدَّرَةُ |
| اونه دې صحيح ګرځول ددې په تعبير کولو ددې سره په دې باندې نو دا دمتعلق د زيد دپاره دي اوهغه ذات مقدره |
| أَعْنِي الشَّيْءَ الْمَنْسُوْبَ إِلَى زَيْدٍ. |
| دي يعنې هغه څيزچې منسوب وي زيد طرف ته. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيې دتمييز نوراحکامات بيانوي اووايې چې تمييزبه يااسم وي اويابه صفت وي که تميزاسم وي نودې لره دمنتصب عنه دپاره کيدل به صحيح وي اويابه نه وي دمنتصب عنه دپاره دصحيح کيدو مطلب دادې چې منتصب عنه لره د هغه تمييز سره تعبير کول اوتمييز په منتصب عنه باندې اطلاق کول اومنتصب عنه لره مبتدا جوړول اوتمييز په هغه باندې حمل کول اوخبر جوړول صحيح دي اودمنتصب عنه دپاره دنه صحيح کيدو مطلب دادې چې دتمييز حمل اواطلاق اوتعبير په منتصب عنه باندې صحيح نه وي په داسې صورت کې دوه وجهې جائز دي : دې لره دمنتصب عنه دپاره دتمييز جوړولو څه قرينه موندلې شي اويانه، که چيرته څه قرينه نه شي موندلې نو دې لره دمنتصب عنه دمتعلق نه تمييز جوړول صحيح دي مثلاً کله چې دطيب اسناد دده متعلق طرف په دې اعتبار سره وي چې هغه ددې پلار دي نو تمييز جوړول صحيح دي اوکه تمييز لره دمنتصب عنه دپاره صحيح نه وي نوبيابه دمنتصب عنه دمتعلق سره خاص وي مثلاً طاب زيد ابوه

علیٰ وداراً دي اسماء لره دمنتصب عنه دپاره کیدل صحیح نه دي نوداتمییز دمنتصب عنه متعلق یعني زید دمتعلق څخه دي اومتعلق ذات مقدره دي یعني هغه شئ کوم چې زید ظرف ته منسوب دي.

**اغراض دجامي :** ای التمییز: په دې عبارت سره شارح دضمیر مرجع متعین کوي.

بعد مالم یکن نصاً: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال :** دا قاعده ستا منقوضه او ماته ده په طاب زید نفسا باندې ځکه چې په دې کې نفسا لره د منتصب عنه دپاره جوړیدل صحیح دي حالانکه په دې کې دوه (۲) وجهې جائز نه دي بلکه هغه لره دمنتصب عنه تمییز جوړول متعین دي.

**جواب :** هغه تمییز چې هغې لره دمنتصب عنه دپاره کول صحیح وي په دې کې دوه وجهې هم جائز دي داپه هغه صورت کې دې چې کله هغه په منتصب عنه کې نص نه وي اوپه ذکر شوي مثال کې نص دي ددې وجې نه نقض وارد نه شو.

لاصفة: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال :** صفت خو اسم وي نو دمصنف رحمه الله په کلام کې تناقض لازم راځي ځکه چې مصنف وویل چې کله تمییز اسم وي اوهغه لره دمنتصب عنه دپاره کیدل صحیح وي نو په دې کې دوه(۲) وجهې جائز دي: (۱) چې هغه لره د منتصب عنه د پاره کیدل هم صحیح وي. (۲) او دمنتصب عنه دمتعلق دپاره هم صحیح وي اووروسته کلام یعني ان کان صفة نه معلومیږي چې کله تمییز اسم وي نو هغه فقط دمنتصب عنه دپاره وي نو په اول اوآخر کلام کې تعارض دي.

**جواب :** اسم اګرکه دصفت نه عام دي صفت ته هم شامل دي لیکن قاعده ده چې کله عام د خاص په مقابله کې وي نو دهغه عام نه مراد دخاص ماسواء وي اودلته هم داسم نه مراد صفت ماسواء دي. (۳) یا د اسم نه مراد جامد او دصفت نه مراد مشتق دي لهذا تقابل صحیح دي.

تارةً: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال :** د والمتعلقة واو عاطفه دي او واو عاطفه دجمع دپاره وي اوقاعده داده چې الجمع بحرف الجمع کالجمع بلفظ الجمع ، اوس دمصنف دعبارت مطلب داجوړیږي چې هغه تمییز کوم چې د منتصب عنه دپاره صحیح وي هغه منتصب عنه اودهغه متعلق ددواړو دپاره یوځاې وي

حالانکه دا غلط دي

**جواب**: دلته واو د أوْ په معنی کې دي مطلب دادې چې هغه تمییز یا د منتصب عنه د پاره وي د متعلق د پاره نو بیا څه اشکال نه واردیږي.

## د تمییز د ذکر شوو دوه قسمونو استعمال :

| |
|---|
| فَيُطَابِقُ التَّمْيِيزُ فِيهِمَا أَيْ فِيمَا جَازَ أَنْ يَكُونَ لِمَا انْتُصِبَ عَنْهُ |
| پس مطابق وي تمییز په دې دواړو کې یعنې په هغه صورت کې چې جائزوي چې وي تمییز د منتصب عنه د پاره |
| سَوَاءٌ نَصًّا فِيهِ أَوْ مُحْتَمِلًا لَهُ وَ لِمُتَعَلَّقِهِ وَ فِيمَا تَعَيَّنَ |
| برابره خبره ده که نصاً وي او یا محتملاً وي د منتصب عنه د پاره او د متعلق د پاره او په هغه څه کې چې معین وي د |
| لِمُتَعَلَّقِهِ مَا قُصِدَ مِنْ وَحْدَةِ التَّمْيِيزِ وَ تَثْنِيَتِهِ وَ جَمْعِيَّتِهِ سَوَاءٌ كَانَ |
| متعلق د پاره د هغه څه چې قصد یې شوې وي د واحد کید و د تمیز او د تثنیې او د جمعې برابره خبره ده که وي د پاره د |
| لِمُوَافَقَةِ مَا انْتُصِبَ عَنْهُ مِثْلُ طَابَ زَيْدٌ أَبًا وَالزَّيْدَانِ أَبَوَيْنِ وَالزَّيْدُونَ آبَاءً أَوْ لِمَعْنًى فِي نَفْسِهِ |
| موافقت د منتصب عنه لکه طاب زید اباً والزیدون ابوین والزیدون اباءً یا د پاره د داسې معنی چې په نفس د تمیز کې وي |
| مِثْلُ قَوْلِكَ طَابَ زَيْدٌ أَبًا إِذَا أَرَدْتَ أَبًا لَهُ فَقَطْ وَ طَابَ زَيْدٌ أَبَوَيْنِ إِذَا أَرَدْتَ أَبًا |
| لکه دا قول ستا طاب زید اباً چې کله ته اراده وکړې د هغه د پلار او طاب زید ابوین چې کله ته اراده وکړې د زید د پلار |
| وَ جَدًّا لَهُ وَ طَابَ زَيْدٌ آبَاءً إِذَا أَرَدْتَ أَبًا وَ أَجْدَادًا لَهُ فَعَلَى كُلٍّ مِنَ التَّقْدِيرَيْنِ إِذَا قُصِدَ |
| او د نیکه او طاب زید اباءً کله چې ته اراده وکړې د زید د پلار او د نیکه نو بنا په هر یو د دواړو تقدیرونو چې کله اراده وکړې |
| وَحْدَةُ التَّمْيِيزِ أُورِدَ مُفْرَدًا وَ إِذَا قُصِدَ جَمْعِيَّتُهُ أُورِدَ |
| د وحدت د تمیز نو راېي وړو مفرد او چې کله اراده وکړې د تثنیې نو راېي وړو تثنیه او چې کله اراده وکړې د جمعې نو راېي |
| جَمْعًا فَإِنَّ صِيغَةَ الْمُفْرَدِ لَا تَصْلُحُ أَنْ تُطْلَقَ عَلَى الْمُثَنَّى وَ الْمَجْمُوعِ إِلَّا إِذَا كَانَ التَّمْيِيزُ جِنْسًا |
| وړو جمع ځکه صیغه د مفرد دا صلاحیت نه لري چې اطلاق یې وشي په تثنیه او جمع مګر کله چې وي تمییز جنس چې |
| يَقَعُ عَلَى الْقَلِيلِ وَ الْكَثِيرِ فَإِنَّهُ إِذَا قُصِدَ تَثْنِيَتُهُ أَوْ جَمْعِيَّتُهُ لَا يَلْزَمُ أَنْ يُثَنَّى |
| واقع کیږي په قلیل او کثیر باندې ځکه چې کله اراده وکړې شي د تثنیې یا د جمعې نو نه لازمیږي چې تثنیه کړې شي |
| ذَلِكَ الْجِنْسُ أَوْ يُجْمَعَ بَلْ يَكْفِي أَنْ يُؤْتَى بِهِ مُفْرَدًا لِصِحَّةِ إِطْلَاقِهِ عَلَى الْقَلِيلِ وَ الْكَثِيرِ |
| دا جنس او یا جمع شي بلکې کافي ده چې راوړل شي تمییز مفرد د پاره د صحت د اطلاق په قلیل او کثیر باندې نو |
| فَلَا حَاجَةَ إِلَى التَّثْنِيَتِهِ وَ جَمْعِهِ نَحْوُ طَابَ زَيْدٌ عِلْمًا وَالزَّيْدَانِ عِلْمًا وَالزَّيْدُونَ عِلْمًا إِلَّا أَنْ يُقْصَدَ |
| نشته دي حاجت راوړو د تثنیې او د جمعې لکه طاب زید علماً والزیدان علماً والزیدون علماً مګر دا چې کله اراده وکړې |

| |
|---|
| بِالتَّمْيِيزِ الَّذِیْ هُوَ الْجِنْسُ الْاَنْوَاعُ حَيْثُ اِمْتِيَازَاتِهَا النَّوْعِيَّةُ فَاِنَّهُ لَا بُدَّ حِيْنَئِذٍ مِنْ |
| شي په هغه تمييزچې هغه جنس دي دانواعو د حيثيت د امتيازات نوعيه څخه ځکه نشته لابدي په دې وخت کې د |
| تَثْنِيَتِهٖ اَوْ جَمْعِهٖ نَحْوُ طَابَ الزَّيْدَانِ عِلْمَيْنِ وَالزَّيْدُوْنَ عُلُوْمًا اِذَا اُرِيْدَ اَنَّ مُتَعَلَّقَ الطِّيْبِ مِنْ كُلٍّ مِنَ الزَّيْدَانِ |
| تثنيې او د جمعې لکه طاب الزيدان علمين والزيدون علوما چې کله اراده وکړې شي چې متعلق د طيب د هر يو الزيدان |
| اَوِ الزَّيْدُوْنَ نَوْعٌ آخَرُ مِنَ الْعِلْمِ فَاِنَّ صِيْغَةَ الْمُفْرَدِ لَا تُفِيْدُ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى. |
| او د زيدون نه بل قسم دي د علم نه ځکه صيغه د مفرد د ... مانده نه ورکوي دغه معنى. |

**خلاصه دمتن** : په ذکر شوي عبارت کې صاحب د کافيې غرض د تمييز مذکوره دوه (٢) قسمونو طريقه د استعمال بيانوي (١) چې تمييز به ياجنس وي (٢) اويا به غير جنس وي ، که جنس وي نو دې لره به دانواعو قصد کولې شي يانه په دې اعتبار سره په دې کې دري (٣) صورتونه جوړيږي : (١) تمييز غير جنس وي . (٢) تمييزجنس وي او ددې نه مقصود انواع نه وي .(٣) تمييز جنس وي او ددې نه انواع مقصود وي . دهر يوتفصيل په لاندې ډول دي :

( **١** ) که چيرته تمييز غير جنس وي نودابه د مقصود موافق تثنيه اويا جمع راوړې شي برابره خبره ده که واحد ياتثنيه ياجمع راوړل د منتصب عنه د موافقت دوجې نه وي يا دهغه معنى دوجې نه وي کوم چې په تمييز کې موندلې شي داول مثال طاب زيد ابا ، طاب الزيدان ابوين ، طاب الزيدون آباء ، ددويم مثال طاب زيد ابا کله چې يواځې پلار مراد وي اوطاب زيد ابوين ، کله چې يواځې پلار اونيکه مراد وي اوطاب زيد آباءً کله چې مراد اباء او اجداد وي يعنې په دواړو صورتونو کې برابره خبره ده که د منتصب عنه د موافقت دپاره وي يا دهغه معنى موافقت دوجې نه کوم چې په تمييز کې موندلې شي کله چې تمييز لره مفرد راوړوقصد وکړې شي نو دابه مفرد راوړې شي که دتثنيه يا دجمع راوړو قصد وکړې شي نودابه تثنيه اويا جمع راوړې شي ځکه چې د مفرد صيغه ددې خبرې صلاحيت نه لري چې د تثنيه اويا دجمعې اطلاق په دې باندې وشي .

( **٢** ) اوکه تمييز جنس وي او ددې نه اراده انواع نه وي نو دابه تثنيه اويا جمع نه شي راوړې بلکه مفرد به راوړې شي ځکه چې ددې اطلاق په قليل اوکثير دواړو باندې صحيح دي لهذا دې لره دتثنيې اويا جمع راوړو ضرورت نشته مثال لکه طاب زيد علما ، طاب الزيدان علما ، طاب الزيدون علماً .

(۳) اوکه تمييز جنس وي او ددې نه قصد انواع کړي شي نو دابه دمقصود موافق تثنيه اوياجمع راوړي شي مثلاً طاب زيد علما ،طاب الزيدان علمين ، طاب الزيدون علوماً ، کله چې دا مراد وي چې د زيدون څخه يو زيد دعلم يو قسم مثلاً دنَحْوُ ماهر دي اودويم زيد دعلم فقه عالم دي اودريم زيد داصول فقه عالم دي ځکه چې دمفرد صيغه ددې خبرې صلاحيت نه لري چې ددې اطلاق په تثنيه اوجمع باندې وشي .

**اغراض دجامي** : اى فيما جاز: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د هما ضمير مرجع هيئين مذکورين دي بوهغه تمييز چې هغې لره دمنتصب عنه اود متعلق ددواړو دپاره جوړيدل صحيح وي . اودويم هغه تمييز چې دې لره فقط دمتعلق دپاره جوړيدل صحيح وي نو دا تمييز چې په منتصب عنه کې نص وي نو دابه ددې حکم نه خارجيږي حالانکه په دې کې مطابقت هم ضروري دي ، يا په بل عبارت چې سوال دادې چې د راجع اومرجع په مينځ کې مطابقت نشته دي مرجع دري دي : (۱) هغه تمييز چې په منتصب عنه کې نص وي .(۲) په منتصب عنه اودمتعلق دواړو احتمال لري (۳) دمتعلق سره خاص وي اودارجع تثنيه ضمير دي .

**جواب** : هغه تمييز چې په منتصب عنه کې نص وي نودا په اول شئ کې داخل دي ځکه چې کوم لره دمنتصب عنه نه تمييز جوړيدل صحيح وي په دې کې تعميم دي برابره خبره ده که په منتصب عنه کې نص وي يا منتصب عنه اودهغه متعلق دواړو احتمال لري لهذا په راجع اومرجع کې مطابقت صحيح کيږي .

من حيث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کله چې په زيدون کې هر يو زيد ته ديو خاص قسم علم وي مثلاً يو زيد دعلم فقه ديو حکم عالم وي اودويم زيد داصول فقې ديوې ضابطې اوقاعدې عالم وي اودريم زيد د علم النَحْو ديوې قاعدې عالم وي اودا انواع مقصود وي نو طاب الزيدون علما ويلي شي علوما نه شي ويلي حالانکه دلته هم دانواعو قصد کړي شوي دي .

**جواب** : مراد دادې چې دانواعو قصد کول په اعتبار دامتيازات نوعيه ، سره وي نه په اعتبار د امتيازات شخصيه سره يعنې پوره نوع دعلم مراد وي مثلاً مجموعه علم فقه او اصول فقه نه

چې دهر يو حکم.

## د صفت منتصب عنه يا د غير د پاره د کيدو بيان:

| |
|---|
| وَاِنْ كَانَ اَيِ التَّمْيِيْزِ صِفَةً مُشْتَقَّةً مِثْلُ لِلّٰهِ دَرُّهُ فَارِسًا اَوْ مُؤَوَّلَةً بِهَا نَحْوُ كَفٰى زَيْدٌ رَجُلًا فَاِنَّ مَعْنَاهُ |
| اوکه چيرته وي يعني تميز صفت مشتقه لکه لله دره فارسا يا صفت مؤول به مشتق وي لکه کفی زيد رجلا نو معنی |
| كَامِلًا فِي الرُّجُوْلِيَّةِ كَانَتِ الصِّفَةُ لَهُ اَيْ لِمَا انْتُصِبَ عَنْهُ لَا لِمُتَعَلَّقِهٖ لِاَنَّ |
| ددې کاملاً في الرجولية ده نو وي به دا صفت ددې د پاره يعني د منتصب عنه د پاره نه د ده د متعلق د پاره خکه چې |
| الصِّفَةَ تَسْتَدْعِيْ مَوْصُوْفًا وَالْمَذْكُوْرُ اَوْلٰى بِالْمَوْصُوْفِيَّةِ فَاِذَا قِيْلَ طَابَ زَيْدٌ وَالِدًا كَانَ وَلَوَالِدُ زَيْدٌ |
| صفت غواړي موصوف او مذکور اولی دي د موصوف جوړيدو پس هر کله چې وويلې شي طاب زيد والدا نو د زيد والد |
| وَلَا يَحْتَمِلُ اَنْ يَكُوْنَ وَالِدَهُ بِخِلَافِ الْاِسْمِ نَحْوُ اَبًا وَ طِبْقَهُ الْوَاوُ بِمَعْنٰى مَعَ وَ الطِّبْقُ |
| به وي او احتمال نه لري چې وي دي والد د ده په خلاف د اسم لکه ابا د مطابقت سره واو په معنی د مع دي او طبق |
| مَصْدَرٌ بِمَعْنَى الْمُطَابَقَةِ اَيْ كَانَتِ الصِّفَةُ صِفَةً لَهُ مَعَ مُطَابَقَتِهَا اِيَّاهُ |
| مصدر دي په معنی د مطابقت سره يعني وي به صفت. صفت د منتصب عنه د پاره سره د مطابقت نه د منتصب عنه |
| اَوْ مُطَابَقَتِهٖ اِيَّاهَا وَ يَجُوْزُ اَنْ يَكُوْنَ بِمَعْنَى اِسْمِ الْفَاعِلِ وَالْوَاوُ لِلْعَطْفِ عَلٰى خَبَرِ كَانَتْ |
| سره او يا مطابقت ددې د صفت سره او جائز دي چې وي په معنی د اسم فاعل او واو د پاره د عطف که په خبر باندې وي |
| اَيْ كَانَتِ الصِّفَةُ صِفَةً لَهُ وَ مُطَابَقَةً اِيَّاهُ وَ الْمُرَادُ بِالْمُطَابَقَةِ الْاِتِّفَاقُ فِي الْاِفْرَادِ وَ التَّثْنِيَةِ |
| يعني وي صفت. صفت د پاره د خبر او مطابقت د منتصب عنه سره او مراد په مطابقت سره موافقت دي په افراد، تثنيه، |
| وَ الْجَمْعِ وَ التَّذْكِيْرِ وَ التَّاْنِيْثِ لِكَوْنِهَا حَامِلَةً لِضَمِيْرِهٖ وَاحْتَمَلَتْ اَيِ الصِّفَةِ الْمَذْكُوْرَةِ |
| جمع، تذکير او تانيث کې د وجې د کيدو نه حامل د پاره د ضمير د منتصب عنه او احتمال لري يعني صفت مذکوره د |
| الْحَالَ اَيْضًا لِاسْتِقَامَةِ الْمَعْنٰى عَلَى الْحَالِ نَحْوُ طَابَ زَيْدٌ فَارِسًا اَيْ مِنْ حَيْثُ اَنَّهٗ فَارِسٌ اَوْ حَالَ كَوْنِهٖ |
| حال هم د ارنګې د وجې د استقامت د معنی نه په حال باندې لکه طاب زيد فارسا يعني من حيث انه فارس يا حال کون ددې |
| فَارِسًا لٰكِنَّ زِيَادَةَ مِنْ فِيْهَا نَحْوُ لِلّٰهِ دَرُّهُ مِنْ فَارِسٍ وَ قَوْلِهِمْ عَزَّ مِنْ قَائِلٍ يُؤَيِّدُ التَّمْيِيْزَ لِاَنَّ |
| فارساً ليکن زيادت د مِنْ په دې کې راځي لکه لله دره من فارس او قول د عربو چې عزمن قائل تائيد کوي د تميز خکه |
| مِنْ تُزَادُ فِي التَّمْيِيْزِ لَا فِي الْحَالِ وَ اَيْضًا الْمَقْصُوْدُ مَدْحُهٗ بِالْفُرُوْسِيَّةِ لَا حَالَ الْفُرُوْسِيَّةِ |
| مَنْ زيا تولې شي په تميز کې نه په حال کې او هم د ارنګې مقصود د هغه مدحه ده په فروسيت سره نه په حال د فروسيت |
| اِذْ قَدْ يُمْدَحُ حَالَ الْفُرُوْسِيَّةِ بِغَيْرِهَا مِنَ الصِّفَاتِ. |
| سره خکه چې کله مدحه بيانولې شي په حال د فروسيت کې په غير د فروسيت نه په نورو صفاتو سره. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې وايي چې کله چیرته تمییز صفت مشتقه وي مثال لکه لله دره فارسا یا دا د مشتق په تاویل کې وي مثال لکه کفی زید رجلاپه دې کې د رجلاً معنی کاملاً في الرجولية ده نو هغه صفت دمنتصب عنه دپاره به وي د دې دمتعلق دپاره به نه وي ځکه چې صفت تقاضا کوي دموصوف اوهغه دموصوف جوړیدو زیات مستحق دي مثلاً کله چې وويلې شي طاب زيد والداً نو والد نه به مراد دغه زید وي دده متعلق يعنې پلار به مراد نه وي په خلاف د دې صورت چې کله وويلې شي زيد ابا په دې کې دواړه احتمالات کیدې شي يعنې په خپله زید اود زید پلار . اوصفت مذکوره دحال جوړیدو هم احتمال لري مثال لکه طاب زيد فارساً لره تمییز جوړ شي نو معنی به يې داوي چې زید ښه دي د جهته دشاه سوار کیدو اود حال په صورت کې به معنی داوي چې زید ښه دي په داسې حال کې چې هغه شاه سوار دي .

**اغراض دجامي** : وطبقه الواو بمعنى مع: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان دترکیب دي چې واو عاطفه نه دي بلکه واو په معنی د مع سره دي اوطبق مصدر په معنی دمطابقت دي اوس به يې معنی داوي چې صفت به دمنتصب عنه دپاره وي .

مع مطابقتها: په دې عبارت سره غرض دشارح بیان دترکیب دي په طبقه کې په ترکیبي اعتبار سره دوه (۲) احتمالات دي : (۱) مصدر به مضاف وي فاعل طرف ته اومفعول به محذوف وي . (۲) یا به مضاف وي مفعول طرف ته اوفاعل به محذوف وي . (۲) طبق مصدر په معنی داسم فاعل دي او واو عاطفه دي او طبقه عطف دکانت په خبر باندې دي نو معنی به يې دا وي چې وي به هغه صفت دمنتصب عنه دپاره اودمنتصب عنه مطابق به وي .

والمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تمییز همیشه نکره وي اومنتصب عنه کله نکره وي اوکله معرفه وي نو تمییز د منتصب عنه سره څنګه مطابق شو ؟ اودمصنف قول وطبقه ويل څنګه صحیح شو ؟ .

**جواب** : دلته دمطابقت نه مراد په اعتبار دمفرد ،تثنيه ، جمع ، تذكير اوتانيث سره مطابقت دي په اعتبار دمعرفې اونکرې سره مطابقت ضروري نه دي .

لکونها: په دې عبارت سره شارح د ذکر شوو امورو دصفت دمنتصب عنه دمطابق کیدو وجه بیانوي چې صفت کې ضمير وي چې راجع وي منتصب عنه طرف ته ، اودراجع اومرجع په

مينځ کې مطابقت ضروري دي ددې وجې نه تمييز لره د منصب سره سابق راوړل ضروري دي

واحتملت اى الصفة المذكورة الحال ايضاً لاستقامة : يه دې عبارت كې شارح دابيانوي چې په ذكر شوي صفت كې دحال جوړيدو احتمال هم شته دي ځکه چې دحال جوړیدو په صورت کې به معنی صحیح کیږي مثال لکه طاب زید فارساً. که فارساً لره تمییز جوړشي نو معنی به یې داوي چې زید ښه دي دجهته دشاه سواري نه اودحال په صورت کې به یې معنی داوي چې زید ښه دي په داسې حال کې چې دا شاه سوار دي لیکن شارح دجامي وایي چې تمییز جوړول زیات اولی اومناسب دي ددوه (۲) وجهو نه :

**اوله وجه** : كله كله په دې كې من زياتولې شي مثال لكه لله دره من فارس ، همدارنګې عز من قائل داد عز قائلاً په ځاې واقع دي اوزيادت دمن دتمييز تائيد كوي ځكه چې من په تمييز كې زيات وي په حال كې من نه وي.

**دوهمه وجه** : دا چې مقصود هغه فروسيت دلحاظ سره تعريف كول دي نه چې دفروسيت په حالت كې ځكه چې دفروسيت په حالت كې دفروسيت نه علاوه دنورو صفاتو په اعتبار سره هم مدحه كيږي مثال لكه زيد عالم من حيث انه فارس كه فارساً لره حال وګرځوي نو دا صحيح نه دي ځكه چې بيابه يې مطلب داوي چې زيد عالم دي په حالت فروسيت كې نو دزيد علم به مقيد شي دحالت دفروسيت سره حالانكه داباطل دي

## تمييز دخپل عامل نه مقدم كيدل :

| |
|---|
| وَلَا يَتَقَدَّمُ التَّمْيِيزُ عَلَى عَامِلِهِ إِذَا كَانَ إِسْمًا تَامًّا بِالْإِتِّفَاقِ فَلَا يُقَالُ عِنْدِيْ دِرْهَمًا عِشْرُوْنَ وَلَا |
| اومقدم به نه وي تميزپه خپل حال باندې چې كله اسم تام وي بالاتفاق نونه شي ويلې عندي درهماًعشرون اونه |
| زَيْتًا رِطْلٌ لِاَنَّ عَامِلَهٗ حِيْنَئِذٍ اِسْمٌ جَامِدٌ ضَعِيْفُ الْعَمَلِ مُشَابِهَةٌ لِلْفِعْلِ |
| عندي زيتارطل ځكه عامل ددې په دې وخت كې اسم جامددي كوم چې ضعيف العمل دي او مشابه ي دفعل |
| مُشَابِهَةٌ ضَعِيْفَةٌ كَمَا ذَكَرْنَاهُ فَلَا يَقْوٰى اَنْ يَّعْمَلَ فِيْمَا قَبْلَهٗ وَ الْاَصَحُّ اَىْ |
| سره په مشابهت ضعيفه سره لكه مونږذكركړل نودا قوت نه لري چې عمل وكړي په خپل ماقبل كې اواصح يعني |
| اَصَحُّ الْمَذَاهِبِ اَنْ لَّا يَتَقَدَّمَ التَّمْيِيزُ عَلٰى مَا هُوَ عَامِلٌ فِيْهِ مِنَ الْفِعْلِ الصَّرِيْحِ اَوْ غَيْرِ الصَّرِيْحِ |
| اصح مذهب دادي چې مقدم نه شي تميزپه هغه څه چې هغه عامل دي په دې كې دفعل صريحي نه اوياغير صريحي |

لِكَوْنِهِ مِنْ حَيْثُ الْمَعْنٰى فَاعِلًا لِلْفِعْلِ لِنَفْسِهٖ نَحْوُ طَابَ زَيْدٌ اَبًا اَىْ طَابَ اَبُوْهُ اَوْ فَاعِلًا لَهٗ

نه دوجې د كيدو نه په اعتبار د معنى سره فاعل د پاره د نفس فعل لكه طاب زيد ابا يعني طاب ابوه يا فاعل وي د فعل

اِذَا جَعَلْتَهٗ لَازِمًا نَحْوُ فَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُيُوْنًا اَىْ اِنْفَجَرَتْ عُيُوْنُهَا اَوْ اِذَا جَعَلْتَهٗ

د پاره په هغه وخت كې چې كله و گرخوې ته فعل لازم لكه فجرنا الارض عيونا يعني انفجرت عيونها يا چې كله ته و گرخوې

مُتَعَدِّيًا نَحْوُ اِمْتَلَا الْاِنَاءُ مَاءً اَىْ مَلَاَهُ الْمَاءُ وَالْفَاعِلُ لَايَتَقَدَّمُ عَلَى الْفِعْلِ فَكَذَا مَا هُوَ

متعدي لكه امتلاء الاناء ماء يعني ملاه الماء او فاعل نه مقدم كيږي په فعل باندې نو همدا رنگې نه مقدم كيږي په هغه

بِمَعْنَى الْفَاعِلِ وَ هٰهُنَا بَحْثٌ وَ هُوَ اَنَّ الْمَاءَ فِيْ قَوْلِهِمْ اِمْتَلَاَ الْاِنَاءُ مَاءً مِنْ حَيْثُ

څه چې هغه په معنى د فاعل وي او دلته بحث دې او هغه دا چې ماء په دې قول د عربو كې امتلاء الاناء ماء د حيثيت د

الْمَعْنٰى فَاعِلٌ لِلْفِعْلِ الْمَذْكُوْرِ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ اِلٰى جَعْلِهٖ مُتَعَدِّيًا لِاَنَّ الْمُتَكَلِّمَ

معنى نه دا فاعل دې د پاره د فعل مذكور په غير د څه ضرورت نه د گرخولو متعدي ځكه متكلم هر كله چې اراده وكړي

لَمَّا قَصَدَ اِسْنَادَ الْاِمْتِلَاءِ اِلٰى بَعْضِ مُتَعَلِّقَاتِ الْاِنَاءِ وَلَوْ عَلٰى سَبِيْلِ التَّجَوُّزِ وَ قَدَّرَهٗ وَقَعَ

د اسناد د امتلاء بعضې متعلقاتو د اناء ته اگر كه په طريقې د مجازوي او مقدر يې كړو نو واقع شو په دې كې ابهام نو

الْاِبْهَامُ فِيْهِ لَا جَرَمَ مَيَّزَهٗ بِقَوْلِهٖ مَاءً فَهُوَ فِيْ مَعْنٰى اِمْتَلَاَ مَاءُ الْاِنَاءِ فَالْمَاءُ فَاعِلٌ مَعْنًى وَ ذٰلِكَ بِعَيْنِهٖ

خامخا بيان كړو متكلم په دې قول سره ماء نو دا په معنى د امتلاء ماء الاناء سره شو نو الماء فاعل دې معنا او دا بعينه

مِثْلُ قَوْلِكَ رَبِحَ زَيْدٌ تِجَارَةً فَاِنَّ التِّجَارَةَ تَمْيِيْزٌ يَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ شَيْءٍ مَنْسُوْبٍ اِلٰى زَيْدٍ وَهُوَ التِّجَارَةُ

په شان د قول ستا ربح زيد تجارة دې ځكه تجارت تميز دې رفع كوي ابهام د شئ منسوبه نه زيد ته او هغه تجارت دې

فَالْفَاعِلُ فِيْ قَصْدِكَ هُوَ التِّجَارَةُ لَا زَيْدٌ وَ اِنْ كَانَ اِسْنَادُ الرِّبْحِ اِلَيْهِ حَقِيْقَةً وَ اِلَيْهَا مَجَازًا وَ بِهٰذَا

نو فاعل په اراده ستا كې هغه تجارت دې نه زيد اگر كه وي اسناد د ربح زيد ته حقيقة او تجارت طرف ته مجازا او په دې

يَنْدَفِعُ مَا يُوْرَدُ عَلٰى قَاعِدَتِهِمِ الْمَشْهُوْرَةِ وَ هِيَ اَنَّ التَّمْيِيْزَ عَنِ النِّسْبَةِ اِمَّا فَاعِلٌ فِي الْمَعْنٰى

سره دفع شو هغه څه چې وارديږي په قاعدې مشهورې باندې او هغه دا چې تميز د نسبت نه يا فاعل وي په معنى كې

اَوْ مَفْعُوْلٌ مِنْ اَنَّ التَّمْيِيْزَ فِيْ هٰذَا الْمِثَالِ وَ اَمْثَالِهٖ لَا فَاعِلٌ وَلَا مَفْعُوْلٌ فَلَا تَطَّرِدُ تِلْكَ الْقَاعِدَةُ.

ويا مفعول وي د دې نه چې تميز په دې مثال كې او يا په شان د دې نه فاعل دې او نه مفعول نو نه شوه جامع دا قاعده.

**خلاصه دمتن**: دصاحب د كافيې د عبارت حاصل دا دې چې كله د تميز عامل اسم تام وي نو تميز د خپل عامل نه ، نه شي مقدم كيدې مثلاً دا سې نه شي ويلې چې عندې درهما عشرون او عندې زيتا رطل او د دې وجه داده چې عامل كله اسم تام وي نو دا به اسم جامد وي او دا اسم جامد عامل ضعيف دې ځكه چې دا عمل كوي د فعل د مشابهت د وجې نه او دا مشابهت ضعيف دې

اود عاملِ ضعيف معمول په دې باندې نه شي مقدم كيدي .

**اغراض دجامي** : والاصح ان لا يتقدم : په دې عبارت سره شارح ديو هم ازاله كوي :

**وهم** : مخكې مو وويل چې كله دتمييز عامل اسم تام وي نو تمييز په خپل عامل باندې نه شي مقدم كيدي نو ددې نه داوهم پيدا شو چې كله دتمييز عامل اسم تام نه وي بلكه فعل ياشبه فعل وي څكه چې دا دواړه قوي عامل دي لهذا تمييز په هغه باندې مقدم كيږي .

**ازاله دوهم** : دې وهم لره مصنف رحمه الله ددې ځاې نه رفع كوي چې كله دتمييز عامل فعل وي اګر چې د بعضې نحويانو مذهب دادې چې تمييز په خپل عامل باندې مقدم كيدي شي ، ليكن صحيح مذهب دادې چې كه چيرته د تمييز عامل فعل وي نو په دې باندې هم تميز نه شي مقدم كيدي برابره خبره ده كه فعل صريح وي يافعل غير صريح يعنې شبه فعل وي ددې وجه داده چې تميز په اعتبار د معنى سره په منزله د فاعل دي ، نو بيا ددې دري (۳) صورتونه دي :

(۱): تمييز بعينه د فعل مذكور فاعل وي مثال لكه طاب زيد ابا په اعتبار دمعنى سره په اصل كې دا داسې وو چې طاب ابو زيد نو اباً بعينه ددې فعل مذكور فاعل دي بې دڅه تاويل نه .

(۲): تمييز چې فعل مذكور فاعل جوړيږي كله چې دې لره لازم جوړ كړي شي مثال لكه فجرنا الارض عيونا په دې كې عيوناً نفس فعل مذكور فاعل خو نه دي ليكن كله چې دې لره لازم جوړ كړې شي نو عيونا فاعل جوړيږي مثال لكه انفجرت الارض عيونها .

(۳): تمييز دفعل مذكور فاعل خو نه جوړيږي ليكن كله چې دې لره متعدي جوړ كړي شي نو فاعل جوړيږي مثال امتلأ الاناء ماء په دې كې ماء نفسِ فعل مذكور فاعل خو نه جوړيږي نو كله چې دې لره متعدي جوړكړي شي نودابه دمعنى په اعتبار سره فاعل جوړيږي نو معنى به يې داوي چې ملاه الماء نوكله چې تمييز په اعتبار دمعنى سره فاعل وي دنفسِ فعل نو تمييز په فعل باندې نه شي مقدم كيدي لكه څنګه چې فاعل په فعل باندې نه شي مقدم كيدي .

وههنا بحث: په دې عبارت سره شارح ديو اشكال جواب وركوي :

**اشكال** : په امتلأ الاناء كې ماء لره فاعل جوړيدوكې چې كومه توجيه كړي ده په دې باندې اشكال دي هغه اشكال دادې چې امتلأ الاناء ماء كې امتلأ لره دمتعدي كيدو ضرورت نشته دي

ددې نه په غير هم ماء دمعنی په اعتبار سره فعل مذکور لازمي فعل جوړيدي شي ځکه چې کله مصنف رحمه الله د اناء بعضې متعلقاتو طرف ته دامتلاء دمجازاً اسناد قصد وکړو اگرچې په حقيقت کې اسناد داناء طرف ته دي اواناء بعضې متعلقاتو لره مقدر کړه لهذا ماء دمعنی په اعتبار سره د امتلاء فاعل دي ددې معنی نه امتلاء ماءُ الاناء.

وذلک بعينه: په دې عبارت سره شارح دجامي دمخکې خبرې تائيد اوددې مثال بيانوي: امتلأ الاناء ماء کې دماء فاعل مجازي اوفاعل معنوي کيدل داسې دي لکه څنگه چې ربح زيد تجارةً کې تجارة فاعل معنوي اوفاعل مجازي دي ځکه چې تجارت داشئ منسوب الی زيد ابهام لره رفع کوي اوهغه شئ منسوب تجارت دي پس دمتکلم په قصد کې تجارت دي نه زيد دي اگرکه د ربح اسناد زيد طرف ته حقيقتاً دي اوتجارت طرف ته اسناد مجازاً دي

وبهذا يندفع: دشارح غرض دمخکني بحث نه ديواعتراض دفع طرف ته اشاره کوي:

**اشکال**: مشهوره قاعده ده چې هغه تميز کوم چې دنسبت نه ابهام لري کوي هغه من حيث المعنی فاعل وي يامفعول وي په دې قاعده باندې اشکال دادې چې ربح زيد تجارةً اوددې په شان نور مثالونو کې تجارت نه فاعل دي اونه مفعول.

**جواب**: وجه ددفع کولو داده چې په فاعل اومفعول کې تعميم دي برابره خبره ده چې حقيقتاً وي اوکه مجازاً وي لهذا ربح زيد تجارة اوددې په شان نورو مثالونو کې تميز اگرچې حقيقتاً فاعل نه دي ليکن مجازاً فاعل دي.

## دنحويانو اختلاف:

| خِلَافًا لِلْمَازِنِيِّ وَ الْمُبَرِّدِ فَإِنَّهُمَا يُجَوِّزَانِ تَقْدِيمَ التَّمْيِيزِ عَلَى الْفِعْلِ الصَّرِيحِ وَ عَلَى اسْمِ |
|---|
| خلاف ثابت دي مازني اومبردلره ځکه دوې دواړه جائزکوي تقديم دتميزپه فعل صريحي باندې اوپه اسم فاعل او |
| الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ نَظَراً إِلَى قُوَّةِ الْعَامِلِ بِخِلَافِ الصِّفَةِ الْمُشَبَّهَةِ وَ اسْمِ التَّفْضِيْلِ وَ الْمَصْدَرِ وَمَا فِيْهِ |
| اسم مفعول کې په نظرکولوسره قوت دعامل ته په خلاف دصفت مشبهه اواسم تفضيل اومصدراوهغه څه چې په |
| مَعْنَى الْفِعْلِ لِضُعْفِهَا فِي الْعَمَلِ وَ مُتَمَسَّكُهُمَا فِي هَذَا التَّجْوِيْزِ قَوْلُ الشَّاعِرِ: |
| هغې کې معنی دفعل وي دوجې دضعف نه په عمل کې اواستدلال ددې دواړوپه دې باره کې داقول د شاعردي |

| وَ مَا كَادَ نَفْسًا بِالْفِرَاقِ تَطِيْبُ | اَتَهْجُرُ سَلْمٰى بِالْفِرَاقِ حَبِيْبَهَا |
|---|---|
| حالانکه سلمی په اعتبار دنفس سره فراق نه خوښوي | آياپريږدي سلمی په فراق کې خپل محبوب |

| |
|---|
| عَلٰى تَقْدِيْرِ تَأْنِيْثِ الضَّمِيْرِ فِيْ تَطِيْبُ فَإِنَّهٗ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ فِيْ كَادَ ضَمِيْرُ الشَّانِ لِتَذْكِيْرِهٖ وَ يَعُوْدُ |
| په تقدير د تانيث د ضمير په تطيب کې خکه په دې وخت کې وي به په کاد کې ضمير د شان د پاره د تذکير او راجع به کړي |
| ضَمِيْرُ تَطِيْبُ اِلٰى سَلْمٰى وَيَكُوْنُ نَفْسًا تَمْيِيْزًا عَنْ نِسْبَةِ تَطِيْبُ اِلَيْهَا مُقَدَّمًا عَلَيْهِ وَ اَمَّا عَلٰى تَقْدِيْرِ |
| ضمير د تطيب سلمى ته او وي به نفسا تميز د نسبت د تطيب نه سلمى ته مقدم به وي په تطيب باندې او هرچې په تقدير |
| تَذْكِيْرِ الضَّمِيْرِ فَضَمِيْرُ كَادَ لِلْحَبِيْبِ وَنَفْسًا تَمْيِيْزٌ عَنْ نِسْبَةِ كَادَ اِلَيْهِ اَيْ وَمَا كَادَ الْحَبِيْبُ |
| د تذکير د ضمير نو ضمير د کاد به راجع وي للحبيب ته او نفسا تميز دې د نسبت د کاد نه دې طرف ته يعني وماکاد الحبيب |
| نَفْسًا يَطِيْبُ فَلَا تَمَسُّكَ حِيْنَئِذٍ وَ مَا قِيْلَ يَحْتَمِلُ اَنْ يُحْمَلَ الْبَيْتُ |
| نفسا يطيب نو استدلال نه شي کيدي په دې وخت کې او هغه چې ويل شوي دي چې احتمال لري چې حمل شي بيت |
| عَلٰى تَقْدِيْرِ تَأْنِيْثِهٖ اَيْضًا عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ بِاَنْ يَكُوْنَ تَأْنِيْثُ الضَّمِيْرِ الرَّاجِعِ اِلَى الْحَبِيْبِ بِاِعْتِبَارِ النَّفْسِ |
| په تقدير د تانيث باندې همدا رنگې په دې وجه مذکور باندې چې وي تانيث د ضمير راجع حبيب ته په اعتبار د نفس |
| اِذِ الْمَعْنٰى وَمَا كَادَتْ نَفْسُ الْحَبِيْبِ تَطِيْبُ فَتَكَلُّفٌ وَ تَعَسُّفٌ غَيْرُ قَادِحٍ فِي التَّمَسُّكِ. |
| سره نو وي به په دې وخت کې معنى وماکادت نفس الحبيب تطيب نو دا تکلف دې او عدول غير قادح دې په استدلال کې. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب د کافيې د محکنې قاعدې په باره کې د نحويانو اختلاف بيانوي د امام مازني او مبرد مذهب دادې چې کله د تمييز عامل فعل صريحي وي يا اسم فاعل او اسم مفعول وي نو تمييز به په دې باندې مقدم کيدې شي .

**اغراض دجامي** : <u>فانهما يجوزان تقديم التمييز</u> : په دې عبارت سره اختلاف بيانوي : د امام مازني او د مبرد مذهب دادې چې کله د تمييز عامل فعل صريحي يا اسم فاعل او اسم مفعول وي نو تمييز په دې باندې مقدم کيدې شي د دې دليل دادې چې داعامل قوي دې او د عامل قوي عامل په دې باندې مقدم کيدې شي او که عامل اسم تفضيل يا صفت مشبه مصدر يا هغه لفظ وي چې هغه د فعل په معنى کې وي نو په دې باندې تمييز نه شي مقدم کيدې ځکه چې دا عامل ضعيف دې او د ضعيف عامل معمول په دې باندې نه شي مقدم کيدې .

**د امام مازني او د امام مبرد دليل : دليل (۱)** : د امام مازني او د مبرد يو دليل خو دادې چې فعل صريحي او اسم فاعل او اسم مفعول وغيره دا قوي عامل دې او قوي عامل په تمييز باندې مقدم کيدې شي .

**دليل (۲)** : دويم دليل د شاعر دا قول دې چې :

اَتَهْجُرُ سَلْمٰى بِالْفِرَاقِ حَبِيْبَهَا وَمَا كَادَ نَفْسًا بِالْفِرَاقِ تَطِيْبُ

**دشعر تشريح** : په دې شعر کې دوه (۲) احتمالات دي : (۱) **تطيب** دواحد مؤنث صيغه ده اوپه **كاد** کې ضمير ،ضمير شان دي او د**تطيب** ضمير **سلمى** طرف ته راجع دي او **نفساً** **تطيب** **سلمى** طرف ته نسبت دوجې نه تمييز دي .

(۲) په **كاد** کې ضمير مستتر حبيب طرف ته راجع دي او **نفساً** د**كاد** ضمير طرف ته دنسبت دوجې نه تمييز دي او**يطيب** دواحد مذكر غائب صيغه ده .

په دې احتمالاتو کې داول احتمال مطابق ددغه حضراتو استدلال صحيح دي ځکه چې داول احتمال مطابق تمييز **نفساً** دعامل **تطيب** دي او **نفساً** ددې نه مقدم دي ددې نه معلومه شوه چې كله دتمييز عامل فعل وي نوداپه تمييز باندې مقدم كيدي شي .

ليكن ددويم احتمال مطابق دهغوي استدلال صحيح نه دي ځكه چې په دې وخت کې دنفساً عامل **كاد** دي او **نفساً** ددې نه مؤخر دي مقدم نه دي .

**دشعر ترجمه** :داول احتمال مطابق دشعر معنى به داوي چې : ولې به سلمى خپل محبوب لره په فراق کې مبتلا کړي ، حالانكه شان دادې چې هغه سلمى دجهته دنفس نه فراق نه خوښوي .

ددويم احتمال مطابق به دشعر معنى داوي : چې ولې به سلمى خپل محبوب په فراق کې مبتلا کړي حالانكه هغه حبيب د جهته دنفس نه په فراق کې خوشحاله نه دي .

**وما قيل ليحتمل**: په دې عبارت سره شارح دبعضې نحويانو ترديد كوي بعضې خلكو دا ويلي دي چې كه چيرته **تطيب** دواحد مؤنث غائب صيغه وي نوامام مازني اومبرد استدلال صحيح نه دي ، ځكه چې ممكنه ده چې په **تطيب** کې ضمير **حبيب** طرف ته راجع وي اودې لره مؤنث راوړل ددې وجې نه وي چې هغه د**نفس** په تاويل کې وي ځكه چې معنى داده چې **وماكادت نفس الحبيب** ليكن شارح وايي چې داتكلف داعتدال دلارې نه كوږوالي اختيارول دي اوددوې په استدلال کې مفر نه دي تكلف ځكه چې دي داخلاف ظاهر دي تعسف ځكه دي چې دسياق كلام مخالف دي ځكه چې د سياق كلام تعجب د سلمى په باره کې دي د حبيب په باره کې نه دي .

# ﴿اَلْمُسْتَثْنٰى﴾ :

# د مستثنى تعريف :

اَلْمُسْتَثْنٰى اَىْ مَا يُطْلَقُ عَلَيْهِ لَفْظُ الْمُسْتَثْنٰى فِىْ اِصْطِلَاحِ النُّحَاةِ عَلٰى قِسْمَيْنِ وَ لَمَّا

مستثنى يعني هغه چې اطلاق كيږي په دې باندې لفظ د مستثنى په اصطلاح د نحاتو كې په دوه قسمه دې اوهر

كَانَ مَعْلُوْمِيَّتُهُ بِهٰذَا الْوَجْهِ الْغَيْرِ الْمُحْتَاجِ اِلَى التَّعْرِيْفِ كَافِيَةً فِىْ تَقْسِيْمِهٖ اِلٰى قِسْمَيْنِ

كله چې معلوميدو په دې وجهې سره چې محتاج نه دې د تعريف نو دا كافي وه په تقسيم كې نو تقسيم بې كړو دوه

وَ عَرَّفَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِاَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا اَحْكَامًا خَاصَّةً لَا يُمْكِنُ

قسمونو ته اوتعريف يې وكړو د هر يو د دې دواړونه خكه د هر يو د پاره د دې دواړونه احكام خاص چې نه وي ممكن

اِجْرَاؤُهَا عَلَيْهِ اِلَّا بَعْدَ مَعْرِفَتِهٖ فَقَالَ مُتَّصِلٌ وَ مُنْقَطِعٌ فَالْمُتَّصِلُ هُوَ الْمُخْرَجُ اَىِ

اجراء د دې په دې باندې مګر پس د معرفت نه نو وې ويل متصل او منقطع نو متصل هغه دې چې خارجيږي يعني

الْاِسْمُ الَّذِىْ اُخْرِجَ وَاحْتَرَزَ بِهٖ عَنْ غَيْرِ الْمُخْرَجِ كَجُزْئِيَّاتِ الْمُسْتَثْنٰى الْمُنْقَطِعِ عَنْ حُكْمِ

هغه اسم دې چې ويستل كيږي او احترازيې وكړو په دې سره د غير مخرج نه لكه جزئيات د مستثنى منقطع د حكم

شَىْءٍ مُتَعَدِّدٍ جُزْئِيَّاتِهٖ نَحْوُ مَا جَاءَنِىْ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدًا اَوْ اَجْزَاؤُهٗ مِثْلُ اِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ اِلَّا نِصْفَهٗ سَوَاءٌ

د داسې څيز نه چې متعدد وي جزئيات د دې لكه ماجاءني احد الازيدا او يا اجزاء د دې لكه اشتريت العبد الا نصفه برابره

كَانَ ذٰلِكَ الْمُتَعَدِّدُ لَفْظًا اَىْ مَلْفُوْظًا نَحْوُ جَاءَنِى الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا اَوْ تَقْدِيْرًا اَىْ مُقَدَّرًا نَحْوُ مَا جَاءَنِىْ اِلَّا زَيْدًا اَىْ

خبره ده كه وي دا متعدد د لفظا يعني ملفوظ وي لكه جاءني القوم الازيدا او يا تقديرا يعني مقدر لكه جاءني الازيدا يعني

مَا جَاءَنِىْ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدًا بِاِلَّا غَيْرِ الصِّفَةِ وَاَخَوَاتِهَا وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنْ نَحْوُ جَاءَنِى الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا

ماجاءني احد الازيد په الاغير صفتيه سره او د اخواتو د دې او احترازيې وكړو په دې سره د دې مثال جاءني القوم الازيدا. و

وَ مَا جَاءَنِى الْقَوْمُ لٰكِنْ زَيْدٌ جَاءَ وَ الْمُسْتَثْنٰى الْمُنْقَطِعُ هُوَ الْمَذْكُوْرُ بَعْدَهَا اَىْ بَعْدَ اِلَّا وَ اَخَوَاتِهَا

ماجاءني القوم لكن زيد جاء نه او مستثنى منقطع دا هغه ده چې مذكور وي پس د دې، نه يعني پس د الا او د اخواتو نه چې

غَيْرَ مُخْرَجٍ عَنْ مُتَعَدِّدٍ وَاحْتَرَزَ بِهٖ عَنْ جُزْئِيَّاتِ الْمُسْتَثْنَى الْمُتَّصِلِ فَالْمُسْتَثْنَى الَّذِىْ لَمْ يَكُنْ

ويستونكي نه وي د متعدد نه او احترازيې وكړو په دې سره د جزئياتو د مستثنى متصل نه نو مستثنى هغه چې نه وي

دَاخِلًا فِى الْمُتَعَدِّدِ قَبْلَ الْاِسْتِثْنَاءِ مُنْقَطِعٌ سَوَاءٌ كَانَ مِنْ جِنْسِهٖ كَقَوْلِكَ جَاءَنِى الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا

داخل په متعدد كې مخكې د استثنا منقطع دې برابره خبره ده كه د دې جنس نه وي لكه د اقول ستا جاءني القوم الازيد

مُشِيْرًا بِالْقَوْمِ اِلٰى جَمَاعَةٍ خَالِيَةٍ عَنْ زَيْدٍ وَ لَمْ يَكُنْ نَحْوُ جَاءَنِى الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا.

چې اشاره يې كړې په قوم سره يو جماعت ته چې خالي وي د زيد نه او يا نه وي د دې د جنس نه لكه جاءني القوم الاحمارا

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيې دمنصوباتو اتم (٨) قسم د مستثنی تعريف اوددې احکامات بيانوي ، مستثنی په دوه (٢) قسمه ده . (١) متصل . (٢) منقطع :

(١) دمستثنی متصل تعريف دادې چې دمتعدد نه وويستلي شي لفظاً ياتقديراً د الا اوددې داخواتو سره مثال لکه جاءني قوم الا زيداً .

(٢) اودمستثنی منقطع تعريف دادې چې د الا اوددې د اخواتو نه وروستو مذکور وي دمتعدد نه ويستلي شوي نه وي مثال لکه جاءني القوم الاحماراً .

**اغراض دجامي** : اى ما يطلق عليه لفظ المستثنی: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمستثنی تقسيم متصل اومنقطع طرف ته دا تقسيم الشيء الى نفسه دي ځکه چې مستثنی دادباب استفعال نه داسم مفعول صيغه ده چې ددې معنی ده مخرج (ويستلې شوي) او مخرج متصل وي منقطع نه وي بيا ددې دوه (٢) قسمونه دي : (١) متصل (٢) اومنقطع حالانکه کوم چې دمتعدد نه ويستلي شوي وي هغه مستثنی متصل وي منقطع نه وي نو دا تقسيم الشيء الى نفسه دي .

**جواب** : دلته دمستثنی لغوي معنی مراد نه ده بلکې دنحويانو په نزد چې کومه اصطلاحي معنی ده نوهغه مراد ده اګرچې دلغوي معنی په اعتبار سره دمستثنی اطلاق په مستثنی منقطع باندې صحيح نه دي ليکن داصطلاحي معنی په اعتبار سره دمستثنی اطلاق په مستثنی منقطع باندې صحيح دي لهذا تقسيم الشيء الى نفسه نه دي .

في اصطلاح النحاة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمستثنی تقسيم متصل اومنقطع ته باطل دي ځکه چې استثناء ويلې شي تکلم بالباقي بعد الاستثناء اودامعنی په مستثنی متصل کې متصور کيدې شي په مستثنی منقطع کې نه شي متصور کيدې .

**جواب** : تاسو چې کومه معنی بيان کړي ده نودا داصوليينو په نزد ده اوزمونږ بحث په نحوې کې دې اودنحويانو په نزد دمستثنی تعريف دادې چې د الا اوددې داخواتو نه وروستو مذکور وي برابره خبره ده چې دمستثنی منه نه مخرج (ويستلې شوي) اويا نه وي ويستلې شوي لهذا

تعریف په دواړو باندې صدق راځي

**علی قسمین**: په دې عبارت سره غرض د شارح د دوه سوالینو مقدرو جواب ورکول دي:

**سوال (۱)**: دامقام دتقسیم دي چې دمستثنی تقسیم کیږي اوپه مقام دتقسیم کې دادواتو دحصر کیدل ضروري دي اوهغه دلته نشته دي.

**سوال (۲)**: المستثنی مبتدا ده اومتصل اومنقطع ددې خبر دي حالانکه دې لره خبر جوړول صحیح نه دي ځکه چې مستثنی عام اومتصل دي اوحمل دعام په خاص باندې باطل دي.

**جواب**: دالمستثنی خبر هغه **قسمین** دي چې محذوف دي چې ددې نه حصر پیژندلې شي او دویم اشکال هم رفع کیږي.

**ولماکان**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دیو څیز دتقسیم نه مخکې ددې څیز تعریف کولې شي دیو څیز تقسیم کول دتعریف نه په غیر صحیح نه دي ځکه چې تقسیم فرعه ده دتعریف لیکن مصنف رحمه الله دتعریف نه مخکې په تقسیم څنګه شروع وکړه؟.

**جواب**: دتقسیم دپاره دمقسم معرفت بالتعریف ضروري نه دي بلکه **معرفت بوجهٍ ما** کافي دي او دلته معرفت **بوجهٍ ما** حاصل دي ځکه چې کله مستثنی وویلې شي نو ددې نه دا خبره معلومیږي چې مستثنی هغه څیز دي چې په دې باندې دنحویانو په نزد لفظ مستثنی وویلې شي همدارنګې په دې مذکوره عبارت سره په علامه جامي رحمه الله دشیخ رضي رد هم دي، دتعریف نه کولو وجه دانه ده کومه چې تاذکر کړي ده ځکه چې مطلق دمستثنی تعریف متعذر نه دي مثلاً داتعریف یې کړي دي چې: **المستثنی مایذکر بعد الا واخواتها** اوداتعریف متصل او منقطع دواړو ته شامل دي بلکه دتعریف نه کولو وجه داده چې دتقسیم دپاره تعریف ضروري نه دي بلکه صرف **بوجهٍ ما** کافي دي.

**وعرف کل واحد منهما**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: کله چې تقسیم دپاره معرفت **بوجهٍ ما** کافي وو نو مصنف رحمه الله دهر یو تعریف ولې وکړو؟

**جواب**: دهریو دپاره خاص احکام دي اوددې اجراء په دې باندې ددې دمعرفت نه په غیر نه

صحيح کيږي د دې وجې نه د هريو تعريف بې ذکرکړ

**فالمتصل**: په دې عبارت سره د مستثنى متصل تعريف بيانوي چې مستثنى متصل هغه د د کومه چې د الا او د دې د نظائرو نه وروستو واقع وي او د الا او د دې د اخواتو په ذريعه د شئ متعدد نه خارج کړې شوي وي برابره خبره ده که د غه شئ متعدد ملفوظ وي او يا مقدر.

**اى للاسم**: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د ترکيب دي چې **المخرج** صفت دي د موصوف محذوف چې الاسم دي.

**الذي**: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د ترکيب دي چې د **المخرج** الف لام د **الذي** په معنى کې دي مخرج په معنى د اخرج دي.

**واحترز**: په دې عبارت سره غرض د شارح د قيد فائدې بيانول دي چې د مخرج قيد احترازي دي په دې سره غير مخرج يعنې د مستثنى منقطع جزئيات خارجول مقصود دي.

**حکم شئ**: په دې عبارت سره غرض د شارح بيان د ترکيب دي چې متعدد صفت دي د موصوف محذوف چې **شئ** دي موصوف د خپل صفت سره مضاف اليه شو د حکم.

**جزئياته**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د مستثنى متصل تعريف جامع نه دي ځکه چې د اتعريف په هغه نصفه باندې صادقيږي کوم چې په **اشتريت العبد نصفه** کې واقع دي ځکه چې د متعدد نه متبادر په اعتبار د جزئياتو سره کيږي او نصفه متعدد بحسب الجزئيات نه مخرج نه دي بلکه دا متعدد **من حيث الاجزاء** نه مخرج دي حالانکه دا مستثنى ده.

**جواب**: په متعدد کې تعميم دي برابره خبره ده که په اعتبار د جزئيات وي او يا په اعتبار د اجزاو سره وي، د متعدد په اعتبار د جزئياتو سره مثال لکه **ماجاءني احد الا زيداً** د متعدد په اعتبار د اجزاو سره مثال لکه **اشتريت العبد الا نصفه**.

**سواءٌ**: په دې عبارت سره بيان د ترکيب دي **لفظاً** او **تقديراً** د اد اسم مفعول په معنى کې خبر دي د **کان** محذوف.

**اى ملفوظاً....اى مقدراً**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : دکان خبر په اسم باندې حمل وي دلته حمل صحیح نه دي ځکه چې **لفظاً او تقدیراً** مصدر دي او د مصدر حمل په ذات باندې نه شي کیدي .

**جواب** : مصدر داسم مفعول ملفوظاً په معنی سره دي لهذا حمل یې صحیح دي .

غیر الصفة : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمستثنی تعریف دخول دغیر نه مانع نه دي ځکه چې داتعریف په **لا اله الا الله** کې په لفظ د الله باندې صادق راځي او دا د الا په ذریعې سره دمتعدد نه خارج دي حالانکه دا مستثنی نه ده

**جواب** : دالا نه مراد الاغیر صفتیه ده او په ذکر شوي مثال کې الا صفتیه ده غیر صفتیه نه ده .

واحترز : په دې عبارت سره شارح دالا اوددې داخواتو دقید فائده بیانوي ددې قید نه احتراز دي **جاءني القوم لا زید** او **ما جاءني القوم لکن زیداً جاء** ځکه چې په دې دواړو مثالونو کې زید اګر که دمتعدد نه خارج دي لیکن الا اوددې داخواتو په ذریعې سره خارج نه دي بلکه د لا او د لکن په ذریعې سره مخرج دي .

والمنقطع : په دې عبارت سره دمستثنی ددویم قسم منقطع تعریف کوي چې مستثنی منقطع هغه ده چې د الا اوددې دنظائرو نه وروستو ذکر وي او هغه دمتعدد نه خارج نه وي .

المستثنی : په دې عبارت سره غرض دشارح بیان دترکیب دي چې **المنقطع** داصفت دي د موصوف محذوف .

واحترز : په دې عبارت سره غرض دشارح دغیر مخرج قید فائده بیانوي په دې سره احتراز دي د مستثنی متصل دجزئیاتو نه .

المستثنی الذي : په دې عبارت سره غرض دشارح په بعضې نحویانو باندې لکه علامه رضي وغیره باندې رد کول دي چې دوي ویلي دي چې مستثنی متصل هغه ده چې دمستثنی منه د جنس نه وي او منقطع هغه ده چې دمستثنی منه دجنس نه ، نو وي شارح ددې رد کوي چې هغه مستثنی چې داستثناء نه مخکې په متعدد کې داخل نه وي هغه منقطع ده داعامه ده چې هغه دمستثنی منه دجنس نه وي او یانه وي دمستثنی منه دجنس مثال لکه **جاءني القوم الا زید** وویلې شي او دقوم نه مراد هغه جماعت واخستلې شي کوم چې د زید نه خالي وي ، او دهغې

مستثنى مثال چې دجنس د مستثنى منه نه ، نه وي د دې مثال لکه جاءني القوم الا حماراً.

## د مستثنى په اعتبار د اعراب سره اول قسم :

| |
|---|
| وَ هُوَ اَيِ الْمُسْتَثْنٰى مُطْلَقًا حَيْثُ عُلِمَ اَوَّلًا بِوَجْهٍ يُصَحِّحُ تَقْسِيْمَهٗ كَمَا |
| او دا يعنې مستثنى مطلق په داسې شان سره چې معلوم ميږي اول په داسې شان سره چې صحيح وي تقسيم د دې لکه |
| عَرَفْتَ وَ ثَانِيًا بِمَا يُتَفَطَّنُ لَهٗ مِنْ تَعْرِيْفِ قِسْمَيْهِ اَعْنِي الْمَذْكُوْرِ بَعْدَ اِلَّا وَ |
| څنګه چې تا وپيژندل او دويم هغه چې معلوميږي د تعريف د دواړو قسمونو چې قصد کوم يې مذکور وي پس د الا او د |
| اَخَوَاتِهَا سَوَاءٌ كَانَ مُخْرَجًا اَوْ غَيْرَ مُخْرَجٍ وَ لِهٰذَا لَمْ يُعَرِّفْهُ عَلٰى حِدَةٍ رَوْمًا لِلْاِخْتِصَارِ |
| اخواتونه برابره خبره ده که خارج وي او يا غير خارج او د دې وجې نه يې تعريف و نه کړو جدا د وجې د اختصار نه |
| مَنْصُوْبٌ وُجُوْبًا اِذَا كَانَ وَاقِعًا بَعْدَ اِلَّا لَا بَعْدَ غَيْرَ وَ سِوٰى وَ غَيْرِهِمَا غَيْرِ الصِّفَةِ قَيَّدَ بِهٖ |
| منصوب وي وجوبا چې کله واقع وي پس د الا نه ، نه پس د غير او د سوى او غير د دې نه غير الصفة مقيد يې کړو په دې سره |
| وَاِنْ لَمْ يَكُنِ الْوَاقِعُ بَعْدَ اِلَّا الَّتِيْ لِلصِّفَةِ دَاخِلًا فِي الْمُسْتَثْنٰى لِئَلَّا يُذْهَلَ عَنْهُ فِيْ كَلَامٍ مُوْجَبٍ |
| اګر که واقع نه وي پس د الا صفتيه نه داخل په مستثنى کې د دې د پاره چې په غفلت کې پاتې نه شي په کلام موجب |
| اَيْ لَيْسَ بِنَفْيٍ وَلَا نَهْيٍ وَلَا اسْتِفْهَامٍ نَحْوُ جَاءَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا اَوْ اِحْتَرَزَ بِهٖ عَمَّا اِذَا وَقَعَ |
| کې يعنې نه وي نفي او نه نهي او نه استفهام لکه جاءني القوم الا زيدا او احتراز يې وکړو په دې سره د هغه څه نه چې واقع |
| فِيْ كَلَامٍ غَيْرِ مُوْجَبٍ لِاَنَّهٗ لَيْسَ حِيْنَئِذٍ وَاجِبَ النَّصْبِ عَلٰى مَا سَيَجِيْءُ وَلَا |
| وي په کلام غير موجب کې ځکه نه وي په دې وخت کې واجب نصب بنا په هغه څه چې نژدې به راشي او نشته دي |
| حَاجَةَ هٰهُنَا اِلٰى قَيْدٍ اٰخَرَ وَ هُوَ اَنْ يَكُوْنَ الْكَلَامُ الْمُوْجَبُ تَامًّا بِاَنْ يَكُوْنَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ مَذْكُوْرًا فِيْهِ لِيَخْرُجَ |
| حاجت دلته بل قيد ته او هغه دا چې وي کلام موجب تام چې وي مستثنى منه مذکور په دې کې د دې د پاره چې خارج |
| نَحْوُ قَرَاْتُ اِلَّا يَوْمَ كَذَا فَاِنَّهٗ مَنْصُوْبٌ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ لَا عَلَى الْاِسْتِثْنَاءِ لِاَنَّ الْكَلَامَ فِيْ كَوْنِهٖ |
| شي دا مثال لکه قرأت الا يوم کذا ځکه دا منصوب وي بنا بر ظرفيت نه بنا بر استثناء ځکه کلام په کيدو د دې کې |
| مَنْصُوْبًا مُطْلَقًا لَا فِيْ كَوْنِهٖ مَنْصُوْبًا عَلَى الْاِسْتِثْنَاءِ بِدَلِيْلِ قَوْلِهٖ اَوْ كَانَ بَعْدَ خَلَا وَ عَدَا اِلَّا |
| منصوب مطلق نه په کيدو د دې کې منصوب بنا بر استثنا په دليل د دې قول د مصنف سره او کان بعد خلا وعدا مګر |
| اَنْ يُقَالَ الْحَاجَةُ اِلٰى هٰذَا الْقَيْدِ اِنَّمَا هُوَ لِاِخْرَاجِ مِثْلِ قُرِئَ اِلَّا يَوْمَ كَذَا فَاِنَّهٗ مَرْفُوْعٌ |
| چې وويل شي چې ضرورت دې قيد ته دا دې د پاره د خارجولو د دې مثال لکه قرئ الا يوم کذا ځکه دا مرفوع دي |
| وُجُوْبًا لَا مَنْصُوْبٌ. |
| وجوبا نه منصوب. |

**خلاصه دمتن** : مستثنی په اعتبار داعراب سره په څلور (۴) قسمه دي : (۱) نصب واجب. (۲) دواړه وجهې جائز. (۳) اعراب په اعتبار دعواملو سره. (۴) مجرور.

**اغراض دجامي** : وهو منصوب: په دې عبارت سره شارح دمستثنی اول قسم بیانوي چې ددې حاصل دادې چې کله مستثنی د الا غیر صفتیه نه وروستو په کلام موجب کې واقع وي نو داپه واجبي طور باندې منصوب وي.

ای المستثنی: په دې عبارت سره شارح د هُوَ ضمیر مرجع بیانوي چې ددې مرجع مطلق مستثنی ده.

حیث علم: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : مستثنی مطلق خو په ماقبل کې مذکور نه ده نو دې طرف ته ضمیر راجع کیدل به څنګه صحیح وي ؟.

**جواب** : مطلق مستثنی خو معلوم شوي ده اول ددې وجې نه چې ددې تصور بوجهٍ ما معلوم شوي ده اودغه وجه دتقسیم دپاره صحیح وه دویم ددې وجې نه چې دمستثنی ددوه قسمونو د تعریف نه مطلق دمستثنی تعریف ضمناً معلوم شوي دي چې مستثنی هغه ده کومه چې د اِلاَّ او ددې دنظائرو نه پس واقع وي برابره خبره ده که د متعدد نه ویستلي شوي وي اویا نه وي.

وجوباً: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : دمصنف قول وهو منصوب او وروستي قول یعنې ویجوز فیه النصب په دې کې څه فرق نشته دي ځکه چې په دواړو کې دنصب ذکر دي نو ددې تقابل څنګه صحیح شو ؟

**جواب** : دلته دنصب نه مراد وجوباً دي اوهلته دنصب نه مراد جوازاً دي نو لهذا تقابل صحیح شو.

واقعاً: په دې عبارت سره شارح بیان دترکیب کوي د واقعاً په اضافه کولو سره یې دې خبرې طرف ته اشاره وکړه چې وروستو د الا نه ددې متعلق محذوف دي چې واقعاً دي اوهغه دکانَ خبر دي.

لا بعد غیر: په دې عبارت سره شارح دا بیانوي چې د الا نه وروستو قید احترازي دي دهغه استثناء احتراز دي کوم چې د غیر ، سوا نه وروستو واقع کیږي.

قيده به: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: الا لره په غير صفتيه قيد سره دمقيد کولو هيڅ فائده نشته دي ځکه چې هغه اسم کوم چې د الا صفتيه نه وروستو واقع وي نو هغه مستثنی نه وي.

**جواب**: هغه لفظ کوم چې د الا صفتيه نه وروستو واقع وي اګرچې هغه مستثنی نه وي ليکن مصنف ددې اضافه وکړه چې ذهول ونه شي.

اى ليس: په دې عبارت سره شارح دموجب معنی بيانوي چې کلام موجب هغه دي په کوم کې چې نفي، نهي او استفهام نه وي، مثال لکه جاءني القوم الا زيداً.

واحترز به: په دې عبارت سره شارح دکلام موجب فائده بيانوي په دې سره دهغه مستثنی نه احتراز دي کوم چې په کلام غير موجب کې واقع وي ځکه چې هغه واجب النصب نه وي.

ولا حاجة: په دې عبارت سره غرض دشارح په بعضې نحويانو يعنې په علامه فاضل هندي وغيره باندې ردکول دي چې بعضې نحويانو ويلي دي چې مصنف لره په کار وو چې ديوبل قيد اضافه يې کړې وي هغه داچې کلام موجب تام وي په دې طريقې باندې چې په دې کې مستثنی منه مذکور وي قرأت الا يوم كذا په دې سره خارج کيدو ځکه چې په دې کې يوم كذا د الا غير صفتيه نه وروستو په کلام موجب کې واقع دي حالانکه منصوب على الاستثناء نه ده بلکه منصوب على الظرفية دي، شارح دلته ددې رد وکړو چې ددې قيد څه ضرورت نشته ځکه چې ددې قيد ضرورت په هغه وخت کې وو کله چې بحث منصوب على الاستثناء کې وي اودلته بحث په مطلق منصوب کې دي نه منصوب على الاستثناء کې نه دي ددې دليل دمصنف قول اوكان بعد خلا الى آخره دي ځکه چې د خلا، عدا نه وروستي اسم دمفعول به په بناء باندې منصوب وي داستثناء په بناء باندې منصوب نه وي.

الا ان يقال: په دې عبارت سره غرض دشارح په بعضې نحويانو باندې ردکول دي اوپه دوي باندې اعتراض کول دي:

**اعتراض**: اګرچې دذکر شوي اخراج دپاره ددې قيد داضافې ضرورت نه وو ليکن دې اليوم لره دخارج کيدو دپاره ددې قيد بياضرورت دي چې قرئ الا يوم كذا نه وروستو واقع دي ځکه چې داد الا غير صفتيه نه وروستو په کلام موجب کې واجب دي حالانکه هغه منصوب نه دي

بلکه مرفوع دي دنائب فاعل په بناء باندې

**جواب** : دمصنف دطرف نه داجواب ورکړي شوي دي چې مصنف ددې دوه مثالونو داخراج دپاره دا قید نه دي لږولي چې دادهغه قاعدې نه په منزله داستثناء دي ځکه چې دامابعد د مصنف قول ويعرب على حسب العوامل کې داخل دي .

## دمستثنی دمنصوب عامل بیان :

| |
|---|
| وَ الْعَامِلُ فِيْ نَصْبِ الْمُسْتَثْنٰى إِذَا كَانَ مَنْصُوْبًا عَلَى الْإِسْتِثْنَاءِ عِنْدَ الْبَصْرِيَّةِ الْفِعْلُ الْمُتَقَدِّمُ أَوْ مَعْنَى الْفِعْلِ |
| اوعامل په نصب دمستثنی کې چې کله وي منصوب بنابراستثناء په نزددبصريانوفعل متقدم دي يامعنی دفعل |
| بِتَوَسُّطِ إِلَّا لِأَنَّهُ شَيْءٌ يَتَعَلَّقُ بِالْفِعْلِ أَوْ مَعْنَاهُ تَعَلُّقًا مَعْنَوِيًّا |
| په توسط دالاځکه چې داداسې څيزدي چې ددې تعلق وي دفعل اويادمعنی دفعل پورې په تعلق معنوي سره |
| إِذْ لَهُ نِسْبَةٌ إِلَى مَا نُسِبَ إِلَيْهِ أَحَدُهُمَا وَ قَدْ جَاءَ |
| ځکه دامنسوب دي داسې څيزته چې منسوب شوې دي طرف ته يوددې دواړونه اوپه تحقيق سره راغلي مستثنی |
| بَعْدَ تَمَامِ الْكَلَامِ فَشَابَهَ الْمَفْعُوْلَ. |
| پس دتمام والي دکلام نه نومشابه شوه دمفعول سره . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيه د مستثنی دمنصوب کيدو دعامل بيان کوي .

**اغراض دجامي** : <u>والعامل</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دمستثنی دمنصوب عامل بيانول ي کله چې مستثنی داستثناء په بناء باندې منصوب وي نو دبصري دنحويانو په نزد په دې کې عامل ناصب دفعل په معنی کې وي چې د الا دتوسط نه په مستثنی کې عامل وي .

<u>لانه</u> : په دې عبارت سره غرض دشارح دفعل اومعنی فعل په مستثنی کې دعامل کيدو وجه بيانول دي چې دمستثنی دفعل اومعنی فعل سره معنوي تعلق دي ځکه چې دمستثنی نسبت دمستثنی منه طرف ته کيږي کوم چې فاعل وي همدارنګې دفعل اودمعنی دفعل نسبت هم مستثنی منه ( فاعل ) طرف ته کيږي لهذا دمستثنی منه تعلق هم دفعل اودمعنی دفعل سره وي په بل عبارت سره مستثنی جزء وي مستثنی منه يعنې فاعل اومستثنی منه ( فاعل ) جزء وي دفعل يوه بله قاعده ده چې جزء الجزء للشئ جزء لذلک الشيء چې جزء دجزء دشي دا جزء وي ددې شئ دپاره ، نو په دې اعتبار سره مستثنی دفعل دپاره داپه منزله دجزء جوړيږي لکه

څنګه چې فاعل په منزله دجزء دفعل وي ځکه چې فعل په دې کې عامل وي لکه څنګه چې په فاعل کې عامل وي

**فائده** : شارح دجامي په دې قول سره په علامه عبدالقاهر جرجاني رحمه الله باندې هم رد کوي چې دا وايي چې په مستثنی منه کې عامل کلمه دالا ده نو شارح دجاميددې رد وکړو چې عامل فعل دې ځکه چې قوي کيدو سره ضعيف ته عمل ورکول جائز نه دي .

وقد جاء بعد تمام الکلام : په دې عبارت سره غرض دشارح دمستثنی منه دمنصوب کيدو وجه بيانوي په دې باندې نصب ځکه وي چې دا کلام دتام کيدو نه وروستو واقع کيږي لکه څنګه چې مفعول دفعل دفاعل سره دتام کيدو نه وروستو واقع کيږي پس دادمفعول مشابه شو او مفعول منصوب وي نو لهذا مستثنی به هم منصوب وي .

## دمستثنی دمنصوب کيدو دويم صورت :

| |
|---|
| اَوْ مُقَدَّماً عَطْفٌ عَلٰی قَوْلِهٖ بَعْدِ اِلَّا اَيِ الْمُسْتَثْنٰی مَنْصُوْبٌ وُجُوْباً اِذَا کَانَ الْمُسْتَثْنٰی |
| اويامقدم وي داعطف دي په دې قول دمصنف باندې چې بعدالايعني مستثنی منصوب وي وجوباچې کله وي |
| مُقَدَّماً عَلَی الْمُسْتَثْنٰی مِنْهُ سَوَاءٌ کَانَ فِيْ کَلَامٍ مُوْجَبٍ اَوْ غَيْرِهٖ نَحْوُ جَاءَنِيْ اِلَّا |
| مستثنی مقدم په مستثنی منه باندې برابره خبره ده که په کلام موجب کې وي او که په غير موجب کې لکه جاءني الا |
| زَيْداً نِ الْقَوْمِ وَمَا جَاءَنِيْ اِلَّا زَيْداً اَحَدٌ لِاِمْتِنَاعِ تَقْدِيْمِ الْبَدَلِ عَلَی الْمُبْدَلِ مِنْهُ. |
| زيداً ن القوم وماجاءني الازيداً احد وجې'د امتناع د تقديم د بدل په مبدل منه باندې . |

**خلاصه دمتن** : دمستثنی منصوب وجوباً دويم صورت ذکر کوي چې کله مستثنی په مستثنی منه باندې مقدم وي نو په دې صورت کې هم مستثنی په وجوبي طور باندې منصوب وي .

**اغراض دجامي** : عطف علی قوله: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې مقدماً په بعد الا باندې عطف دي .

ای المستثنی: په دې عبارت سره شارح دعطف حاصل بيانوي مستثنی وجوبي طور باندې په هغه وخت کې منصوب وي چې کله دادمستثنی منه نه مقدم وي .

سواء: په دې عبارت سره شارح بيان دتعميم کوي برابره خبره ده چې په کلام موجب کې وي يا په کلام غير موجب کې دکلام موجب مثال لکه جاءني الا زيد القوم ، دکلام غير موجب مثال

لکه ماجاءني الا زيد احد.

لامتناع: په دې عبارت سره شارح په دې صورت کې دنصب دوجوب وجه بيانوي چې که نصب واجب نه وي نو دابه دمستثنى منه تابع وي دبدليت په بناء باندې حالانکه بدل په مبدل منه باندې نه شي مقدم کيدې خکه چې بدل تابع وي اوتابع په متبوع باندې نه شي مقدم کيدې کله چې نصب على البدل جائز نه وي نو نصب على الاستثناء به واجب وي.

## دمستثنی دمنصوب کيدو دريم صورت:

| |
|---|
| اَوْ مُنْقَطِعًا اَيِ الْمُسْتَثْنٰى مَنْصُوْبٌ اَيْضاً وُجُوْباً اِذَا كَانَ مُنْقَطِعًا بَعْدَ اِلَّا نَحْوُ مَا فِي الدَّارِ اَحَدٌ اِلَّا حِمَارًا فِي الْاَكْثَرِ |
| يامنقطع وي يعنې مستثنى منصوب وي وجوبا کله چې منقطع وي پس دالانه لکه مافي الدار احد الا حمارا په اکثر |
| اَىْ فِيْ اَكْثَرِ اللُّغَاتِ وَهِيَ لُغَةُ اَهْلِ الْحِجَازِ فَاِنَّهُمْ قَبَائِلُ كَثِيْرُوْنَ اَوْ فِيْ اَكْثَرِ مَذَاهِبِ النُّحَاةِ فَاِنَّ |
| کې يعنې په اکثر لغات کې اوهغه لغت داهل حجاز دې خکه دوې قبائل دې ډيراو يا په اکثر مذاهبو دنحويانو خکه |
| اَكْثَرَهُمْ ذَهَبُوْا اِلَى اللُّغَةِ الْحِجَازِيَّةِ فَالْمُنْقَطِعُ مُطْلَقًا مَنْصُوْبٌ عِنْدَهُمْ اِذْ لَا يُتَصَوَّرُ فِيْهِ |
| اکثر ددوې ذهاب کړې لغت دحجازيو ته نومنقطع مطلقا منصوب دې ددوې په نزد خکه نه دې متصور په دې کې |
| اِلَّا بَدَلُ الْغَلَطِ وَ هُوَ لَا يَصْدُرُ اِلَّا بِطَرِيْقِ السَّهْوِ وَ الْغَفْلَةِ وَ الْمُسْتَثْنَى الْمُنْقَطِعُ اِنَّمَا يَصْدُرُ بِطَرِيْقِ |
| مګربدل غلط اودانه صادرېږي مګرپه طريقې دسهوې اوغفلت سره اومستثنى منقطع داصادرېږي په طريقې د |
| الرَّوِيَّةِ وَ الْفَطَانَةِ وَ اَمَّا بَنُوْ تَمِيْمٍ فَقَدْ قَسَّمُوْا الْمُنْقَطِعَ اِلٰى قِسْمَيْنِ اَحَدُهُمَا مَا يَكُوْنُ قَبْلَهُ |
| طريقې دفکر اودعقل سره اوهرچې بنوتميم دې نو دوې تقسيم کړې منقطع دوه قسمونو ته يو هغه چې وي مخکې |
| اِسْمٌ يَصِحُّ حَذْفُهُ نَحْوُ مَا جَاءَنِي الْقَوْمُ اِلَّا حِمَاراً فَهٰهُنَا يُجَوِّزُوْنَ الْبَدَلَ وَ ثَانِيْهِمَا |
| ددې نه اسم چې صحيح وي حذف ددې لکه ماجاءني القوم الاحمارا نو دلته جائز کوي بنو تميم بدل او دويم هغه دې چې |
| مَا لَا يَكُوْنُ قَبْلَهُ اِسْمٌ يَصِحُّ حَذْفُهُ فَهُمْ هٰهُنَا يُوَافِقُوْنَ الْحِجَازِيِّيْنَ فِيْ اِيْجَابِ |
| نه وي مخکې ددې نه داسې اسم چې صحيح وي حذف ددې نو مونږ دلته موافقه کوو دحجازيانو سره په واجب |
| نَصْبِهٖ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اَىْ رَحِمَهُ اللّٰهُ فَمَنْ |
| کولو نصب دمستثنى کې لکه داقول دالله تعالى لاعاصم اليوم من امر الله الا من رحم يعنې من رحمه الله نو هغه |
| رَحِمَهُ اللّٰهُ هُوَ الْمَرْحُوْمُ الْمَعْصُوْمُ فَلَا يَكُوْنُ دَاخِلًا فِي الْعَاصِمِ فَيَكُوْنُ مُنْقَطِعًا. |
| حوک چې رحم وکړې الله په هغه باندې نو دامرحوم اومعصوم وي نو دانه داخل په عاصم کې نو وي به دامنقطع |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره صاحب دکافيې دابيانوي چې کله مستثنى منقطع وي نو په دې وخت کې مستثنى وجوبي طور باندې په منصوب وي په اکثر لغت کې مثال لکه ماني

الدار احد الا حماراً

**اغراض دجامي** : اي في الاكثر : ددې اكثر په باره كې دوه (۲) احتماله دي

(۱) داكثر نه مراد اكثر لغات دي

(۲) يا ددې نه مراد اكثر استعمال دي

اي في اكثر اللغات وهي الخ : په دې عبارت سره شارح بيان دمصداق كوي چې داكثر لغات مصداق داهلِ حجازو لغت دي .

فانهم : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي .

**سوال** : اهلِ لغت خو دوه فريقه دي : (۱) اهلِ حجاز . (۲) بنو تميم . نوداهل حجازو دپاره اكثريت څنګه ثابت شو ؟

**جواب** : داهل حجازو ډير زيات قبائل دي اودلته اكثريت دقبائلو په اعتبار سره دي .

اوفي اكثر مذاهب : په دې عبارت سره شارح ددويم مصداق بيان كوي چې داكثر مصداق كې دويم احتمال دادې چې ددې نه مراد اكثر المذاهب دي ځكه چې اكثر نحويان دحجازو دلغت طرف ته تللي دي .

الحاصل : داهلِ حجازو په نزد مستثنى منقطع مطلقاً منصوب وي دمطلقاً نه مراد دادې چې ددې نه مخكې داسې اسم وي چې هغې لره حذف كول جائز وي يا ددې نه مخكې داسې اسم نه وي چې هغې لره حذف كول جائز وي .

اذلا يتصور : په دې عبارت سره غرض دشارح ددې دمنصوب كيدو وجه بيانوي چې مستثنى منقطع كې غير دبدل الغلط نه څه بل صورت نه شي متصور كيدي اودا بدل الغلط هم نه شي جوړيدي ځكه چې بدل الغلط په طريقې دسهوې اوغفلت سره صادريږي اومستثنى منقطع دسوچ اوفكر نه وروستو صادريږي اوپه دې دواړو كې منافات دي كله چې دبدل والاعراب ممكن نه دي نو نصب متعين شو .

واما بنو تميم : په دې عبارت سره شارح داكثر مقابل بيانوي دبنوتميم په نزد كله چې مستثنى منقطع وي نو دې لره په دوه (۲) قسمه تقسيم كوي .

(۱) دمستثنى نه مخكې داسې اسم وي چې دې لره حذف كول جائز وي .

(۲) ددې نه مخكې داسې اسم نه وي چې هغې لره حذف كول جائز وي كه دمستثنى نه مخكې

داسې اسم وي چې هغې لره حذف کول جائز وي نو دې لره بدل جوړول جائز کوي مثال ماجاء القوم الا حماراً په دې کې حماراً بدل دې اوکه چیرته د مستثنی نه مخکې داسې اسم نه وي چې هغې لره حذف کول جائز دي نو هغوي داهل حجاز د موافقت د وجې نه په دې باندې نصب واجب کوي مثال دالله تعالی داقول دې چې لا عاصم الیوم من امر الله الا من رحم ، په دې کې عاصم لره حذف کول جائز نه دي لهذا من رحم په طور د استثناء نصب به واجب وي.

ای من رحمه الله: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال** : رحم خو یاد من صله ده یاددې صفت دي اوهغه جمله کومه چې صفت یاجمله وي نو هغې کې عائد کیدل ضروري وي اوپه دې کې عائد نشته دي.

**جواب** : دلته عائد محذوف دي تقدیر دعبارت من رحمه الله دي او د هٔ ضمیر مرجع الله تعالی دي لهذا اشکال رفع شو.

فمن رحمه الله: په دې سره دمستثنی دمنقطع کیدو وجه بیانوي چې د من رحمه الله نه مراد معصوم اومرحوم دي لهذا داپه عاصم کې داخل نه شو نو دا مستثنی منقطع شوه.

## د خلاو د عدانه پس د مستثنی د منصوب کیدو ذکر :

اَوْ كَانَ بَعْدَ خَلَا وَ عَدَا اَيِ الْمُسْتَثْنٰى مَنْصُوْبٌ اَيْضًا وُجُوْبًا اِذَا كَانَ بَعْدَ عَدَا مِنْ عَدَا يَعْدُوْ عَدْواً

اویاوي پس د خلااوعدانه یعني مستثنی منصوب وي همدارنګې وجوباچې کله وي پس د عداد عدا یعدو عدوانه

اِذَا جَاوَزَهُ مِثْلُ جَاءَنِي الْقَوْمُ عَدَا زَيْداًاَوْ بَعْدَ خَلَا مِنْ خَلَا يَخْلُوْ خُلُوًّا نَحْوُ جَاءَنِي الْقَوْمُ خَلَا زَيْداً وَهُ

چې کله ددې نه تجاوزو کړي لکه جاءني القوم عدا زیدااویاپس د خلانه د خلایخلوخلوانه لکه جاءني القوم خلازیدااود

فِي الْاَصْلِ لَازِمٌ يَتَعَدّٰى اِلَى الْمَفْعُوْلِ بِمَنْ نَحْوُ خَلَتِ الدِّيَارِ مِنَ الْاَنِيْسِ وَ قَدْ تَضَمَّنَ

په اصل کې لازم دي اوکله متعدي وي مفعول طرف ته په من سره لکه خلت الدیار من الانیس اوکله متضمن دي

مَعْنٰى جَاوَزَ اَوْ يُحْذَفُ مِنْ وَ يُوْصَلُ الْفِعْلُ فَيَتَعَدّٰى بِنَفْسِهٖ وَ الْتَزَمُوْا

معنی د جاوزته اویاحذف کولې شي من اورسوي خلافعل مفعول به ته نو خلامتعدي کیږي په خپله اوالتزام کړی

هٰذَا التَّضَمُّنَ اَوِ الْحَذْفَ وَ الْاِيْصَالَ فِيْ بَابِ الْاِسْتِثْنَاءِ لِيَكُوْنَ مَابَعْدَهَا مَنْصُوْبًا كَمَا فِيْ صُوْرَةِ

ددې تضمن اویاحذف اوایصال په باب داستثناء کې ددې دپاره چې ري مابعد ددې منصوب لکه په صورت د

الْمُسْتَثْنٰى بِاِلَّا الَّتِيْ هِيَ اُمُّ الْبَابِ وَ فَاعِلُهُمَا ضَمِيْرٌ رَاجِعٌ اِمَّا اِلٰى مَصْدَرِ الْفِعْلِ

مستثنی به الأ کې هغه چې هغه اصل وي ددې باب اوفاعل ددې دواړوضمیر دی چې راجع وي یامصدرد فعل

| الْمُتَقَدِّمِ اَوْ اِلَى اِسْمِ الْفَاعِلِ مِنْهُ اَوْ اِلَى بَعْضٍ مُطْلَقٍ مِنَ الْمُسْتَثْنَى مِنْهُ وَ التَّقْدِيْرِ |
|---|
| متقدم ته او يا اسم فاعل خود دې د فعل متقدم نه او يا بعضې مطلق د مستثنى منه طرف ته او تقدير د عبارت به دا سې |
| جَاءَنِي الْقَوْمُ عَدَا اَوْخَلَا مَجِيْئُهُمْ اَوِ الْجَائِيْ مِنْهُمْ اَوْ بَعْضٌ مِنْهُمْ زَيْدٌ وَهُمَا فِيْ مَحَلِّ النَّصَبِ عَلَى الْحَالِيَّةِ وَ |
| وي جاءني القوم عدا او خلا مجيئهم او يا الجائي منهم او بعض منهم زيدا او دا دواړه په محل د نصب کې دي بنا بر حاليت او |
| لَمْ يُظْهَرْ مَعَهُمَا قَدْ لِيَكُوْنَا اَشْبَهَ بِاِلَّا الَّتِيْ هِيَ الْاَصْلُ فِيْ بَابِ الْاِسْتِثْنَاءِ |
| ظاهريې نه کړو دې سره قد د دې وجې نه چې شي زيات مشابه د إلّا سره هغه چې هغه اصل دي په باب د استثناء |
| فِي الْاَكْثَرِ اَيِ النَّصَبِ بِهِمَا اِنَّمَا هُوَ فِيْ اَكْثَرِ الْاِسْتِعْمَالَاتِ لِاَنَّهُمَا فِعْلَانِ مَاضِيَانِ كَمَا |
| کې په اکثر کې يعنې نصب د دې دواړو په ذريعه دا په اکثر استعمالاتو کې دي ځکه دا دواړه فعل ماضي دي لکه |
| عَرَفْتَ وَ قَدْ أُجِيْزَ الْجَرُّ بِهِمَا عَلَى اَنَّهُمَا حَرْفَا جَرٍّ |
| ځنګه چې تا پيژندلې دي او په تحقيق سره اجازه يې ورکړې د جر د دې دواړو په ذريعه چې دا دواړه حرف جر دي |
| قَالَ السِّيْرَافِيُّ لَمْ اَعْلَمْ خِلَافًا فِيْ جَوَازِ الْجَرِّ بِهِمَا اِلَّا اَنَّ النَّصَبَ |
| سيرافي ويلي دي چې ما ته نه دي معلوم څه اختلاف په جواز د جر کې په دې دواړو سره مګر دا چې نصب د دې |
| بِـهِـمَـا اَكْـثَـرُ. |
| دواړو په ذريعه اکثر دي . |

**خلاصه د متن** : صاحب د کافيې وايي چې مستثنى کله د خلا او عدا نه وروستو واقع وي نو دا به هم په وجوبي طور باندې منصوب وي د عدا مثال لکه جاءني القوم عدا زيدا اود خلا مثال لکه جاءني القوم خلا زيداً ، اود خلا او عدا سره نصب اکثر الاستعمال دي بعضې استعمال د دې نصب نه علاوه دي چې د هغې تفصيل شارح کوي .

**اغراض د جامي** : من عدا : په دې عبارت سره شارح د باب او د صيغې تحقيق کوي چې عدا داد عدا يعدو نه ماخوذ دي په معنى د تجاوز سره دي .

من خلا: په دې عبارت سره هم شارح بيان د باب او تحقيق د صيغې کوي چې خلا داد خلا يخلو نه ماخوذ دي په معنى د خالي کيدو سره او عدا مفعول طرف ته متعدي بنفسه دي .

وهو في الاصل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د خلا يخلو باب لازمي دي نو دا مابعد . يداً لره د مفعوليت په بناء باندې ځنګه نصب ورکوي ؟

**جواب** : خلا په اصل کې لازمي دي ليکن دا مفعول طرف ته متعدي کيږي په دري (۳) طريقو سره

(۱) دامفعول طرف ته د من په ذريعې سره متعدي کيږي مثال لکه خلت الديار من الانيس

(۲) يا په خلا کې د جاوز د معنی تضمين کيږي په دې وخت کې به هم دا متعدي بنفسه وي

(۳) يا کله کله مِن لره حذف کولې شي فعل لره مفعول سره يوځای کوي په دې وخت کې به خلا متعدي بنفسه وي دې ته حذف او ايصال وايي

والتزموا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : خلا په اصل کې لازمي باب دي دمفعول تقاضا نه کوي ځکه چې د دې مابعد منصوب په کار نه وو ځکه چې که دې لره د مِن په ذريعې سره متعدي شي نو د دې مدخول به مجرور وي منصوب به نه وي که صنعت تضمين اختيار کړي شي نو دا به د تجاوز معنی لره متضمن شي ليکن تضمين اختيارول دامور لازمو څخه نه دي که خوښه يې وي نو اختياروي اوکه خوښه يې نه وي نو نه دي اختياروي لهذا دا ويل چې عدا د خلا نه وروستو مستثنی وجوباً منصوب وي داصحيح نه دي

**جواب** : په باب داستثناء کې دتضمين او دحذف اودايصال التزام يې ځکه کړي چې د خلا مابعد مستثنی دالا صورت اوشکل اومشابهت اختيار کړي کوم چې په باب داستثناء کې اصل اودمور حيثيت لري د دې مشابهت فائده به داوي چې د خلا او عدا په مستثنی باندې هم نصب واجب شي دمستثنی الا په شان

وفاعلهما: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې دخلا او عدا دضمير په مرجع کې دري (۳) احتمالات دي : (۱) ضمير به راجع وي هغه مصدر طرف ته کوم چې دفعلِ مقدم نه معلوميږي . (۲) يا به ضمير راجع وي هغه اسم فاعل طرف ته کوم چې دفعلِ مقدم نه معلوميږي . (۳) يابه ضمير په مستثنی منه کې مطلق بعض طرف ته راجع وي مثال لکه جاءني القوم عدا زيداً کې داول احتمال په صورت کې تقدير دعبارت به داسې وي چې جاءني القوم عدا مجيئهم زيداً . که ضمير راجع وي اسم فاعل طرف ته د دې مثال لکه جاءني القوم عدا الجائي منهم زيدا، که ضمير راجع وي مطلق بعض طرف ته نو د دې مثال لکه جاءني القوم عدا بعض منهم

زيداً

**دخلا مثالونه**: (۱) که ضمير مصدر طرف ته راجع وي ددې مثال لکه جاءني القوم خلا مجيئهم زيداً

(۲) که ضمير اسم فاعل طرف ته راجع وي نو ددې مثال لکه جاءني القوم خلا الجائي منهم زيداً.

(۳) که ضمير راجع وي په مستثنى منه کې مطلق بعض طرف ته نو ددې مثال لکه جاءني القوم خلا بعض منهم زيداً.

وهما في محل النصب: په دې عبارت سره شارح بيان د اعراب کوي جاءني القوم عدا زيداً او جاءني القوم خلا زيداً کې خلا او عدا د حال په بناء باندې منصوب دي.

ولم يظهر: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**. خلا او عدا ماضي دي او قاعده داده چې کله ماضي مثبت حال واقع وي نو په دې باندې قَدْ دخول ضروري وي او دلته خو قَدْ نشته.

**جواب**: دلته قَدْ مقدر دي او دې ترجمه ظاهر نه کړو چې د الا سره مشابه شي کوم چې په باب د استثناء کې اصل دي.

لانهما: په دې عبارت سره شارح د نصب وجه بيانوي دا دواړه ماضي دي لهذا ددې نه وروستو مستثنى د مفعوليت په بناء باندې به منصوب وي في الاکثر يعني په اکثر استعمال کې.

وقد اجيز: په دې عبارت سره شارح د اکثر مقابل بيانوي چې بعضې نحويانو خلا او عدا نه وروستو جر لره جائز کړي دي دا په دې بنياد باندې چې دا دواړه حرف جر دي.

قال السيرافي: په دې عبارت سره شارح بيان د تاکيد کوي چې سيرافي ويلي دي چې زه خلا او عدا د جر په جواز کې اختلاف نه پيژنم البته نصب اکثري دي.

## د ما خلا او ما عدا نه پس مستثنى:

| وَمَا خَلَا وَمَا عَدَا اَيِ الْمُسْتَثْنٰى مَنْصُوْبٌ اَيْضاً وُجُوْبًا اِذَا كَانَ بَعْدَ مَا خَلَا وَمَا عَدَا لِاَنَّ مَا فِيْهِمَا |
|---|
| ود ما خلا او ما عدا نه پس يعني مستثنى منصوب وي همدارنګې وجوباً چې کله وي پس د ما خلا او ما عدا څکه ما په |
| مَصْدَرِيَّةٌ مُخْتَصَّةٌ بِالْاَفْعَالِ نَحْوُ جَاءَنِيْ قَوْمٌ مَا خَلَا زَيْداً وَمَا عَدَا عَمْراً تَقْدِيْرِهِ خُلُوَّ زَيْدٍ وَ عَدْوَ |
| دې دواړو کې مصدريه ده او خاص ده تر افعالو پورې لکه جاءني قوم ما خلا زيدا و ما عدا عمرا تقدير ددې خلو زيد و عدو |

| عَمْرٍو بِالنَّصْبِ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ بِتَقْدِيرِ مُضَافٍ اَىْ وَقْتَ خُلُوِّهِمْ اَوْ خُلُوِّ مَجِيْئِهِمْ مِنْ زَيْدٍ وَوَقْتَ مُجَاوَزَتِهِمْ اَوْ |
|---|
| عمرو په نصب سره بنابر ظرفيت په تقدير د مضاف سره يعني وقت خلوهم او خلو مجيئهم من زيد او وقت مجاوزتهم او |
| مُجَاوَزَةِ مَجِيْئِهِمْ عَمْرًا اَوْ عَلَى الْحَالِيَّةِ بِجَعْلِ الْمَصْدَرِ بِمَعْنَى اِسْمِ الْفَاعِلِ اَىْ جَاءُوْا خَالِيًا بَعْضُهُمْ اَوْ مَجِيْئُهُمْ |
| مجاوزة مجيئهم عمرا او يا بنابر حاليت په گرخولو د مصدر په معنى د اسم فاعل يعني جاءوا خاليا بعضهم او مجيئهم |
| مِنْ زَيْدٍ وَ مُجَاوِزًا بَعْضُهُمْ اَوْ مَجِيْئُهُمْ عَمْرًا وَ عَنِ الْاَخْفَشِ اَنَّهُ اَجَازَ الْجَرَّ بِهِمَا عَلَى اَنَّ |
| من زيد و مجاوزا بعضهم او مجيئهم عمرا او د اخفش نه نقل دي چي دي جائز گنړي جر په دي دواړو باندي بنا په دي |
| مَا فِيْهِمَا زَائِدَةٌ وَ لَعَلَّ هٰذَا لَمْ يَثْبُتْ عِنْدَ الْمُصَنِّفِ اَوْ لَمْ يَعْتَدَّ بِهِ وَ |
| چي ما په دي کي زائده دي او شايد چي دا نه وي ثابت په نزد د مصنف او يا يي اعتماد نه وي کړي په دي باندي نو |
| لِهٰذَا لَمْ يَقُلْ فِي الْاَكْثَرِ. |
| د دي وجي نه يي ونه ويل في الاكثر |

**خلاصه دمتن**: صاحب د کافيې وايي چې کله مستثنى د ماخلا او ماعدا نه وروستو واقع وي نو په دې وخت کې هم مستثنى په وجوبي طور باندې منصوب وي .

**اغراض دجامي** : لان ما فيهما مصدرية : په دې عبارت سره شارح د نصب وجه بيانوي ، په ماخلا او ماعدا کې ما مصدريه ده کومه چې دافعالو سره خاص ده لهذا ماخلا او ماعدا به فعل وي او د دې مابعد مفعوليت په بناء باندې به وجوباً منصوب وي مثال لکه جاءني القوم ماخلا زيداً او جاءني القوم ماعدا زيداً د دې تقدير د عبارت داسې دې چې جاءني القوم خلو زيد او جاءني القوم عدو زيد .

بالنصب : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د خلو زيد او عدو عمرو په ترکيب کې دوه (۲) احتمالات دي : (۱) د ظرفيت په بناء باندې به منصوب وي (۲) د حاليت په بناء باندې به منصوب وي او دا دواړه احتمالات صحيح نه دي . اول احتمال خو ځکه صحيح نه دې چې ظرف په دوه (۲) قسمه دي : (۱) ظرف زمان (۲) ظرف مکان . او په خلو او عدو کې يو هم نشته . د حاليت والا احتمال ځکه باطل دي چې حال په ذوالحال باندې حمل کيږي دلته د خلو او عدو حمل په قوم باندې صحيح نه دي

**جواب** : دلته دواړه احتمالات صحيح دي په اول احتمال باندې اشکال وو چې خلو عدو نه ظرف زمان دي او نه ظرف مکان دي

ددې جواب دادې چې دلته وقت مضاف محذوف دي جاءني القوم خلو زيد ددې تقدير عبارت داسې دي چې جاءني القوم وقت خلوهم من زيد که چیرته ضمير راجع وي په مستثنی منه کې مطلق بعض طرف ته لکه یاجاءني القوم وقت خلو مجيئهم من زيد که چیرته ضمير راجع وي مصدر طرف ته او همدارنګې جاءني القوم عدو زيد ددې په تقدير دعبارت کې هم دوه (۲) احتماله دي .

**دوهم احتمال دادې** چې دا منصوب دي بناء بر حالیت په دې باندې یو سوال واردیږي :

**سوال** : سوال داوو چې حال په ذوالحال باندې حمل کیږي اودلته حمل صحیح نه دي :

**جواب** : ددې جواب دادې چې مصدر داسم فاعل په معنی کې دي جاءني القوم خلو عمرو ددې تقدير دعبارت داسې دي چې جاءني القوم خالياً بعضهم من زيد که ضمير راجع وي په مستثنی منه کې مطلق بعض طرف ته .

جاءني القوم خالياً مجيئهم من زيد ، که چیرته ضمير مصدر طرف ته راجع وي .

اوجاءني القوم عدو عمرو ، ددې تقدير دعبارت داسې دي چې جاءني القوم مجاوزا بعضهم عمروا که ضمير په مستثنی منه کې مطلق بعض طرف ته راجع وي .

یاجاءني القوم مجاوزاً مجيئهم عمرا که چیرته ضمير مصدر طرف ته راجع وي .

وعن الاخفش : په دې عبارت سره شارح داخفش دمذهب بیان کوي ، دعلامه اخفش په نزد د ما خلا او ماعدا نه وروستو حرف جر هم جائز دي په دې بناء باندې چې خلا او عدا حروف جاره دي او مازائده ده .

ولعل هذا : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : کله چې ما خلا اوماعدا کې هم داخفش اختلاف دي نو مصنف رحمه الله لره دلته کې هم في الاكثر ویل په کار وو لکه څنګه چې مخکې د عدا او خلا په باره کې یې في الاكثر ویلي وو .

**جواب** : کیدې شي چې دمصنف رحمه الله په نزد دا روایت ثابت نه وي .یا مصنف رحمه الله دې روایت لره قابل د اعتناء او قابل اعتبار یې نه وي ګڼړلي ددې وجې نه یې في الاكثر نه دي ویلي .

# د لیس او د لایکون نه پس مستثنی :

وَكَذَا الْمُسْتَثْنٰى مَنْصُوبٌ بَعْدَ لَيْسَ نَحْوُ جَاءَنِي الْقَوْمُ لَيْسَ زَيْداً وَبَعْدَ لَا يَكُونُ نَحْوُ سَيَجِيْءُ اَهْلُكَ لَا

او همدا رنګې مستثنی منصوب وي پس د لیس نه لکه جاءني القوم لیس زیداً او پس د لایکون نه لکه سیجئ اهلک لا

يَكُونُ بِشراً وَاِنَّمَا يَكُونُ النَّصَبُ بَعْدَهُمَا وَاجِبًا لِاَنَّهُمَا مِنَ الْاَفْعَالِ النَّاقِصَةِ النَّاصِبَةِ لِلْخَبَرِ وَ

یکون بشراً او وي به نصب پس د دې دواړو نه واجب خکه دا دواړه د افعال ناقصو نه دي چې نصب ورکوي خبر ته او

يَلْزَمُ اِضْمَارُ اسْمِهِمَا فِي بَابِ الْاِسْتِثْنَاءِ وَهُوَ ضَمِيْرٌ رَاجِعٌ اِلَى اِسْمِ الْفَاعِلِ مِنَ الْفِعْلِ الْمَذْكُورِ

لازم دي اضمار د اسم هغه دې دواړو په باب د استثناء کې او هغه ضمیر دي چې راجع دي اسم فاعل ته د فعل مذکور

اَوْ اِلٰى بَعْضٍ مِنَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ مُطْلَقًا وَهُمَا فِي التَّرْكِيْبِ فِيْ مَحَلِّ النَّصَبِ عَلَى الْحَالِيَّةِ وَاعْلَمْ

نه او یا بعضې د مستثنی منه طرف ته مطلقا او دا دواړه په ترکیب کې په محل د نصب کې دي بنا بر حالیت او پوه

اَنَّهُ لَا تَسْتَعْمَلُ هٰذِهِ الْاَفْعَالُ اِلَّا فِي الْمُسْتَثْنٰى الْمُتَّصِلِ الْغَيْرِ الْمُفَرَّغِ وَلَا يُتَصَرَّفُ فِيْهِمَا

شه چې دا نه مستعملیږي دا افعال مګر په مستثنی متصل غیر مفرغ کې دي او تصرف به نه شي کولی په دې

لِاَنَّهَا قَائِمَةٌ مَقَامَ اِلَّا وَهِيَ لَا يُتَصَرَّفُ فِيْهِمَا.

کې خکه چې دا قائم دي په ځای د الا او د اتصرف نه شي کېږي به ... کې .

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د کافیه د ... بیانوي چې مستثنی د لیس و لایکون نه وروستو هم منصوب وي مثال لکه جاءني القوم لیس زیداً و سیجئ اهلک لایکون بشراً

**اغراض د جامي** : وانما یکون: په دې عبارت سره شارح د لیس او لایکون نه وروستو د مستثنی منصوب کیدو وجه بیانوي چې د لیس او د لایکون نه وروستو د مستثنی د منصوب کیدو وجه دا ده چې دا دواړه د افعال ناقصو نه دي او افعال ناقصه خپل خبر ته نصب ورکوي لهذا دې نه وروستو مستثنی د خبریت په بناء باندې به منصوب وي .

ویلزم: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په دې دلیل سره دعوی نه ثابتیږي خکه چې کیدې شي چې د لیس او لایکون نه پس د اسمیت په بناء باندې مرفوع وي او د دې خبر محذوف وي .

**جواب** : په باب د استثناء کې لیس او لایکون د اسمونو اضمار لازم دي لهذا د دې په اسم کې ضمیر مستتر وي نو لازما د مابعد خبریت په بناء به منصوب وي .

وهو ضمیر راجع: په دې عبارت سره شارح بیان د مرجع کوي چې د ضمیر په مرجع کې دوه (۲)

احتمال نه دي
(۱) یا به ضمیر راجع وي اسم فاعل طرف ته کوم چې د فعل مذکور نه معلومیږي
(۲) یا به ضمیر راجع وي په مستثنی منه کې مطلق بعض طرف ته
وهما في التركيب: په دې عبارت سره شارح بیان د ترکیب کوي چې لیس او لایکون په خپله د حالیت په بناء باندې منصوب وي
واعلم: په دې عبارت سره شارح د فائدې بیان کوي چې ماعدا او ماخلا نه تر لایکون پورې دا ټول افعال فقط په مستثنی متصل غیر مفرغ کې استعمالیږي او په دې کې تصرف نه شي کیدې خکه چې دا د الا قائم مقام دي او په الا کې د حرف په وجه تصرف نه شي کیدې . او کوم چې د دې قائم مقام دي په هغې کې هم تصرف نه شي کیدې

## په کلام موجب کې د الا نه پس مستثنی :

وَ يَجُوزُ فِيهِ اَىْ فِي الْمُسْتَثْنَى النَّصبُ عَلَى الْاِسْتِثْنَاءِ وَيَخْتَارُ الْبَدَلُ عَنِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ فِيمَا بَعْدَ
او جائز دي په دې کې یعنې په مستثنی کې نصب بنا بر استثناء او غوره دي بدل جوړول د مستثنی منه نه په مابعد
اِلَّا حَالٌ مِنَ الضَّمِيرِ الْمَجْرُورِ اَىْ حَالَ كَوْنِ الْمُسْتَثْنَى وَاقِعاً فِي مَحَلٍّ يَكُوْنُ
د الا کې دا حال دي د ضمیر مجرور نه یعنې په حال کون د مستثنی کې چې واقع وي په دا سې محل کې چې وي
مُتَاَخِّراً عَنْ اِلَّا اِحْتِرَازًا عَمَّا اِذَا كَانَ وَقَعَ سَائِرِ اَدَوَاتِ الْاِسْتِثْنَاءِ مِثْلُ عَدَا وَخَلَا وَغَيْرِهِمَا فِي
وروسته د الا نه احتراز دي د هغه څه نه چې کله وي پس د ټولو حروفو د استثناء لکه عدا او خلا او غیر د دې دواړو نه په
كَلَامٍ غَيْرِ مُوجِبٍ اِحْتِرَازٌ عَمَّا اِذَا وَقَعَ فِي كَلَامٍ مُوجِبٍ فَاِنَّهُ مَنْصُوبٌ وُجُوبًا كَمَا
کلام غیر موجب کې احتراز دي د هغه څه نه چې واقع وي په کلام موجب کې خکه هغه منصوب وي وجوبا لکه
مَرَّ وَ الْحَالُ اَنَّهُ قَدْ ذُكِرَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ اِحْتِرَازٌ عَمَّا اِذَا لَمْ يُذْكَرِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ فَاِنَّهُ
مخکې تیر شو او حال دا چې ذکر شوي وي مستثنی منه احتراز دي د هغه څه نه چې نه وي ذکر مستثنی منه خکه په
حِينَئِذٍ يُعْرَبُ عَلَى حَسَبِ الْعَوَامِلِ وَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ ذُكِرَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ بِغَيْرِ وَاوٍ عَلَى
دې وخت کې معرب دي په اعتبار د عواملو سره او په بعضې نسخو کې ذکر ده مستثنی په غیر د واو نه بنا په دې
اَنَّهُ صِفَةٌ لِكَلَامٍ غَيْرِ مُوجِبٍ اَىْ فِي كَلَامٍ غَيْرِ مُوجِبٍ ذُكِرَ فِيهِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ وَ لَمْ
چې وي دا صفت دي د پاره د کلام غیر موجب یعنې په کلام غیر موجب کې ذکر وي په دې کې مستثنی منه او نه
يُشْتَرَطْ اَنْ لَا يَكُوْنَ مُنْقَطِعًا وَ لَا مُقَدَّمًا عَلَى الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ لِاَنَّ حُكْمَهُمَا قَدْ عُلِمَ
یې دې شرط کړي چې نه وي مستثنی منقطع او نه مقدم په مستثنی منه باندې خکه حکم د دې دواړو معلوم شوي

| |
|---|
| فِيمَا سَبَقَ فَاكْتَفَى بِذَلِكَ نَحْوُ مَا فَعَلُوهُ اِلَّا قَلِيلٌ بِالرَّفْعِ عَلَى الْبَدَلِيَّةِ وَاِلَّا قَلِيلاً بِالنَّصْبِ عَلَى |
| مخکي نو اکتفاء يې وکړه په هغې باندې لکه مافعلوه الا قليل په رفع سره بنابر بدليت والاقليلاً په نصب سره بنابر |
| الْاِسْتِثْنَاءِ وَنَحْوُ مَا مَرَرْتُ بِأَحَدٍ اِلَّا زَيْدٍ بِالْجَرِّ عَلَى الْبَدَلِيَّةِ وَاِلَّا زَيْداً بِالنَّصْبِ عَلَى الْاِسْتِثْنَاءِ وَمَا رَأَيْتُ اَحَداً اِلَّا زَيْداً |
| استثناء او لکه مامررت باحد الازيد په جر سره بنابر بدليت والازيداً په نصب سره بنابر استثناء و ماراېت احداً الازيداً |
| بِالنَّصْبِ اِمَّا بِطَرِيْقِ الْبَدَلِيَّةِ وَ هُوَ الْمُخْتَارُ اَوْ بِطَرِيْقِ الْاِسْتِثْنَاءِ وَ هُوَ جَائِزٌ غَيْرُ مُخْتَارٍ وَ اِنَّمَا |
| په نصب سره ياپه طريقې دبدليت او دا غوره ده او ياپه طريقې داستثنا سره او دا جائزده او غوره نه ده او په تحقيق |
| اخْتَارُوا الْبَدَلَ فِي هٰذِهِ الصُّوَرِ لِاَنَّ النَّصْبَ عَلَى الْاِسْتِثْنَاءِ اِنَّمَا هُوَ بِسَبَبِ التَّشْبِيْهِ بِالْمَفْعُوْلِ لَا |
| سره غوره کړې نحويانو بدل په دې صورت کې څکه نصب بنابر استثناء دا دې په سبب د تشبيه د مفعول سره نه |
| بِالْاَصَالَةِ وَ بِوَاسِطَةِ اِلَّا وَ اِعْرَابُ الْبَدَلِ بِالْاَصَالَةِ وَ بِغَيْرِ وَاسِطَةٍ. |
| اصالت سره او په واسطې د الا سره او اعراب د بدل بالاصالة او په غير د واسطې دي. |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې وايي چې که چيرته مستثنى د الا نه وروستو په کلام موجب کې واقع وي او مستثنى منه مذکور وي نو په دې کې دوه (۲) وجهې جائز دي : (۱) د استثناء په وجه نصب . (۲) مستثنى منه د لفظ نه بدل جوړول ، ليکن دويم صورت يعنې بدل جوړول زيات بهتر دي .

**اغراض دجامي** : اى في الاستثناء : په دې عبارت سره شارح بيان د مرجع کوي چې د فيه د ضمير مرجع استثناء ده .

على الاستثناء : په دې عبارت سره شارح بيان د عهد کوي چې په النصب باندې الف لام داخل دي دا عهد خارجي دي ددې نه مراد استثناء په بناء باندې منصوب کيدل دي .

حال من الضمير : په دې عبارت سره شارح بيان د ترکيب کوي چې فيما بعد الا دا ظرف مستقر په اعتبار د متعلق د فيه ضمير نه حال دي .

اى حال کونه : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : فيه ضمير راجع دي مستثنى طرف ته او د الا نه پس هم مستثنى وي پس ظرفية الشيء لنفسه خرابي لازم راځي .

**جواب** : په فيما بعد الا کې د ما نه مراد مستثنى نه ده بلکه ما عبارت دي د محل نه نو بيا به يې معنى داسې شي چې مستثنى واقع وي په داسې محل کې کوم چې د الا نه وروستو واقع وي

واقعاً: په دې عبارت سره شارح دمتعلق بيان کوي

في محل: په دې عبارت سره شارح د ما بيان کوي.

يكون: دظرف نه وروستو دمتعلق بيان کوي.

احتراز: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې فيما بعد الا دا قيد احترازي دي په دې عبارت سره احتراز دي دهغه مستثنى نه كوم چې د الا نه وروستو واقع نه وي بلكه باقي ادوات د استثناء د خلا او عدا نه وروستو واقع وي

احتراز: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې في كلام غير موجب قيد احترازي دي په دې عبارت سره شارح دهغه مستثنى نه احتراز كوي كوم چې په كلام موجب كې واقع وي ځكه چې هغه وجوباً منصوب وي په دې كې دوه (۲) وجهې جائز نه دي.

انه قد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: ذكر ماضي ده او قاعده داده چې كله ماضي مثبت حال واقع وي نو په دې باندې دخول د قَدْ ضروري وي او په ذكر باندې قَدْ نه دي داخل.

**جواب**: دلته قَدْ محذوف دي دا په اصل كې وقد ذكر وو.

احتراز: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې ذكر المستثنى قيد احترازي دي په دې سره احتراز دي دهغه مستثنى نه چې دهغې مستثنى منه مذكور نه وي ځكه چې په دې كې دوه (۲) وجهې جائز نه دي بلكه ددې اعراب په اعتبار دعواملو سره وي.

وفي بعض النسخ: په دې عبارت سره شارح اختلاف دنسخو بيانوي چې په بعضې نسخو كې ذكر المستثنى منه يعنې د واو نه په غير ذكر دي په دې صورت كې داد كلام غير موجب صفت جوړيږي.

اى كلام غير موجب ذكر فيه المستثنى منه: په دې عبارت سره شارح دصفت په صورت حاصل دعبارت ذكر كوي او په دې كې د فيه په اضافه كولو سره ديو سوال جواب وركوي:

**سوال**: كله چې جمله صفت واقع وي نو په دې كې عائد الى الموصوف موجود يدل ضروري دي او دلته عائد نشته دي.

**جواب**: په دې كې عائد فيه محذوف دي.

ولم يشترط : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي

**سوال** : دمصنف رحمه الله دپاره مناسب وو چې دلته يې دوه (۲) شرطونه نور هم لړولي وي (۱) چې مستثنى به منقطع نه وي (۲) مستثنى به دمستثنى منه نه مقدم نه وي ځکه چې که مستثنى د الا نه وروستو په کلام غير موجب کې واقع وي او مستثنى منه مذکور وي ليکن مستثنى منقطع وي يا مستثنى دمستثنى منه نه مقدم وي نو په دې دواړو صورتونو کې دوه وجهې جائز نه دي بلکې نصب واجب دي .

**جواب** : مخکې دې دواړو حکم بيان شوي دي چې مستثنى دمنقطع کيدو په صورت کې او مستثنى دتقديم په صورت کې په مستثنى باندې نصب واجب دي نو مصنف رحمه الله په مخکې وضاحت باندې اکتفاء وکړه او دلته يې دوباره ذکر نه کړو

نحو مافعلوه الا قليل: په دې عبارت سره شارح بيان د مثالونو کوي په دې کې که د **قليل** نه بدل جوړ شي نو دا به مرفوع وي ځکه چې دا د **فعلوه** د واو ضمير نه بدل جوړيږي او **محلاً** مرفوع دي او د استثناء په صورت کې په دې باندې به نصب وي .

اودوهم مثال **مامررتُ باحد الا زيد** په دې کې **زيد** د بدليت په بناء باندې مجرور دي او د استثناء په صورت کې منصوب دي او **مارأيتُ احدا الا زيداً** په دې کې اګر که **زيد** د بدليت په بناء باندې منصوب دي نو په دې باندې نصب به ددې وجې نه وي چې ددې مبدل منه **احداً** منصوب دي او د استثناء په صورت کې هم په دې کې نصب دي ليکن **نصب على البدلية** غوره او مختار دي او **نصب على الاستثناء** غير مختار دي .

وانما اختاروا: په دې عبارت سره شارح په ذکر شوو صورتونو کې دبدل دغوره کيدو وجه بيانوي چې په مذکوره صورتونو کې نصب على الاستثناء دمفعول سره دمشابهت دوجې نه اود الا د واسطې ځخه دي بالاصالة نه دي او د بدل جوړيدو په صورت کې اعراب بلا واسطه اوبلا تشبيه بالاصالة دي اوکوم اعراب چې بلا واسطه اوبالاصالة وي نو هغه ددې نه مختار وي کوم چې بالاصالة اوبلا واسطه نه وي

## مستثنى معرب په اعتبار د عواملو سره :

وَ يُعْرَبُ اَيِ الْمُسْتَثْنٰى عَلٰى حَسْبِ الْعَوَامِلِ اَىْ بِمَا يَقْتَضِيْهِ الْعَامِلُ مِنَ الرَّفْعِ وَ النَّصْبِ وَ الْجَرِّ

او معرب وي مستثنى په اعتبار دعواملو سره يعني په هغه څه چې تقاضايې کوي عامل د رفع او د نصب او دجر

إِذَا كَانَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ غَيْرَ مَذْكُوْرٍ وَ يَخْتَصُّ ذٰلِكَ الْمُسْتَثْنٰى بِإِسْمِ الْمُفَرَّغِ لِأَنَّهُ فُرِّغَ لَهُ

چې کله وي مستثنی منه غیر مذکور او خاص دي دامستثنی په اسم د مفرغ سره خکه فارغ کړې شوددي د پاره

الْعَامِلُ عَنِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ فَالْمُرَادُ بِالْمُفَرَّغِ الْمُفَرَّغُ لَهُ كَمَا يُرَادُ بِالْمُشْتَرَكِ الْمُشْتَرَكُ

عامل د مستثنی منه نه نو مراد د مفرغ نه مفرغ له دي لکه څنګه چې مراد اخستلې شي د مشترک نه د مشترک

فِيْهِ وَ هُوَ أَيْ وَ الْحَالُ أَنَّ الْمُسْتَثْنٰى وَاقِعٌ فِيْ غَيْرِ الْكَلَامِ الْمُوْجِبِ وَ اشْتَرَطَ ذٰلِكَ

فيه او هغه يعني حال دادې چې مستثنی واقع وي په غير كلام موجب کې او شرط کړو مصنف رحمه الله دا د دې

لِيُفِيْدَ فَائِدَةً صَحِيْحَةً مِثْلُ مَا ضَرَبَنِيْ إِلَّا زَيْدٌ إِذْ يَصِحُّ أَنْ لَا يَضْرِبَ الْمُتَكَلِّمَ أَحَدٌ

د پاره چې فائده ورکړي صحيح فائده لکه ماضربني الا زيد ځکه صحيح ده دا خبره چې نه دي وهلي متكلم هيچا

إِلَّا زَيْدٌ بِخِلَافِ ضَرَبَنِيْ إِلَّا زَيْدٌ إِذْ لَا يَصِحُّ أَنْ يَضْرِبَ كُلُّ أَحَدٍ الْمُتَكَلِّمَ إِلَّا زَيْدٌ إِلَّا أَنْ يَسْتَقِيْمَ

مګر زید په خلاف د ضربني الازيد ځکه دا نه دي صحيح چې وهلي وي يو هر متکلم مګر زید مګر دا چې صحيح وي

الْمَعْنٰى بِأَنْ يَكُوْنَ الْحُكْمُ مِمَّا يَصِحُّ أَنْ يَثْبُتَ عَلٰى سَبِيْلِ الْعُمُوْمِ نَحْوُ قَوْلِكَ كُلُّ حَيَوَانٍ يُحَرِّكُ فَكَّهُ

معنی چې وي حکم د هغه څه نه چې صحيح وي چې ثابت شي په طريقې د عموم لکه قولک کل حیوان يحرک فکه

الْأَسْفَلَ عِنْدَ الْمَضْغِ إِلَّا التِّمْسَاحُ أَوْ يَكُوْنَ هُنَاكَ قَرِيْنَةٌ دَالَّةٌ عَلٰى أَنَّ الْمُرَادَ بِالْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ بَعْضٌ مُعَيَّنٌ يَدْخُلُ

الاسفل عند المضغ الا التمساح او يا وي هلته قرينه داله چې مراد په مستثنی منه کې بعضې معين چې داخل وي په

فِيْهِ الْمُسْتَثْنٰى قَطْعًا مِثْلُ قَرَأْتُ إِلَّا يَوْمَ كَذَا أَيْ أَوْقَعْتُ الْقِرَاءَةَ كُلَّ يَوْمٍ إِلَّا يَوْمَ كَذَا لِظُهُوْرِ أَنَّهُ لَا

دې کې مستثنی قطعا لکه قرأت الايوم كذا يعني اوقعت القراءة كل يوم الا يوم كذا او چې د ظهور د دې خبرې چې نه

يُرِيْدُ الْمُتَكَلِّمُ جَمِيْعَ أَيَّامِ الدُّنْيَا بَلْ أَيَّامَ الْأُسْبُوْعِ أَوِ الشَّهْرِ أَوْ مِثْلَ ذٰلِكَ.

اراده کوي متکلم ټولې ورځې د دنيا بلکې ورځې د هفتوا ويا د مياشتوا ويا په مثل د دې.

**خلاصه دمتن :** صاحب د کافيې وايي چې مستثنی منه مذکور وي او مستثنی په کلام موجب کې واقع وي نو د مستثنی اعراب د عامل به د تقاضا مطابق وي يعنې عامل د رفع مقتضی دي نو مستثنی به مرفوع وي او که د نصب مقتضی وي نو مستثنی به منصوب وي او که د جر مقتضی وي نو مستثنی به مجرور وي.

**اغراض د جامي :** اى المستثنى: په دې عبارت سره شارح د يعرب ضمير مستتر مرجع بيانوي چې د يعرب ضمير مرجع المستثنى ده.

اى بما: په دې عبارت سره شارح بيان د معنی کوي چې دلته حسب په معنی د اقتضاء سره دي په معنی د قدر سره نه دي.

العامل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داحکم منقوض اومات دي په ماجاءني الا زيد کې په زيد سره ځکه چې دامعرب على حسب العوامل نه دي بلکه بحسب عامل واحد دي .

**جواب** : په العامل سره شارح جواب ورکوي چې په العوامل جمع باندې دالف لام دداخليدو سره ددې جمعيت باطل شو اودادجنس په حکم کې دي ځکه چې ددې نه يو عامل مراد دي .

من الرفع والنصب والجر: په دې عبارت شارح د مَا بيان کوي چې د مَا نه مراد رفع ، نصب او جر دي

ويختص ذلک: په دې عبارت سره شارح بيان داصطلاح کوي چې هغه مستثنى چې دهغې مستثنى منه مذکور نه وي دهغې نوم مفرغ ايخودې شي .

لانه: په دې عبارت سره شارح دمفرغ وجه تسميه بيانوي چې ددې نوم مفرغ ځکه ايخودې شوي دي چې ددې وجې نه عامل دمستثنى منه نه فارغ کړې شوې دي .

فالمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمستثنى مفرغ معنى ده فارغ کړي شوي حالانکه مستثنى خو فارغ کړي شوي نه ده بلکه داخومفرغ له دي يعنې دې دپاره عامل فارغ کړي شوي دي لهذا ددې نوم مفرغ نه دي په کار بلکه مفرغ له په کار دي .

**جواب** : دمفرغ نه مراد مفرغ له دي لکه څنګه چې دمشترک نه مراد مشترک فيه وي .

وهو اى الحال: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې واو حاليه دي او هو في غير الموجب دا حال دي ديعرب ضمير نه چې دهغې مرجع مستثنى ده .

واقع: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې في غير الموجب داظرف مستقر د واقع متعلق دي او دهو مبتدا دپاره خبر دي .

الکلام: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې الموجب دا صفت دي دموصوف محذوف چې الکلام دي

واشترط: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې ليفيد :شرط دليل دي دمشروط دليل نه دي يعنې مستثنى په کلام غير موجب کې دواقع کيدو شرط ځکه لږولي دي چې کلام د

صحيح معنی فائده ورکړي

مثال ما ضربني الا زيد: په دې عبارت سره شارح بيان دمثال کوي چې ددې مثال معنی ده چې زه د زيد نه غير بل چا نه يم وهلي دامعنی صحيح ده ځکه چې ممکن ده چې متکلم لره دزيد نه غير بل چانه وي وهلي په خلاف د ضربني الا زيد داصحيح نه دي ځکه چې داممکن نه دي چې متکلم لره دزيد نه غير ټولو انسانانو وهلي وي .

الا ان يستقيم المعنی: په دې عبارت سره ماتن دمخکنې عبارت وضاحت کوي داعبارت دمخکني کلام نه په طور داستثناء ده يعنې لايعرب المستثنی بحسب العوامل في الکلام الموجب في جميع الاوقات الا ان يستقيم المعنی ، يعنې په کلام موجب کې مستثنی اعراب دعامل مطابق نه وي په ټولو اوقاتو کې مګر چې کله معنی صحيح وي .

بان يکون: په دې عبارت سره شارح داستقامت دمعنی دوه (٢) صورتونه بيانوي :

(١) اول صورت دادې چې حکم دهغه قبيل نه وي چې دهغې اثبات په طريقې دعموم سره صحيح وي مثال لکه کل حيوان يحرک فکه الاسفل عند المضغ الاالتمساح (هر حيوان د ښخوند وهلو په وخت کې خپل لاندې ژبې ته حرکت ورکوي مګر مګرمچه يې نه ورکوي) په دې کې د تحريک فکه الاسفل عند المضغ حکم په طريقې دعموم سره دهر حيوان دپاره ثابت شو اودا صحيح دي .

(٢) او دويم صورت دادې چې يو داسې قرينه وموندلې شي چې په دې خبره دلالت کوي چې مستثنی منه نه مراد داسې بعض متعين افراد وي چې په هغې کې دننه دمستثنی دخول يقيني وي مثال لکه قرأت اليوم کذا (ماهره ورځ لوستل وکړه مګر په فلانی ورځ مې لوستل ونه کړل) دامعنی صحيح ده ځکه چې ظاهر ده چې دمتکلم مراد ددنيا ټولې ورځې نه دي بلکه هفته يا مياشت يا دکال ورځې مراد دي اوداممکن دي چې هغه هره ورځ لوستلي وي مګر يوه ورځ لوستلي نه وي .

## د دوه سوالونو جوابات :

وَ لِقَائِلٍ اَنْ يَّقُوْلَ كَمَا لَا يَسْتَقِيْمُ الْمَعْنٰى عَلٰى تَقْدِيْرِ عُمُوْمِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ فِي الْمُوْجِبِ

اودقائل دپاره جائزده چې ووايي چې لکه ځنګه نه صحيح کيږي معنی په تقديردعموم دمستثنی منه په موجب

فِيْ بَعْضِ الصُّوَرِ فَرُبَمَا لَا يَسْتَقِيْمُ الْمَعْنٰى عَلٰى تَقْدِيْرِ عُمُوْمِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ فِيْ غَيْرِ الْمُوْجِبِ

کې په بعضې صورتونو کې نو ډير کله نه صحيح کيږي معنی په تقدير د عموم د مستثنی منه په غير د موجب کې

اَيْضًا نَحْوُ مَا مَاتَ اِلَّا زَيْدٌ فَيَنْبَغِيْ اَنْ يُشْتَرَطَ فِيْ غَيْرِ الْمُوْجِبِ اَيْضًا اِسْتِقَامَةُ الْمَعْنٰى

همدارنګې لکه ماماتَ الازيد نو مناسب ده چې شرط کړې شي په غير موجب کې همدارنګې صحيح کيدل د معنی

وَ اَيْضًا لَا يَصِحُّ مِثْلُ قَرَأْتُ اِلَّا يَوْمَ كَذَا بَعْدَ تَخْصِيْصِ الْيَوْمِ بِاَيَّامِ الْاُسْبُوْعِ مَثَلًا فَيَجُوْزُ

او همدارنګې نه صحيح کيږي په مثل د قرأت الايوم کذا سکرپس د تخصيص د يوم په ايامو د هفتې پورې مثلاً نو جائز

مِثْلُ هٰذَا التَّخْصِيْصِ فِيْ ضَرَبَنِيْ اِلَّا زَيْدٌ بِاَنْ يُخَصَّصَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ جَمَاعَةٍ مَخْصُوْصِيْنَ

دې په شان د دې تخصيص په ضربني الازيد کې چې خاص کړې شي مستثنی منه په هر يو د فرد د جماعت مخصوصه

اِذَا كَانَ هُنَاكَ قَرِيْنَةٌ دَالَّةٌ فَلَا فَرْقَ بَيْنَ هَاتَيْنِ الصُّوْرَتَيْنِ فِيْ كَوْنِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جَائِزَةً

پورې چې کله وي دلته قرينه داله نو نشته فرق په مينځ د دې دواړو صورتونو کې په کيدو د هر يو د دې دواړو کې جائز

مَعَ الْقَرِيْنَةِ وَ غَيْرَ جَائِزَةٍ بِدُوْنِهَا وَ اُجِيْبَ بِاَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْغَالِبُ وَ الْغَالِبُ فِي الْاِيْجَابِ عَدَمُ

سره د قرينې او غير جائز دې په غير د دې نه او جواب ورکړې شو چې معتبر هغه غالب دې او غالب په ايجاب کې عدم

اِسْتِقَامَةِ الْمَعْنٰى عَلَى الْعُمُوْمِ وَ فِي النَّفْيِ عَكْسُهُ لِاَنَّ اشْتِرَاكَ جَمِيْعِ اِفْرَادِ الْجِنْسِ فِي انْتِفَاءِ

صحت د معنی دې په عموم باندې او په نفي کې په عکس د دې خکه اشتراک د ټولو افرادو د جنس سره په انتفاء د

تَعَلُّقِ الْفِعْلِ بِهَا وَ مُخَالَفَةَ وَاحِدٍ اِيَّاهَا فِيْ ذٰلِكَ مِمَّا يَكْثُرُ وَ يَغْلِبُ وَ اَمَّا اشْتِرَاكُهَا

تعلق د فعل په دې پورې او مخالفت د يو د دې نه په دې کې کوم چې کثير الوقوع او غالب وي او هرچې اشتراک د دې

فِيْ تَعَلُّقِ الْفِعْلِ بِهَا وَ مُخَالَفَةَ وَاحِدٍ اِيَّاهَا فِيْ ذٰلِكَ فَمِمَّا يَقِلُّ كَمَا فِي الْمِثَالِ الْمَذْكُوْرِ

په تعلق د فعل کې په دې پورې او مخالفت د يو فرد د دې نه په دې کې نو هغه چې قليل الوقوع دې لکه په ذکر شوي مثال

وَ بِاَنَّ الْفَرْقَ بَيْنَ قَوْلِكَ قَرَأْتُ اِلَّا يَوْمَ كَذَا وَضَرَبَنِيْ اِلَّا زَيْدٌ لَيْسَ اِلَّا بِظُهُوْرِ قَرِيْنَةٍ دَالَّةٍ عَلٰى

کې او په دې طريقې چې فرق په مينځ د قول ستا قرأت الايوم کذا او ضربني الازيد کې مګر په ظهور د قرينې دالې په

بَعْضٍ مُعَيَّنٍ مِنَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ مَقْطُوْعٍ دُخُوْلُهٗ فِيْهِ الْاَوَّلِ وَ عَدَمِ ظُهُوْرِهَا فِي الثَّانِيْ فَلَوْ

بعضې معين د مستثنی منه چې مقطوع وي دخول د دې په دې کې او عدم ظهور د دې په دويم مثال کې نو که چيرته

ذُكِرَ فِي الثَّانِيْ اَيْضًا قَرِيْنَةٌ ظَاهِرَةُ الدَّلَالَةِ عَلٰى بَعْضٍ مُعَيَّنٍ كَمَا اِذَا قِيْلَ

ذکر کړې شي په دويم مثال کې همدارنګې قرينه ظاهره چې دلالت کوي په بعضې معين باندې لکه چې ويلې شي

مَنْ ضَرَبَكَ مِنَ الْقَوْمِ اَيِ الْقَوْمِ الدَّاخِلِ فِيْهِمْ زَيْدٌ فَقُلْتُ ضَرَبَنِيْ اِلَّا زَيْدٌ فَالظَّاهِرُ اَنَّ ذٰلِكَ

من [illegible] هغه قوم چې داخل وي په دې کې [illegible] او وايې چې ضربني الازيد نو ظاهر دا ده چې دا

اَيْضًا مِنَّا يَسْتَقِيْمُ فِيْهِ الْمَعْنٰى لٰكِنَّ الْغَالِبَ عَدَمُ وِجْدَانِ قَرِيْنَةٍ كَذٰلِكَ

همدارنګې دهغه قبيلې نه دي چې صحيح کيږي په دې کې معنى لکن غالب هغه عدم وجود د قرينې دي همدارنګې

فِي الْمُوْجِبِ فَالْغَالِبُ فِيْهِ عَدَمُ اِسْتِقَامَةِ الْمَعْنٰى.

په موجب کې نو غالب په دې کې هغه عدم صحت د معنى دی

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې ددوه سوالونو جوابات ورکوي.

**اغراض دجامي** : ولقائل: دا د شرح عبارت دي په دې کې شارح دوه سوالونه رانقل کوي او ددې سوالونو جوابات ورکوي.

**سوال (۱)** : لکه څنګه چې په کلام موجب کې مستثنى منه د عموم په تقدير باندې بعضې صورتونو کې معنى نه صحيح کيږي مثال لکه ضربني الا زيد ، همدارنګې په کلام غيرموجب کې هم د مستثنى منه په عموم تقدير باندې بعضې صورتونو کې معنى نه صحيح کيږي مثال لکه ما مات الا زيد ، ددې معنى صحيح نه ده لهذا لکه څنګه چې په کلام موجب کې د استقامت معنى شرط لږولې ده همدارنګې کلام غيرموجب کې هم استقامت معنى د شرط لږول په کار وو.

**سوال (۲)** : د ايضاً سره دويم سوال رانقل کوي دا سوال قرأت الا يوم كذا او ضربني الا زيد باندې وارديږي قرأتُ الا يوم كذا دا به تر هغه وخته پورې صحيح نه وي کله چې يوم لره هفتې او مياشت او يادکل دورڅو سره خاص نه شي او همدارنګې تخصيص په ضربني الا زيد کې هم جائز دي همدارنګې مستثنى منه لره يو مخصوص جماعت هر هر فرد سره خاص کړې شي کله چې په دې باندې څه قرينه دال وي مثلاً متکلم ديو کلي او سيدونکي دي نو هغه د کلي ټول افراد لره خاص کړي د هغوي نه د زيد استثناء کولو دپاره ضربني الا زيد وويل ممکن ده چې دده منشاء داوي چې ضربني اناس قرية الا زيد دا معنى صحيح ده نو په دې دواړو صورتونو کې په دې خبره کې څه فرق نشته دي که څه قرينه وموندلې شي نو جائز او که قرينه ونه موندلې شي نو ناجائز دي.

واجيب: په دې عبارت سره شارح د ذکر شوو دواړو سوالاتو جوابات ورکوي

**داول سوال جواب** : داول سوال جواب دادې چې داحکامو په [illegible] کې غالب او کثريت معتبريږي او په کلام موجب کې مستثنى منه د عموم په صورت کې غالب استقامت معنى دده

څکه چې دجنس ټولو افرادو سره تعلق دفعل په انتفاء کې بعض باقي مخالف کيدل داکثير وي ليکن دجنس ټولو افرادو سره تعلق کې استقامت معنی دشرط لړولې ده اوپه کلام غير موجب کې استقامت معنی دشرط نه ده لړولي

وبان الفرق: په دې عبارت سره شارح ددويم سوال جواب ورکوي قرأت الا يوم کذا اوضربني الا زيد کې فرق دظهور دقرينې اودعدم قرينې سره دې چې قرأت الا يوم کذا کې مستثنی منه کې بعضې افرادو باندې دلالت کولو والاقرينه ظاهر ده بعضې کې دمستثنی دخول يقيني دې او ضربني الا زيد کې داسې قرينه ظاهر نه ده

که په دريم مثال کې هم څه قرينه ظاهره شي کومه چې په مستثنی منه کې په بعضې معين باندې دلالت وکړي چې په هغې کې د مستثنی دخول يقيني وي مثلاً يو سړي تا ته ووايي چې من ضربک من القوم ، اوقوم داسې دي چې په هغې کې زيد داخل دي نو ته ددې په جواب کې ووايي چې ضربني الا زيد نو ظاهره ده چې دلته معنی صحيح کيږي ليکن په کلام موجب کې داسې قرينه نه موندل اکثري دي ، ددې وجې نه په کلام موجب کې غالب عدم استقامت معنی ده .

## په تيرې شوې قاعدې باندې تفريع :

| وَ مِنْ ثَمَّ اَیْ وَ مِنْ اَجَلِ اَنَّ الْمُفَرَّغَ لَا يَكُوْنُ فِي الْمُوْجَبِ اِلَّا اَنْ يَّسْتَقِيْمَ الْمَعْنٰى لَمْ يَجُزْ |
| --- |
| اوددې وجې نه يعنې ددې وجې نه چې مفرغ نه وي په موجب کې مگر که چېرته صحيح کيږي معنی نه دي جائز په |
| مِثْلُ مَا زَالَ زَيْدٌ اِلَّا عَالِمًا اِذْ مَعْنٰى مَا زَالَ ثَبَتَ لِاَنَّ نَفْيَ النَّفْيِ اِثْبَاتٌ فَيَكُوْنُ الْمَعْنٰى ثَبَتَ زَيْدٌ دَائِماً عَلٰى |
| شان دمازال زيد الاعالماڅکه چې معنی دمازال ثَبَتَ ده څکه نفي دنفي اثبات دي نووي به معنی دثبت زيد دائماعلی |
| جَمِيْعِ الصِّفَاتِ اِلَّا عَلٰى صِفَةِ الْعِلْمِ فَلَا يَسْتَقِيْمُ وَ قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيُّ يُمْكِنُ اَنْ يُّحْمَلَ الصِّفَاتِ |
| جميع الصفات الاعلی صفة العلم نودامعنی نه صحيح کيږي اوويلي شارح رضي چې ممکن ده چې حمل شي صفات |
| عَلٰى مَا يُمْكِنُ اَنْ يَّكُوْنَ زَيْدٌ عَلَيْهَا مِمَّا لَا يَتَنَاقَضُ وَ يَسْتَثْنٰى مِنْ جُمْلَتِهَا الْعِلْمُ |
| په هغه څه چې ممکن وي چې وي زيد به دې باندې دهغه څه نه چې نه وي متضاد اومستثنی وي ددې جملې نه علم |
| اَوْ يُحْمَلُ ذٰلِكَ عَلَى الْمُبَالَغَةِ فِيْ نَفْيِ صِفَةِ الْعِلْمِ كَاَنَّكَ قُلْتَ اَمْكَنَ اَنْ يَّحْصُلَ فِيْهِ |
| اوياحمل کړې شي داپه مبالغه باندې په نفي دصفت دعلم گوياچې تا وويل چې ممکن دي چې حاصل شي به دې |
| جَمِيْعُ الصِّفَاتِ اِلَّا صِفَةُ الْعِلْمِ وَ عَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ يَنْدَرِجُ فِيْ صُوْرَةِ الْاِسْتِقَامَةِ وَلَا |
| کې ټول صفات مگر صفت دعلم اوبناپه دواړو تقديرونو درج کيږي په صورت دصحيح والي دمعنی کې اونه دې وي |

| |
|---|
| يَخْفٰى عَلَى الْمُنفَطِنِ اَنَّهُ يُمْكِنُ بِمِثْلِ التَّاوِيلَاتِ اِرْجَاعُ جَمِيعِ الْمَوَادِ الْاِيْجَابِيَّةِ عِنْدَ الْاِسْتِثْنَاءِ |
| خفي په هوښيار باندې چې ممكن دى په مثل دتاويلاتو كې راجع كول دټولو موادو ايجابيو په وخت داستثناء كې |
| اِلٰى صُوْرَةِ الْاِسْتِقَامَةِ كَمَا يُقَالُ مَثَلًا فِيْ قَوْلِكَ ضَرَبَنِيْ اِلَّا زَيْدٌ الْمُرَادُ كُلُّ مَنْ |
| صورت دصحيح والي د معنى ته لكه څنګه چې ويلي شي مثلاً په قول ستا ضربني الازيدكې چې مراد هرهغه څوك |
| يُتَصَوَّرُ مِنْهُ الضَّرْبُ مِنْ مَعَارِفِكَ اَوِ الْمَقْصُوْدِ مِنْهُ الْمُبَالَغَةُ فِيْ غُلُوِّ الْمُجْتَمِعِيْنَ عَلٰى |
| دي چې متصور وي د هغوي نه وهل د پيژند ګلوخلكو نه او يامقصود ددې نه مبالغه ده په غلود جمع شوو كې په |
| ضَرْبِكَ. |
| وهلوستاباندې |

**خلاصه دمتن** : ومن ثم سره شارح په مخكني قاعدې باندې دتفريع بيان كوي كلام موجب مفرغ په هغه وخت كې وي كله چې معنى صحيح شي ددې وجې نه **مازال زيد الا عالماً** تركيب ناجائز دي ځكه چې د مازال معنى ده ماثبت ځكه چې ما نافيه ده اوزال په معنى سره دي لهذا په دې كې هم نفي ده پس **مازال زيد الا عالما** معنى ده **ثبت زيد دائماً على جميع الصفات الا على صفة العلم** يعني زيد ټولو صفاتو سره هميشه متصف شوي دي غير دعلم نه او ظاهره ده چې دامعنى صحيح نه ده ځكه چې ډير صفات داسې دي چې متضاده وي چې دهغې جمع كيدل ناممكن دي نو معنى صحيح نه ده ځكه چې داتركيب هم نه صحيح كيږي.

**اغراض دجامي** : وقال الشارح: په دې عبارت سره شارح دجامي په مصنف باندې اعتراض كول دي

**اعتراض** : شيخ رضي ويلي دي چې دمصنف دعدم استقامت دمعنى دوجې نه مازال زيد الا عالما لره ناجائز كول صحيح نه دي ځكه چې ددې معنى صحيح كيدې شي ځكه چې ممكن ده چې دصفاتو نه مراد صفات غير متضاده واخستې شي يازيد چې دكومو صفاتو سره متصف كيدل ممكن دي دهغې صفاتو نه متصف دعلم مستثنى كړې شي معنى به داشي چې زيد ددې ټولو صفاتو سره متصف شو كومو صفاتو سره چې دهغه دپاره ممكن دي غير دصفت دعلم نه ياهغه لره محمول كړې شي صفت دعلم دنفي په مبالغه باندې ګويا هغه داسې وويل چې كيدې شي چې په زيد كې دتنه جميع صفات حاصل شي برابره خبره ده كه داصفات متضاده وي اوياغير متضاده ليكن صفت دعلم موندل ناممكن دي اوس به دواړو تقديرونو باندې معنى صحيح كيږي اوداامثال صحيح كيږي

ولایخفی: په دې عبارت سره شارح د ذکر شوي اعتراض جواب ورکوي

**جواب**: په دې مذکوره دوه (۲) تاویلونو سره د مثالونو صحیح کېدل مسلم دي لیکن که په
ځای کې د داسې تاویلاتو نه کار واخستې شي نو بیا د کلام موجب یو مثال به داسې پاتې نه
شي چې د هغې معنی صحیح نه وي بلکې جمع د موادو ایجابیو لره استثناء په وخت
استقامت صورت طرف ته راجع کول ممکن دي.

مثلاً په ذکر شوي مثال کې یعنې ضربني الا زید دا معنی کېدی شي چې د متکلم مراد دادی
چې څومره خلک زما پیژندو والا دي په هغوي کې هریو زه وهلی یم غیر د زید نه یا دا دې نه
مقصود د متکلم په وهلو کې جمع کیدو والا غلو کې مبالغه کول دي چې زما د وهلو د پاره ډېر
زیات خلک جمع شو

## مستثنی په محل باندې حمل کول او بدل ترې جوړول:

وَ اِذَا تَعَذَّرَ الْبَدَلُ مِنْ حَيْثُ حَمْلِهٖ عَلَى اللَّفْظِ اَیْ عَلٰى لَفْظِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ فَعَلَى

او کله چې متعذر روي بدل د حیثیت د حمل کولو نه په لفظ باندې یعنې په لفظ د مستثنی منه نو حمل کولې شي په

الْمَوْضِعِ اَیْ يُحْمَلُ عَلٰى مَوْضِعِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ لَا عَلٰى لَفْظِهٖ عَمَلًا بِالْمُخْتَارِ عَلٰى قَدْرِ

محل باندې یعنې حمل کولې شي په محل د مستثنی منه باندې نه په لفظ د دې باندې په غوره مذهب په اندازه

الْاِمْكَانِ مِثْلُ مَا جَاءَنِیْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا زَيْدٌ فَزَيْدٌ بَدَلٌ مَرْفُوْعٌ مَحْمُوْلٌ عَلٰى مَوْضِعِ اَحَدٍ لَا مَجْرُوْرٌ مَحْمُوْلٌ

د امکان لکه ماجاءني من احد الا زید نو زید بدل مرفوع دي او محمول دي په محل احد نه او نه دي مجرور چې محمول

عَلٰى لَفْظِهٖ وَ مِثْلُ لَا اَحَدَ فِيْهَا اَیْ فِی الدَّارِ اِلَّا عَمْرٌو فَعَمْرٌو مَرْفُوْعٌ مَحْمُوْلٌ عَلٰى مَحَلِّ اَحَدٍ لَا عَلٰى

وي په لفظ باندې او لکه لا احد فیها یعنې في الدار الا عمرو نو عمرو مرفوع دي او حمل دي په محل د احد باندې نه په

لَفْظِهٖ وَ مِثْلُ مَا زَيْدٌ شَیْءٌ لَا يُعْبَاُ بِهٖ اَیْ لَا يُعْتَدُّ بِهٖ فَشَیْءٌ مَرْفُوْعٌ مَحْمُوْلٌ عَلٰى مَحَلِّ شَيْئًا

لفظ باندې او لکه مازید شیئاً الا شیء لایعبأ به یعنې لا یعتدبه نو شئ مرفوع دي او محمول دي په محل د شیئاً باندې

لَا مَنْصُوْبٌ مَحْمُوْلٌ عَلٰى لَفْظِهٖ وَ قَوْلُهٗ لَا يُعْبَاُ بِهٖ لَيْسَ فِیْ كَثِيْرٍ مِّنَ النُّسَخِ وَ عَلٰى

او نه دي منصوب چې محمول شي په لفظ باندې او دا قول د مصنف چې لایعبأبه نشته دي په ډیرو نسخو کې او په

مَا وَقَعَ فِیْ بَعْضِهَا فَهُوَ صِفَةٌ لِشَیْءٍ الْمُسْتَثْنٰى قِيْلَ اِنَّمَا وَصَفَهٗ

هغه څه چې واقع دي په بعضې نسخو کې نو دا صفت دي د پاره د شئ مستثنی جا ویلې دي چې په تحقیق سره د مصنف

بِهٖ لِئَلَّا يَلْزَمَ اسْتِثْنَاءُ الشَّیْءِ مِنْ نَفْسِهٖ وَ لَا يَخْفٰی اَنَّهٗ لَوْ

کړې شئ لره په لایعبأبه سره د دې د پاره چې لازم نه شي استثناء د شئ د حیال نفس نه او نه دي وي خفي چې که چیرته

جُعِلَ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ شَيْئًا اَعَمَّ مِنْ اَنْ يَّزِيْدَ عَلَيْهِ صِفَةٌ غَيْرُ الشَّيْئِيَّةِ اَوْ لَا وَ خُصَّ

وګرځول شي مستثنى منه عام څيز د دې نه چې زيادت وشي په دې باندې د صفت غير د څيزوالي او يا نه او خاص يې

الْمُسْتَثْنٰى بِمَا لَا يَزِيْدُ عَلَيْهِ صِفَةٌ غَيْرُ الشَّيْئِيَّةِ لَكَانَ اَدَقَّ وَ اَلْطَفَ

کړې مستثنى په هغه څه سره چې زياتوالې نه شي کيدې په دې باندې د صفت غير څيزنووي به دا ډيره دقيقه او لطيفه

وَ اِنَّمَا تَعَذَّرَ الْبَدَلُ عَلَى اللَّفْظِ فِي الصُّوْرَةِ الْاُوْلٰى لِاَنَّ مِنَ الْاِسْتِغْرَاقِيَّةِ لَا تُزَادُ

او په تحقيق سره متعذر دې بدل په لفظ کې په اولني صورت کې خکه مِنْ استغراقيه دې چې زياتوالې نه شي کيدې

اِتِّفَاقًا بَعْدَ الْاِثْبَاتِ اَيْ بَعْدَ مَا صَارَ الْكَلَامُ مُثْبَتًا لِانْتِقَاضِ النَّفْيِ بِاِلَّا

په دې باندې اتفاقا پس د اثبات نه يعني پس د هغه څه چې وګرځول شي کلام مثبت د وجې د ماتيدو د نفي په الا سره

لِاَنَّهَا لِتَاكِيْدِ النَّفْيِ وَ لَا نَفْيَ بَعْدَ الْاِنْتِقَاضِ فَلَوْ اُبْدِلَ عَلَى اللَّفْظِ وَ قِيْلَ

خکه مِنْ د پاره د تاکيد د نفي دې او نفي نه ده پس د ماتيدو نه نو که چيرته بدل کړې شي په لفظ باندې او وويل شي

مَا جَاءَنِيْ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا زَيْدٍ بِالْجَرِّ لَكَانَ فِيْ قُوَّةِ قَوْلِنَا جَاءَنِيْ مِنْ زَيْدٍ فَلَزِمَ زِيَادَةُ مِنْ

چې ماجاءني من احد الازيد په جر سره نووي به دا په قوت د دې قول زمونږ کې چې جاءني من زيد نو لازم شو زيادت د مِنْ

فِي الْاِثْبَاتِ وَ ذٰلِكَ غَيْرُ جَائِزٍ وَ فِي الصُّوْرَتَيْنِ الْاٰخِرَتَيْنِ لِاَنَّهُ لَوْ اُبْدِلَ الْمُسْتَثْنٰى عَلَى اللَّفْظِ وَقِيْلَ

په اثبات کې او دا غير جائز دې او په آخري صورتونو کې که چيرته بدل کړې شي مستثنى په لفظ باندې او وويل شي

لَا اَحَدَ فِيْهَا اِلَّا عَمْراً بِالنَّصْبِ لِاَنَّ فَتْحَتَهُ شَبِيْهَةٌ بِالْحَرَكَةِ الْاِعْرَابِيَّةِ لِاَنَّهَا حَصَلَتْ

چې لا احد فيها الا عمرا په نصب سره خکه چې فتحه د دې مشابه ده د حرکت اعرابيه سره خکه دا حاصله شوې ده

بِكَلِمَةِ لَا فَهِيَ كَالنَّصْبِ الْحَاصِلِ بِالْعَامِلِ فَلَا بُدَّ حِيْنَئِذٍ مِنْ تَقْدِيْرِ لَا

په کلمې د لا سره نو دا په شان د نصب دې چې حاصل وي په عامل سره نو لابدي ده په دې وخت کې د مقدر کولو د لا نه

حَقِيْقَةً اَوْ حُكْمًا لِتَعْمَلَ فِيْهِ هٰذَا الْعَمَلَ وَ كَذَا فِيْ قَوْلِهِ مَا زَيْدٌ شَيْئاً اِلَّا شَيْءٌ

حقيقة او يا حکما د دې د پاره چې عمل وکړي په بدل کې دا عمل او همدا رنګې په دې قول د قائل مازيد شيئا الاشئ کې

لَوْ حُمِلَ الْمُسْتَثْنٰى عَلٰى لَفْظِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ لَا بُدَّ حِيْنَئِذٍ مِنْ تَقْدِيْرِ مَا كَذٰلِكَ

که چيرته حمل کړې شي مستثنى په لفظ د مستثنى منه باندې نو لابدي ده په دې وخت کې د تقدير د ما نه همدا رنګې

لِتَعْمَلَ فِيْهِ وَ مَا وَ لَا لَا تُقَدَّرَانِ لَا حَقِيْقَةً اِذَا لَمْ يَكُنِ الْبَدَلُ اِلَّا بِتَكْرِيْرِ

د دې د پاره چې عمل وکړي په دې کې او ما او لا به نه شي مقدر کولې نه حقيقة چې کله نه وي بدل مګر په تکرار د

الْعَامِلِ وَ لَا حُكْمًا اِذَا اكْتُفِيَ بِدُخُوْلِهِ عَلَى الْمُبْدَلِ مِنْهُ وَ اعْتُبِرَ سَرَايَتُهُ

عامل سره او نه حکما چې کله اکتفا وکړې شي په دخول د عامل سره په مبدل منه باندې او معتبر کړې شي سرايت

حُكْمِهِ اِلَيْهِ فَاِنَّهُ فِيْ قُوَّةِ التَّقْدِيْرِ حَالَ كَوْنِهِمَا عَامِلَتَيْنِ فِي الْمُسْتَثْنٰى

دحکم عامل طرف ته ځکه دا په قوت دتقدیر کې دي په حال کون ددې دواړوچې عاملین وي په هغه مستثنی کې

الْمَحْمُوْلُ عَلَى الْبَدَلِ بَعْدَهُ اَيْ بَعْدَ الْاِثْبَاتِ يَعْنِيْ بَعْدَ مَا صَارَ الْكَلَامُ مُثْبَتًا

چې محمول وي په بدل باندې پس ددې نه یعنې پس داثبات نه یعنې پس دهغه څه چې وګرځول شي کلام مثبت دوجې

لِانْتِقَاضِ النَّفْيِ بِاِلَّا لِاَنَّهُمَا اَيْ مَا وَ لَا عَمِلَتَا لِلنَّفْيِ وَ قَدِ انْتَقَضَ النَّفْيُ بِاِلَّا

دماتېدو دنفي په الا سره ځکه دادواړه یعنې ماولادا عمل کوي دپاره دنفي اوپه تحقیق سره ماته شوه نفي په الا

وَ حَيْثُ تَعَذَّرَ فِيْ هَاتَيْنِ الصُّوْرَتَيْنِ الْبَدَلُ عَلَى اللَّفْظِ حُمِلَ عَلَى الْمَحَلِّ فَعَمْرٌو

سره اوچې کله متعذر وي په دې دواړوصورتونوکې بدل په لفظ باندې نوحمل کولې به شي په محل باندې نوعمرو

مَرْفُوْعٌ عَلَى اَنَّهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى مَحَلِّ اَحَدٍ وَ هُوَ الرَّفْعُ بِالْاِبْتِدَاءِ وَ شَيْءٌ مَرْفُوْعٌ

مرفوع دي بناپه دې چې دامحمول دي په محل باندې اومحل داحد هغه رفع ده دابتداء دوجې نه او شئ مرفوع دي

عَلَى اَنَّهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى مَحَلِّ شَيْئًا وَ هُوَ الرَّفْعُ بِالْخَبَرِيَّةِ.

بناپه دې باندې چې دامحمول دي په محل دشیئاًباندې اوهغه رفع ده دوجې دخبریت نه

**خلاصه دمتن**: صاحب دکافیې وایي چې په کومو صورتونو کې بدل جوړول مختار دي که په دغه صورتونو کې مستثنی لره دمستثنی منه لفظ باندې محمول کول اوبدل جوړول متعذر وي نو مستثنی منه محل باندې محمول کول اوبدل به جوړولې شي مثال جاءني من احد الا زيد په دې کې زید مرفوع بدل دي او احد محل باندې محمول دي په دې لفظ باندې محمول شوی مجرور نه دي اومثل لا احد فيها الا عمرو په دې کې عمرو بدل دي داحد نه دا دهغه محل باندې محمول منصوب دي ددې لفظ باندې محمول شوي منصوب نه دي وما زيد شيئاً الا شئ لايعبأ به په دې کې شئ منصوب په اول شیئاً په لفظ باندې محمول نه دي بلکه مرفوع دي اومستثنی منه محل باندې محمول دي.

**اغراض دجامي**: لان من لاتزاد بعد الاثبات: ددې ځای نه صاحب دکافیې په ذکر شوو درې (۳) مثالونو کې مستثنی لره په مستثنی منه لفظ باندې محمول کولو اوبدل جوړول دمتعذر کیدو وجه بیانوي په اول مثال کې بدل جوړول ځکه متعذر دي چې من استغراقیه داثبات نه وروستو زائده نه وي یعنې هغه کلمه چې دالا په ذریعې سره دنفي ماتیدو په وجې سره مثبت جوړ شي په دې کې من زائده نه وي ځکه چې من استغراقیه دنفي تاکید دپاره راځي او د الا په

دريعه دنفي ماتيدو نه وروستو نفي باقي نه پاتي كيږي ، كه په اولني مثال كې مستثنى لره دمستثنى منه په لفظ باندې محمول شي اوبدل جوړ كړې شي اوداسې وويلې شي چې **ما جاءني من احد الا زيد** نو دابه **جاءني من زيد** په وخت كې به وي ځكه چې بدل تكرار دعامل په حكم كې وي يعنې بدل اومبدل منه دواړو عامل يو دي ځكه چې دلته دمبدل منه عامل من دي لهذا دبدل عامل به هم من شي نو عبارت به داسې شي چې **جاءني من زيد** نو مثبت كلام كې دمن زيادت لازم راځي اودا ناجائز دي .

<u>**وفي الصورتين**</u> : په دويم اودريم مثال كې مستثنى لره دمستثنى منه په لفظ باندې محمول كول بدل جوړول ځكه متعذر دي كه په دويم مثال كې مستثنى لره دمستثنى منه لفظ باندې محمول شي اوبدل جوړ كړې شي اوداسې وويلې شي چې **لا احد فيها الا عمروا** نو په دې وخت كې لا لره حقيقةً ياحكماً مقدر منل ضروري دي چې لا په دې كې عمل وكړي **حقيقةً** په دې وخت كې كله چې بدل تكرار دعامل په حكم كې وي يعنې دې لره تكرار نه په غير بدل جوړول جائز نه دي لكه څنګه چې دبعضې نحويانو مذهب دي اوحكماً هغه وخت چې كله مبدل منه باندې د عامل ددخول سره اكتفاء وكړې شي اوبدل طرف ته دهغه حكم دسرايت اعتبار وكړې شي .

همدارنګې كه په دريم مثال كې لفظ باندې محمول شي اوبدل جوړ كړې شي اوداسې وويلې شي چې **مازيد شيئاً الا شيئاً** نو ددې نه مخكې **ما**زائده كول ضروري دي **حقيقةً** يا **حكماً** ځكه چې په دې كې عمل وشي حقيقةً په هغه وخت كې چې كله بدل دتكرار دعامل په حكم كې وي او حكماً په هغه وخت كې چې كله مبدل منه دعامل ددخول سره اكتفاء وشي اوبدل طرف ته دهغه حكم دسرايت اعتبار وكړې شي حالانكه **ما** او **لا** داثبات نه ورستو عامل مقدر كيدې نه شي ځكه چې دادواړه معنى دنفي دوجې نه عمل كوي اونفي دالا دوجې نه ماته شوه نوپه دې صورتونو كې مستثنى لره دمستثنى منه په محل باندې به محمول شي اوبدل به جوړ شي ځكه چې په لفظ باندې محمول كول اوبدل جوړول متعذر دي لهذا په دويم مثال كې **عمرو** به مرفوع وي په دې بناء باندې چې هغه په محل باندې محمول دي اودهغه محل رفع دي په دې بناء باندې چې هغه مبتدا دي اودريم مثال كې **شئ** مرفوع دي ځكه چې هغه **شيئاً** په محل باندې محمول دي اوهغه په محل درفع كې دي په دې بناء چې هغه خبر دي .

<u>**ومن ثم جاز**</u> : په دې عبارت سره شارح په ماقبل باندې دتفريع بيان كوي ځكه چې دليس عمل د

فعليت په وجې سره وي نه دنفي دمعنی په وجې سره او ما او لا عمل معنی دنفي دوجې سره وي ددې وجې نه ليس زيد الا قائماً ترکيب جائز دي اگرچې دليس نفي د الا دوجې نه ماته شوي ده ليکن دهغه عمل دفعليت دوجې نه دي اوهغه باقي دي لهذا ليس په قائماً کې عمل کولې شي او قائماً نه دخبريت په بناء نصب ورکولې شي اومازيد الا قائما والاترکيب جائز نه دي خکه چې د ماعمل دنفي د وجې څخه دي اونفي د الا دوجې نه ماته شوه لهذا ما په قائماً کې عمل نه شي کولې اودي نه دخبريت په بناء نصب نه شي ورکولې خکه چې دا ممتنع دي

من حيث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: اذا تعذر البدل کې على لره دتعذر صله جوړول صحيح نه دي خکه چې دتعذر صله باء راخي على نه راخي.

**جواب**: على دتعذر صله نه ده بلکې داد محذوف صله ده چې حمل دي من حيث حمله سره يې دې طرف ته يې اشاره وکړه

اى لفظ المستثنى منه: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې په اللفظ کې الف لام دمضاف اليه په عوض کې دي چې مستثنى منه دي

اى يحمل على: په دې عبارت سره شارح دعلى الموضع متعلق بيانوي چې ددې متعلق محذوف دي چې يحمل دي ، يادا جواب دي دسوال مقدر

**سوال**: اذا تعذر شرط اوفعلى الموضع جزا ده حالانکه دجزاء دپاره جمله کيدل ضروري دي فعلى الموضع جمله نه ده.

**جواب**: على الموضع جارمجرور ديحمل محذوف متعلق دي اودا جمله جزاء ده

اى على موضع المستثنى منه: المستثنى منه لره يې مقدر کړو اوشارح دجامي وايي چې په الموضع بـ ـدې الف لام دمضاف اليه په عوض کې دي

لا على لفظه: په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه چې فعلى الموضع قيد احترازي دي په دې سره په لفظ باندې دحمل نه احتراز دي

مثل ما جاءني من احد الا زيد: په دې عبارت سره شارح دمثالونو وضاحت کوي

عملاً: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : کله چې مستثنی دمستثنی منه په لفظ باندې حمل کول متعذر دي نو مناسب ده چې دې لره منصوب علی الاستثناء ولوستلې شي

**جواب** : مستثنی لره دمستثنی منه په محل باندې محمول کول اوبدل ترې ښکه جوړ کړي شو چې بقدر الامکان په مختار باندې عمل وشي ښکه چې بدل جوړول مختار اوغوره دي .

**ای لایعتد** : په دې عبارت سره شارح د لا یعبأ معنی بیانوي .

**وقوله** : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : دمصنف مقصد تعذر بدل عن لفظ المستثنی منه مثال پیش کول دي اودا مقصد به ما زید شیئاً الا شئ سره هم حاصلیږي نود لا یعبأ به اضافه یې ولې وکړه ؟

**جواب** : لا یعبأ به په دېرو نسخو کې نشته دي نو په دې باندې څه اشکال نشته دي اوپه کومو نسخو کې چې واقع دي نوپه هغې کې هغه دشئ صفت دي چې مستثنی دي اوداصفت یې ښکه راوړو چې استثناء الشئ علی نفسه والاخرابي لازم رانه شي بلکه استثناء الخاص عن العام راشي کومه چې په کلام دعربو کې شائع دي

**ولا یخفی** : په دې عبارت سره شارح په قول القائل وانما وصفه باندې اعتراض کوي .

**اعتراض** : اعتراض دادې چې ددې صفت داضافې نه په غیر هم دا مثال صحیح کیدې شي بلکه هغه صورت زیات قوي او دقیق دي هغه صورت دادې چې مستثنی منه لره داسې شئ جوړ کړي شي چې ددې نه عام وي چې په دې باندې د شئ کیدو نه غیر څه بل صفت مثلاً عظیم یا حلیم یا علیم یا شریف کیدل زیات کړي شي اویانه اومستثنی لره داسې شئ سره خاص کړي شي چې په هغه باندې دشئ کیدو نه غیر بل صفت زائد نه وي نو اوس استثناء الشئ عن نفسه والا خرابي لازم نه راځي بلکه استثناء الخاص عن العام به لازم راځي اولا یعبأ به دقید اضافي حاجت هم نه راځي دا صورت دقیق ښکه دي چې په دې کې زیات تامل اوتوجه ته ضرورت راځي او لطیف ښکه دي چې په دې کې د لا یعبأ به دصفت داضافه کولو ضرورت نه راځي .

**وانما تعذر البدل** : په دې عبارت سره شارح دیو وهم ازاله کوي :

**وهم** : وهم داوو چې کیدې شي چې لان من ددریم مثال دلیل وي ښکه چې دغه اقرب دي نو

شارح دا وهم په وانما تعذر سره ختم کړو چې دا داول مثال دليل دي د دريم مثال دليل نه دي

من الاستغراقية: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: داقاعده منقوضه !وماته ده په قد کان من مطر سره ځکه چې داکلام مثبت دي او په د
کې من موجود دي

**جواب**: دلته د من نه مراد من استغراقيه دي په ذکر شوي مثال کې من استغراقيه نه دي بلکه
من زائده دي

اى بعد ما: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: ماجاءني من احد الا زيد داکلام منفي دي مثبت نه دي نو دا تعليل د ددې سره څنګه
موافق شو؟

**جواب**: دلته د اثبات نه مراد اثباتِ ابتدائي نه دي بلکه اثباتِ انتهائي مراد دي او په ذکر
شوي مثال کې ابتداء داعتبار سره اګر که منفي دي ليکن انتهاء په اعتبار سره مثبت دي لهذا
تعليل صحيح دي .

## يو اعتراض او د هغې جواب :

فَإِنْ قُلْتَ لِأَحَدٍ فِيْ هٰذَا الْمِثَالِ مَحَلَّانِ مِنَ الْإِعْرَابِ مَحَلٌّ قَرِيْبٌ هُوَ نَصْبُهُ

که ته چيرته اعتراض وکړې چې داحد پاره په دې مثال کې دوه محله دي داعراب يو محل قريب دي هغه نصب

بِكَلِمَةِ لَا وَ مَحَلٌّ بَعِيْدٌ وَ هُوَ رَفْعُهُ بِالْإِبْتِدَاءِ فَلِمَ اعْتَبَرُوْا حَمْلَهُ عَلٰى مَحَلِّهِ

دي په کلمې دلاسره او بل محل بعيد دي او هغه رفع ده په ابتداسره نو ولې معتبر کړو نحويانو حمل د دې په محل

الْبَعِيْدِ لَا الْقَرِيْبِ قُلْتُ لِأَنَّ مَحَلَّهُ الْقَرِيْبَ إِنَّمَا لِعَمَلِ لَا فِيْهِ بِمَعْنَى النَّفْيِ وَ

بعيد باندې نه په قريب باندې نو مونږ وايو چې محل قريب داد پاره دعمل دلا دي په دې کې په معنى د نفي سره او

قَدِ انْتَقَضَ بِهِ إِلَّا بِخِلَافِ مَحَلِّهِ الْبَعِيْدِ فَإِنَّهُ لَا دَخْلَ لِعَمَلِ لَا فِيْهِ بِخِلَافِ لَيْسَ

په تحقيق سره مات شو په الاسره په خلاف د محل بعيد ځکه نشته دخل د عمل دلا د پاره په دې کې په خلاف د ليس

زَيْدٌ شَيْئًا إِلَّا شَيْئًا مَعَ أَنَّهُ انْتَقَضَ النَّفْيُ فِيْهِ أَيْضًا بِهِ إِلَّا لِأَنَّهَا أَيْ لَيْسَ عَمِلَتْ

زيد شيئا الا شيئا سره د دې چې ماته شوې ده نفي په دې کې همدارنګې په الاسره ځکه چې دا يعنې نه دي چې عمل

لِلْفِعْلِيَّةِ لَا لِلنَّفْيِ فَلَا أَثَرَ فِيْهَا لِنَقْضِ مَعْنَى النَّفْيِ فِيْ عَمَلِهَا لِبَقَاءِ

وکړې د پاره دفعليت نه د نفي د پاره نو نشته څه اثر په دې کې د ماتيدو د معنى د نفي په عمل د دې کې د پاره د بقاء

الْاَمْرِ الْعَامِلَةِ هِیَ اَیْ لَیْسَ لِاَجْلِهٖ اَیْ لِاَجْلِ ذٰلِکَ الْاَمْرِ وَ هُوَ الْفِعْلِیَّةُ وَ مِنْ ثَمَّ اَیْ وَ مِنْ اَجْلِ

دامر عامله يعنی ليس دوجې ددې نه يعني دوجې ددې امر اوهغه فعليت دي اوددې وجې نه يعني ددې وجې نه

اَنَّ عَمَلَ لَیْسَ لِلْفِعْلِیَّةِ لَا لِلنَّفْيِ وَ عَمَلَ مَا وَ لَا بِالْعَکْسِ جَازَ لَیْسَ زَیْدٌ اِلَّا قَائِمًا بِاِعْمَالِ

چې عمل دليس دپاره دفعليت دي نه دپاره دنفي اوعمل دما ولا بالعکس دي نوجائز دي ليس زيد الا قائما په عمل

لَیْسَ فِیْ قَائِمًا وَ اِنِ انْتَقَضَ نَفْیُهَا بِـ اِلَّا لِبَقَاءِ فِعْلِیَّتِهَا وَامْتَنَعَ مَا زَیْدٌ اِلَّا قَائِمًا

کولو دليس په قائماکې اوکه چيرته ماته شي نفي په الا سره دپاره دبقاء دفعليت ددې اوممتنع دي مازيد الا قائما په

بِاِعْمَالِ مَا فِیْ قَائِمًا لِاَنَّ عَمَلَهَا فِیْهِ اِنَّمَا هُوَ لِلنَّفْيِ وَقَدِ انْتَقَضَ بِـ اِلَّا .

عمل ورکولو دما په قائماکې ځکه عمل ددې په دې کې دادي دپاره دنفي اوداماتشوې په الا سره .

**خلاصه دمتن :** فان قلت سره شارح يو اعتراض نقل کوي او په قلت سره ددې اعتراض جواب ورکوي

**اغراض دجامي :** فان قلت: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه قلت سره ددې جواب ورکوي

**اعتراض :** په لا احد فيها الا عمرو کې د احد دوه (۲) محله دي : (۱) محلِ قريب اوهغه نصب دي د کلمې د لا دوجې نه . (۲) محل بعيد اوهغه رفع ده د ابتداء دوجې نه ددې څه وجه ده چې عمرو لره د احد په محلِ بعيد باندې محمول شو اومرفوع ولوستلې شو په محلِ قريب باندې محمول شو خو منصوب لوستلې نه شو .

**جواب :** ددې محلِ قريب کې د لا اثر اوددغه عمل دخل دي اودلا عمل معنی دنفي دوجې نه کيږي اونفي خو دالا دوجې نه ماته شوه په خلاف دمحلِ بعيد چې په دې کې دلا عمل څه دخل نشته دي اوهغه دعاملِ معنوي دابتداء دوجې نه مرفوع دي ددې وجې نه دمحلِ بعيد اعتبار يې وکړه په خلاف دليس زيد شيئاً الا شيئاً په دې کې مستثنی لره دمستثنی منه لفظ باندې محمول کول اوبدل جوړول جائز دي باوجو ددې په دې کې هم نفي دالا دوجې نه ماته شوه دا جائز ځکه وي چې ليس دفعليت دوجې نه عمل کوي معنی دنفي دوجې نه . نه لهذا دنفي د ماتيدو دوجې نه دهغه په عمل کې څه اثر نه پريوځي ځکه چې دهغه عمل دفعليت دوجې نه دي اوهغه باقي دي .

ومن ثم ای ومن اجل: په دې عبارت سره شارح په ماقبل باندې د تفريع بيان کوي چې ددې

تفریع حاصل دادې چې دلیس عمل دفعلیت دوجې نه وي دنفي دوجې نه .نه وي ددې وجې نه
لیس زیداً قائماً ویل جائز دي اګرکه د الا دوجې نه معنی دنفي منقوض شوي ده لیکن دلیس
فعلیت باقي دي ددې وجې نه دهغه عمل هم باقي دي خکه چې لیس قائماً لره بناء برخبریت
نصب ورکولې شي مازید الا قائماً ویل جائز نه دي خکه چې دما ولا عمل معنی دنفي دوجې نه
وو او د الا د وجې نه معنی د نفي ماته شوي ده لهذا دا قائماً ته بناء برخبریت نصب نه شي
ورکولې

## دمستثنی داعراب دڅلورم قسم ذکر :

وَ الْمُسْتَثْنٰی مَخْفُوْضٌ اَیْ مَجْرُوْرٌ بَعْدَ غَیْرَ وَ سِوٰی بِکَسْرِ السِّیْنِ اَوْ ضَمِّهَا مَعَ الْقَصْرِ
اومستثنی مخفوض یعنې مجروروي پس دغیراودسوی نه په کسري دسین اویاپه ضمې سره د الف مقصوره
وَ سِوَاءَ بِفَتْحِ السِّیْنِ وَ کَسْرِهَا مَعَ الْمَدِّ لِکَوْنِهٖ مُضَافًا اِلَیْهِ وَ بَعْدَ
اوبرابرده خبره ده چې په فتحې دسین سره وي اوکه په کسرې سره .سره دمد دوجې د ګ..ونه مضاف الیه اوپس د
حَاشَا فِی الْاَکْثَرِ لِکَوْنِهَا حَرْفَ جَرٍّ فِیْ اَکْثَرِ اِسْتِعْمَالَاتِهِمْ وَ اَجَازَ بَعْضُهُمُ النَّصَبَ بِهَا
حاشانه په اکثرکې دوجې دکیدونه حرف جرپه اکثراستعمال کې اوجائزکړي بعضې نحویانونصب په دې سره
عَلٰی اَنَّهَا فِعْلٌ مُتَعَدٍّ فَاعِلُهٗ مُضْمَرٌ وَ مَعْنَاهَا تَبَرِّئَةُ الْمُسْتَثْنٰی عَمَّا نُسِبَ
چې دافعل متعدي دي اوفاعل ددې مضمردي اومعنی ددې بري کول دمستثنی دي دهغه څه نه چې مسوب
اِلَی الْمُسْتَثْنٰی مِنْهُ نَحْوُ ضَرَبَ الْقَوْمُ عَمْرًوا حَاشَا زَیْداً اَیْ بَرَّاَهُ اللهُ عَنْ ضَرْبِ عَمْرٍو.
شوې مستثنی منه طرف ته لکه ضرب القوم عمرواًحاشازیداًیعنې خلاص کړوالله هغه دوهلود عمرونه .

**خلاصه دمتن :** ددې ځاې نه دمستثنی داعراب دڅلورم قسم بیان دي چې هغه مستثنی چې غیر،سواء ، اودسواء نه وروستو واقع وي نودابه مجرور وي اود حاشانه وروستو هم په اکثر ستعمال کې مجرور وي .

**اغراض دجامي :** المستثنی : په دې عبارت سره شارح دغیر مشهور تفسیر په مشهور سره کوي .

مجرور : په دې عبارت سره شارح بیان دمعنی کوي چې دمخفوض معنی مجرور ده

مع القصر : په دې عبارت سره شارح بیان داعراب کوي یعنې سوی الف مقصوره سره دي په دې کې دوه ﴿۲﴾ لغتونه جائز دي ﴿۱﴾ دسین ضمه ﴿۲﴾ دسین فتحه

لکونه مضافا الیه: په دې عبارت سره شارح د سوی او سواء نه ورستو د مستثنی مجرور کیدو وجه بیانوي دا دې نه وروستو مستثنی ځکه مجرور وي چې مستثنی ددې مضاف الیه وي او مضاف الیه مجرور وي

لکونه: په دې عبارت سره شارح د حاشا نه وروستو په اکثر استعمال کې د مستثنی مجرور کیدو وجه بیانوي د حاشا نه وروستو مستثنی ځکه مجرور وي چې په اکثر استعمال کې حاشا حرف جر دی لهذا ددې نه وروستو واقع کیدو والا اسم به مجرور وي

واجاز: په دې عبارت سره شارح داکثر مقابل بیانوي چې بعضې نحویان د حاشا نه وروستو نصب جائز کوي په دې بناء چې حاشا فعل متعدي دی ددې فاعل ضمیر دی او ددې معنی مستثنی لره د داسې شئ بري کوي کوم چې مستثنی منه طرف ته منسوب دی مثلاً ضرب القوم عمروا حاشا زید ددې معنی د الله تعالی زید لره د عمرو وهلو نه بري او خلاص کړو

## د اعراب غیر بیان:

| وَ اِعْرَابُ غَيْرَ فِيْهِ اَيِ الْاِسْتِثْنَاءِ دُوْنَ الصِّفَةِ اِذْ هُوَ حِيْنَئِذٍ يُعْرَبُ بِاِعْرَابِ مَوْصُوْفِهِ |
|---|
| او اعراب غیر په دې کې یعنې په استثناء کې نه په صفت کې ځکه په دې وخت کې معرب وي په اعراب د موصوف |
| كَاِعْرَابِ الْمُسْتَثْنٰى بِاِلَّا عَلَى التَّفْصِيْلِ الْمَذْكُوْرِ فِيْمَا سَبَقَ فَكَاَنَّهُ لَمَّا انْجَرَّ بِهِ |
| سره لکه اعراب د مستثنی په الا سره په هغه تفصیل سره چې ذکر شوي مخکې نو ګویا چې هر کله مجرور شو په دې |
| الْمُسْتَثْنٰى بِالْاِضَافَةِ انْتَقَلَ اِعْرَابُهُ اِلَيْهِ وَ غَيْرَ اَيْ كَلِمَةُ غَيْرَ فِي الْاَصْلِ صِفَةٌ لِدَلَالَتِهَا |
| سره مستثنی په اضافت سره نو منتقل شو اعراب ددې غیر طرف ته یعنې کلمه د غیر په اصل کې صفت دی چې دلالت |
| عَلٰى ذَاتٍ مُبْهَمَةٍ بِاِعْتِبَارِ قِيَامِ مَعْنَى الْمُغَايَرَةِ بِهَا فَالْاَصْلُ فِيْهَا اَنْ تَقَعَ صِفَةً |
| کوي په ذات مبهم باندې په اعتبار د قیام د معنی د مغایرة په دې سره نو اصل په دې کې دا دی چې واقع وي صفت |
| كَمَا تَقُوْلُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ غَيْرُ زَيْدٍ وَ اِسْتِعْمَالُهَا عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ كَثِيْرٌ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ لٰكِنَّهَا |
| لکه څنګه چې تاسو وایې جاءني رجل غیر زید او استعمال ددې په دې طریقې باندې ډیر دی په کلام د عربو کې لیکن |
| حُمِلَتْ عَلٰى اِلَّا وَ اسْتُعْمِلَتْ مِثْلَهَا فِي الْاِسْتِثْنَاءِ عَلٰى خِلَافِ الْاَصْلِ وَ ذٰلِكَ |
| داحمل کړې شوې دې په الا باندې او استعمال شوې دې په شان ددې په استثناء کې په خلاف د اصل او دا دوجې د |
| لِاِشْتِرَاكِ كُلٍّ مِنْهُمَا فِيْ مُغَايَرَةِ مَا بَعْدَهُ لِمَا قَبْلَهُ كَمَا حُمِلَتْ اِلَّا عَلَيْهَا اَيْ |
| اشتراک د هر یو ددې دواړو نه په مغائرت د مابعد ددې د ماقبل د پاره لکه څنګه چې حمل شوې الا په دې باندې یعنې |

عَلٰى كَلِمَةِ غَيْرَ فِي الصِّفَةِ لٰكِنْ لاَ تُحْمَلُ إِلاَّ عَلَيْهَا فِي الصِّفَةِ غَالِباً إِلاَّ إِذَا كَانَتْ

په كلمه د غير باندې په صفت كې ليكن دا نه شي حمل كولې مگر په دې باندې په صفت كې غالباً مگر چې كله وي

أَيْ إِلاَّ تَابِعَةً لِجَمْعٍ أَيْ وَاقِعَةً بَعْدَ مُتَعَدِّدٍ فَوَجَبَ أَنْ يَكُوْنَ مَوْصُوْفُهَا مَذْكُوْراً لاَ مُقَدَّراً كَمَا قَدْ

يعني الاتابع د پاره د جمع يعني واقع وي پس د متعدد نو واجب دې چې وي موصوف د دې مذكور نه مقدر لكه څنگه

يَكُوْنُ مُقَدَّراً فِي غَيْرَ مِثْلُ جَاءَنِيْ غَيْرُ زَيْدٍ وَ بَعْدَ مَا كَانَ مَذْكُوْراً يَكُوْنُ مُتَعَدِّداً لِيُوَافِقَ

چې وي مقدر په غير كې لكه جاءني غير زيد او پس د هغه نه چې وي مذكور نو وي به متعدد د دې د پاره چې موافق شي

حَالُهَا صِفَةً حَالَهَا أَدَاةَ الإِسْتِثْنَاءِ إِذْ لاَ بُدَّ لَهَا فِي الإِسْتِثْنَاءِ مِنَ

حال د دې د صفت سره په هغه حال كې چې هغه د حرف استثناء د پاره وي ځكه چې نشته دې خلاصي په استثناء كې

مُسْتَثْنًى مِنْهُ مُتَعَدِّدٍ فَلاَ تَقُوْلُ فِي الصِّفَةِ جَاءَنِيْ رَجُلٌ إِلاَّ زَيْدٌ وَ الْمُتَعَدِّدُ أَعَمُّ مِنْ أَنْ يَكُوْنَ جَمْعاً لَفْظاً كَرَجُلٍ

د مستثنى منه متعدد نه نو نه نه شي ويلې په صفت كې جاءني رجل الازيد او متعدد عام دې چې وي جمع لفظاً لكه رجل

أَوْ تَقْدِيْراً كَقَوْمٍ وَرَهْطٍ وَأَنْ يَكُوْنَ مُثَنًّى فَدَخَلَ فِيْهِ نَحْوُ مَا جَاءَنِيْ رَجُلاَنِ إِلاَّ زَيْدٌ مَنْكُوْرٍ أَيْ مُنَكَّرٍ

او يا تقديراً لكه قوم او رهط او يا وي تثنيه نو داخل شو په دې كې د امثال چې ماجاءني رجلان الازيد منكور يعني نكره وي

لاَ يُعَرَّفُ بِاللاَّمِ حَيْثُ يُرَادُ بِهِ الْعَهْدُ أَوِ الإِسْتِغْرَاقُ فَيُعْلَمُ

چې نه وي معرفه په لام سره په داسې شان چې اراده كولې شي په دې سره عهد خارجي او يا استغراقي نو معلوم شو

التَّنَاوُلُ عَلٰى تَقْدِيْرِ الإِسْتِغْرَاقِ وَ عَلٰى تَقْدِيْرِ أَنْ يُشَارَ بِهِ إِلٰى جَمَاعَةٍ يَكُوْنُ زَيْدٌ مِنْهُمْ

شمول په تقدير د استغراق كې او په تقدير د دې چې اشاره وكړې شي په دې سره يو جماعت ته چې وي زيد د دوي نه

فَلاَ يَتَعَذَّرُ الإِسْتِثْنَاءُ الْمُتَّصِلُ أَوْ عَدَمُ التَّنَاوُلِ قَطْعاً عَلٰى تَقْدِيْرِ أَنْ يُشَارَ بِهِ إِلٰى جَمَاعَةٍ

د دوي نه نو نه د ه متعذر د استثنا متصل او عدم شمول قطعاً په دې تقدير چې اشاره وكړې شي په دې سره يو جماعت ته

لَمْ يَكُنْ زَيْدٌ مِنْهُمْ فَلاَ يَتَعَذَّرُ الْمُنْقَطِعُ غَيْرِ مَحْصُوْرٍ وَ الْمَحْصُوْرُ نَوْعَانِ إِمَّا الْجِنْسُ الْمُسْتَغْرِقُ نَحْوُ

چې نه وي زيد د دوي نه نو نه دې متعذر منقطع غير محصور او محصور په دوه قسمه دې يا د جنس مستغرق د پاره لكه

مَا جَاءَنِيْ رَجُلٌ أَوْ رِجَالٌ أَوْ بَعْضٌ مِنْهُ مَعْلُوْمُ الْعَدَدِ نَحْوُ لَهُ عَلَيَّ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ أَوْ عِشْرُوْنَ وَ إِنَّمَا اشْتُرِطَ

ماجاءني رجل او رجال او يا بعضې د دې نه معلوم العدد وي لكه له علي عشرة دراهم او عشرون او په تحقيق سره شرط كړو

أَنْ يَكُوْنَ غَيْرَ مَحْصُوْرٍ لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ مَحْصُوْراً عَلٰى أَحَدِ الْوَجْهَيْنِ وَجَبَ دُخُوْلُ مَا بَعْدَ إِلاَّ فِيْهِ

چې ... غير محصور ځكه كه چيرته محصور وي په يو د دې دوارو وجهو نو واجب دي د خول د مابعد د الا په دې كې

فَلاَ يَتَعَذَّرُ الإِسْتِثْنَاءُ نَحْوُ كُلُّ رَجُلٍ إِلاَّ زَيْداً جَاءَنِيْ وَ لَهُ عَلَيَّ عَشَرَةٌ إِلاَّ دِرْهَماً وَ إِنَّمَا يُصَارُ عِنْدَ وُجُوْدِ

نو نه د ه متعذر د استثنا لكه كل رجل الا زيدا جاءني وله علي عشرة الا درهما او په تحقيق سره گرځوي په وخت د وجود

هٰذِهِ الشَّرَائِطِ إِلَى حَمْلٍ إِلاَّ عَلَى غَيْرَ لِتَعَذُّرِ الْاِسْتِثْنَاءِ عِنْدَ وُجُودِهَا فَيُضْطَرُّ إِلَى حَمْلِهَا

ددې شرائطو کې د حمل کولو د الا په غير باندې دوجې د تعذر داستثنا په وخت دوجود ددې کې نو مجبور ېږي حمل

عَلَى غَيْرَ وَ إِنَّمَا قُلْنَا فِي صَدْرِ هٰذَا الْكَلاَمِ إِنَّ إِلاَّ لاَ تُحْمَلُ عَلَى الصِّفَةِ

ددې ته په غير باندې اوپه تحقيق سره مونږ وويل په اول ددې کلام کې چې الا دا به شي حمل کولې په صفت باندې

غَالِباً فَقَيَّدْنَاهُ بِقَوْلِنَا غَالِباً لِاَنَّهُ قَدْ يَتَعَذَّرُ الْاِسْتِثْنَاءُ فِي الْمَحْصُورِ نَحْوُ جَاءَنِي مِأَةُ رَجُلٍ

غالباً نو مونږ مقيد کړه په ددې قول سره چې غالبا ځکه کله کله متعذر وي استثنا په محصور کې لکه جاءني مائة رجل

إِلاَّ زَيْدٌ وَقَدْ لاَ يَتَعَذَّرُ فِي غَيْرِ الْمَحْصُورِ نَحْوُ مَا جَاءَنِي رِجَالٌ إِلاَّ وَاحِداً أَوْ إِلاَّ رَجُلاً أَوْ إِلاَّ حِمَاراً وَلٰكِنْ لَمَّا كَانَ

الازيد اوکله نه وي متعذر په غير د محصور کې لکه ماجاءني رجال الا واحدا او الا رجلا او الا حمارا خو ليکن هر کله چې

ذٰلِكَ نَادِراً لَمْ يَلْتَفِتِ الْمُصَنِّفُ إِلَيْهِ فِي بَيَانِ هٰذِهِ الْقَاعِدَةِ.

وو دا ن در د نو توجه و نه کړه مصنف دې ته په بيان ددې قاعده کې

**خلاصه دمتن** : دلفظ غير اعراب په باب د استثناء کې مستثنى للاعراب په شان دي ، چې ددې تفصيل مخکې تير شوي دي . ګويا چې کله غير مستثنى طرف ته داضافت دوجې نه مستثنى باندې جر راخي نو دمستثنى اعراب غير طرف ته به منتقل کيږي

**اغراض دجامي** : الا ذا كانت: الا لره په غير صفت باندې په هغه وخت کې محمول کيږي کله چې دا الا دداسې جمع نه وروستو واقع وي چې جمع منکر وي او غير محصور وي .

اى في الاستثناء : په دې عبارت سره شارح بيان دمرجع کوي چې د فيه ضمير مرجع الاستثناء ده .

دون: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې داستثناء قيد احترازي دي په دې سره احتراز دي د هغه غير نه چې صفت وي ځکه چې کله غير صفت وي نو ددې اعراب د موصوف داعراب مطابق اوموافق وي

وغير: لفظ د غير په اصل کې صفت دي ځکه چې دا په ذات مبهم باندې دلالت کوي په دې اعتبار سره چې ددې سره معنى دمغائرت قائميږي يعني د هغه مابعد د هغه ماقبل مغائرت کيدو باندې دلالت کوي پس په دې کې اصل دادې چې داصفت واقع وي لکه جاءني رجل غير زيد اوپه دې طريقه باندې په کلام دعربو کې ددې استعمال کثير دي ليکن کله کله غير لره په خلاف اصل الا باندې محمول کولې شي اوپه استثناء کې استعماليږي ددې د حمل وجه داده چې الا او غير دادواړه دخپل ماقبل دپاره دخپل مابعد په مغائرت کې مشترک دي يعني څنګه

چې د الا مابعد د هغه ماقبل مغائر وي همدارنګې دلفظ دغير مابعد ددې ماقبل مغائر و
ددې وجې نه کله کله غير لره په الا باندې محمولولې شي اوپه استثناء کې استعمالولي شي
لکه څنګه چې الا لره په غير باندې محمول شي اوپه صفت کې استعماليږي
واستعملت مثلها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي
**سوال** : غير په الا باندې محمول کول صحيح نه دي ځکه چې دحمل دپاره محمول اودمحمو
عليه اتحاد شرط دي اودلته اتحاد نشته دي .
**جواب** : دلته دحمل اصطلاحي معنی مراد نه ده بلکې دحمل نه مراد غير د الا په شان اودهغ
په مثل استعماليدل دي .
اي كلمة غير: په دې عبارت سره غرض د شارح د دوه سوالينو مقدرو جواب ورکول دي :
**سوال (۱)** : غير مبتدا او صفة خبر دي اومبتدا دپاره ضروري دي چې دابه معرفه وي يانکر
مخصصه وي اوغير نه معرفه دي اونه نکره مخصصه بلکه نکره محضه ده نو دې لره مبتد
جوړول څنګه صحيح دي ؟.
**سوال (۲)** : دحملت ضمير غير طرف ته راجع دي حالانکه ضمير دمؤنث دي اولفظ د غ
مذکر دي نو دراجع اودمرجع په مينځ کې مطابقت نشته دي .
**جواب** : شارح په کلمې د غير سره ددواړو سوالونو جوابات ورکوي چې دلته د غير نه مرا
کلمه دغير ده نو دراجع اومرجع په مينځ کې مطابقت پيدا شو لهذا دويم اعتراض دفع شو ، ا
اولنې سوال هم دفع شو چې دلفظ نه مراد نفسِ لفظ وي اوددې نه دمعنی اراده شوي نه وي ن
هغه علم ګرځي اوعلم معرفه وي نو اول سوال هم رفع شو
الا اذا كانت اي الا: په دې عبارت سره شارح دكانت هي ضمير مرجع متعين کړي دی چې د کانت
ضمير مرجع الا دي
واقعة بعد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي
**سوال** : په الا اذا كانت تابعة کې دكانت ضمير الا طرف ته راجع دي نو مطلب به داشي مګر ک
چې الا تابع وي حالانکه الا تابع جوړول صحيح نه دي ځکه چې تابع اسم وي او الا حرف دي

**جواب** : دله دتابع اصطلاحي معنی مراد نه ده بلکه دتابع لازمي معنی بعد مراد دي نو معنی به يې داشي مګر کله چې الا دجمع نه وروستو واقع وي بيا کله چې **تابعةً** دبعدُ په معنی کې شي نو بعدُ ظرف دي اوظرف دمتعلق تقاضا کوي نو **واقعةً** لفظ مقدر سره شارح دبعدُ متعلق طرف ته اشاره کوي.

متعدد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال** : ستاضابطه اوقاعده منقوضه اوماته ده په ماجاءني رجل الا زيد سره ځکه چې الا دغير په معنی کې دي اودماقبل صفت دي ليکن دجمع نه وروستو واقع نه دي بلکه دمفرد نه وروستو واقع دي.

**جواب** : دلته دجمع نه مراد حسع اصطلاحي نه ده بلکه جمع دلته دمتعدد په معنی کې ده دلته رجل دنکرې تحت النفي واقع کيدو دوجې نه په عموم اوتعدد باندې دلالت کوي لهذا دابه هم په ذکر شوي قاعده کې داخل شي.

فوجب ان يكون: په دې عبارت سره شارح په ماقبل باندې تفريع کوي ځکه چې دالا استعمال په صفت کې خلافِ اصل دي لهذا دهغه سره داضروري دي چې دهغه موصوف به مذکور وي چې دوصفيت والا معنی ظاهره شي په خلاف دغير چې دادصفت دپاره اصل دي ځکه چې ددې موصوف کله کله مقدر کيدې هم شي مثال لکه جاءني غير زيد په دې کې د غير موصوف مقدر دي چې قوم دي.

وبعد مايكون مذكوراً يكون متعدداً: په دې عبارت سره شارح دتعدد دشرط وجه بيانوي د موصوف دمتعدد کيدو شرط يې ځکه لږولي دي چې الا صفتيه د الا استثنائيه دحال موافق شي يعنې لکه څنګه چې دالا مستثنی منه متعدد کيدل ضروري دي همدارنګې موصوف متعدد کيدل هم ضروري دي ځکه چې الا استثنائيه او الا صفتيه ديوبل موافق شي پس په الا صفتي کې داسې ويل جائز دي چې جاءني رجل الا زيد ځکه چې رجل متعدد نه دي اوبه متعدد کې تعميم دي برابره خبره ده که دا لفظاً جمع وي مثال لکه رجال ياتقديراً جمع وي لکه قوم ، رهط يا داتثنيه وي ځکه چې په تثنيه باندې هم دتعدد اطلاق کيږي مثال لکه جاءني رجلان الا زيد ويل جائز دي.

منکور ای منکر : په دې عبارت سره شارح دغير مشهور تفسير په مشهور سره کوي چې دلته منکور دمنکر په معنی سره دي دمنکر مطلب دادې چې دغه جمع لام عهد يا لام استغراق سره معرفه نه وي ځکه چې که لام استغراق سره معرفه وي نو بيابه مستثنی منه مستثنی ته په يقيني طور باندې شامل شي اودمستثنی دخول به په مستثنی منه کې يقيني شي لهذا مستثنی متصل به متعذر نه شي او الا لره دمعنی حقيقي نه خارج کيدو ضرورت نه وي ددې وجې نه الا په غير باندې نه شي محمول کولې که په لام عهد سره معرفه وي نوبيادوه (۲) صورتونه دي :

(۱) الف لام نه داسې جماعت طرف ته اشاره وي چې مستثنی په هغې کې داخل نه وي نو استثناء منقطع ده .

(۲) اوکه داسې جماعت طرف ته اشاره وي چې مستثنی په هغې کې داخل وي نو مستثنی متصل ده ، نو په دواړو صورتونو کې دالا حقيقي معنی متعذر نه ده لهذا حقيقي معنی پريخودل او هغه لره دغير په معنی کې نه شي کيدې ددې وجې نه د منکر شرط ولږولې شو .

والمحصور نوعان : په دې عبارت سره شارح دمحصور داقسامو بيان کوي ، محصور په دوه (۲) قسمه دي : (۱) جنس مستغرق ددې مطلب دادې چې دهغه ټول افرادو احاطه شوي وي يو فرد هم ددې نه خارج نه وي لکه ماجاءني رجل يا ماجاءني رجال په دې کې رجل جنس مستغرق دي .

(۲) دجنس بعضې افراد معلوم العدد وي مثال لکه له علي عشرة دراهم يا له علي عشرون درهما په دې کې درهم جنس دي اوددې بعضې افرادمعلوم العدددي اوهغه لس(۱۰)اوياشل(۲۰)دي .

وانما اشترط : په دې عبارت سره شارح دذکر شوي شرط وجه بيانوي دغير محصور کيدو شرط يې ځکه لږولي دي چې که چيرته مستثنی منه محصور وي نو دالا مابعد په ماقبل کې دخول يقيني کيږي لهذا استثناء به متعذر نه وي لکه کل رجل الا زيد جاءني په دې کې دزيد دخول په کل رجل کې يقيني دي او له علي عشرة الا درهما په دې کې د درهماً دخول په عشرة کې يقيني دي .

وانما يصار : په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې کله ذکر شوي دري (۳) شرطونه موجود شي : (۱) الا د متعدد نه وروستو واقع وي (۲) دا متعدد منکر وي . (۳) غير محصور وي ، نو دې لره د غير په معنی باندې ولې محمول کيږي ددې باعث څه دي نو شارح ددې باعث او وجه بيانوي چې په دې صورت کې داستثناء حقيقي معنی متعذر ده نه استثناء متصل جوړيدي

شي او نه منقطع جوړيدي شي ځکه چې مستثنی په مستثنی منه کښې نه دخول يقيني نه عدم دخول شته ددې وجې نه هغه په غير باندې محمول کول او صفت جوړولې شي.

انما قلنا: په دې عبارت سره شارح دماقبل لفظ وغالباً وجه بيانوي ، دغالباً قيد يې ځکه لړولي دي چې کله کله په محصور کې هم استثناء متعذر کيږي مثال لکه جاءني مائة رجل الا زيد په دې کې زيد په مائة رجل کې نه دخول يقيني دي او نه عدم دخول ، لهذا استثناء متعذر ده ، نه متصل جوړيدي شي او نه منقطع جوړيدي شي او کله کله غير محصور کې استثناء نه متعذر کيږي مثال لکه جاءني رجال الا واحداً په دې کې استثناء متعذر نه ده او جاءني رجال الا رجلاً په دې کې هم استثناء متعذر نه ده او رجل او واحد په رجال کې دخول يقيني دي همدارنګې جاءني رجال الا حماراً په دې کې حمار په رجال کې عدم دخول يقيني دي استثناء متعذر نه ده.

ولكن: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مصنف رحمه الله په کار وو چې دغالباً قيد يې لړولي وي.

**جواب**: په محصور کې استثناء متعذر کيدل او په غير محصور کې استثناء نه متعذر کيدل شاذ او نادر وو نو ددې وجې نه مصنف رحمه الله قاعده بيان کړه او دغه قيد طرف ته يې نظر ونه کړو.

## الا په غير باندې د حمل کولو مثال:

| |
|---|
| نَحْوُ لَوْ كَانَ فِيهِمَا اَىْ فِي السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ آلِهَةٌ جَمْعُ اِلٰهٍ وَلَا دَلَالَةَ فِيهَا عَلٰى عَدَدٍ مَحْصُورٍ اِلَّا اللّٰهُ |
| لکه لوکان فيهما يعني في السماء والارض آلهة جمع داِله ده اونشته دي دلالت په دې کې په عدد محصور باندې الاالله |
| اَىْ غَيْرُ اللّٰهِ لَفَسَدَتَا اَىْ لَخَرَجَتَا عَنِ الْاِنْتِظَامِ فَاِلَّا فِي الْاٰيَةِ صِفَةٌ لِاَنَّهَا تَابِعَةٌ لِجَمْعٍ مَنْكُورٍ |
| يعني غيرالله لفسدتا يعني وتلې به وې دواړه دانتظام نه نوالاپه آيت کې صفت دي ځکه تابع دي دجمع منکور |
| غَيْرِ مَحْصُورٍ وَ هِيَ آلِهَةٌ وَ يَتَعَذَّرُ الْاِسْتِثْنَاءُ لِعَدَمِ دُخُولِ اللّٰهِ فِي آلِهَةٍ بِيَقِيْنٍ فَلَمْ يَتَحَقَّقْ |
| غيرمحصور او هغه آلهه دي او متعذر ده استثناء دوجې دعدم خول دالله په آلهه باندې په يقين سره نو نه موندل |
| شَرْطُ صِحَّةِ الْاِسْتِثْنَاءِ وَ فِي الْاٰيَةِ مَانِعٌ آخَرُ عَنْ حَمْلِ اِلَّا عَلَى الْاِسْتِثْنَاءِ وَ هُوَ اَنَّهُ لَوْ حُمِلَتْ |
| شو شرط دصحت داستثناء او په آيت کې بل مانع دحمل کولو دالاپه استثناء باندې او هغه دا چې که چيرته حمل |
| عَلَيْهِ صَارَ الْمَعْنٰى لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ مُسْتَثْنٰى عَنْهَا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا وَ هٰذَا لَا يَدُلُّ اِلَّا عَلٰى اَنَّهُ |
| کړې شي په دې باندې نو به ګرځي معنی لوکان فيهما آلهة مستثنیٰ عنها الله لفسدتا او دا دلالت نه کوي مګر په دې چې |

| |
|---|
| لَيْسَ فِيْهِمَا آلِهَةٌ مُسْتَغْنٰى عَنْهَا اللهُ وَ بِهٰذَا لَا يَثْبُتُ وَحْدَانِيَّةُ اللهِ تَعَالٰى |
| نشته په زمکه او آسمان کې داسې آلهه چې مستثنی وي دد ې نه الله او په دې سره نه ثابتيږي واحدنيت دالله تعالی |
| لِجَوَازِ اَنْ يَّكُوْنَ حِيْنَئِذٍ فِيْهِمَا آلِهَةٌ غَيْرُ مُسْتَغْنٰى اللهُ عَنْهَا |
| دوجې دجواز ددې خبرې چې وي په دې وخت کې په زمکه او آسمان کې داسې آلهه چې نه وي مستثنی الله دهغې نه |
| بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الصِّفَةُ بِمَعْنٰى غَيْرَ فَإِنَّهُ يَدُلُّ عَلٰى اَنَّهُ لَيْسَ فِيْهِمَا |
| په خلاف دهغه چې کله وي صفت په معنی دغير سره ځکه دا دلالت کوي په دې خبره نه چې نه وي په دې زمکه او آسمان |
| آلِهَةٌ غَيْرُ اللهِ وَ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيْهِمَا آلِهَةٌ غَيْرُ اللهِ يَجِبُ اَنْ لَّا يَتَعَدَّدَ الْاٰلِهَةُ لِاَنَّ |
| کې آلهه غير دالله نه او چې کله نه وي په زمکه او آسمان کې آلهه غير دالله نه نو واجب دي چې نه وي متعدد آلهه ځکه |
| التَّعَدُّدَ يَسْتَلْزِمُ الْمُغَايَرَةَ. |
| تعدد مستلزم دي مغائرت لره . |

**خلاصه دمتن او شرحه:** ددې ځاي نه الا په غير باندې دحمل کولو مثال بيانوي په دې کې الا د غير په معنی سره دې ځکه چې هغه داسې جمع نه پس واقع دي کوم چې منکور او غير محصور دي او هغه آلهة دي او استثناء متعذر ده ځکه چې الله په آلهة کې نه دخول يقيني دي او نه عدم دخول يقيني دي لهذا داستثناء شرط متحقق دي کله چې استثناء متحقق نه ده نو الا د غير په معنی کې شو.

په دې ذکر شوي آيت کې الا په استثناء باندې دحمل کولو يو بل مانع هم موجود دي هغه دادې چې الا په استثناء باندې په حمل کولو سره به يې معنی داشي چې : لو كان فيهما آلهة مستثنی عنها الله تعالى لفسدتا که چيرته په زمکه او آسمان کې داسې اله وي چې دهغې نه الله تعالی مستثنی وي نو دزمکې او آسمان نظام به درهم برهم کيدو اوس دا آيت په دې خبره باندې دلالت کوي چې داسې اله نشته دي چې دهغې نه الله مستثنی وي .

ليکن ددې نه وحدانيت ثابت نه شو ځکه چې ددې نه دا وهم پيدا کيږي چې اګرچې زمکې او آسمان کې داسې آلهه نشته دي چې دهغې نه الله تعالی مستثنی وي ليکن داسې آلهه شته دي چې دهغې نه الله مستثنی نه وي داد مقصود خلاف دي ددې نه وحدانيت دالله تعالی نه ثابتيږي لهذا الا په غير باندې محمول کولې شي او د آلهة صفت جوړولې شي نو معنی به يې داشي چې په زمکه او آسمان کې داسې آلهه نشته دي غير دالله تعالی نه .

کله چې دالله تعالی نه غير آلهه نشته دي نو واضحه شوه چې آلهه متعدد نه دي ځکه چې تعدد مستلزم دي مغائرت ته ، اوچې کله مغائرت نشته نو معلومه شوه چې آلهه متعدد نه دي بلکه يو الله دي .

## الا په غير باندې دحمل کولو د ضعف مثال :

| |
|---|
| وَ ضَعُفَ حَمْلُ اِلَّا عَلٰى فِيْ غَيْرِهِ اَىْ فِيْ غَيْرِ جَمْعٍ مَنْكُوْرٍ غَيْرِ مَحْصُوْرٍ لِصِحَّةِ الْاِسْتِثْنَاءِ |
| اوضعيف دي حمل دالا په غيرباندې دد ې نه په غير يعني په غير دجمع منکورغير محصوردوجې دصحت داستثناء |
| حِيْنَئِذٍ وَ مَذْهَبُ سِيْبَوَيْهِ جَوَازُ وُقُوْعِ اِلَّا صِفَةً مَعَ صِحَّةِ الْاِسْتِثْنَاءِ قَالَ يَجُوْزُ |
| په دې وخت کې اومذهب دسيبويه دجواز دوقوع دالا دي صفت سره دصحت داستثنا وېلي دي سيبويه چې جائز دي |
| فِيْ قَوْلِكَ مَا اَتَانِيْ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدٌ اَنْ يَّكُوْنَ اِلَّا زَيْدٌ صِفَةً وَ عَلَيْهِ اَكْثَرُ الْمُتَأَخِّرِيْنَ تَمَسُّكًا بِقَوْلِهٖ: |
| په دې قول ستا کې ما اتاني احد الا زيدچې وي الا زيدصفت اوپه دې باندې اکثرمتاخرين دي اودليل نيسي په دې قول: |

| لَعَمْرُكَ اَبِيْكَ اِلَّا الْفَرْقَدَانِ | وَ كُلُّ اَخٍ مُفَارِقُهٗ اَخُوْهُ |
|---|---|
| په عمر دپلار ستاقسم مګر فرقدان ستوري | اوهرورور جدا کيدو والا دي دخپل وررونه |

| |
|---|
| فَـ اِلَّا الْفَرْقَدَانِ صِفَةٌ لِكُلِّ اَخٍ لَا اسْتِثْنَاءٌ مِنْهُ وَاِلَّا وَجَبَ اَنْ يُّقَالَ اِلَّا الْفَرْقَدَيْنِ بِالنَّصَبِ |
| نو الا الفرقدان صفت دي دپاره دکل اخ نه استثناء ده ددې نه ورنه واجب ده چې وويل شي الا الفرقدين په نصب سره |
| وَ حَمَلَ الْمُصَنِّفُ ذٰلِكَ عَلَى الشُّذُوْذِ وَ قَالَ فِي الْبَيْتِ شُذُوْذَانِ آخَرَانِ اَحَدُهُمَا وَصْفُ كُلٍّ دُوْنَ الْمُضَافِ |
| اوحمل کړي دي مصنف دا په شذوذ باندې اوويلي دي په بيت کې دوه شذوذه نور دي يو وصف دکل دي نه دمضاف |
| اِلَيْهِ وَ الْمَشْهُوْرُ وَصْفُ الْمُضَافِ اِلَيْهِ اِذْ هُوَ الْمَقْصُوْدُ وَ كُلٌّ لِاِفَادَةِ الشُّمُوْلِ فَقَطْ وَ |
| اليه اومشهوروصف دمضاف اليه دي ځکه چې دا مقصود وي اوکل دپاره دفائدې ورکولو دشمول دي فقط او |
| ثَانِيْهِمَا الْفَصْلُ بِالْخَبَرِ بَيْنَ الصِّفَةِ وَ الْمَوْصُوْفِ وَ هُوَ قَلِيْلٌ. |
| دويم فصل دي په خبر سره په مينځ دصفت اودموصوف کې اودا کم دي . |

**خلاصه دمتن** : جمع منکور دغير محصور نه په غير الا په غير باندې حمل کول ضعيف دي ددې وجې نه مصنف رحمه الله په سيبويه اوپه اکثرو متأخرينو باندې رد کوي .

**اغراض دجامي** : حمل الا على غيره : په دې عبارت سره شارح په ضعف کې د هُوَ ضمير دمرجع بيان کړي دي .

اى في غير جمع منكور : په دې عبارت سره شارح په غيره کې د هٔ ضمير مرجع بيان کړي ده چې په

غيره کې ضمير غير جمع منکور ته راجع دي .

لصحة الاستثناء : په دې عبارت سره شارح وجه دضعف بيانوي چې جمع منکر غير محصور ن غير په نورو مواضعو کې الا په استثناء باندې حمل کول صحيح دي ځکه چې دې لره په غير باندې دحمل کولو ضرورت نشته دي او په غير باندې هلته حمل کيږي چيرته چې الا لر استثنائيه جوړول متعذر وي .

ومذهب سيبويه : په دې عبارت سره شارح دسيبويه مذهب اودده دليل بيانوي چې دسيبوي مذهب دادې چې داستثناء دصحت باوجود الا په غير باندې محمول کول صحيح دي مثال لک ما اتاني احد الا زيد په دې کې زيد په احد کې دخول يقيني دي اوداکثرو متأخرينو مذهب ه همدغه دي دهغه دليل دشاعر قول دي :

| لَعَمْرُکَ اَبِيْکَ اِلَّا الْفَرْقَدَانِ | وَ کُلُّ اَخٍ مُفَارِقُهُ اَخُوْهُ |
|---|---|
| په عمرد پلار ستا قسم مگر فرقدان ستوري | اوهرورور جدا کيدووالا دي دخپل ورورنه |

په دې شعر کې کل اخ مبتدا او مفارقة خبر دي او اخوه دمفارق فاعل دي لعمر ابيک کې لا قسميه دي عمرو ابيک مبتدا دي ددې خبر قسمي محذوف دي او الا الفرقدان دکل اخ صفت دې دهغه نه استثناء نه ده ځکه چې که استثناء وي نو الا الفرقدين نصب سره وي ځکه چې کل مستثنى د الا نه وروستو په کلام موجب کې واقع وي نو په دې باندې نصب واجب دي حالانک دا مرفوع دي اوکل اخوه صفت دي .

اودلته استثناء هم صحيح ده ددې باوجود دې لره صفت جوړ کړي شوي دي معلومه شوه چ دصحت استثناء باوجود الا په غير باندې حمل کول جائز دي ليکن وضعف سره مصنف رحمه الله دې لره ضعيف اوشاذ وګرځولو .

وقال في البيت شذوذان : په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې په دې شعر کې دوه (۲) شذوذ نور هم دي :

(۱) : اول شذوذ دادې چې په دې شعر کې الا الفرقدان دکل صفت جوړ شوي دي ددې مضاف اليه صفت نه دي جوړ شوي حالانکه مشهور دادې چې کله کل څه شي طرف ته مضاف وې اومضاف اليه نه وروستو صفت واقع وي نو هغه دکل مضاف اليه صفت جوړيږي دمضاف نه

خکه چې اصل مقصود دکل مضاف اليه دي او کل صرف دافرادو د احاطي دپاره راځي.
(۲): **دويم شذوذ** دادې چې په دې شعر کې د موصوف او صفت په مينځ کې د خبر فاصله راوړي شوي ده چې هغه مفارقة اخوه دي حالانکه د موصوف صفت په مينځ کې فاصله په اجنبي سره شاذ او نادر دي.

## د سوی او د سواء د اعراب بيان:

| |
|---|
| وَ إِعْرَابُ سِوىً وَ سَوَاءَ النَّصَبُ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ أَيْ بِنَاءً عَلَى ظَرْفِيَّتِهِمَا لِأَنَّكَ إِذَا قُلْتَ جَاءَنِي |
| او اعراب د سوی او سواء نصب دي بناء بر ظرفيت يعني بناء په ظرفيت د دې دواړو باندې خکه چې کله تا ووايي |
| الْقَوْمُ سِوىً أَوْ سَوَاءَ زَيْدٍ فَكَأَنَّكَ قُلْتَ مَكَانَ زَيْدٍ عَلَى الْمَذْهَبِ الْأَصَحِّ وَ هُوَ مَذْهَبُ |
| جاءني القوم سوی او سواء زيد نو ګويا چې تاوويل جاءني القوم مکان زيد په مذهب په صحيح باندې او هغه مذهب |
| سِيبَوَيْهِ فَهُمَا عِنْدَهُ لَازِمَا الظَّرْفِيَّةِ وَ عِنْدَ الْكُوفِيِّينَ يَجُوزُ خُرُوجُهُمَا عَنِ الظَّرْفِيَّةِ |
| دسيبويه دي نو دا دواړه دده په نزد لازم دي د ظرفيت سره او په نزد د کوفيانو جائز دي خروج د دې دواړو د ظرفيت |
| وَ التَّصَرُّفُ فِيهِمَا رَفْعاً وَ نَصْباً وَ جَرّاً لَكِنْ مُتَمَسِّكِينَ بِقَوْلِ الشَّاعِرِ: |
| نه او تصرف په دې دواړو کې په اعتبار د رفع او نصب او جر سره لکه غير چې دليل نيسي په دې قول د شاعر: |

| | |
|---|---|
| وَ لَمْ يَبْقَ سِوَى الْعُدْوَا | نِ دِنَّاهُمْ كَمَا دَانُوا |
| او باقي پاتې نه شو غير د دشمني نه | مونږ هغوي ته بدله ورکړه لکه څنګه يې چې مونږ ته راکړه |

| |
|---|
| وَ زَعَمَ الْأَخْفَشُ أَنَّ سَوَاءَ إِذَا أَخْرَجُوهُ عَنِ الظَّرْفِيَّةِ أَيْضاً نَصَبُوهُ اِسْتِنْكَاراً لِرَفْعِهِ |
| او ګمان کړي اخفش چې سواء چې کله خارج کړو د ظرفيت نه هم دا رنګې نو منصوب يې کړو د وجې د نه خوښولو د رفع |
| فَيَقُولُونَ جَاءَنِي سَوَاءَكَ وَ فِي الدَّارِ سَوَاءَكَ وَ مِثْلُ هٰذَا فِي اِسْتِنْكَارِ الرَّفْعِ فِيمَا غَلَبَ اِنْتِصَابُهُ |
| نو وايي چې جاءني سواءک او في الدار سواءک او په مثل د دې په کراهت کې په هغه کې چې غالب وي منصوب کيدل |
| عَلَى الظَّرْفِيَّةِ قَوْلُهُ تَعَالَى لَقَدْ تَقَطَّعَ بَيْنَكُمْ بِالنَّصْبِ. |
| د دې بنا بر ظرفيت لکه دا قول دالله تعالی لقد تقطع بينکم په نصب سره. |

**خلاصه دمتن**: دصحيح مذهب مطابق سوی او د سواء اعراب د ظرفيت په بناء باندې نصب دي خکه چې کله وويلي شي جاءني القوم سوی زيد يا جاءني القوم سواء زيد ګويا چې داسې ويلي شوي دي جاءني القوم مکان زيد خکه چې د دې معنی ده سواء د زيد نه ټول قوم راغلل.

**اغراض دجامي**: وهو مذهب: په دې عبارت سره شارح اصح مذهب بيانوي، اصح مذهب

مع سيبويه مذهب دي چې رئيس البصريين دي دسيبويه په نزد سوی اوسواء لره ظرفيت لازم دي دظرفيت نه دده خروج جائز نه دي ځکه چې دابه هميشه منصوب وي ليکن دکوفيانو په نزد دده ظرفيت نه خارج کيدل اوده غير په شان په ده کې رفع ، نصب اوجرسره تصرف کول جائز دي ددوي دليل دشاعر داقول دي چې:

| وَ لَمْ يَبْقَ سِوَى الْعُدْوَا | نِ دِنَّاهُمْ كَمَا دَانُوْا |
|---|---|
| اوباقي پاتې نه شوغيردد شمنۍ نه | مونږ هغوي ته بدله ورکړه لکه څنګه يې چې مونږ ته راکړه |

په دې شعر کې سوی منصوب نه دي بلکه مرفوع دي په رفع تقديري سره ځکه چې دادلم يبق فاعل جوړيږي.

**وزعم الاخفش:** په دې عبارت سره شارح داخفش مذهب بيانوي چې اخفش وايي چې دکوفي نحويان سوی اوسواء لره اګرچې دظرفيت ويستل جائز ګڼري ليکن دده باوجود هغه دده رفع لره مکروه ګڼري حالانکه په اول مثال کې سواء فاعل دي اوپه دويم مثال کې مبتدا ده اوددې مثل رفع مکروه کيدو کې دالله تعالی داقول **لقد تقطع بينکم** دي په دې کې **بينکم** د**تقطع** فاعل دي نو دفاعل واقع کيدو په وجه مرفوع کيدل په کار وو ليکن **بينکم** منصوب دي ځکه چې **بين** اکثر دظرفيت په بناء باندې منصوب وي نو داکثرو د لحاظ ساتلو په وجه دلته هم نصب ورکړي شو.

## ﴿خَبَرُ كَانَ وَاَخَوَاتُهَا﴾:

## دخبر د کان تعريف:

| |
|---|
| وَ سَتَعْرِفُهَا فِيْ قِسْمِ الْفِعْلِ اِنْ شَاءَاللهُ تَعَالٰى هُوَ الْمُسْنَدُ بَعْدَ دُخُوْلِهَا اَيْ بَعْدَ دُخُوْلِ كَانَ اَوْ |
| اوزردي چې ته به وپيژني په قسم دفعل کې ان شاء الله دامسند دي پس ددخول ددې نه يعني پس ددخول دکان او |
| اِحْدٰى اَخَوَاتِهَا وَ الْمُرَادُ بِبَعْدِيَّةِ الْمُسْنَدِ لِدُخُوْلِهَا اَنْ يَكُوْنَ اِسْنَادُهٗ اِلٰى اِسْمِهَا وَاقِعًا بَعْدَ دُخُوْلِهَا |
| ياديواخواتودې نه اومراد به بعديت د مسند کې ددخول هغه داچې وي اسناد دې اسم ته واقع پس ددخول دکان |
| عَلٰى اِسْمِهَا وَ خَبَرِهَا وَلَا شَكَّ اَنَّ ذٰلِكَ اِنَّمَا يُتَصَوَّرُ بَعْدَ تَقَرُّرِ الْاِسْمِ وَ الْخَبَرِ فَالْاِسْنَادُ الْوَاقِعُ بَيْنَ اَجْزَاءِ |
| په خپل اسم اوپه خبراوشک نشته چې دامتصور کيږي پس دتقرر داسم اودخبرنو اسناد چې واقع په مينځ داجزاود |
| الْخَبَرِ الْمُقَدَّمِ عَلٰى تَقَرُّرِهٖ لَا يَكُوْنُ بَعْدَ دُخُوْلِهَا بَلْ يَكُوْنُ قَبْلَهٗ فَلَا يَنْتَقِضُ التَّعْرِيْفُ بِمِثْلِ كَانَ |
| خبرمقدم کې په تقرر باندې دانه وي پس ددخول ددې نه بلکې وي مخکې ددې نه نونه ماتيږي تعريف په شان دکان |

| زَيْدٌ يَضْرِبُ اَبُوْهُ وَلَا بِمِثْلِ كَانَ زَيْدٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ بِاَنْ يُّقَالَ يَصْدُقُ عَلٰى يَضْرِبُ وَ قَائِمٌ فِيْ |
|---|
| زيد ابوه قائم سره اونه په كان زيدا بوه قائم باندې چې وويل شي چې دا خو صادقيږي په يضرب او قائم باندې په دې |
| هٰذَيْنِ الْمِثَالَيْنِ الْمُعَرِّفُ وَلَيْسَا مِنْ اَفْرَادِ الْمُعَرَّفِ وَيُمْكِنُ اَنْ يُّقَالَ فِيْ جَوَابِ هٰذَا النَّقْضِ اِنَّ الْمُرَادَ |
| دواړو مثالونو تعريف اونه دي دا افرادو د تعريف نه او ممكن دي چې وويل شي په جواب د دې اعتراض كې چې مراد |
| بِدُخُوْلِهَا وَ رُوْدُهَا لِلْعَمَلِ فِيْهَا وَرَدَتْ عَلَيْهِ كَمَا سَبَقَتِ |
| په دخول ددې سره وارديدل ددې دي دپاره دعمل په هغه څه كې چې واردوي په هغه باندې لكه څنگه چې مخكې |
| الْاِشَارَةُ اِلَيْهِ فِيْ خَبَرِ اِنَّ وَ اَخَوَاتِهَا مِثْلُ كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا. |
| اشاره وشي دې طرف ته په خبر د إِنَّ او د اخواتو دې كې لكه كان زيد قائما. |

**خلاصه دمتن** : صاحب د كافيې د منصوباتو په اقسامو كې ديو بل قسم بيان كوي نو صاحب د كافيې وايي چې د منصوباتو نه يو بل قسم دكان اوددې داخواتو خبر دي ددې تعريف دادې چې دامسند دي دكان دداخليدو نه وروستو.

**اغراض دجامي** : وستعرفها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال** : كله چې كان اوددې داخواتو پيژندل نشته نو ددې تعريف كول تعريف دمجهول بالمجهول دي اودا تعريف دمجهول بالمجهول باطل دي.

**جواب** : دكان اوددې داخواتو تعريف اونور تفصيل به نژدې ان شاء الله دفعل په بحث كې به ذكر شي.

اى دخول: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال** : كان اوددې نظائر دخبر تعريف په خپلو افرادو كې په هيڅ چاباندې صادق نه راځي څكه چې كان اودې نظائرو كې يو فرد هم داسې نشته دې چې دكان اوددې ټول نظائر دداخليدو نه وروستو مسند وي بلكه په دې كې ديو دداخليدو نه وروسته مسند وي.

**جواب** : مراد دادې چې ددې نه ديو داخليدو نه وروستو مسند وي.

والمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال** : دكان اوددې دنظائرو تعريف د دخول د غير نه مانع نه دي څكه چې داتعريف په كان زيد

یضرب ابوه کې په یضربُ باندې صادق راځي ځکه چې دادکان دداخلیدو نه وروستو مسند دی
حالانکه دادکان خبر نه دی بلکه خبر خو دیضرب ابوه مجموعه ده همدارنګې داتعریف په کان
زید ابوه قائم باندې صادق راځي ځکه چې دادکان دداخلیدو نه وروستو مسند دی بلکه خبر
دقائم ابوه مجموعه ده .

**جواب** : شارح ددې نه دوه جوابونه ورکړي دي :

**جواب (۱)** : اول جواب داچې د هو المسند بعد دخولها نه مراد د کان خبر داسې اسم طرف ته
مسند کیدل دي چې دکان اوددې دنظائرو نه دیو اسم اوخبرباندې دداخلیدو نه وروستو وي او
دا واضحه خبره ده داپه هغه وخت کې کیدې شي چې کله اسم اسم جوړشي اوخبر خبر جوړشي
او کان یضرب ابوه کې دیضرب اسناد ابوه طرف ته اسم داسم جوړیدو اوخبر دخبر جوړیدو نه
وروستو نه وي بلکه ددې نه مخکې وي همدارنګې په کان زید قائم کې دقائم اسناد ابوه طرف
ته اسم داسم جوړیدو اوخبر دخبر جوړیدو نه وروستو نه دي بلکه ددې نه مخکې دي لهذا په
دې باندې تعریف صادق رانه غلو .

**جواب (۲)** : دوهم جواب دادې چې دلته ددخول نه مراد ذکر في الاول او لحوق بالآخر نه دی
بلکه مراد اثر کول اوعمل کول دي یعنې هغه په مبتدا خبر باندې داسې وارد کیدل دي چې په
هغوي کې اثر لفظي اواثر معنوي ظاهر شي ،اثر لفظي دادې چې اسم ته رفع اوخبر ته نصب
ورکړي او اثر معنوي دادې چې داسم دپاره خبر ثابت کړي اوکان یضربُ ابوه کې دکان دخول په
یضرب باندې په دې معنی سره متحقق نه دي ځکه چې ددې دخول نه وروستو په یضربُ کې نه
اثر لفظي ظاهر شو اونه اثر معنوي بلکه دیضرب ابوه په مجموعې باندې دکان دخول په دې
معنی سره متحقق دي همدارنګې په کان زید ابوه قائم کې دي .

## د کان د خبر احکامات :

وَ اَمْرُهُ اَیْ وَ اَمْرُ خَبَرِ کَانَ وَ اَخَوَاتِهَا کَاَمْرِ خَبَرِ الْمُبْتَدَأِ فِي اَقْسَامِهِ وَ اَحْکَامِهِ وَ شَرَائِطِهِ عَلٰی مَا

اوامر ددې یعنې امرد خبرد کان اودخواتودې په شان دامرد خبرد مبتدادې په اقسامو ،احکامو اوشرائطو کې په هغه

سَبَقَ فِي بَحْثِ الْمُبْتَدَاِ وَ الْخَبَرِ وَ لٰکِنَّهُ یَتَقَدَّمُ عَلٰی اِسْمِهَا حَالَ کَوْنِهٖ مَعْرِفَةً

تفصیل کوم چې تیر شوې په بحث دمبتدا اوخبر کې خولیکن مقدم وي په اسم باندې په داسې حال کې چې وي معرفه

| |
|---|
| حَقِيقَةً اَوْ حُكْمًا كَالنَّكِرَةِ الْمُخَصَّصَةِ لِاِخْتِلَافِ اسْمِهَا وَ خَبَرِهَا فِي الْاِعْرَابِ فَلَا يَلْتَبِسُ اَحَدُهُمَا |
| حقيقةً او يا حكماً لكه نكره مخصصه دوجې د اختلاف د اسم دكان او د خبر د دې په اعراب كې نو نه به وي ملتبس يو د دې |
| بِالْآخَرِ وَ ذٰلِكَ اِذَا كَانَ الْاِعْرَابُ فِيْهِمَا اَوْ فِيْ اَحَدِهِمَا لَفْظِيَّةً نَحْوُ كَانَ الْمُنْطَلِقُ زَيْدٌ اَوْ كَانَ |
| دوارونه په بل باندې او دا چې كله وي اعراب په دواړوكې او يا په يو د دې دواړوكې لفظي لكه كان المنطلق زيدا او ياكان |
| هٰذَا زَيْدٌ بِخِلَافِ الْمُبْتَدَاِ وَ الْخَبَرِ فَاِنَّ الْاِعْرَابَ فِيْهِمَا لَا يَصْلَحُ لِلْقَرِيْنَةِ لِاِتِّفَاقِهِمَا |
| هذا زيد په خلاف د مبتدا او خبر خكه اعراب په دې دواړوكې د اصلاحيت نه لري د قرينې دوجې د اتفاق د دې دواړو |
| فِيْهِ بَلْ لَا بُدَّ مِنْ قَرِيْنَةٍ رَافِعَةٍ لِلَّبْسِ وَ كَذٰلِكَ اِذَا انْتَفَى الْاِعْرَابُ فِيْ اِسْمِ كَانَ |
| نه بلكې نشته دې خلاصي د قرينې نه چې رفع كوي التباس او همدارنګې چې كله منتفي وي اعراب په اسم دكان |
| وَ خَبَرِهَا جَمِيْعًا وَ لَا قَرِيْنَةَ هُنَاكَ لَا يَجُوْزُ تَقْدِيْمُ الْخَبَرِ نَحْوُ كَانَ الْفَتٰى هٰذَا. |
| او په خبر د دې كې په دواړوكې او نشته دې قرينه د لته نو نه دې جائز تقديم د خبر لكه كان الفتى هذا. |

**خلاصه دمتن :** دكان او د دې د نظائرو د خبر حكم د مبتدا او د خبر د حكم په شان دې په اقسامو ، احكامو او شرائطو كې په اقسام كې د يو شان كيدو مطلب دا دې چې لكه څنګه د مبتدا خبر مفرد وي كله كله معرفه كله كله جمله او كله كله نكره وي همدارنګې د كان او د دې د نظائرو خبر هم كله كله مفرد او كله كله معرفه او كله كله نكره وي او په احكامو كې د يو شان كيدو مطلب دا دې چې لكه څنګه خبر د مبتدا يو وي متعدد وي او كله مذكور او كله كله محذوف وي، همدارنګې به كان او د دې د نظائرو خبر به هم يو وي متعدد وي مذكور وي محذوف وي او په شرائطو كې د يو شان كيدو مطلب دا دې چې لكه څنګه چې د مبتدا خبر جمله وي نو په دې كې عائد كيدل ضروري دي كوم چې مبتدا طرف ته راجع وي او كه قرينه موجود وي نو د عائد حذف هم جائز دي همدارنګې كان او د دې د نظائرو خبر جمله وي نو په دې كې عائد كيدل ضروري دي كوم چې د دې اسماو طرف ته راجع وي او كله چې څه قرينه وموندلې شي نو د دې قرينې لره حذف كول جائز دي .

**اغراض دجامي :** ای امر خبر: په دې عبارت سره شارح بيان د مرجع كوي چې په امرہ كې ضمير امر خبر ته راجع دي .

في اقسامه: په دې عبارت سره شارح محل شبه بيانوي .

لکنه: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې ويتقدم الخ والا عبارت سره صاحب دکافيې يو وهم لرې کوي کوم چې دمخکې کلام نه پيدا کيږي چې کله مصنف رحمه الله وويل وامره کامر خبر المبتداء نو وهم پيدا شو چې کله دکان اوددې دنظائرو خبر معامله دمبتدا خبر په شان دې نو کله چې دمبتدا خبر معرفه وي نو دې لرې دمبتدا نه مقدم کول جائز نه دي همدارنګې کله چې کان اوددې دنظائرو خبر معرفه وي نو دې لره ددې اسم نه مقدم کول جائز نه دي نو مصنف رحمه الله دا وهم ختم کړو چې دکان اوددې دنظائرو خبر معرفه وي نو دا په هغه اسم باندې مقدم کيدې شي.

حال: په دې عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې معرفة حال دې ديتقدم ضمير نه.

حقيقة او حکماً: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دمعرفې تخصيص صحيح نه دې ځکه چې کله کان اوددې دنظائرو خبر معرفه نه وي بلکه نکره مخصصه وي نو په دغه وخت کې هم دې لره ددې په اسم باندې مقدم کول جائز وي.

**جواب**: په معرفه کې تعميم دې برابره خبره ده چې حقيقة معرفه وي اويا حکماً اونکره مخصصه دمعرفې په حکم کې وي.

لاختلاف: په دې عبارت سره شارح دتقديم وجه دجواز بيانوي ځکه چې کان اوددې دنظائرو د خبر اعراب مختلف وي لهذا خبر دمقدم کيدو سره يو دبل سره التباس لازم نه شي ددې وجې نه تقديم جائز دې په خلاف دمبتدا اوخبر چې ددې اعراب به يو شان وي لهذا که چيرته خبر په مبتدا باندې مقدم کړې شي نو التباس لازم راځي.

ذلک اذا کان: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: په کان الفتى هذا کې دکان خبر معرفه دې ليکن دې لره په کان اسم باندې مقدم کول صحيح نه دي بيا ستا داقول چې کله دکان خبر معرفه وي دې لره داسم نه مقدم کول جائز دي دا څنګه صحيح شو؟.

**جواب**: کان اوددې دنظائرو خبر تقديم په هغه وخت کې جائز دې چې کله داسم اوخبر اعراب لفظي وي مثال کان المنطلق زيداً يا ددې نه ديو اعراب لفظي وي مثال کان هذا زيد اوپه ذکر

شوي مثال کې نه ددواړو اعراب لفظي دي اونه ديو اعراب لفظي دي بلکې ددواړو اعراب تقديري دي اوقرينه هم منتفي ده لهذا تقديم جائز نه دي.

## په خبر د کان کې د عامل د حذف کولو ذکر :

| |
|---|
| وَ قَدْ يُحْذَفُ عَامِلُهُ اَیْ عَامِلُ خَبَرِ كَانَ وَ هُوَ كَانَ لَا خَبَرُ كَانَ وَ اَخَوَاتِهَا لِاَنَّهُ لَا |
| اوکله کله حذف کولې شي عامل ددې يعنې خبر دکان اوهغه عامل کان دي نه خبر دکان اوداخواتوددې خکه نه شي |
| يُحْذَفُ مِنْ هٰذِهِ الْاَفْعَالِ اِلَّا كَانَ وَ اِنَّمَا اخْتُصَّتْ بِهٰذَا الْحَذْفِ لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِهَا |
| حذف کولې ددې افعالونه مگرکان اوپه تحقيق سره خاص يې کړوپه دې سره حذف دوجې دکثرت استعمال ددې نه |
| فِيْ مِثْلِ النَّاسِ مَجْزِيُّوْنَ بِاَعْمَالِهِمْ اِنْ خَيْرًا فَخَيْرٌ وَاِنْ شَرًّا فَشَرٌّ وَيَجُوْزُ فِيْ مِثْلِهَا اَیْ مِثْلِ هٰذِهِ |
| په مثل دلکه الناس مجزيون باعمالهم ان خيراً فخير وان شراً فشراً کې اوجائزدي په مثل ددې يعنې په مثل ددې |
| الصُّوْرَةِ وَ هِيَ اَنْ يَّجِيْءَ بَعْدَ اِنْ اِسْمٌ ثُمَّ فَاءٌ بَعْدَهُ اِسْمٌ اَرْبَعَةُ اَوْجُهٍ نَصْبُ الْاَوَّلِ وَ |
| صورت اوهغه داچې رابه شي پس دان نه اسم بيا فاءوي اوددې نه پس اسم وي په څلورطريقو سره نصب داول او |
| رَفْعُ الثَّانِيْ وَ هُوَ اَقْوَاهَا نَحْوُ اِنْ خَيْرًا فَخَيْرٌ اَیْ اِنْ كَانَ عَمَلُهُ خَيْرًا فَجَزَاؤُهُ خَيْرٌ وَ نَصْبُهُمَا نَحْوُ اِنْ خَيْرًا |
| اورفع ددويم اوداتولونه قوي دي لکه ان خيراً فخير يعني ان كان عمله خيراً فجزاؤه خير اونصب ددواړو لکه ان خيراً |
| فَخَيْرًا عَلٰى مَعْنٰى اِنْ كَانَ عَمَلُهُ خَيْرًا فَكَانَ جَزَاؤُهُ خَيْرًا وَرَفْعُهُمَا نَحْوُ اِنْ خَيْرٌ فَخَيْرٌ اَیْ اِنْ كَانَ فِيْ عَمَلِهٖ خَيْرٌ |
| فخيراً په دې معنى چې ان كان عمله خيرافكان جزاؤه خيراً اورفع ددواړولکه ان خير فخير يعنې ان كان في عمله خير |
| فَجَزَاؤُهُ خَيْرٌ وَعَكْسُ الْاَوَّلِ نَحْوُ اِنْ خَيْرٌ فَخَيْرًا اَیْ اِنْ كَانَ فِيْ عَمَلِهٖ خَيْرٌ فَكَانَ جَزَاؤُهُ خَيْرًا وَقُوَّةُ هٰذِهِ الْوُجُوْهِ وَضُعْفُهَا |
| فجزاؤه خيراوعکس داول لکه ان خيرفخيرا يعنې ان كان في عمله خيرفكان جزاؤه خيراًاوقوت ددې وجوهواوضعف |
| بِحَسْبِ قِلَّةِ الْحَذْفِ وَ كَثْرَتِهٖ. |
| ددې په اعتبارد قلت اوکثرت دحذف سره دي. |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې وايي چې الناس مجزيون باعمالهم نو ددې مثال په شان مثال کې دکان دخبر عامل يعنې دکان حذف کول جائز دي مثال لکه ان خيراً فخير وان شراً فشر.

**اغراض دجامي** : اى عامل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د عامله د ضمير مرجع خبر دکان او داخواتو دکان دي نو ددې نه معلومیږي چې دکان د نظائرو حذف هم جائز دي حالانکه دکان د نظائرو حذف جائز نه دي بلکه صرف دکان حذف کول جائز دي .

**جواب** : د عامله د ضمير مرجع فقط خبر دکان دي خبر دکان او داخواتو ددې دواړه مجموعه خبر نه دي ځکه چې دافعال ناقصه نه صرف دکان حذف کول جائز دي دباقي افعالو حذف کول جائز نه دي .

<u>وهو کان</u>: په دې عبارت سره شارح عامل دخبر دکان دمصداق بیان کوي چې دعامل نه مراد په خپله کان مراد دي .

<u>وانما اختصت</u>: په دې عبارت سره شارح دحذف سره دکان دمختص کیدو وجه بیانوي چې وجه د اختصاص داده چې داکثیر الاستعمال دي دکثرت استعمال په بناء باندې ددې حذف کول خو جائز دي دباقي افعالو ناقصه حذف کول جائز نه دي .

<u>ان خیراً فخیر وان شرا فشر</u>: په دې کې څلور (۴) وجهې دتخصیص جائز دي .

<u>مثل</u>: په دې عبارت سره شارح تعین دمراد کوي چې دمثل نه مراد هر هغه ترکیب دي چې په هغې کې دان نه وروستو په اسم باندې فاء داخل وي بیا ددې نه وروستو اسم وي نو په داسې ترکیب کې څلور (۴) وجهې جائز دي .

<u>وجوه اربعة</u>: **اوله وجه** : داول نصب اوددويم رفع مثال لکه ان خيراً فخير وان شراً فشر، داول يعني خيراً نصب ددې وجې نه دي چې دادکان مع اسم محذوف خبر دي اوددويم رفع يعني فخير ددې وجې نه ده چې هغه دمبتدا محذوف خبر دي په دې کې دري (۳) امور محذوف دي : (۱) کان . (۲) عمله . (۳) فجزاؤه . اول دوه په طرف دشرط کې اودريم په طرف دجزاء کې تقدير دعبارت داسې دي چې ان کان عمله خيراً فجزاؤه خير .

**دوهمه وجه** : ددواړو نصب مثال لکه ان خيرا فخير وا شراً فشراً په دې بناء باندې چې دا دواړه د کان مع اسم محذوف خبر دي تقدير د عبارت داسې دي چې : ان کان عمله خيراً فکان جزاؤه خيراً په دې کې څلور (۴) امور محذوف دي : (۱) کان . (۲) عمله په طرف د جزاء کې . (۳) کان . (۴) جزاؤه .

**دريمه وجه**: ددواړو اسمونو رفع ان خير فخير وان شرآ فشر ، داول اسم رفع ځکه ده چې دادکان مع خبر محذوف اسم دي اودويم اسم رفع ځکه ده چې دادمبتدا محذوف خبر دي تقدير د عبارت داسې دي چې ان كان في عمله خير فجزاؤه خير په دې کې هم څلور (۴) امور محذوف دي په طرف دشرط کې . (۱) كان .(۲) في . (۳) عمله په طرف دجزاء کې . (۴) جزاؤه.

**څلورمه وجه**: داول قسم برعکس ، يعني داول اسم رفع اودويم اسم نصب مثال لکه ان خير خيراً وان شر فشراً ، داول رفع ددې وجې نه ده چې كان مع خبر دمحذوف اسم دي اودويم اسم نصب ددې وجې نه ده چې دادكان مع اسم محذوف خبر دي تقدير دعبارت داسې دي چې ان كان في عمله خير فكان جزاؤه خيراً ، په دې وجه کې پنځه (۵) امور محذوف دي په طرف د شرط کې : (۱) كان .(۲) في . (۳) عمله په طرف دجزاء کې . (۴) كان. (۵) جزاؤه .

**وقوة هذه الوجوه**: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې په دې څلورو (۴) کې کوم ضعيف او کوم قوي دي نو شارح وايي چې ددې وجوهو قوت اوضعف دارومدار دحذف په قلت اوکثرت باندې دي ځکه چې په اول صورت کې حذف قليل دي ځکه چې په دې کې دري (۳) امور حذف دي : (۱) كان .(۲) عمله .(۳) فجزاؤه .ددې وجې نه دادټولو نه قوي دي اوپه څلورمه وجه کې د حذف کثرت دي ځکه چې په دې کې پنځه (۵) امور حذف دي : (۱) كان .(۲) في . (۳) عمله په طرف دجزاء کې . (۴) كان . (۵) جزاؤه . نو ددې وجې نه دادټولو نه ضعيف دي اومتوسطې دويم اودريم وجهې دي ځکه چې په دې کې څلور امور (۱) كان .(۲) في . (۳) عمله په طرف دجزاء کې . (۴) جزاؤه محذوف دي .

## د خبر د كان د عامل د حذف وجوبي بيان :

| وَ يَجِبُ الْحَذْفُ اَىْ حَذْفُ عَامِلِهٖ يَعْنِىْ كَانَ فِىْ مِثْلِ اَمَّا مُنْطَلِقًا اِنْطَلَقْتُ اَىْ لِاَنْ كُنْتَ |
|---|
| اوواجب دي حذف يعني حذف دهغه عامل ددې يعني دكان په دې مثال کې اما انت منطلقا انطلقت يعني لان كنت |
| مُنْطَلِقًا اِنْطَلَقْتُ فَاَصْلُ اَمَّا اَنْتَ لِاَنْ كُنْتَ حُذِفَتِ اللَّامُ قِيَاسًا ثُمَّ حُذِفَتْ كَلِمَةُ كَانَ اخْتِصَاراً |
| منطلقا انطلقت نو اصل د أنت لان كنت دي حذف کړې شوترې لام قياسا بيا حذف کړې شو کلمه دكان داختصار دپاره |
| فَانْقَلَبَ الضَّمِيْرُ الْمُتَّصِلُ مُنْفَصِلًا وَ زِيْدَتْ لَفْظَةُ مَا بَعْدَ اَنْ فِىْ مَوْضِعِ كَانَ عِوَضًا عَنْهَا |
| نوبدل يې کړوضمير متصل په منفصل سره اوزيات کړې شولفظ دماپس ددې چې په ځاې دكان عوض جوړشوددې |

| |
|---|
| وَاُدْغِمَتِ النُّوْنِ فِيْ الْمِيْمِ وَاُبْقِيَ الْخَبَرُ عَلٰى حَالِهٖ فَصَارَ اَمَّا اَنْتَ مُنْطَلِقًا اِنْطَلَقْتُ وَهٰذَا عَلٰى |
| نه اومدغم يې كړونون په ميم اوباقي پاتې شوخبرپه خپل حال باندې نوو گرځيدو اماانت منطلقاً انطلقت اودا په |
| تَقْدِيْرِ فَتْحِ الْهَمْزَةِ وَ اَمَّا عَلٰى تَقْدِيْرِ كَسْرِهَا فَالتَّقْدِيْرُ اِنْ كُنْتَ مُنْطَلِقًا اِنْطَلَقْتُ فَعُمِلَ |
| تقدير دفتحې دهمزې اوهرچې په تقدير د كسرې سره نو تقدير به داسې وي، ان كنت منطلقاً انطلقت نو عمل به كولې |
| بِهٖ مَا عُمِلَ بِالْاَوَّلِ مِنْ غَيْرِ فَرْقٍ اِلَّا حَذْفِ اللَّامِ اِذْ لَا لَامَ فِيْهِ وَ اقْتَصَرَ |
| شي په دې په شان دعمل داول په غير د څه فرق نه مگر په حذف دلام سره ځكه چې نشته لام په دې كې اوا تفا وكړ |
| الْمُصَنِّفُ عَلٰى الْاَوَّلِ لِاَنَّهُ اَشْهَرُ. |
| مصنف په اول باندې ځكه چې دا ډير مشهوردي. |

**خلاصه دمتن**: صاحب دكافيې وايي چې په اما انت منطلقاً انطلقت مثال كې دكان خبر عامل يعنې دكان حذف واجب دي دمثل نه مراد هر هغه تركيب دي چې په هغې كې كان حذف شوي وي اودكان په عوض يې څه بل شئ راوړي شوي وي نو په داسې تركيب كې كان حذف كول واجب دي ځكه چې كه كان حذف نه شي نو دعوض اومعوض عنه اجتماع لازم راځي چې دا ناجائز ده دا ما انت منطلقاً په اصل كې لان كنت انطلقت وو دلان لام لره قياساً حذف كړه ځكه چې ان اود ان نه مخكې لام په قياسي طور باندې حذف كولې شي بيا داختصار دوجې نه كان هم حذف كړې شو نو ضمير متصل په منفصل باندې بدل شو اود ان نه وروستو دكان په عوض ما زائد كړې شو او نون په ميم كې مدغم شو او خبر په خپل حال باندې باقي پاتې شو نو اما انت منطلقاً انطلقت شو.

داتفصيل په هغه وخت كې دي چې كله داما همزه مفتوح وي اوكه داما همزه مكسور وي نو تقدير دعبارت به بيا داسې وي چې ان كنت منطلقاً انطلقت اول داختصار دوجې نه كان حذف شو نو ضمير دمتصل په منفصل سره بدل شو نو ان انت شو بيا دان نه وروستو دكان په عوض كې ما زيات كړې شو اونون په ميم كې مدغم كړې شو اوخبر په خپل حال باندې باقي پاتې كړو نو اما انت منطلقاً انطلقت شو په دواړو صورتونو كې فرق دادې چې په اول صورت كې به لام حذف كولې شي اوپه دويم صورت كې په تقدير كې دلام حذف نشته ځكه چې لام دسره نشته دي

**اغراض دجامي**: الحذف اى حذف عامله: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې په الحذف كې الف لام دمضاف اليه په عوض كې دي.

يعني كان: په دې عبارت سره شارح دعامل مصداق بيان كړي دي
فاصل اما انت: په دې عبارت سره شارح دمثال وضاحت كوي
واقتصر: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي
**سوال**: كله چې په اما كې دوه (۲) احتماله وو (۱) په فتحې دهمزې، (۲) اوپه كسرې دهمزې سره نو بيا مصنف رحمه الله په بفتح الهمزة باندې ولې اكتفاء وكړه؟
**جواب**: ځكه يې په بفتح الهمزة باندې اكتفاء وكړه چې دا زيات مشهور دي په نسبت سره په كسرې دهمزې نه

## ﴿اِسْمُ اِنَّ وَاَخَوَاتُهَا﴾:

## دان داسم تعريف:

| وَ سَتَعْرِفُهَا فِيْ قِسْمِ الْحَرْفِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى هُوَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهَا اَىْ دُخُوْلِ اِنَّ اَوْ |
|---|
| اوزردي چې وبه پيژني په قسم دحرف كې ان شاء الله دامسند اليه دې پس ددخول ددې نه يعني ددخول دإن اويا |
| اِحْدٰى اَخَوَاتِهَا مِثْلُ اِنَّ زَيْداً قَائِمٌ وَ بِمَا عَرَفْتَ مِنْ مَعْنَى الْبَعْدِيَّةِ وَ الدُّخُوْلِ فِيْمَا سَبَقَ |
| يو داخواتو ددې نه لكه ان زيداً قائم او هغه څه چې تاپيژندلي دمعنى دبعديت نه اوددخول نه په هغه څه چې مخكې |
| اِنْدَفَعَ اِنْتِقَاضُ هٰذَا التَّعْرِيْفِ هٰهُنَا اَيْضًا بِمِثْلِ اَبُوْهُ فِيْ مِثْلِ اِنَّ زَيْداً اَبُوْهُ قَائِمٌ. |
| تېرشوي نودفع شو اعتراض په دې تعريف دلته همدارنګې په مثل دابوه په دې مثل ان زيدا ابوه قائم |

**خلاصه دمتن**: صاحب دكافيې داسم ان اوداخواتو ددې تعريف كوي چې ان اوددې نظائر هغه اسم دي چې په دې سره ديو داخليدو نه وروستو مسند وي.
**اغراض دجامي**: وستعرفها في قسم الحرف: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي.
**سوال**: اخوات خو معلوم نه دي نو داتعريف دمجهول بالمجهول راغي حالانكه تعريف د مجهول بالمجهول داخو باطل دي.
**جواب**: داخواتو ذكر به په حرف كې ان شاء الله راشي.
اى بعد دخوله: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي.
**سوال**: كان اوددې نظائر دخبر تعريف په خپلو افرادو دې په هيڅ ځاى باندې صادق نه راځي

خکه چې کان او ددې نظائرو کې یو فرد هم داسې نشته دي چې دکان او ددې تول نظائر دداخلیدو نه وروستو مسند وي بلکه په دې کې دیو دداخلیدو نه وروسته مسند وي

**جواب**: مراد دادې چې ددې نه دیو داخلیدو نه وروستو مسند وي.

**وبماعرفت**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: دان او ددې دنظائرو تعریف د دخول دغیر نه مانع نه دي خکه چې داتعریف په ان زیدا یضرب ابوه کې په یضربُ باندې صادق راخي خکه چې دادان دداخلیدو نه وروستو مسند دي حالانکه دادان خبر نه دي بلکه خبر خو دیضرب ابوه مجموعه ده همدارنګې داتعریف په ان زیداً ابوه قائم باندې صدق راخي خکه چې دادان دداخلیدو نه وروستو مسند دي بلکه خبر دقائم ابوه مجموعه ده

**جواب**: شارح ددې نه دوه جوابونه ورکړي دي.

**جواب (۱)**: اول جواب داچې د هو المسند بعد دخولها نه مراد د ان خبر داسې اسم طرف ته مسند کیدل دي چې دان او ددې دنظائرو نه دیو اسم اوخبرباندې دداخلیدو نه وروستو وي او دا واضحه خبره ده دا په هغه وخت کې کیدې شي چې کله اسم اسم جوړشي اوخبر خبر جوړشي او په ان یضرب ابوه کې دیضرب اسناد ابوه طرف ته اسم داسم جوړیدو اوخبر دخبر جوړیدو نه وروستو نه وي بلکه ددې نه مخکې وي همدارنګې په ان زید قائم کې دقائم اسناد ابوه طرف ته اسم داسم جوړیدو اوخبر دخبر جوړیدو نه وروستو نه دي بلکه ددې نه مخکې دي لهذا په دې باندې تعریف صدق رانه غلو

**جواب (۲)**: دوهم جواب دادي چې دلته ددخول نه مراد ذکر في الاول او لحوق بالآخر نه دي بلکه مراد اثر کول اوعمل کول دي یعنې هغه په مبتدا خبر باندې داسې وارد کیدل دي چې په هغې کې اثر لفظي اواثر معنوي ظاهر شي .اثر لفظي دادې چې اسم ته رفع اوخبر ته نصب ورکړي او اثر معنوي دادې چې داسم دپاره خبر ثابت کړي اوان یضربُ ابوه کې دکان دخول په یضرب باندې په دې معنی سره متحقق نه دي خکه چې ددې دخول نه وروستو یضربُ کې نه اثر لفظي ظاهر شو اونه اثر معنوي بلکه دیضرب ابوه په مجموعې باندې دان دخول په دې معنی سره متحقق دي همدارنګې په ان زیدا ابوه قائم کې دي

## ﴿اَلْمَنْصُوبُ بِلاَ الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ﴾:

## دهغه منصوب د لا تعريف چې د نفي د جنس د پاره وي:

أَيْ لِنَفْيِ صِفَةِ الْجِنْسِ وَ حُكْمِهِ وَ إِنَّمَا لَمْ يَقُلْ إِسْمُ لَا لِأَنَّهُ لَيْسَ كُلُّهُ وَلاَ اَكْثَرُهُ

يعني دپاره د نفي د صفت د جنس او د حکم او په تحقيق سره وې نه ويل اسم د لا ځکه نه دي اسم د لا ټول او يا اکثرد

مِنَ الْمَنْصُوبَاتِ فَلاَ يَصِحُّ جَعْلُهُ مُطْلَقاً مِنَ الْمَنْصُوبَاتِ لاَ حَقِيْقَةً وَلاَ مَجَازاً بَلِ الْمَنْصُوبُ مِنْهُ أَقَلُّ

منصوباتو نه نو نه دي صحيح ګرځول د دې مطلقا د منصوباتو نه حقيقةً او نه مجازا بلکې منصوب د دې نه کم دي د

مِمَّا عَدَاهُ فَلاَ بُدَّ مِنَ التَّعْبِيْرِ عَنْهُ بِالْمَنْصُوبِ بِهَا بِخِلاَفِ مَا عَدَاهُ مِنَ الْمَنْصُوبَاتِ فَإِنَّ بَعْضَهَا

غير منصوب نه نو نشته خلاصي د تعبير د دې نه په منصوب سره د په خلاف د ماسوا د منصوباتو نه ځکه بعضې د دې نه

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ كُلُّهُ مِنَ الْمَنْصُوبَاتِ لٰكِنْ اَكْثَرُهُ مِنْهَا فَأُعْطِيَ لِلْاَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ فَعُدَّ الْكُلُّ مِنْهَا تَجَوُّزاً

اګر که نه وي ټول د منصوباتو نه لکن اکثر د دي نه دي نو ورکړې شو اکثر لره حکم د کل نو شمار کړې شو کل د دې نه مجازا

وَلاَ يَبْعُدُ اَنْ يُقَالَ اِسْمُ لاَ هُوَ الْمَنْصُوبُ بِهَا لَفْظًا كَالْمُضَافِ وَ شِبْهِهِ اَوْ مَحَلًّا كَمَا هُوَ

او بعيد نه د د چې وويل شي چې اسم د لا دا منصوب دي په لا سره د لفظ لکه مضاف او مشابه د دې او يا محلا لکه څنګه

مَبْنِيٌّ مِنْهُ عَلَى الْفَتْحِ وَ اَمَّا مَا هُوَ مَرْفُوْعٌ فَلَيْسَ اِسْمًا لَهَا لِعَدَمِ عَمَلِهَا فِيْهِ هُوَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ

چې مبني د اسم لا نه بنا بر فتح او هر چې ما کوم چې مرفوع دي نو نه دي اسم د پاره د دوجې د نه عمل نه د لا کې دا مسند اليه

بَعْدَ دُخُوْلِهَا خَرَجَ بِهِ مِثْلُ اَبُوْهُ فِيْ لَا غُلَامَ رَجُلٍ اَبُوْهُ قَائِمٌ لِمَا عَرَفْتَ وَ هٰذَا

دپس د دخول د دې نه خارج شو په دې سره د ابوه په لا غلام رجل ابوه قائم مثل د رجې د هغه څه نه چې تا پېژندلي دي او دا

الْقَدْرُ كَافٍ فِيْ حَدِّ اسْمِهَا مُطْلَقًا لٰكِنَّهُ لَمَّا اَرَادَ حَدَّ الْمَنْصُوْبِ مِنْهُ زَادَ

قدر کافي دي په تعريف د اسم کې مطلقا لکن چې کله اراده يې وکړه د تعريف د منصوب د اسم نه نو زيات يې کړو

عَلَيْهِ قَوْلِهِ يَلِيْهَا اَيْ يَلِيَ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ لَفْظَةَ لَا اَيْ يَقَعُ بَعْدَهَا بِلَا فَاصِلَةٍ

په دې باندې دا قول يليها يعني نژدې وي د مسند اليه سره د لفظ د لا سره يعني واقع کيږي پس د لا نه بې د فاصلې نه

نَكِرَةً مُضَافًا اَوْ مُشَابِهًا بِهِ اَيْ بِالْمُضَافِ فِيْ تَعَلُّقِهِ بِشَيْءٍ هُوَ مِنْ تَمَامِ

داسې نکره وي چې مضاف وي او يا مشابه وي د دې سره يعني د مضاف سره په تعلق کې د يو څيز پورې چې هغه په تمام

مَعْنَاهُ هٰذِهِ اَحْوَالٌ مُتَرَادِفَةٌ مِنَ الضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ فِيْ اِلَيْهِ اَوِ الْاُوْلٰى مِنْهُ اَوْ مِنَ الضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ فِيْ دُخُوْلِهَا

معنی د مضاف کې دا احوال مترادفه دي د ضمير مجرور نه په اليه او اولی د دې نه او يا د ضمير مجرور نه په دخول د دې

وَمَا بَقِيَ مِنَ الضَّمِيْرِ الْمَرْفُوْعِ فِيْ يَلِيْهَا مِثْلُ لَا غُلَامَ رَجُلٍ مِثَالٌ لِمَا يَلِيْهَا نَكِرَةً مُضَافًا

کې او هغه چې باقي وي د ضمير مرفوع نه په يليها کې لکه لا غلام رجل مثال دي د هغه چې نژدې وي نکره د مضاف

| |
|---|
| وَفِيْ بَعْضِ النُّسَخِ لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٍ فِيْهَا وَقَدْ عَرَفْتَ فِي الْمَرْفُوْعَاتِ تَحْقِيْقَ قَوْلِهِ فِيْهَا |
| اوپه بعضي نسخو کې لاغلام رجل ظريف فيهادي اوپه تحقيق سره تاپيژندلي په مرفوعاتو کې تحقيق د فيهاپه دې قول |
| وَ لَا عِشْرِيْنَ دِرْهَمًا لَكَ مِثَالٌ لِمَا يَلِيْهَا نَكِرَةٌ مُشَابِهًا بِالْمُضَافِ وَ قَوْلُهُ لَكَ |
| کې ولاعشرين درهمالک دامثال دی دهغه چې نژدې وي دنکرې سره چې مشابه وي دمضاف سره اوداقول دده لک |
| عَلَى النُّسَخِ الْمَشْهُوْرَةِ مِنْ تَتِمَّةِ الْمِثَالَيْنِ كِلَيْهِمَا. |
| دمشهورې نسخې مطابق دتتمې ددواړومثالونو څخه دی |

**خلاصه دمتن** : دمنصوباتو لسم ۱۰ قسم منصوب په لا التي لنفي الجنس دي ددې تعريف دادې چې دلای نفي جنس اسم هغه دې کوم چې ددخول دلا نه وروستو مسند اليه وي اوحال دادې چې د لا سره متصل وي نکره وي مضاف وي ياشبه مضاف وي .

**اغراض دجامي** : اي لنفي: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : په لا غلام رجل ظريف کې لا دجنس نفي نه کوي بلکه دجنس غلام نه دصفت ظرافت نفی کوي ب دمصنف قول لا لنفي الجنس ويل څنګه صحيح شو ؟.

**جواب** : دمصنف په عبارت کې دالجنس نه مخکې مضاف صفت محذوف دي په اصل کې داسې وو لنفي صفة الجنس لهذا اوس څه اشکال نشته دي .

وحکمه: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : د لای نفي جنس تعريف منقوض اومات دي په لارجل في الدار سره ځکه چې په دې کې درجل نه دجنس صفت نفي نه کيږي ځکه چې دلته څه صفت نشته دي .

**جواب** : دلته معطوف مقدر دي په اصل کې دا لنفي صفة الجنس وحکمه وو ، ددې حاصل دادې چې دنفي صفت جنس نه مراد دنفي حکم دي چې د لا داسم نه دحکم نفي وشي مثال لکه په لا رجل في الدار کې درجل نه په دار کې موجود کيدو حکم نفي کيږي .

وانمالم يقل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : مصنف رحمه الله المنصوب بلا التي لنفي الجنس وويل اسم لا التي لنفي الجنس يې ولې ونه ويل ؟

**جواب** : د لای نفي جنس اسم په دري (۳) قسمه دي (۱) معرب منصوب (۲) مبني على الفتح (۲) مرفوع ددې تفصیل نه معلومه شوه چې لای نفي جنس اسم خو نه همیشه منصوب وي او نه اکثر منصوب دي لهذا دې لره مطلقاً د منصوباتو نه شمار کول صحیح نه دي نه حقیقةً په دې طریقې سره چې داسې وویلې شي چې دغه اسم په هر حال کې منصوب وي او نه مجازاً چې داسې وویلې شي چې د لای نفي جنس اسم اکثر منصوب وي بلکه په دې کې منصوب دغیر منصوب نه اقل دي لهذا دا ضروري ده چې دې لره **المنصوب بلا التي لنفي الجنس** سره تعبیر کړې شي په خلاف د نورو منصوباتو نه مثلاً مستثنی اګرچې دا کل او همیشه منصوب نه ده لیکن اکثر منصوب ده نو لهذا **للاکثر حکم الکُل** د قاعدې لاندې د کُل حکم ورکړې شو او کُل لره مجازاً د منصوباتو نه شمار کولې شي .

ولا یبعد: په دې عبارت سره شارح په صاحب د کافیې باندې اعتراض کوي ، چې که مصنف رحمه الله مطلقاً **اسم لا التي لنفي الجنس** ویلي وي نو هم صحیح وه ځکه چې د لا اسم مبني بر فتحه محلاً منصوب وي او کوم چې د لا اسم مرفوع وي نو دا په حقیقت کې د لا اسم نه وي ځکه چې په دې صورت کې لا عامل نه وي لهذا مونږه ویلې شو چې د لا اسم همیشه منصوب وي .

خرج به: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دا سوال او جواب بعینه هغه دي کوم چې د کان او ددې د نظائرو په خبر کې تیر شوي دي چې مخکې ذکر شوي دي ، **فلا نعیدهما ثانیةً** .

وهذا القدر کافٍ: په دې عبارت سره شارح یو اعتراض نقل کوي او په لکنه سره ددې سوال جواب ورکوي :

**اعتراض** : مقصود خو د لای نفي جنس د اسم تعریف کول دي او هغه په **بعد دخولها** باندې پوره شو نو ددې نه وروستو د **یلیها الخ** اضافه یې ولې وکړه ؟

**جواب** : مقصود مطلق د اسم لا تعریف کول نه دي بلکه د اسمِ منصوب تعریف کول دي ددې وجې نه **یلیها الخ** اضافه یې وکړه چې ددې حاصل دا دې چې د لای نفي جنس اسم به هله منصوب وي چې په دې کې دري (۳) شرطونه موندل شي: (۱) لا سره متصل وي (۲) نکره وي (۳) مضاف یا شبه مضاف وي .

**يلي المسند اليه**: په دې عبارت سره شارح بيان د مرجع کوي چې ديليها ضمير مرفوع مسند اليه طرف ته راجع دي او د ضمير منصوب مرجع لفظ د لا دي .
**اى يقع**: په دې عبارت سره شارح حاصل د معنى بيانوي چې د مسند نه وروستو په لا سره فاصله واقع ږي
**في تعلقه**: په دې عبارت سره شارح وجه د شبه بيانوي چې شبه مضاف هغه دي چې د ده د داسې څيز سره متعلق وي چې هغه څيز د دې معنى لره د پوره کيدو د پاره ضروري وي که دې لره ذکر نه کړې شي نو د دې معنى نه تام کيږي مثال لکه مضاف چې تر کوم وخته پورې چې مضاف اليه ذکر نه شي نو د دې معنى نه تام کيږي همدارنګې د شبه مضاف تعلق د داسې څيز سره دي چې که دې لره ذکر نه کړې شي نو د دې نه په غير معنى نه تام کيږي .
**هذا الاحوال**: په دې عبارت سره شارح د نکرې **مضافاً** ترکيب بيانوي چې په دې ترکيب کې درې (۳) احتماله دي : (۱) دا درې واړه احوال مترادفه دي د اليه ضمير مجرور نه . (۲) **يليها** د اليه ضمير مجرور نه حال دي او باقي دوه ديليه ضمير مرفوع نه حال وي . (۳) **يليها** د دخولها ضمير نه حال دي او باقي دوه يليه د ضمير مرفوع نه حال وي .
**مثال لما**: په دې عبارت سره شارح د ممثل له تعين کوي چې لا غلام رجل د هغه نکرې مضاف مثال دي کوم چې د لا سره متصل وي .
**وفي بعض النسخ**: په دې عبارت سره شارح اختلاف د نسخو بيانوي چې په بعضې نسخو کې لا غلام رجل ظريف فيها دي په دې کې د فيها اضافه د دوه (۲) وجهو نه کړې ده : (۱) چې کذب لازم رانه شي . (۲) اشاره ده چې د ظرف دوه (۲) قسمونه دي : (۱) ظرف زمان ، (۲) ظرف مکان ، او دا دواړه خبرې په مرفوعاتو کې په تفصيل سره تيرې شوې دي
**مثال لما**: په دې عبارت سره د ممثل له تعين کوي چې لا عشرين درهما دا د هغه نکرې شبه مضاف مثال دي کوم چې د لا سره متصل وي
او د مصنف رحمه الله قول لک د مشهورو نسخو مطابق يعني چې په کوم کې ظرف فيها نشته دي دا واړه مثالونه د تتمې څخه دي دا دواړه خبر دي او چې په کومو مثالونو کې ظريف فيها نشته دي په هغې کې دا خبر بعد خبر دي

# د منصوب بلا التي لنفي الجنس اعراب:

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ أَيِ الْمُسْنَدُ إِلَيْهِ بَعْدَ دُخُولِهَا غَيْرَ وَاقِعٍ عَلَى الْأَحْوَالِ الْمَذْكُورَةِ بَلْ كَانَ مُفْرَدًا بِانْتِفَاءِ |
| كه چيرته وي يعني مسند اليه پس د دخول د لانه چې نه وي واقع په حوال مذكوره باندې بلكې وي مفرد په انتفاء |
| الشَّرْطِ الْأَخِيْرِ فَقَطْ وَهُوَ كَوْنُهُ مُضَافًا اَوْمُشَابِهًا بِهِ أَيْ يَلِيْهَا نَكِرَةً غَيْرَ مُضَافٍ وَلَا مُشَابِهًا |
| د شرط آخري فقط او هغه كيدل د دې دي مضاف او يا مشابه د دې سره يعني نژدې وي نكره غير مضاف او نه مشابه |
| بِهِ لِيَتَرَتَّبَ عَلَيْهِ قَوْلُهُ فَهُوَ مَبْنِيٌّ عَلَى مَا يُنْصَبُ بِهِ فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ مُفْرَدًا |
| د دې سره د دې د پاره چې مرتب شي په دې باندې د اقول د مصنف فهو مبني على ما ينصب به خكه كه چيرته وي مفرد |
| مَعْرِفَةً اَوْ مَفْصُوْلًا فَحُكْمُهُ غَيْرُ ذٰلِكَ وَ قَوْلُهُ عَلٰى مَا يُنْصَبُ بِهِ أَيْ عَلٰى مَا كَانَ يُنْصَبُ |
| معرفه او يا مفصول نو حكم د دې په غير د دې دي او دا قول د مصنف على ماينصب به يعني په هغه څه سره چې نصب |
| بِهِ الْمُفْرَدُ قَبْلَ دُخُوْلِ لَا عَلَيْهِ وَ هُوَ الْفَتْحُ فِي الْمُوَحَّدِ نَحْوُ لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ وَ الْكَسْرِ |
| وركوي په دې سره مفرد ته مخكې د دخول د لانه په دې باندې او هغه فتحه ده په مفرد كې لكه لا رجل في الدار او كسره ده |
| فِي جَمْعِ الْمُؤَنَّثِ السَّالِمِ بِلَا تَنْوِيْنٍ نَحْوُ لَا مُسْلِمَاتِ فِي الدَّارِ وَالْيَاءِ الْمَفْتُوْحِ مَاقَبْلَهَا وَالْمَكْسُوْرِ مَاقَبْلَهَا فِي جَمْعِ |
| په جمع مؤنث سالم كې بې د تنوين نه لكه لا مسلمات في الدار او ياء ماقبل مفتوح او ماقبل مكسور په جمع |
| الْمُذَكَّرِ السَّالِمِ نَحْوُ لَا مُسْلِمَيْنِ وَلَا مُسْلِمِيْنَ لَكَ وَنَعْنِيْ بِالْمُفْرَدِ مَالَيْسَ بِمُضَافٍ وَلَا مُضَارِعٍ لَهُ |
| مذكر سالم كې لكه لا مسلمين ولا مسلمين لك او مونږ قصد كوو په مفرد سره هغه چې نه وي مضاف او نه مشابه د دې سره |
| فَيَدْخُلُ فِيْهِ الْمُثَنّٰى وَ الْمَجْمُوْعُ وَ إِنَّمَا بُنِيَ لِتَضَمُّنِهِ مَعْنٰى مِنْ اِذْ مَعْنٰى |
| نو داخليږي په دې كې تثنيه او جمع او په تحقيق سره يې مبني كړه د وجې د تضمن د دې نه معنى د من لره خكه معنى |
| لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ لَا مِنْ رَجُلٍ فِيْهَا لِأَنَّهُ جَوَابٌ لِمَنْ يَقُوْلُ هَلْ مِنْ رَجُلٍ فِي الدَّارِ حَقِيْقَةً اَوْ تَقْدِيْرًا |
| د لا رجل في الدار لا من رجل فيها دي خكه دا جواب دي د هغه چا د پاره چې وايي هل من رجل في الدار حقيقة او يا تقديرا نو |
| فَحُذِفَ مِنْ تَخْفِيْفًا وَ إِنَّمَا بُنِيَ عَلٰى مَا يُنْصَبُ بِهِ لِيَكُوْنَ الْبِنَاءُ عَلٰى حَرَكَةٍ اَوْ |
| حذف كړې شو من تخفيفا او په تحقيق سره مبني كړو په ماينصب به سره د دې وجې نه چې وي بنا په حركت باندې او يا |
| حَرْفٍ نِ اسْتَحَقَّهُمَا النَّكِرَةُ فِي الْأَصْلِ قَبْلَ الْبِنَاءِ وَ لَمْ يُبْنَ الْمُضَافُ وَ لَا الْمُضَارِعُ لَهُ |
| په حرف باندې چې مستحق وو د دواړو نكره په اصل كې مخكې د بناء او مبني يې نه كړو مضاف او نه شبه مضاف |
| لِأَنَّ الْإِضَافَةَ تُرَجِّحُ جَانِبَ الْإِسْمِيَّةِ فَيَصِيْرُ الْإِسْمُ بِهَا مَائِلًا اِلٰى مَا يَسْتَحِقُّهُ فِي الْأَصْلِ |
| خكه اضافت راجح وي طرف د اسميت ته نو گرځي اسم په دې سره مائل هغه څه ته چې مستحق وي په اصل كې |

| اَغْنِيَ الْاِعْـرَابَ . |
| --- |
| چې مراد ترې ما اعراب دي |

**خلاصه دمتن** : که د لای نفي جنس مابعد مفرد وي يعنې اولني دوه شرطونه وموندلې شي او آخري شرط ونه موندلې شي نو علامت نصب به يې مبني برفتح وي يعنې د لا ددخول نه مخکې چې په کوم علامت سره منصوب وه دغې علامت سره د لا ددخول نه وروستو په نصب باندې به مبني وي اوکه د لا ددخول نه مخکې دفتحې علامت سره منصوب وه نو د لا ددخول نه وروستو به هم علامت مبني برفتحه وي لکه مفرد کې مثلاً لا رجل في الدار اوکه د لا ددخول نه مخکې کسرې سره منصوب وو نو د لا ددخول نه وروستو به مبني برکسره وي مثال په مؤنث سالم کې البته تنوين به نه وي مثلاً لا مسلمات في الدار اوکه د لا ددخول نه مخکې يا ماقبل مفتوح سره منصوب وي نو د لا ددخول نه وروستو به هم ياء ماقبل مفتوح په بناء باندې به مبني وي مثال لکه په تثنيه کې لا مسلمين اوکه دلا ددخول نه مخکې يا ماقبل مکسور سره منصوب وي نو د لا ددخول نه وروستو به هم ياء ماقبل مکسور په علامت باندې به مبني وي مثال لکه په مؤنث سالم کې لا مسلمين لک .

**اغراض دجامي** : <u>بانتفاء الشرط</u> : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوض اوماته ده په لازيد عندي ولاعمرو سره ځکه چې په دې کې دلا مابعد مفرد وي حالانکه دامبني نه دي .

**جواب** : مراد دادې چې دمذکوره درې (۳) شرطونو نه صرف آخري ونه موندلې شي اواولني دوه (۲) شرطونه وموندلې شي هله به مبني على الفتح وي يعنې د لا سره به متصل هم وي او نکره به هم وي ليکن مضاف يا شبه مضاف به نه وي په ذکر شوي مثال کې دويم شرط نه موندلې کيږي ولې چې زيد معرفه ده ددې وجې نه دامعرب دي .

<u>ليترتب عليه قوله</u> : په دې عبارت سره شارح دمتن وضاحت کوي چې ليترتب عليه قول دا متعلق دي دانتفاء الشرط پورې يعنې مونږ آخرني شرط انتفاء شرط ددې وجې نه ولړولو چې دمصنف قول فهو مبني على ما ينصب باندې مرتب شي ځکه چې که د لا اسم مفرد معرفه وي يعنې دويم

شرط ونه موندلې شي يا فاصله وي يعنې اولنې شرط نه وي نو دا به مبني برفتحه نه وي

**قوله**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دمصنف رحمه الله قول **فهو مبني الخ** کې تعارض دی ځکه چې دمبني ضمير راجع دي مفرد طرف ته او دينصب ضمير هم مفرد طرف ته راجع دي نو مبني دمفرد په بناء کې صريح ده او ينصب دهغه په معرب کيدو باندې دال دي ځکه چې نصب دمعرب دحرکاتو نوم دي نو دانه دي مګر تعارض اوتناقض .

**جواب** : مفرد طرف ته دبناء اسناد دحال په اعتبار سره دي يعنې دلا ددخول نه مخکې کيدو مقصد دادې چې کوم مفرد د لا ددخول نه مخکې معرب اومنصوب وه اوس دلا ددخول نه وروستو به مبني برفتحه وي نو بيا په دې کې تعارض اوتناقض نشته دي .

**يعني به**: په دې عبارت سره شارح تعين دمراد کوي چې مفرد مضاف ، دشبه مضاف په مقابله کې دي لهذا دا به تثنيه اوجمع ته هم شامل شي .

**وانما بني**: په دې عبارت سره شارح د لا مابعد کله چې مفرد وي نو ددې مبني کيدو وجه بيانوي د لای نفي جنس اسم مفرد من معنی ته متضمن کيږي ځکه چې دلا رجل في الدار معنی ده لا من رجل في الدار ځکه چې داجواب دي دسائل دقول نه يعنې هل من رجل في الدار ؟ برابره خبره ده که داسوال حقيقةً وي اويا تقديراً وي ، حقيقةً خو ظاهر دي دتقديراً صورت دادې چې مثلاً دوه سړي لاړ شي اوددې دوه سړو نه يو سړي مکان اويا کور ته داخل شي اودويم سړي د کور نه بهر ولاړ وي او کور کې داخل سړي ووايي چې لارجل في الدار نو ګويا چې بهر ولاړ سړي سوال وکړو چې هل من رجل في الدار ؟ نو کور کې داخل سړي ورته وويل چې لارجل في الدار ، بيا من لره دتخفيف دوجې نه حذف کړه چې هر هغه اسم کوم چې دحرف معنی ته متضمن وي نودابه مبني وي ددې وجې نه لا نفي جنس اسم مبني دي .

**وانما بني**: په دې عبارت سره شارح په علامت دنصب باندې دمبني کيدو وجه بيانوي چې په حالت دنصب باندې مبني ددې وجې نه کړه چې بناء په هغه حرکت ياحرف باندې وشي چې د کوم نکره داصل اعتبار نه مخکې مستحق وو اوهغه نصب دي په اصل کې معرب منصوب کيدل په کار وو دعارض دوجې نه مبني شو .

ولم يبين: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: چې کله د لا مابعد مضاف ياشبه مضاف وي نو داد من معنى ته متضمن دي بيا د لره يې مبني ولې جوړ نه کړو؟

**جواب**: مضاف او شبه مضاف لره يې مبني ددې وجې نه جوړ نه کړو چې داضافت دوجې نه جانب اسم راجح وي ځکه چې اضافت داسم خاصه ده لهذا داضافت دوجې نه اسم دې طرف ته راجع کيږي کوم چې داصل په اعتبار سره مستحق دي اوهغه اعراب دي ددې وجې نه دې لره يې مبني جوړ نه کړو.

## د لاى نفي جنس د منصوب كيدو شرائط او د منتفي كيدو ذكر:

وَ اِنْ كَانَ أَيِ الْمُسْنَدُ اِلَيْهِ بَعْدَ دُخُوْلِهَا مَعْرِفَةً بِاِنْتِفَاءِ شَرْطِ التَّكَارَةِ اَوْ مَفْصُوْلًا بَيْنَهُ

اوكه چيرته وي يعني مسند اليه پس د دخول دلا نه معرفه په انتفاء د شرط د نكارت او يا مفصول وي په مينځ د دې كې

أَيْ بَيْنَ ذٰلِكَ الْمُسْنَدِ اِلَيْهِ وَ بَيْنَ لَا بِاِنْتِفَاءِ شَرْطِ الْاِتِّصَالِ عَلٰى سَبِيْلِ مَنْعِ الْخُلُوِّ سَوَاءٌ

يعني په مينځ د دې مسند اليه او په مينځ د لا كې په انتفاء د شرط د اتصال په طريقې د مانعة الخلو برابره خبره ده چې

كَانَا مَعَ اِنْتِفَاءِ شَرْطِ كَوْنِهِ مُضَافًا اَوْ مُشَابِهًا بِهٖ اَوْ لَا وَ هِيَ سِتُّ صُوَرٍ

وي داسره د انتفاء د شرط د كيدو د دې مضاف او ياهغه چې مشابه وي د مضاف سره او يانه وي او دا شپږ صورتونه دي

نَحْوُ لَا زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَلَا عَمْرٌو وَلَا غُلَامُ زَيْدٍ فِي الدَّارِ وَلَا عَمْرٌو وَلَا فِي الدَّارِ رَجُلٌ وَلَا اِمْرَأَةٌ وَلَا فِي الدَّارِ زَيْدٌ وَلَا عَمْرٌو

لكه لا زيد في الدار و لا عمرو و لا غلام زيد في الدار و لا عمرو ولا في الدار رجل ولا امرأة و لا في الدار زيد و لا عمرو

وَلَا فِي الدَّارِ غُلَامُ زَيْدٍ وَلَا عَمْرٌو وَجَبَ فِيْ جَمِيْعِ هٰذِهِ الصُّوَرِ السِّتِّ الرَّفْعُ عَلَى الْاِبْتِدَاءِ أَمَّا فِي الْمَعْرِفَةِ

ولا في الدار غلام زيد ولا عمرو نو واجب دي په ټولو دې صورتونو شپږو كې رفع بنا بر ابتداء هرچې په معرفه كې دي نود

فَلِامْتِنَاعِ أَثَرِ لَا النَّافِيَةِ لِلْجِنْسِ فِيْهَا وَ أَمَّا فِي الْمَفْصُوْلِ فَلِضُعْفِ لَا عَنِ التَّأْثِيْرِ مَعَ

وجې د امتناع د اثر د لاى نافيه د پاره د جنس په دې كې او هرچې په مفصول كې دي نو د وجې د ضعف د لا د تاثير نه سره

الْفَصْلِ وَ التَّكْرِيْرِ أَيْ وَجَبَ تَكْرِيْرُ اِسْمِهَا لٰكِنْ مُطْلَقًا بِعَيْنِهِ أَمَّا فِي الْمَعْرِفَةِ فَلِيَكُوْنَ

د فصل او تكرير يعني واجب دي تكرير د اسم د لا لكن مطلقا لا بعينه هرچې په معرفه كې دي نو د وجې د كيدو نه په شان

كَالْعِوَضِ عَمَّا فِي التَّنْكِيْرِ مِنْ مَعْنٰى نَفْيِ الْآحَادِ وَ أَمَّا فِي النَّكِرَةِ فَلِيَكُوْنَ مُطَابِقًا لِمَا هُوَ

د عوض د هغه څه نه چې وي په تنكير كې د معنى د نفي د آحاد او هرچې په نكره كې وي نو وي مطابق د هغه سوال چې دد

جَوَابٌ لَهُ مِنْ مِثْلِ قَوْلِ السَّائِلِ اَفِي الدَّارِ رَجُلٌ اَمْ اِمْرَأَةٌ وَ هٰذَا التَّعْلِيْلُ جَارٍ فِي الْمَعْرِفَةِ أَيْضًا.

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافیې وایي چې که دلا اسم منصوب کیدو په دري (۳) شرطونو کې دریم شرط نه غیر باقي دوه شرطونو نه یو شرط ونه موندل شي داعام ده چې دریم شرط وموندل شي او یانه یعنې دلا مابعد نکره نه وي بلکه معرفه وي یادلاسره متصل نه وي بلکه لا او ددې په مینځ کې فاصله وي یانکره هم نه وي اومستقل هم نه وي نو په دې وخت کې دلا مابعد باندې رفع واجب ده دمبتدا په بناء باندې اودلااسم تکرار هم واجب دي په عقلي اعتبار سره ټول شپږ (۶) صورتونه دي څکه چې فقط نکارت والاشرطونه منتفي وي یافقط اتصال والا شرطونه اویادواړه شرطونه منتفي وي بیا دهر یو دوه دوه صورتونه دي : (۱) دمابعد به مضاف وي (۲) اویابه مابعد شبه مضاف وي نو دري (۳) ضرب دوه (۲) دا شپږ صورتونه شو ، یعنې ۳×۲=۶ .

**اغراض دجامي** : <u>والتکریر</u> : په دې عبارت سره شارح دوه (۲) خبرو طرف ته اشاره کوي : (۱) اول دا چې د التکریر عطف په الرفع باندې دي (۲) دویم داچې په د ـ باندې چې کوم الف لام داخل دي دادمضاف الیه په عوض کې دي . بل درفع او دتکرار وجه بیـ نـ ي .

<u>لکن مطلقا</u>: په دې عبارت سره شارح ددې خبرې وضاحت کوي چې دلا داسم تکرار واجب دي لیکن مطلق داسم تکرار واجب دي ، بعینه داول اسم تکرار واجب نه دي یعنې دتکرار نه مراد تکرار نوعي دي تکرار شخصي نه دي .

<u>امافي المعرفة</u> : په دې عبارت سره شارح دتکرار وجه بیانوي چې دمعرفه کیدو په صورت کې تکرار څکه واجب دي چې لا په اصل کې موضوع دي دنفي دآحادو دپاره اونفي دآحادو په اجناسو کې موندلې شي کله چې دمعرفې په صورت کې دامعنی فوت شي څکه چې په معرفه کې نفي دمفرد کیږي دآحادو نه کیږي لهذا تکرار ضروري دي چې دمافات تلافي وشي اود نکرې په صورت کې تکرار څکه واجب دي چې جواب دسوال مطابق شي ددې وجې نه لارجل في الدار ولا امرأة داجواب دي دسائل ددې سوال أرجل في الدار ام امرأة ؟ اوشارح وایي چې دا تعلیل په اولني صورت کې هم جاري کیدي شي .

**وجه دحصرِ عقلي** : مسند الیه به یا معرفه وي اویا نکره ، که معرفه وي نو یامفرد وي اویابه مضاف وي ، اودویم به یا مفرد مفصول وي اویا به مضاف مفصول وي ، او اول به یامفرد مفصول وي اویابه مضاف مفصول نو دمعرفې څلور (۴) صورتونه شو ، دوه (۲) بې دفصله

اودوه (۲) سره دفصله اودنکرې دوه (۲) صورتونه دي اوهغه دواړه دفصل سره دي حاصل داچې دلته ټول شپږ (۶) صورتونه دي :

(۱): د لا اسم مفرد معرفه متصل وي مثال لکه لا زيد ولا عمرو ، نوپه دې کې اول شرط موندلې شي او دريم اودويم شرط نه شي موندلې

(۲): د لا اسم معرفه مضاف متصل وي مثال لکه لا غلام زيد في الدار ولا عمرو ، نوپه دې کې اول شرط موندلې شي

(۳): د لا اسم نکره مفرده مفصوله وي مثال لکه لا في الدار زيد ولا امرأة ، نو په دې کې دويم شرط موندلې شي

(۴): د لا اسم نکره مفصوله مضاف وي مثال لا في الدار غلام زيد ولا امرأة ، نو په دې کې اول شرط نه شي موندلې .

(۵): د لا اسم مفرد مفصوله وي مثال لکه لا في الدار زيد ولا عمرو ، نو په دې کې يو شرط هم نه شي موندلې .

(۶): د لا اسم مضاف معرفه مفصوله وي مثال لکه لا في الدار غلام زيد ولا عمرو ، نو په دې کې دريم شرط موندلې شي

په دې صورتونو کې رفع دمبتدا کيدو په وجه واجب وي دمعرفې په صورت کې رفع ځکه واجب ده چې لا دنکرې په صفت کې دعمل کولو دپاره دي لهذا داپه معرفه کې عمل نه شي کولې اوپه مفصول کې رفع ځکه واجب ده چې د لا عمل ضعيف دي معمول په مفصول کې عمل نه شي کولې معمول صرف په موصول کې عمل کولې شي .

## ديو سوال مقدر جواب :

| |
|---|
| وَ نَحْوُ قَضِيَّةٌ أَيْ هٰذِهٖ قَضِيَّةٌ وَلاَ أَبَاحَسَنٍ لَهَا أَيْ لِهٰذَا الْقَضِيَّةِ هٰذَا جَوَابُ دَخْلٍ مُقَدَّرٍ عَلٰى قَوْلِهٖ |
| اولکه قضية يعني هذه قضية ولا اَبَاحَسَنٍ لَهَا يعني لهذا القضية داجواب دي دسوال مقدرپه دې قول دمصنف باندې |
| وَ اِنْ كَانَ مَعْرِفَةً وَجَبَ الرَّفْعُ وَ التَّنْكِيْرُ فَإِنَّ اِسْمُ لاَ فِيْهِ مَعْرِفَةٌ لِاَنَّ اَبَا حَسَنٍ كُنْيَةُ |
| چې که چيرته معرفه وي نوواجب ده رفع اوتکرارځکه اسم دلاپه دې کې معرفه دي ځکه اباحسن داکنيت دي د |
| عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَ لاَ رَفْعَ فِيْهِ وَ لاَ تَكْرِيْرَ بَلْ هُوَ مَنْصُوْبٌ غَيْرُ مُكَرَّرٍ فَأَجَابَ |
| حضرت علي رضی الله عنه اونشته رفع په دې کې اونه تکراربلکې دامنصوب دي غيرمکررنوجواب يې ورکړو |

عَنهُ بِأَنَّهُ مُتَأَوَّلٌ بِالنَّكِرَةِ إِمَّا بِتَقْدِيرِ المِثْلِ أَيْ وَ لاَ مِثْلَ أَبِيْ حَسَنٍ لَهَا فَإِنَّ مَثَلاً

ددې نه په دې طريقې سره چې دا مؤول دې په نکرې سره او يا د تقدير د مثل نه يعني ولا مثل ابي حسن لها ځکه مثلاً

لِتَوَغُّلِهِ فِي الإِبْهَامِ لاَ يَتَعَرَّفُ بِالإِضَافَةِ إِلَى المَعْرِفَةِ أَوْ بِتَأْوِيلِهِ بِفَيْصَلٍ

دوجې د شدت نه دې په ابهام کې نه معرفه کيږي په اضافت سره معرفې ته او يا په تاويل د دې سره په فيصل

بَيْنَ الحَقِّ وَ البَاطِلِ لِاشْتِهَارِهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ فَكَأَنَّهُ قِيْلَ لاَ فَيْصَلَ

په مينځ د حق او د باطل دوجې د شهرت د حضرت علي رضی الله عنه په دې صفت سره نو ګويا چې ويلې دي لا فيصل

لَهَا وَ يُقَوِّيْ هٰذَا التَّاوِيْلَ إِيْرَادُ حَسَنٍ بِحَذْفِ اللاَّمِ لِاَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ تَنْوِيْنَهُ لِلتَّنْكِيْرِ.

فيصلها او قوي کيږي دا تاويل په راوړو د حسن سره په حذف د لام ځکه ظاهر داده چې وي تنوين د پاره د تنکير.

[illegible] : په دې عبارت کې صاحب د کافيې د يو سوال مقدر جواب ورکوي کوم چې ددې قول ان کان معرفةً باندې وارد شوي دي چې د سوال او جواب تفصيل لاندې په شرحه کې ذکر شوي دي.

**اغراض د جامي** : هذه القضية: په دې عبارت سره شارح بيان د ترکيب کوي قضيه خبر دي د مبتدا محذوف چې هذه دي.

لهذا القضية: په دې عبارت سره شارح د هاء د ضمير مرجع يې متعين کړه.

هذا جواب: په دې عبارت سره شارح په متن باندې وارديدونکي سوال او د دې د جواب وضاحت کوي:

**سوال** : په ماتن باندې سوال کيږي چې مخکې تير شو چې کله د لا مابعد معرفه وي نو [illegible] تکرار او رفع واجب ده دا قاعده منقوضه او ماته ده په هذه قضية ولا اباحسن لها په مثال سره ځکه چې په دې کې اباحسن معرفه ده ولې چې ابوحسن دا د حضرت علي رضی الله عنه کنيت دي حالانکه نه په دې باندې رفع ده او نه تکرار شته دي بلکه په دې باندې نصب دي.

متأول: صاحب د کافيې د دې جواب ورکوي چې د امثال متاول په تاويل د نکرې سره دي شارح وايي چې په دې کې په دوه (۲) طريقو باندې تاويل کيدې شي:

(۱) اباحسن د ک اسم نه دي بلکې ددې نه مخکې مثل مضاف محذوف دي هغه د لا اسم دي په اصل کې دا سې وو چې لا مثل ابي حسن، او لفظ د مثل متوغل في الابهام کيدو دوجې نه که

معرفې طرف ته مضاف هم شي نو داهم نکره وي لهذا د لااسم نکره ده معرفه نه ده ددې وجې نه . نه وضع واجب ده اونه تکرار ضروري دي .

(۲) داباحسن نه مراد هغه وصف دي چې دهغې سره حضرت علي رضی الله عنه مشهور وو دحق اوباطل په مينځ کې فيصل اوددې معنی ده هذه قضية ولا فيصل لها اوس د لا اسم نکره کيږي ځکه چې کله دعلم نه مراد وصف مشهور واخستې شي نو دامعرفه نه پاتې کيږي بلکه نکـ : جوړيږي .

**ويقوي هذا التأويل:** په دې عبارت سره شارح دمولانا جامي ددويمې توجيه تاکيد کوي چې په اباحسن کې د الحسن نه الف لام حذف کول ددويمې توجيه دپاره مقوي او مؤيد دي ځکه چې د حسن تنوين دتنکير دپاره دي که تنکير دپاره نه وي نو الحسن چې مشهور دي ددې نه عدول نه کيدو .

## په لاحول ولا قوة الابالله مثال کې د پنځو وجوهاتو بيان:

وَ فِيْ مِثْلِ لاَ حَوْلَ وَ لاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ أَيْ فِيْمَا كُرِّرَتْ فِيْهِ لَا عَلَى سَبِيْلِ الْعَطْفِ وَ

اوپه لاحول ولا قوة الابالله مثال کې يعني په هغه صورت کې چې مکررروي په دې کې لاپه طريقې دعطف سره او

كَانَ عَقِيْبَ كُلٍّ مِنْهُمَا نَكِرَةٌ بِلاَ فَصْلٍ يَجُوْزُ خَمْسَةُ أَوْجُهٍ بِحَسْبِ اللَّفْظِ لَا بِحَسْبِ التَّوْجِيْهِ

وووروسته دهريوددې دواړونکره بې ذفصل نوجائزدي پنځه وجهې په اعتبار دلفظ سره نه په اعتبار دتوجيه سره

فَإِنَّهَا بِحَسْبِ التَّوْجِيْهِ تَزِيْدُ عَلَيْهَا اَلْأَوَّلُ فَتْحُهُمَا أَيْ لاَحَوْلَ وَلاَقُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ عَلَى أَنْ يَكُوْنَ لَا فِيْ كُلٍّ

ځکه په اعتبار دتوجيه سره زياتيږي په پنځوباندې اول فتحه ددواړويعني لاحول ولاقوة الابالله چې وي لاپه هريو

مِنْهُمَا لِنَفْيِ الْجِنْسِ وَلاَ قُوَّةَ عَطْفٌ عَلَى لاَحَوْلَ عَطْفَ مُفْرَدٍ عَلَى مُفْرَدٍ وَ خَبَرُهَا

ددې دواړوکې دپاره دنفي دجنس دولا قوة عطف په لاحول باندې په شان دعطف دمفرد په مفرد دي اوخبر ددې

مَحْذُوْفٌ أَيْ لاَحَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ مَوْجُوْدٌ إِلاَّ بِاللهِ أَوْ عَطْفَ جُمْلَةٍ عَلَى جُمْلَةٍ أَيْ لاَحَوْلَ إِلاَّ بِاللهِ وَلاَقُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ فَحُذِفَ

محذوف دي لاحول ولاقوة موجودالابالله اوياعطف دجملې په جملې باندې يعني لاحول الابالله ولاقوة الابالله نوحذف

خَبَرُ الْجُمْلَةِ الْأُوْلَى اِسْتِغْنَاءً عَنْهُ بِخَبَرِ الْجُمْلَةِ الثَّانِيَةِ، وَ الثَّانِيْ فَتْحُ الْأَوَّلِ وَ نَصْبُ الثَّانِيْ

کړې شوه خبرداولې جملې دوجې داستغناء ددې نه په خبردويمې جملې اودويم فتحه داول اونصب د دويم

أَيْ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةً إِلاَّ بِاللهِ أَمَّا فَتْحُ الْأَوَّلِ فَلِأَنَّ لَا الْأُوْلَى لِنَفْيِ الْجِنْسِ وَ أَمَّا نَصْبُ

يعني لاحولَ ولا قوةً الا بالله هرچې فتحه داول نو ددې وجې نه چې اولنې لام دپاره دنفي دجنس دي اوهرچې نصب

الثَّانِيْ فَلِاَنَّ لاَ الثَّانِيَةَ مَزِيْدَةٌ لِتَاكِيْدِ النَّفْيِ وَ الثَّانِيْ مَعْطُوْفٌ عَلَى الْاَوَّلِ فَيَكُوْنُ

ددويم دې نو ددې وجې نه چې دويم لام دا زانده دې دپاره دتاکيد دنفي او دويم عطف دې په اول باندې نو وي به

مَنْصُوْباً حَمْلاً عَلٰى لَفْظِهٖ لِمُشَابَهَةِ حَرَكَتِهٖ حَرَكَةَ الْإِعْرَابِ وَ

منصوب دوجې دحمل نه په لفظ باندې دوجهې دمشابهت نه ځکه حرکت ددې په شان دحرکت داعراب دې او

يَجُوْزُ اَنْ يُقَدَّرَ لَهُمَا خَبَرٌ وَاحِدٌ وَ اَنْ يُقَدَّرَ لِكُلٍّ مِنْهُمَا خَبَرٌ عَلٰى حِدَةٍ وَ الثَّالِثُ فَتْحُ الْاَوَّلِ وَ

جائزدي چې مقدر کړې شي ددې دواړو دپاره يو خبر او يا مقدر کړې شي دهريو دپاره خبر جدا او دريم فتحه داول او

رَفْعُ الثَّانِيْ نَحْوُ لاَحَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ اِلاَّ بِاللهِ اَمَّا فَتْحُ الْاَوَّلِ فَلِاَنَّ لَا الْاُوْلٰى لِنَفْيِ الْجِنْسِ وَ اَمَّا رَفْعُ

رفع ددويم لکه لاحولَ ولاقوةٌ الا بالله هرچې فتحه داول ده نو ځکه اولنې لام دپاره دنفي دجنس دې او هرچې رفع

الثَّانِيْ فَلِاَنَّ لاَ الثَّانِيَةَ زَائِدَةٌ وَ الثَّانِيْ مَعْطُوْفٌ عَلٰى مَحَلِّ الْاَوَّلِ لِاَنَّهٗ مَرْفُوْعٌ بِالْاِبْتِدَاءِ عَطْفَ

ددويم نو ځکه چې دويم لام زائد دې او دويم عطف دې په اول محل باندې ځکه مرفوع دې په ابتدا سره دا عطف د

مُفْرَدٍ عَلٰى مُفْرَدٍ بِاَنْ يُقَدَّرَ لَهُمَا خَبَرٌ وَاحِدٌ اَوْ عَطْفَ جُمْلَةٍ عَلٰى جُمْلَةٍ بِاَنْ يُقَدَّرَ

مفرد په مفرد باندې دې چې مقدر کړې شي ددې دپاره يو خبر او يا عطف دجملې دې په جملې باندې چې مقدر کړې

لِكُلٍّ مِنْهُمَا خَبَرٌ وَ الرَّابِعُ رَفْعُهُمَا بِالْاِبْتِدَاءِ نَحْوُ لاَ حَوْلٌ وَلاَ قُوَّةٌ اِلاَّ بِاللهِ لِاَنَّهٗ جَوَابُ قَوْلِهِمْ

شي دهريو دپاره خبر جدا او څلورم رفع ددواړو په ابتدا سره لکه لاحولٌ ولاقوةٌ الابالله ځکه داجواب ددې قول دې

اَبِغَيْرِ اللهِ حَوْلٌ وَ قُوَّةٌ ؟ فَجَاءَ بِالرَّفْعِ فِيْهِمَا مُطَابَقَةً لِلسُّؤَالِ وَ يَجُوْزُ الْاَمْرَانِ هٰهُنَا

چې أبغيرالله حولٌ وقوةٌ؟نو راغې په رفع سره په دواړو کې دوجې دمطابقت نه دسوال سره او جائزدي دواړه امره دلته

اَيْضاً وَ الْخَامِسُ رَفْعُ الْاَوَّلِ عَلٰى اَنْ يَكُوْنَ لَا بِمَعْنٰى لَيْسَ عَلٰى ضُعْفٍ فَاِنَّ عَمَلَ لَا بِمَعْنٰى

همدارنګې او پنځم رفع داول په دې معنى چې وي لا په معنى دليس په ضعف باندې ځکه عمل د لا په معنى د

لَيْسَ قَلِيْلٌ وَ فَتْحُ الثَّانِيْ نَحْوُ لاَحَوْلٌ وَلاَ قُوَّةَ اِلاَّ بِاللهِ عَلٰى اَنْ يَكُوْنَ لَا لِنَفْيِ الْجِنْسِ وَ ضُعِّفَ

ليس سره کم دې او فتحه ددويم لکه لاحولٌ ولا قوةَ الا بالله په دې خبره چې وي لا د پاره د نفي د جنس او ضعيف

وَجْهُ ضُعْفِ رَفْعِ الْاَوَّلِ بِاَنَّهٗ يَجُوْزُ اَنْ يَكُوْنَ رَفْعُهٗ لِاِلْغَاءِ عَمَلِ لَا

ګرځولې شوي دوجهې دضعف نه رفع داول په دې معنى چې جائزوي چې وي رفع ددې دپاره دلغوه کولو دعمل دلا په

بِالتَّكْرِيْرِ لاَ لِكَوْنِهَا بِمَعْنٰى لَيْسَ لِاَنَّ شَرْطَ صِحَّةِ اِلْغَائِهَا التَّكْرِيْرُ فَقَطْ وَ قَدْ

تکرار سره نو دوجې دکيدو ددې نه په معنى دليس ځکه شرط دصحت دلغوه کولو ددې تکرار دې فقط او په تحقيق

حَصَلَ هٰهُنَا وَلاَ دَخْلَ فِيْهَا لِتَوَافُقِ الْاِسْمَيْنِ بَعْدَهَا فِي الْاِعْرَابِ فَهٰذَا عَلٰى

سره حاصل شو دلته او نشته هيڅ دخل په دې کې دوجهې دتوافق ددواړو اسمينو پس دلانه په اعراب کې نو دا په

| التَّوْجِيهِ الْاَوَّلِ مُتَعَيَّنٌ لِعَطْفِ جُمْلَةٍ عَلٰى جُمْلَةٍ أَيْ لَاحَوْلَ إِلاَّ بِاللهِ وَلاَقُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ وَلاَ يَلْزِمُ |
|---|
| اولي توجيه باندې متعين دہ دپارہ دعطف دجملې په جملې باندې يعني لاحولَ الا بالله ولاقوةَ الا بالله اونه ده لازم |
| أَنْ يَكُونَ قَوْلُهُ إِلاَّ بِاللهِ مَنْصُوباً وَمَرْفُوعاً وَعَلَى التَّوْجِيهِ الثَّانِيْ يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُوْنَ مِنْ قَبِيْلِ عَطْفِ |
| چې وي قول دده الا باللهِ منصوب اومرفوع اوبناپه دويمه توجيه باندې احتمال لري چې وي دقبيلې دعطف د |
| مُفْرَدٍ عَلٰى مُفْرَدٍ أَوْ عَطْفِ جُمْلَةٍ عَلٰى جُمْلَةٍ كَمَا لاَ يَخْفٰى. |
| مفرد په مفرد باندې اودعطف دجملې په جملې باندې لکه څنګه چې دا پټه نه ده |

**خلاصه دمتن:** صاحب د کافيې وايي چې د لاحول ولا قوة الا بالله مثال کې يعنې په هغه صورت کې چې مکرر وي په دې کې په طريقې دعطف سره او وي پس د هر يو ددې دواړو نه نکره بې دفصل نه ، نو په دې کې پنځه (۵) وجهې جائز دي په اعتبار دلفظ سره نه په اعتبار دتوجيه سره چې تفصيل يې په لاندې ډول دي :

(۱): **اول صورت دا** چې ددواړو فتحه يعني دلاحول هم فتحه اود لاقوة هم فتحه مثال لکه: لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ.

(۲): **دوهم صورت دا** چې فتحه داول يعني دلاحولَ او نصب ددويم يعني دلاقوة مثال لکه: لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةً إِلاَّ بِاللهِ.

(۳): **دريم صورت دا** چې فتحه داول يعني دلاحول اورفع ددويم يعني دلاقوة مثال لکه: لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةٌ إِلاَّ بِاللهِ.

(۴): **څلورم صورت دا** چې رفع ددواړو يعني په لاحول اولاقوة دواړو باندې رفع وي مثال لکه لاَ حَوْلٌ وَلاَ قُوَّةٌ إِلاَّ بِاللهِ.

(۵): **پنځم صورت دا** چې رفع داول يعني دلاحول (بناء بر ضعف) او فتحه ددويم يعني د لاقوة مثال لکه: لاَ حَوْلٌ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ.

**اغراض دجامي :** مثل: په دې عبارت سره شارح دمثل مقصود او مراد متعين کوي دمثل نه مراد هر هغه ترکيب دي چې په هغې کې لاعلی سبيل العطف مکرر وي او ددې نه هر يو لا مابعد نکره مفرد بلا فصل وي نو په داسې ترکيب کې پنځه (۵) وجهې جائز دي .

بحسب اللفظ: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال :** دلته شپږم صورت هم کيدې شي هغه شپږم صورت دا دې چې داول فتحه په دې بناء

باندې چې هغه دلانفی جنس اسم دي اوددويم رفع په دې وجه باندې چې لا د ليس په معنى کې دي .

**جواب** : وجه په دوه قسمه ده (۱) په اعتبار دلفظ سره ، ددې نه مراد طريقه دقرأت يعني په اعتبار دلوستلو سره . (۲) په اعتبار دتوجيه سره ددې نه مراد دليل دقرأت دي اودلته اول قسم يعني په اعتبار دلفظ سره مراد دي مقصد دادې چې ددې عبارت دلوستلو په اعتبار سره پنځه (۵) صورتونه دي البته کله چې ددې توجيهات وشي نو هغه دپنځو (۵) نه زياتيږي .

**طريق خمسة** : په پنځو (۵) طريقو باندې يې لوستل جائز دي :

**(۱)**: ددواړو فتحه يعني **لاحولَ ولا قوةَ الا بالله** په دې صورت کې په دواړو ځايونو کې به لانفي جنس وي اوددې نه وروستو به نکره مفرده بلا فصل وي اوکله چې دلا اسم نکره مفرده بلافصل وي نو دابه مبني برفتحه وي پاتې شوه داخبره چې دوه جملې دي يا يوه جمله يعني مفرد په مفرد باندې عطف دي يادجملې عطف په جمله باندې دي په دې کې دوه (۲) احتماله دي که ددواړو دپاره يو خبر مقدر ومنل شي نو بيا دمفرد عطف به په مفرد وي لکه **لاحول ولاقوة موجودان الا بالله** اوکه ددواړو خبر ځان له ومنلي شي نو بيابه دوه جملې شي اودجملې عطف به په جمله باندې شي مثال **لاحول موجود ولا قوة موجود الا بالله** .

**(۲)**: داول فتحه ددويم نصب مثال **لاحولَ ولا قوةً الا بالله** داول فتحه په دې بناء باندې چې اول لا نفي جنس ده اوددويم نصب په دې بناء باندې چې دويمه لا زائده ده دنفي تاکيد دپاره اوهغه معطوف دي په اول باندې اودمعطوف عليه په لفظ باندې محمول شو نو دې لره منصوب ولوستلي شو .

**لمشابهة حركته الخ**: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : اول مبني دي اودمبني تابع دهغې محل تابع وي دلفظ تابع نه وي نو لهذا دويم لره داول په محل باندې محمول کول اوم[illegible]رع لوستل په کار وو

**جواب** : داول حرکت دحرکت اعرابيه مشابه دي لهذا دا [illegible]ه منزله دمعرب شو او دمعرب تابع دهغه لفظ تابع وي پاتې [illegible] داخبره چې يوه جمله ده [illegible] دوه جملې دي ددې دارومدار په خبر باندې دي که يو خبر محذوف ومنل شي نو مفرد عطف به په مفرد [illegible] شي اوکه ځان ځان له خبر محذوف ومنل شي نو دجملې [illegible] به په جمله [illegible] شي لکه څنګه چې مخکې تېر شو

(۳): داول فتحه اودويم رفع مثال لاحولَ ولاقوةٌ الا بالله داول فتحه په دې بناء باندې چې اول لا دنفي جنس دپاره ده اودويم رفع په دې باندې چې دويمه لا زائده ده اودويم اسم عطف په اول اسم په محل باندې دي ځکه چې دا محلاً مرفوع دي دمبتدا په وجه باندې په ۔ې کې هم د عطف دوه (۲) وجهې جائز دي که يو خبر مقدر ومنل شي نو عطف دمفرد په مفرد به راشي او که ځان ځان له مقدر ومنل شي نوعطف دجمله په جمله باندې وي لکه مخکې چې ددې پوره تفصيل تير شوې :ي .

(۴): ددواړو رفع دمبتدا کيدو په وجه مثال لاحولٌ ولاقوةٌ الا بالله ځکه چې داجواب دي دقائل دقول أبغير الله حولٌ وقوةٌ ځکه چې په سوال کې دواړه مرفوع دي نو جواب به هم مرفوع وي چې جواب دسوال مطابق شي په دې کې هم دوه (۲) وجهې جائز دي يعنې دمفرد عطف په مفرد باندې اودجملې عطف په جمله باندې .

(۵): داول رفع اودويم فتحه مثال لاحولٌ ولا قوةَ الا بالله داول رفع په دې بناء باندې چې اول لا په معنى دليس سره دي داضعيف دي ځکه چې لا په معنى دليس عمل قليل اونادر دي او د دويم فتحه په دې بناء باندې چې دويمه لا نفي دجنس ده .

وضعف: په دې عبارت سره شارح دمصنف رحمه الله په قول على ضعيف باندې رد کوي يعنې د اول رفع دضعيف دوجې نه ضعيف دي ددې وجې نه کيدې شي داول رفع په معنى دليس د وجې نه ،نه وي بلکه دارفع دتکرار دوجې نه لا ملغى کيدو دوجې نه وي ځکه چې لا دالغاء صحت شرط فقط تکرار دي اوتکرار دلته موجود دي .

ولا دخل: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: د لا دالغاء دپاره دوه (۲) شرطونه دي : (۱) تکرار سره وي . (۲) ددغې اسمونو اعراب يو وي اودلته دويم شرط نه شي موندلې .

**جواب**: لا دملغى کيدو دصحت دپاره ددواړو اسمونو په اعراب کې دموافقت څه شرط ضروري نه دي دهغې دپاره فقط تکرار کافي وي پاتې شوه داخبره چې دلته دمفرد عطف په مفرد باندې دي يادجملې عطف په جملې باندې دي نو داولې توجيه مطابق يعنې کله چې لا په معنى د ليس سره وي نو دجملې عطف په جمله باندې متعين به شي ورنه لازم به شي چې الا

بالله مرفوع به هم وي او منصوب به هم وي ځکه چې لا په معنی د ليس خبر منصوب وي او د لا نفي جنس خبر مرفوع وي لفظ په يو وخت مرفوع او منصوب کيدل ناجائز دي او ددويمې توجيه مطابق يعنې کله چې لا ملغی وي نو دمفرد عطف په مفرد باندې هم کيدي شي او دجملې عطف په جملې باندې هم کيدي شي ځکه چې دمبتدا خبر مرفوع وي او د لانفي جنس خبر هم مرفوع وي.

## په لای نفي جنس باندې د همزې داخليدو بيان:

| |
|---|
| وَ إِذَا دَخَلَتِ الْهَمْزَةُ عَلَى لاَ الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ لَمْ يَتَغَيَّرِ الْعَمَلُ أَيْ عَمَلُ لاَ أَيْ تَأْثِيْرُهَا |
| او کله چې داخله شي همزه په لا باندې هغه چې وي دپاره دنفي دجنس نو نه بدلوي عمل يعنې عمل د لا يعنې تاثير |
| فِيْ مَدْخُوْلِهَا إِعْرَاباً وَ بِنَاءً لِأَنَّ الْعَامِلَ لاَ يَتَغَيَّرُ عَمَلُهُ بِدُخُوْلِ كَلِمَةِ |
| ددې په مدخول ددې کې په اعتبار داعراب او بنا سره ځکه عامل نه متغير کوي عمل ددې په دخول دکلمې د |
| الْإِسْتِفْهَامِ وَ مَعْنَاهَا أَيْ مَعْنَى الْهَمْزَةِ الدَّاخِلَةِ عَلَى لاَ الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ إِمَّا الْإِسْتِفْهَامُ |
| استفهام سره او معنی ددې يعنې دهمزې چې داخله وي په لا هغه چې وي دپاره دنفي دجنس هرچې استفهام دي |
| حَقِيْقَةً فَتَقُوْلُ أَلاَ رَجُلَ فِي الدَّارِ مُسْتَفْهِماً وَ إِمَّا الْعَرْضُ مِثْلُ أَلاَ نُزُوْلَ عِنْدِيْ وَ لَمْ يَذْكُرْ |
| حقيقةً نو وايې به ته ألا رجل في الدار دسوال کولو په حالت کې او يا عرض دي لکه ألا نزول عندي او نه دي ذکر کړي |
| سِيْبُوَيْهِ أَنَّ حَالَ إِلاَّ فِي الْعَرْضِ كَحَالِهِ قَبْلَ الْهَمْزَةِ بَلْ ذَكَرَهُ السِّيْرَافِيْ وَ تَبِعَهُ |
| سيبويه چې حال د ألا په عرض کې په شان دهغه حالت دي چې وي مخکې دهمزې نه بلکې ذکر کړي سيرافي او اتباع |
| الْجُزُوْلِيْ وَ الْمُصَنِّفُ وَ رَدَّ ذٰلِكَ الْأَنْدَلُسِيُّ وَ قَالَ هٰذَا خَطَأٌ لِأَنَّهَا إِذَا كَانَتْ عَرْضاً كَانَتْ مِنْ حُرُوْفِ الْأَفْعَالِ |
| کړي جزولي او مصنف او رد کړي دا اندلسي او ويلي دي دا خطا ده ځکه چې کله وي عرض نو وي به د حروف افعالو نه |
| مِثْلُ إِنْ وَ لَوْ وَ حُرُوْفِ التَّحْضِيْضِ فَيَجِبُ إِنْتِصَابُ الْإِسْمِ بَعْدَهَا نَحْوُ أَلاَ زَيْداً تُكْرِمُهُ وَ إِمَّا التَّمَنِّيْ نَحْوُ أَلاَ مَاءً أَشْرَبُهُ |
| لکه إن و لو او حروف تحضيض نو واجب دي انتصاب داسم پس د لا نه لکه الا زيدا تکرمه او يا تمني لکه الاماءً اشربه |
| حَيْثُ لاَ يُرْجٰى مَاءٌ وَ أَمَّا قَوْلُهُ أَلاَ رَجُلاً جَزَاهُ اللّٰهُ خَيْراً فَهٰذِهِ عِنْدَ الْخَلِيْلِ لَيْسَتْ لاَ الدَّاخِلَةُ عَلَيْهَا |
| چيرته چې اميد نه وي داوبو او هرچې دا قول دشاعر ألا رجل جزاه الله خيرا نو دا ألا په نزد دخليل نه دي لا داخله په دې باندې |
| حُرُوْفُ الْإِسْتِفْهَامِ وَ لٰكِنَّهُ حَرْفٌ مَوْضُوْعٌ لِلتَّحْضِيْضِ بِرَأْسِهِ فَكَأَنَّهُ قَالَ أَلاَ تَرُوْنَنِيْ رَجُلاً يَعْنِيْ |
| حروف داستفهام ليکن دا يو حرف دي چې وضع شوې دپاره دتحضيض مستقل ګويا چې ويلي دي ألا ترونني رجلاً |
| هَلاَّ تَرُوْنَنِيْ رَجُلاً وَ لِذٰلِكَ نُصِبَ وَ نُوِّنَ وَ هِيَ عِنْدَ يُوْنُسَ لاَ الَّتِيْ دَخَلَتْ عَلَيْهَا |
| يعنې هلا ترونني رجلا او ددې وجې نه نصب ورکړې شو او منون کړې شو او دا په نزد ديونس لا هغه چې داخل شي په دې |

هَمْزَةُ الإِسْتِفْهَامِ بِمَعْنَى التَّمَنِّيْ فَكَأَنَّ الْقِيَاسَ أَلاَ رَجُلَ وَ لٰكِنَّهُ نُوِّنَ لِضَرُوْرَةِ الشِّعْرِ.

باندې همزه داستفهام په معنی دتمني نوګویاچې قیاس ألا رجل دي لکن تنوین یې ورکړودوجې دضرورت شعري نه

**خلاصه دمتن**: کله چې په لای نفي جنس باندې همزه داخله وي نو ددې عمل بدلیږي اود همزې معنی خو یااستفهام وي . یاعرض وي اویاتمنی وي

**اغراض دجامي**: علی لا التي: په دې عبارت سره شارح بیان دصلې کوي داد دخلت دصلې بیان دي .

ای عمل لا: په دې عبارت سره شارح بیان دالف لام دي چې داد مضاف الیه په عوض کې دي او یا الف لام دعهد دي .

ای تاثیرها: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: لفظ دعمل دمعرب عمل دپاره ویلې کیږي او لا رجل في الدار کې رجل معرب نه دي نو لم یتغیر العمل ویل څنګه صحیح دي ؟

**جواب**: دلته دعمل نه مراد ددې معنی لغوي یعنې اثر کول دي اوظاهر ده چې دلا مدخول معرب به وي یامبني په دې کې د لا عمل ضروري دي .

في مدخولها: په دې عبارت سره شارح دمحل دتاثیر بیان دي .

اعراباً وبناءً: په دې عبارت سره صورت دعدم تاثیر بیانوي یعنې که همزه ددخول نه مخکې د لا اسم معرب وونو د دخول نه وروستو به هم معرب وي که مخکې مبني وو نو وروستو به هم مبني وي .

لان العامل لایتغیر: په دې عبارت سره شارح دعمل نه متغیر کیدو وجه بیانوي چې د لا عمل په داخلیدو دکلمې داستفهام سره نه متغیر کیږي

ای معنی الهمزة: په دې عبارت سره شارح بیان دمرجع کوي چې دهاء ضمیر مرجع هغه همزه ده کومه چې په لانفي جنس باندې داخل وي

حقیقتاً: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: تمنی اوعرض هم استفهام دي لهذا داستفهام نه وروستو دې شره ذکر کول مستدرک او بې فائدې دي

**جواب** : دلته مراد استفهام حقيقي دي اوتمنى اوعرض استفهام حقيقي نه دي بلکه دي ته مجازاً استفهام ويلي شي د همزه استفهام مثال الا رجل في الدار . د عرض مثال الا نزول عندي .

**ولم يذكر** : په دې عبارت سره شارح په صاحب د کافيې باندې اعتراض کول دي صاحب د کافيې په خپل کتاب کافيه کې دقواعدو په بيان کې دسيبويه اتباع کړي ده اوسيبويه دانه دي ذکر کړي چې د لا حال په عرض کې دهغه حال په مثل دي کوم چې د همزې داخليدو نه مخکې دي بلکه دې لره سيرافي ذکر کړي دي جزولي اومصنف رحمه الله ددې اتباع کړي ده او اندلسي دې لره رد کړي دي هغه ويلي دي چې داويل چې د لا حال په عرض کې دهغه حال اول په شان به وي داغلط دي بلکه کله چې عرض وي نو هغه دحروف افعال څخه کيږي يعنې دهغه حروفو نه کوم چې په فعل باندې داخليږي مثلاً ان او حرف تحضيض لهذا ددې نه وروستو فعل کيدل ضروري به وي برابره خبره ده که فعل مقدر وي اويا ملفوظ کله چې فعل ملفوظ نه وي نو مقدر به وي اوفعل مقدر دوجې نه منصوب به وي مثال الا زيدا تکرمه په دې کې زيد منصوب دي دفعل مقدر دوجې نه چې دهغې تفسير وروستي فعل کوي اودتمنى مثال الا ماء اشربه په دې کې به دتمنى معنى په هغه وخت کې وي کله چې داوبو اميد نه وي که داوبو اميد وي نو په دې وخت کې به استفهام حقيقي وي اوهمزې لره دتمنى دپاره کول به صحيح نه وي .

**واما قوله** : په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا داقول چې کله په لاى نفي جنس باندې همزه داخل وي نو دهغه عمل نه بدليږي دامنقوضه اوماته دي دقائل په دې قول الا رجلاً جزاه الله خيراً سره په دې کې د لا عمل تبديل شوي دي دمبني نه معرب طرف ته .

**جواب** : نو شارح ددې سوال نه دوه جوابات ورکړي دي :

**جواب (١)** : دخليل نحوي په نزد دا لا هغه نه ده چې په کوم باندې حرف استفهام داخل وي بلکه دادحروف تحضيض نه دي اود رجلاً نه مخکې فعل مقدر دي ددې فعل دوجې نه په دې باندې نصب اوتنوين راغلي گويا قائل داسې وويل الا ترونني رجلاً يعنې هل لا ترونني رجلاً ددې فعل مقدر دوجې نه په دې باندې نصب اوتنوين راغلي .

**جواب (٢)** : ديونس نحوي په نزد داهغه لا ده چې په کوم باندې همزه استفهام داخليږي د

تمنی په معنی کې د قیاس تقاضا داده چې الا رجل مبني وي لیکن دې ته تنوین د ضرورت شعري دوجې نه ورکړې شو .

## د لای نفي جنس د صفت اعراب :

وَ نَعْتُ اسْمِ لاَ الْمَبْنِيّ لاَ نَعْتُ اسْمِهَا الْمُعْرَبِ اِحْتِرَازاً عَنْ مِثْلِ لاَ غُلاَمَ رَجُلٍ ظَرِيْفاً اَلْاَوَّلُ بِالرَّفْعِ صِفَةٌ

اوصفت داسم دلامبني نه صفت داسم دلامعرب احترازدي دلاغلام رجل ظريفاً مثال نه اول په رفع سره صفت دې د

لِلنَّعْتِ اَيْ لاَ الثَّانِيْ وَ مَا بَعْدَهُ اِحْتِرَازٌ عَنْ مِثْلِ لاَ رَجُلَ ظَرِيْفَ كَرِيْمٌ فِي الدَّارِ مُفْرَداً حَالٌ

نعت يعني نه ددويم اومابعد ددې نه احترازدې دلارجل ظريف كريم في الدارمثال نه په حالت دافرادكې داحال دې

مِنْ ضَمِيْرِ مَبْنِيّ وَ الْعَامِلُ فِيْهِ مَبْنِيٌّ اِحْتِرَازٌ عَنْ مِثْلِ لاَ رَجُلَ حَسَنُ الْوَجْهِ يَلِيْهِ حَالٌ

دضمير دمبني نه اوعامل په دې کې مبني دې احترازدې دلارجل حسن الوجه مثال نه چې نژدې وي داحال دې پس د

بَعْدَ حَالٍ اَوْ صِفَةٌ مُفْرَداً اِحْتِرَازٌ عَنِ الْمَفْصُوْلِ نَحْوُ لاَ غُلاَمَ فِيْهَا ظَرِيْفٌ وَهٰذَا الْقَيْدُ يُغْنِيْ عَنِ الْاَوَّلِ مَبْنِيٌّ

حال نه اوياصفت دې د مفرداًاحترازدې د مفصول نه لکه لاغلام فيهاظريف اودا قيد بې نيازه کوي د اول نه مبني دې

عَلَى الْفَتْحِ حَمْلاً عَلَى الْمَنْعُوْتِ لِمَكَانِ الْاِتِّحَادِ بَيْنَهُمَا وَ

بنابرفتحه دوجې دحمل کولونه په منعوت باندې دموجوديدودا تحاداواتصال نه په مينځ ددواړوکې اودوجهې

تَوَجُّهِ النَّفْيِ اِلَيْهِ اَيْ اِلَى النَّعْتِ حَقِيْقَةً وَ الْمَبْنِيُّ فِيْ قَوْلِهِ وَ نَعْتُ الْمَبْنِيِّ اِشَارَةٌ

دمتوجه کيدودنفي نه دې طرف ته يعني صفت طرف ته حقيقتاًاومبني په دې قول دمصنف کې ونعت المبني اشاره

اِلٰى مَا يُبْنٰى عَلَى الْفَتْحِ بِالْاِصَالَةِ لاَ بِالتَّبْعِيَّةِ فَاِنَّهُ الْمَذْكُوْرُ سَابِقاً فَلاَ يَرِدُ اَنَّهُ اِذَا كُرِّرَ

ده هغه څه ته چې مبني وي بنابرفتحه اصالتاًنه بالتبعية نوداذکردې مخکې نونه واردیږې سوال چې کله مکرر

اِسْمُ لاَ الْمَبْنِيُّ وَ بُنِيَ عَلَى الْفَتْحِ ثُمَّ جِيْءَ بِنَعْتٍ لاَ يَجُوْزُ بِنَاؤُهُ مِثْلُ لاَ

راوړې شي اسم دلامبني اومبني کړې شي بنابرفتحه بيارااوړل شي په صفت سره نوجائزبه نه وي بنادې لکه لا

مَاءَ مَاءَ بَارِداً مَعَ اَنَّهُ يَصْدُقُ عَلَيْهِ اَنَّهُ نَعْتُ الْمَبْنِيِّ الْاَوَّلِ مُفْرَداً يَلِيْهِ فَاِنَّ بَارِداً

ماءماءبارداًسره ددې چې صادقيږي په دې باندې چې دانعت دې دمبني اول مفرد چې ددې سره متصل دې ځکه بارداً

فِيْ هٰذَا الْمِثَالِ نَعْتٌ لِلتَّابِعِ لاَ لِلْمَتْبُوْعِ كَمَا هُوَ الظَّاهِرُ وَ لَوْ جُعِلَ نَعْتاً لِلْمَتْبُوْعِ فَلَيْسَ

په دې مثال کې صفت دې د تابع نه دمتبوع لکه څنګه چې ظاهردې اوکه چيرته وګرځول شي صفت دمتبوع نونه

مِمَّا يَلِيْهِ لِتَوَسُّطِ التَّابِعِ بَيْنَهُمَا وَ مُعْرَبٌ لِاَنَّ الْاَصْلَ فِيْ

به وي دهغه څه نه چې متصل وي دوجهې دواسطې دتابع نه په مينځ ددواړوکې اومعرب به وي ځکه اصل په

| |
|---|
| التَّوَابِعِ تَبَعِيَّتُهَا لِمَتْبُوْعَاتِهَا فِي الْإِعْرَابِ دُوْنَ الْبِنَاءِ رَفْعاً حَمْلاً |
| توابعو کې تابع کیدل ددې دي دمتبوع سره په اعراب کې نه په بنا. کې رفعه به ورکولې شي دوجهې دحمل کولو نه |
| عَلَى مَحَلِّهِ الْبَعِيْدِ وَ نَصْباً حَمْلاً عَلَى اللَّفْظِ أَوْ عَلَى مَحَلِّهِ الْقَرِيْبِ نَحْوُ لَا رَجُلَ |
| په محل بعید باندې اونصب به ورکولې شي دوجهې دحمل نه په لفظ باندې اویاپه محل قریب باندې لکه لارجل |
| ظَرِيْفَ بِالْفَتْحِ وَ ظَرِيْفٌ بِالرَّفْعِ وَ ظَرِيْفاً بِالنَّصْبِ وَ إِلَّا أَيْ وَ إِنْ لَمْ يَكُنِ النَّعْتُ كَذٰلِكَ |
| ظریفَ په فتحې سره اوظریفٌ په رفعې سره اوظریفاً په نصب سره اوکه نه وي یعنې که چیرته نه وي صفت همدارنګې |
| فَالْإِعْرَابُ أَيْ فَحُكْمُهُ الْإِعْرَابُ لَا غَيْرُ رَفْعاً حَمْلاً عَلَى الْمَحَلِّ الْبَعِيْدِ |
| نواعراب دي یعنې نوحکم ددې اعراب دي نه بل څیزرفع به ورکولې شي دوجهې دحمل کولو نه په محل بعید |
| أَوْ نَصْباً حَمْلاً عَلَى اللَّفْظِ أَوِ الْمَحَلِّ الْقَرِيْبِ وَ قَدْ |
| باندې اویابه نصب ورکولې شي دوجهې دحمل کولونه په لفظ باندې اویاپه محل قریب باندې اوبه تحقیق سره |
| مَرَّتْ أَمْثِلَتُهُ فِيْ بَيَانِ فَوَائِدِ الْقُيُوْدِ. |
| تیرشوې مثالونه ددې په بیان دفوائدو قیودو کې . |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافیې وایي چې د لانفي جنس داسم مبني په نعت کې دوه (۲) وجهې جائز دي : دې لره مبني برفتحه لوستل جائزدي په دې شرط سره چې په دې نعت کې دري شرطونه موندلې شي : (۱) نعت اول وي . (۲) مفرد وي .(۳) دمنعوت سره متصل وي .

**اغراض دجامي** : اسم لا : په دې عبارت سره شارح بیان دترکیب کوي چې المبني صفت دي د موصوف محذوف چې هغه اسم د لا دي .

**بالرفع**: په دې عبارت سره شارح دالاول اعراب سره دوجهې بیانوي چې دامرفوع دي په دې بناء باندې چې داصفت دي دنعت .

**لا نعتٌ اسمها**: په دې عبارت سره شارح بیان داحتراز کوي چې دمبني قید احترازي دي په دې سره احتراز دي داسم معرب دنعت نه مثال لکه لا غلام رجل ظریفاً .

**بالرفع** : په دې عبارت سره شارح دالاول اعراب اوداعراب وجه بیانوي الاول مرفوع دي ځکه چې دادنعتٌ صفت دي .

**لا الثاني** : په دې عبارت سره شارح بیان داحتراز کوي چې اول قید هم احترازي دي په دې سره مضاف شبه مضاف نه احتراز دي ځکه چې که نعت مضاف یاشبه مضاف وي نو دابه معرب

وي مثال لکه لا رجل حسن الوجه

حال: په دې عبارت سره شارح دیلیه ترکیب بیانوي چې ددې په ترکیب کې دوه (۲) احتماله دي (۱) داحال بعد حال دي یعني داهم دمبني ضمیر نه حال دي (۲) یا دمفرد صفت دي

احتراز: په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې دیلیه قید احترازي دي په دې سره احتراز دي دهغه نعت نه کوم چې داسم د لا سره متصل وي ځکه چې ددې معرب کیدل متعین دي مثال لکه لاغلام فیها ظریف

وهذا القید: په دې عبارت سره شارح په صاحب دکافیې باندې اعتراض کوي ، دیلیه قید داول نه مستغني کوي ځکه چې کله نعت لا داسم سره متصل وي نو داخامخا نعت ثاني اونعت ثالث به نه وي

حملاً: په دې عبارت سره شارح دمبني علی الفتح کیدو وجه بیانوي هغه وجه داده چې دې لره په منعوت باندې حمل کولې شي .

لمکان: په دې عبارت سره شارح دحمل وجه بیانوي ، ددې دري (۳) وجهې یې بیان کړي دي : (۱) دې لره په منعوت باندې ځکه محمول کولې شي چې نعت او منعوت په خپل مینځ کې متحد وي . (۲) ددې وجې نه چې نعت منعوت سره متصل دي (۳) ددې وجې نه چې نفي په حقیقت کې نعت طرف ته متوجه کیږي ځکه چې قاعده داده چې کله نفي مقید بالقید وي نو نفي په حقیقت کې قید طرف ته راجع کیږي اودلته دقید نه مراد نعت دي ځکه چې دامفرد دي لهذا دابه مبني برفتحه وي .

والمبني: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : داقاعده منقوضه اوماته ده په لا ماء ماء باردا سره ځکه چې په دې کې باردا دا دی نعت اوصفت دي اول هم دي اومفرد هم دي اودې سره متصل هم دي حالانکه دامعرب مبني نه ده

**جواب** : په متن کې دمبني نه مراد مبني علی الفتح بالاصاله ده اوپه ذکر شوي مثال کې اګرچې باردا لره دثاني صفت جوړ کړي شي نو ماء ثاني مبني علی الفتح بالاصاله نه ده بلکه بالتبع ده ځکه چې دا ماء داول تابع دي ځکه چې ددې صفت باردا معرب دي مبني نه دي . که باردا داول م

نعت او صفت وي نو بیا به مینځ کې د ماء فاصله ده نو یلیه والا شرط معدوم کیږي نو بارداً به هم معرب وي

**لان الاصل:** په دې عبارت سره شارح د معرب لوستلو وجه بیانوي د دې معرب لوستل ځکه جائز دي چې په توابعو کې اصل دا دې چې د خپل متبوعاتو په اعراب کې تابع وي په بناء کې نه وي د دې وجې نه دې لره معرب لوستل هم جائز دي .

**حملاً:** په دې عبارت سره شارح د معرب کیدو په صورت د مرفوع لوستلو د جواز وجه بیانوي چې معرب به ځکه وي چې دې لره په محلِ بعید باندې محمول کیږي

**حملاً علی اللفظ:** په دې عبارت سره شارح د معرب په صورت کې د منصوب لوستلو د جواز وجه بیانوي چې په لفظ باندې یا محلِ قریب باندې د محمول کولو د وجې نه منصوب لوستل جائز دي

**نحو لا رجل ظریف:** په دې عبارت سره شارح بیان د مثال کوي چې دا مثال مطابقي دي په دې کې ظریف لانفي جنس اسم د مبني صفت اول دي او مفرد دي او د دې سره متصل دي لهذا دې لره مبني برفتحه هم لوستلې شي او معرب هم لوستلې شي بیا د معرب نه وروستو مرفوع هم لوستلې شي او منصوب هم لوستلې شي .

**والا ای وان لم یکن النعت:** په دې عبارت سره شارح د متن وضاحت کوي که نعت د ذکر شوو اوصافو سره متصف نه وي نو دې لره معرب کیدل یقیني دي او د معرب کیدو په صورت کې دې لره په محلِ بعید باندې محمول کول او مرفوع هم لوستلې شي او په محل قریب یا لفظ باندې محمول کول او منصوب لوستل هم جائز دي او د دې مثالونه مخکې تیر شوي دي ، نو بیا یې دوباره نه ذکر کوو.

## د لای نفي جنس د معطوف اعراب :

| وَ الْعَطْفُ عَلَى اِسْمِ لاَ الْمَبْنِيِّ إِذَا كَانَ الْمَعْطُوْفُ نَكِرَةً بِلاَ تَكْرِيْرِ لاَ فِي الْمَعْطُوْفِ فَإِنَّهُ إِذَا كَانَ الْمَعْطُوْفُ |
|---|
| او عطف په اسم د لا مبني باندې چې کله وي معطوف نکره بې د تکرار نه، نه په معطوف کې ځکه چې کله معطوف |
| مَعْرِفَةً وَجَبَ رَفْعُهُ نَحْوُ لاَ غُلاَمَ لَکَ وَ الْفَرَسُ وَ إِذَا كَانَ لاَ مُكَرَّراً فِي الْمَعْطُوْفِ فَحُكْمُهُ مَا |
| معرفه وي نو واجب ده رفع د دې لکه لاغلام لک والفرس او چې کله لا مکرر وي په معطوف کې نو حکم د دې هغه دي |
| عُلِمَ فِي قَوْلِهِ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ فِيْمَا سَبَقَ بِأَنْ يُحْمَلَ عَلَى اللَّفْظِ أَيْ لَفْظِ اِسْمِ |
| چې معلوم شوي په دې قول د مصنف لاحولَ ولاقوةَ کې مخکې چې حمل یې کړي به لفظ باندې یعني په لفظ د اسم |

لاَ وَ يُجْعَلَ مَنْصُوْباً وَ بِأَنْ يُحْمَلَ عَلَى الْمَحَلِّ وَ يُجْعَلَ مَرْفُوْعاً جَائِزٌ وَلاَ يَجُوْزُ

دلااوګرځولي شي منصوب اوياداچې حمل کړې شي په محل باندې اوګرځول شي مرفوع جائزدي اونه دي جائز

فِيْهِ الْبِنَاءُ لِمَكَانِ الْفَصْلِ بِالْعَاطِفِ وَ لَمْ يُجْعَلْ فِيْ حُكْمِ الْمُتَّصِلِ لِبَقَنَةِ الْفَصْلِ بِلاَ الْمُؤَكَّدَةِ

په دې کې بناء دوجهې دفصل بالعاطف نه اووې نه ګرځول په حکم دمتصل کې دوجهې دګمان دفصل نه په لامؤکده

إِذِ الْمَعْطُوْفُ عَلَى النَّفْيِ تُزَادُ فِيْهِ لاَ كَثِيْراً نَحْوُ لاَحَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ مِثْلُ لاَ أَبَ وَ إِبْناً وَ إِبْنٌ فِيْ قَوْلِ الشَّاعِرِ:

سره ځکه چې معطوف په نفي کې زيات وي په دې کې لاډيره لکه لاحول ولاقوة لکه لااب وابنا وابن په قول دشاعر کې:

| وَلاَ أَبَ وَ إِبْناً مِثْلُ مَرْوَانَ وَ إِبْنِهِ | إِذْ هُوَ بِالْمَجْدِ ارْتَدٰى وَ تَأَزَّرَا |
|---|---|
| اونشته يوپلاراوزوي په شان دمروان اوزوي دده | په هغه وخت چې کله هغه دبزرګۍ څادراغوستي وي |

وَ سَائِرُ التَّوَابِعِ لاَ نَصَّ عَنْهُمْ فِيْهَا لٰكِنْ يَنْبَغِيْ أَنْ يَكُوْنَ حُكْمُهَا حُكْمَ تَوَابِعِ

اوټول تابع نشته نص دنحويانودطرف نه په دې کې ليکن مناسب دي چې وي حکم ددې په شان دحکم دتوابعو

الْمُنَادٰى كَذَا ذَكَرَهُ الْأَنْدُلُسِيُّ.

دمنادی همدارنګې ذکرکړي دي اندلسي.

**خلاصه دمتن:** دلای نفي جنس اسم مبني په معطوف کې دوه (۲) وجهې جائز دي:

(۱) دې لره په محل باندې حمل کول اومرفوع لوستل هم جائز دي، (۲) او په لفظ باندې حمل کول او منصوب لوستل هم جائز دي، دا دوه وجهې هله جائز دي چې کله په معطوف کې دوه شرطونه وموندل شي: (۱) معطوف نکره وي معرفه نه وي. (۲) د لا تکرار نه وي ځکه چې که معطوف معرفه وي نو په دې باندې رفع واجب ده مثال لا غلام والفرسُ اودويم شرط يې ځکه لږولي دي چې که د لا تکرار وي نو بيا ددې حکم دانه وي بلکې ددې حکم به د لاحول ولا قوة الا بالله والا وي په دې کې به پنځه (۵) وجهې جائز وي کله چې مذکوره دوه (۲) شرطونه وموندل شي نو دوه (۲) وجهې جائز دي ليکن مبني لوستل جائز نه دي ځکه چې دواو عاطفه په ذريعه معطوف اومعطوف عليه په مينځ کې فاصل موندلې کيږي اوبناء دپاره اتصال ضروري دي او دې لره دمتصل په حکم هم نه شي کولې ځکه چې داپه داسې ځاې کې واقع دي چيرته چې د لا په ذريعې سره د فصل ګمان کيږي ځکه چې معطوف على المنفي کې عام طور باندې لا زائده وي مثال لکه لاحول ولا قوة الا بالله.

**اغراض دجامي:** مثل لااب وابنا وابن: په دې عبارت سره شارح مطابقي مثال بيانوي چې

په دې کې اب دلا نفي جنس اسم دي او دامبني دي او ابنا دا په اب باندې معطوف دي او دانکره ده او د لا تکرار هم نشته دي لهذا په دې کې دوه (۲) وجهې جائز دي : (۱) دې لره داب په لفظ باندې حمل کول منصوب هم لوستلي شي . (۲) او په محل باندې حمل کول مرفوع هم لوستلي شي .

**فائده** : داد شعر يوه حصه ده اوپوره شعر داسې دي :

ولا اب وابنا مثل مروان وابنه      اذ هو بالمجد ارتدی وتأزرا

او نشته دي يو پلار او نه يو زوي په شان دمروان او دده دزوي په شان ، ځکه چې هغه دبزرګۍ څادر او قميص اغوستي دي .

دشاعر مقصد په دې شعر کې دمروان او دده دزوي تعريف کول دي چې يو زوي دمروان او دده د زوي په شان نه دي ځکه چې هغه دبزرګي څادر او قميص اغوستي دي .

وسائر : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ددې څه وجه ده چې مصنف رحمه الله دتوابعو نه نعت هم ذکر کړي او معطوف يې هم ذکر کړو او باقي نور توابع يې ذکر نه کړل ؟ .

**جواب** : ځکه چې دباقي توابعو په باره کې د نحويانو نه څه تفريع نشته دي ددې وجې نه مصنف رحمه الله باقي لره ذکر نه کړه ليکن مناسب دادې چې ددې حکم دمنادی توابعو دحکم په شان وي .

## د يو سوال مقدر جواب :

| |
|---|
| وَ مِثْلُ لاَ أَبَاً لَهُ وَلاَ غُلاَمَيْ لَهُ أَيْ كُلُّ تَرْكِيْبٍ يَكُوْنُ فِيْهِ بَعْدَ اسْمِ لاَ الَّتِيْ لِنَفْيِ الْجِنْسِ لاَمُ |
| اولکه لاابا له ولاغلامي له يعنې هرهغه ترکيب چې وي په هغې کې پس داسم دلا هغه چې وي دپاره دنفي جنس لام د |
| الإِضَافَةِ وَأُجْرِيَ عَلَى ذٰلِكَ الإِسْمِ أَحْكَامُ الإِضَافَةِ مِنْ إِثْبَاتِ الأَلِفِ فِيْ نَحْوِ أَبٍ وَحَذْفِ النُّوْنِ مِنْ نَحْوِ لاَ غُلاَمَيْنِ جَائِزٌ |
| اضافت او جاري يې کړې په دې اسم باندې احکام داضافت داثبات دالف نه په اب کې او حذف دنون په لاغلامين کې جائز |
| يَعْنِيْ أَنَّ الأَصْلَ فِيْ مِثْلِ هٰذَيْنِ التَّرْكِيْبَيْنِ أَنْ يُقَالَ لاَ أَبَ لَهُ وَلاَ غُلاَمَيْنِ لَهُ فَيَكُوْنُ اسْمُ لاَ فِيْهِمَا |
| دي يعنې اصل په شان ددې دواړو ترکيبونو داده چې وويل شي لااب له ولاغلامين له نو وي به اسم دلا په دې دواړو کې |
| مَبْنِيّاً عَلَى مَا يُنْصَبُ بِهِ وَ الْجَارُّ مَعَ الْمَجْرُوْرِ خَبَراً لَهَا وَ قَدْ جَاءَ عَلَى قِلَّةٍ |
| مبني په ماينصب به باندې او جار سره دخپل مجرور نه به خبر وي دلای نفي جنس او په تحقيق سره راغلي په وجه دقلت |

مِثْلُ لاَ أَباً لَهُ وَلاَ غُلاَمَيْ لَهُ بِزِيَادَةِ الْاَلِفِ فِيْ مِثْلِ أَبٍ وَاِسْقَاطِ النُّوْنِ فِيْ مِثْلِ غُلاَمَيْنِ كَمَا فِيْ حَالِ

باندې لکه لا اباله ولاغلامي له په زيادت د الف سره په اب مثال کې او د ساقطولو د نون په شان د غلامين کې لکه په حال د

الْاِضَافَةِ تَشْبِيْهاً لَهُ أَيْ لِاِسْمِ لاَ فِيْ هٰذَيْنِ التَّرْكِيْبَيْنِ مَعَ أَنَّهُ لَيْسَ بِمُضَافٍ

اضافت کې دوجې د تشبيه نه ددې سره يعني د اسم د لا سره په دې دواړو ترکيبونو کې سره ددې نه چې نه دې دا مضاف

بِالْمُضَافِ وَ اِجْرَاءً لِأَحْكَامِ الْمُضَافِ عَلَيْهِ بِاِثْبَاتِ الْاَلِفِ وَ حَذْفِ النُّوْنِ فَيَكُوْنُ

په مضاف سره او دوجهې د جاري کيدو د احکامو د مضاف عليه نه په اثبات د الف سره او په حذف د نون سره نو وي به

مُعْرَباً وَ ذٰلِكَ التَّشْبِيْهُ اِنَّمَا هُوَ لِمُشَارَكَتِهِ أَيْ لِمُشَارَكَةِ اِسْمِ لاَ حَيْنُ يُضَافُ بِاِظْهَارِ اللاَّمِ

معرب او دا تشبيه داده دوجهې د مشارکت ددې نه يعني د مشارکت د اسم د لا نه چې کله مضاف شي په اظهار د لا

بَيْنَهُ وَ بَيْنَ مَا يُضَافُ اِلَيْهِ لَهُ أَيْ لِلْمُضَافِ فِيْ أَصْلِ مَعْنَاهُ أَيْ مَعْنَى

سره په مينځ ددې او په مينځ د مضاف اليه کې ددې دپاره يعني د مضاف دپاره په اصل معنی کې يعني په معنی

الْمُضَافِ مِنْ حَيْثُ هُوَ مُضَافٌ يَعْنِيْ الْاِضَافَةَ وَ هُوَ الْاِخْتِصَاصُ أَوِ الْمَعْنٰى أَنَّ

د مضاف کې ددې حيثيت نه چې هغه مضاف وي يعني د حيثيت د اضافت نه او هغه اختصاص دې او يا معنی دا د

مِثْلَ لاَ أَباً لَهُ وَلاَ غُلاَمَيْ لَهُ جَائِزٌ تَشْبِيْهاً لَهُ أَيْ لِمِثْلِ هٰذَيْنِ التَّرْكِيْبَيْنِ حَيْثُ

چې لا اباله ولاغلامي له جائز دي دوجهې د تشبيه نه ددې سره يعني د مثل ددې دواړو ترکيبونو په داسې شان سره چې

لاَ اِضَافَةَ فِيْهِ بِالْمُضَافِ أَيْ بِتَرْكِيْبٍ يَشْتَمِلُ عَلَى الْاِضَافَةِ لِمُشَارَكَتِهِ

نه وي اضافت په دې کې د مضاف سره يعني په داسې ترکيب سره چې مشتمل وي د اضافت سره د وجې د مشارکت

أَيْ مُشَارَكَةِ هٰذَيْنِ التَّرْكِيْبَيْنِ لَهُ أَيْ لِمَا يَشْتَمِلُ عَلَى الْاِضَافَةِ

ددې نه يعني د مشارکت ددې دواړو ترکيبونو نه ددې سره يعني د هغه څه سره چې مشتمل وي په اضافت باندې

فِيْ أَصْلِ مَعْنَاهُ أَيْ مَعْنٰى مَا يَشْتَمِلُ عَلَى الْاِضَافَةِ وَ هُوَ الْاِخْتِصَاصُ اِلاَّ أَنَّ

په اصل معنی ددې کې يعني په هغه معنی چې مشتمل وي په اضافت باندې او هغه اختصاص دي مګر دومره خبره د

بَيْنَ الْاِخْتِصَاصَيْنِ تَفَاوُتاً فَاِنَّ الْاِخْتِصَاصَ الْمَفْهُوْمَ مِنَ التَّرْكِيْبِ الْاِضَافِيْ أَتَمُّ مِمَّا

چې په مينځ ددې دواړو اختصاصونو کې فرق دي ځکه اختصاص چې فهميږي د ترکيب اضافي نه دا اتم دي د هغه څه

يُفْهَمُ مِنْ غَيْرِهٖ.

نه چې فهميږي د ترکيب غير اضافي نه .

**خلاصه دمتن:** ددې ځاې نه صاحب د کافيې ديو سوال مقدر جواب بيانوي :

**سوال :** مخکې تا وويل چې کله دلاى نفي جنس اسم نکره مفرده وي نو دا به مبني بر فتحه وي

دا قاعده منقوضه اوماته ده په لا اباله ولا غلامي له مثال سره ځکه چې په اول مثال کې د لا اسم يعنې ابا نکره مفرده ده حالانکه دامبني برفتحه نه ده ځکه چې که دامبني برفتحه وي نو لا اب له به دالف نه په غير وي او لا غلامي له کې د لا اسم يعنې غلامين نکره مفرده ده حالانکه دامبني برفتحه نه ده ځکه چې که دامبني برفتحه وي نو لا غلامين له دنون اثبات سره به وي .

**جواب** : اګرچې په دې دواړو مثالونو کې د لا اسم حقيقةً مضاف نه دي ليکن دې لره دمضاف سره تشبيه ورکولو سره په دې باندې دمضاف والا احکامات جاري کيږي باقي دتشبيه ورکولو وجه داده چې دادمضاف سره دهغه په اصل معنی کې شريک دي کوم چې اختصاص دي .

**اغراض دجامي** : اي کل ترکيب: په دې عبارت سره شارح تعين دمراد کوي صاحب د کافيې چې لفظ مثل زياتولو سره دکومې ضابطې اوقاعدې طرف ته اشاره کړي ده ددې ځاې نه شارح هغه قاعده صراحتاً بيانوي دمثل نه مراد هرهغه ترکيب دي چې په هغې کې دلاى نفي جنس د اسم نه وروستو لام اضافت وي په دې باندې داضافت والا احکام جاري شوي وي يعنې الف لره ساقط کول او نون حذف کول مثال لا اباله ولا غلامي له .

يعني ان الاصل: په دې عبارت سره شارح داعتراض وضاحت کوي چې په دې دواړو ترکيبونو کې اصل داوو چې لا اب له او لا غلامين له ويلي وي اوپه دې کې دلاى نفي جنس اسم په علامت نصب باندې مبني وي اوجارمجرور ددې خبر وي ليکن په دې کې قلت سره لا اباله کې الف زياتولې شي اوپه غلامين کې نون دتثنيې ساقط کولې شي ، او لا غلامي له وويل شي لکه ځنګه چې په اضافت کې ويلې کيږي .

واجراء: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : کله چې په دې مثالونو کې د لا اسم لره دمضاف سره تشبيه ورکړې شوه نو دې لره معرب منصوب لوستل واجب کيدل په کار وو نه چې جائز ځکه چې کله د لا اسم نکره شبه مضاف دلا سره متصل وي نو دې لره معرب منصوب لوستل به واجب وي

**جواب** : دلته دتشبيه نه مراد حقيقةً تشبه نه ده بلکه دمشابهت نه مراد د لا په اسم باندې د مضاف احکام جاري کولو کې مشابهت دي

وذلک التشبيه لمشارکته: په دې عبارت سره شارح دتشبيه دوجې بيان يعنې په دې مثالونو کې

د لا اسم لره د مضاف سره د دې وجې نه تشبيه ورکړې شوه چې دا د مضاف سره د هغه اصلي معنى کې شريک دي او هغه د اختصاص والا معنى ده .

**او المعنى** : په دې عبارت سره شارح د تشبيهاً له دويمه معنى بيانوي اګرچې د مآل په اعتبار سره يو دي ليکن د لفظونو په اعتبار سره فرق دي هغه دا دې چې د اول معنى مطابق تشبيهاً له او لمشارکته ضمير مرجع اسم جوړ شو او د له ضمير مرجع مضاف وه ليکن د دې معنى په اعتبار سره تشبيهاً له او لمشارکته د دې دواړو ضميرنو مرجع مثلُ دي او د له ضمير مرجع هغه ترکيب دي کوم چې په اضافت باندې مشتمل وي معنى به داوي لا اباله او لا غلامي له مثل جائز دي په داسې ترکيبونو کې چې په هغې کې اضافت نه وي د هغه ترکيب سره تشبيه ورکول کوم چې اضافت باندې مشتمل وي ځکه چې داسې ترکيبونه د هغه ترکيب سره کوم چې په اضافت باندې مشتمل وي د هغه سره په اصل معنى کې مشارک دي او هغه اصل معنى اختصاص ده.

**الا ان** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : الا اباله او لاغلامي له دا ترکيب خبري دي او لا اباه او لاغلاميه دا ترکيب اضافي دي او ترکيب خبري لره ترکيب اضافي سره تشبيه ورکول صحيح نه دي ځکه چې ترکيب خبري د ترکيب اضافي نه اعلى دي ځکه چې ترکيب خبري مخاطب ته فائده تامه ورکوي او ترکيب اضافي مخاطب ته فائده تامه نه ورکوي نو اباله او لاغلامي له لره د لا اباه او لاغلاميه لره تشبيه څنګه صحيح شو ځکه چې مشبه به د پاره قوي کيدل ضروري دي .

**جواب** : دا تشبيه فقط په معنى اختصاص کې ده او هغه اختصاص کوم چې د ترکيب اضافي نه مفهوم کيږي هغه اعلى او اکمل وي د هغه اختصاص نه کوم چې د ترکيب خبري نه معلوميږي لهذا مشبه به قوي دي د مشبه نه .

## په ماقبل باندې د تفريع ذکر :

| وَ مِنْ ثَمَّ أَيْ لِاَجْلِ أَنَّ جَوَازَ مِثْلِ هٰذَيْنِ التَّرْكِيْبَيْنِ إِنَّمَا هُوَ بِتَشْبِيْهِهٖ غَيْرِ الْمُضَافِ بِالْمُضَافِ |
|---|
| او د دې وجې نه يعنې د دې وجې نه چې په مثل د دې دواړو ترکيبونو د اوي په تشبيه د غير مضاف د مضاف سره |
| فِيْ مَعْنَى الْاِخْتِصَاصِ لَمْ يَجُزْ تَرْكِيْبُ لَا أَبَا فِيْهَا أَيْ فِي الدَّارِ لِعَدَمِ الْاِخْتِصَاصِ فَإِنَّ الْاِخْتِصَاصَ |
| په معنى د اختصاص کې نه دي جائز ترکيب د لا ابا فيها يعنې په في الدار کې د وجې د عدم اختصاص نه ځکه اختصاص |

الْمَفْهُوْمَ مِنْ اِضَافَةِ الْاَبِ اِلٰى شَيْءٍ اِنَّمَا هُوَ بِاُبُوَّتِهٖ لَهٗ وَ هٰذَا الْاِخْتِصَاصُ غَيْرُ ثَابِتٍ لِلْاَبِ

معلوميږي د اضافت داب نه يو څيز ته نو هغه وي په اب کيدو کې د دې څيز د پاره او دا اختصاص غير ثابت دې داب د

بِالنِّسْبَةِ اِلَى الدَّارِ فَلَا يَصِحُّ اِضَافَتُهٗ اِلَى الدَّارِ فَكَيْفَ يُشَبَّهُ تَرْكِيْبُ لَا اَبَا فِيْهَا بِتَرْكِيْبِ

پاره په نسبت سره دار ته نو نه صحيح کيږي اضافت د دې دار ته نو څنګه به مشابه شي ترکيب د لا ابا فيها په داسې ترکيب

يُضَافُ فِيْهِ الْاَبُ اِلَى الدَّارِ لِمُشَارَكَتِهٖ لَهٗ فِيْ اَصْلِ مَعْنَاهُ وَ لَيْسَ اَيْ مِثْلُ هٰذَيْنِ

کې چې مضاف وي په دې کې اب دار ته د وجهې د مشارکت د دې نه په اصل معنى کې او نه ده يعني په مثل د دې دواړو

التَّرْكِيْبَيْنِ بِمُضَافٍ حَقِيْقَةً لِفَسَادِ الْمَعْنَى الْمُرَادِ الْمُفَادِ بِهِمَا عَلٰى تَقْدِيْرِ الْاِضَافَةِ

ترکيبونو مضاف په حقيقت کې د وجهې د فساد د معنى نه چې مراد او مفاد دي په دې سره په تقدير د اضافت باندې

وَ هُوَ نَفْيُ ثُبُوْتِ جِنْسِ الْاَبِ اَوِ الْغُلَامَيْنِ لِمَرْجِعِ الضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ بِالْاِسْتِقْلَالِ مِنْ غَيْرِ اِحْتِيَاجٍ اِلٰى تَقْدِيْرِ

او هغه نفي د ثبوت د جنس د اب ده او يا د غلامين د مرجع د ضمير مجرور په استقلال سره په غير د ضرورت نه تقدير د

خَبَرٍ وَ هٰذَا الْمَعْنَى يَفْسُدُ مِنْ وَجْهَيْنِ عَلٰى تَقْدِيْرِ الْاِضَافَةِ اَمَّا اَوَّلًا فَلِاَنَّ مَعْنٰى هٰذَا التَّرْكِيْبِ عَلٰى تَقْدِيْرِ

خبر ته او دا معنى فاسديږي د دوه وجهونه په تقدير د اضافت سره هرچې اولاده نو څکه چې معنى د دې ترکيب په تقدير

الْاِضَافَةِ لَا اَبَاهُ وَلَا غُلَامَيْهِ وَ هٰذَا لَا يَتِمُّ اِلَّا بِتَقْدِيْرِ خَبَرٍ اَيْ لَا اَبَاهُ مَوْجُوْدٌ وَ غُلَامَيْهِ مَوْجُوْدَانِ وَ اَمَّا

د اضافت باندې لا اباه ولا غلاميه ده او دا نه پوره کيږي مګر په تقدير د خبر سره يعني لا اباه موجود وغلاميه موجودان او هر

ثَانِيًا فَلِاَنَّ الْمُرَادَ نَفْيُ ثُبُوْتِ جِنْسِ الْاَبِ اَوِ الْغُلَامَيْنِ لَهٗ لَا نَفْيُ الْوُجُوْدِ عَنْ اَبِيْهِ الْمَعْلُوْمِ

چې دويم دې نو د دې وجهې نه چې مراد نفي د ثبوت د جنس داب دې او يا د غلامين د دې د پاره نه د نفي د وجود د اب معلوم

اَوْ غُلَامَيْهِ الْمَعْلُوْمَيْنِ خِلَافًا لِسِيْبَوَيْهِ وَ الْخَلِيْلِ وَ جُمْهُوْرِ النُّحَاةِ وَ اِنَّمَا خُصَّ

نه او يا د غلاميه معلومين نه، خلاف ثابت دي سيبويه او خليل او جمهور و نحاتو لره او په تحقيق سره خاص يې کړو

سِيْبَوَيْهِ بِهٰذَا الْخِلَافِ لِاَنَّهُ الْعُمْدَةُ فِيْمَا بَيْنَهُمْ اَوْ لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ بَيَانُ الْخِلَافِ لَا تَعْيِيْنُ

سيبويه په دې اختلاف سره څکه سيبويه قوي دي په مينځ د نحويانو کې او يا مقصود بيان د اختلاف دي نه تعيين

الْمُخَالِفِيْنَ فَمَذْهَبُ سِيْبَوَيْهِ وَ الْخَلِيْلِ وَ جُمْهُوْرِ النُّحَاةِ اَنَّ مِثْلَ هٰذَا التَّرْكِيْبِ مُضَافٌ حَقِيْقَةً

د مخالفينو نو مذهب د سيبويه او د خليل او د جمهور و نحاتو دا دې چې په مثل د دې ترکيب مضاف دي په حقيقت

بِاِعْتِبَارِ الْمَعْنَى وَ اِقْحَامُ اللَّامِ بَيْنَ الْمُضَافِ وَ الْمُضَافِ اِلَيْهِ تَاكِيْدٌ لِلَامِ الْمُقَدَّرَةِ وَ حَكَمَ

کې په اعتبار د معنى سره او زيادت د لام په مينځ د مضاف او د مضاف اليه کې د تاکيد دې د لام مقدره او حکم کړي

الْمُصَنِّفُ بِفَسَادِهٖ لِمَا عَرَفْتَ.

مصنف په فساد د دې سره د هغه وجهې نه چې تا وپيژنده.

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه په ماقبل باندې دتفريع بيان دي چې ددغې شان تركيبونو جواز ددې وجې نه دي چې په دې كې غير مضاف لره مضاف سره په معنى داختصاص كې تشبيه وركړې شوې ده ددې وجې نه لا ابا فيها تركيب جائز نه دي ځكه چې په دې كې اختصاص نه شي موندلې ځكه چې هغه اختصاص كوم چې اب دځه شي طرف ته داضافت نه پيژندل كيږي خو د هغه ځيز دپلار كيدو دوجې نه وي اودا اختصاص دار طرف ته داب نسبت كولو نه ، نه حاصليږي لهذا هغې دار طرف ته اضافت صحيح نه دي كله چې داب اضافت دار طرف ته صحيح نه دي نو بيا اب فيها لره دهغه تركيب سره تشبيه ځنګه وركيږي چې په كوم تركيب كې د اب اضافت په صريحي طور باندې دار طرف ته وي

**اغراض دجامي** : <u>**وليس بمضاف**</u>: صاحب دكافيې وايي چې ددې دواړو تركيبونو نه د لا اسم نه دمضاف سره تشبيه وركړې شوه هغه په حقيقت كې مضاف نه دي ځكه چې كه **حقيقتاً** مضاف وي نو معنى مقصودي به فاسد شي ځكه چې معنى مقصودي دضمير مجرور مرجع مثلاً دزيد دپاره **بالاستقلال** تقدير خبر طرف ته دحاجت نه په غير دضمير مجرور مرجع دپاره جنس اب يا جنس غلامين دثبوت نفي ده اواضافت په تقدير باندې دامعنى د دوه (۲) وجهونو فاسديږي :

(۱) **اوله وجه** داده چې چې داضافت په تقدير باندې به يې معنى داشي چې **لا اباه ولا غلاميه** او دا معنى دتقدير خبر نه په غير نه تمام كيږي بلكه خبر لره مقدر منل ضروري دي مثال **لا اباه موجود ولا غلاميه موجودان**

(۲) **دوهمه وجه** داده چې مقصود دضمير مجرور مرجع مثلاً زيد دپاره جنس اب ياجنس غلامين دنفي ثبوت كول دي دامقصود نه دي چې دزيد پلار چې معلوم الوجود دي هغه موجود نه دي اواضافت په تقدير باندې به يې معنى داشي چې دزيد پلار چې معلوم الوجود نه دي هغه موجود نه دي اودزيد دوه غلامان چې معلوم الوجود دي هغه موجود نه دي ددې وجې نه په دې تركيبونو كې د لا اسم لره دمضاف سره تشبيه وركړې شوې ده

**خلافاً لسيبويه** : په دې عبارت سره شارح بيان داختلاف كوي ... حنفيانو او جمهورو نحويانو مذهب دا دي چې ... دغه شان تركيبونو كې د لا اسم ... حقيقت ... سره د حقيقت

مضاف دي

**ومن ثم اى لاجل**: په دې عبارت سره شارح د ثَمَّ مشاراليه بيان كړي ده .

**اى في الدار**: په دې عبارت سره شارح د**فيها** دضمير مرجع بيان كړي ده چې د **فيها** ضمير **في الدار** ته راجع ده .

**لعدم الاختصاص**: په دې عبارت سره شارح وجه دعدمِ جواز بيان كړي ده .

**فان الاختصاص**: په دې عبارت سره شارح دمتن وضاحت كوي .

**وليس اى مثل هذين**: په دې عبارت سره شارح د**ليس** دضمير مرجع بيان كړي ده .

**وهذا المعنى يفسد**: په دې عبارت سره شارح دمتن وضاحت كوي چې كه حقيقةً اضافت وي نو معنى ددوه (۲) وجهو نه فاسديږي .

**وانما خص**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : كله چې دخليل اوسيبويه اودجمهورو نحويانو ټولو اختلاف وو نو مصنف رحمه الله فقط دسيبويه ذكر ولې وكړو ؟

**جواب** : نو شارح ددې سوال دوه جوابات وركړي دي :

**جواب (۱)** : سيبويه ددې ټولو امام اوددوي په مينځ كې قوي اوقابل داعتبار دي نو ددې وجې نه يې سيبويه خاص ذكر كړو .

**جواب (۲)** : مقصود داختلاف بيانول دي دمخالفينو تعيين مقصود نه دي اودامقصد د سيبويه دذكركولو سره حاصل شو .

**والحاصل**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي :

**سوال** : په دې مثالونو كې دمضاف اومضاف اليه په مينځ كې دلام موجوديدو نه معلوميږي چې د **لا** اسم حقيقتاً مضاف نه وي ځكه چې دمضاف اومضاف اليه په مينځ كې لام مذكور نه وي نو بيا دسيبويه وغيره ويل څنګه صحيح شو چې په دې كې د **لا** اسم حقيقتاً مضاف دي .

**جواب** : دمضاف اومضاف اليه په مينځ كې چې لام دي نو دا لام مقدره دتاكيد دپاره دي او اصل لام مقدر دي .

# د لای نفي جنس د اسم حذف کول :

وَ يُحْذَفُ اِسْمُ لَا حَذْفًا كَثِيْرًا فِيْ مِثْلِ لَا عَلَيْكَ اَيْ لَا بَأْسَ عَلَيْكَ وَلَا يُحْذَفُ اِلَّا مَعَ

اوحذف کولی شي اسم د لا په حذف کثیر سره په لا علیک مثال کې یعني لا بأس علیک او نه شي حذف کولی الا سره

وُجُوْدِ الْخَبَرِ لِئَلَّا يَكُوْنَ اِجْحَافًا وَ قَوْلِهِمْ لَا كَزَيْدٍ اِنْ جَعَلْنَا الْكَافَ اِسْمًا جَازَ

د موجود یدو د خبر د دې وجهې نه چې نه شي نقصان او د اقول د عربو لا کزید که چیرته مونږ وګرځوو کاف اسم نو جائز

اَنْ يَكُوْنَ كَزَيْدٍ اِسْمًا وَالْخَبَرُ مَحْذُوْفًا اَيْ لَا مِثْلَهُ مَوْجُوْدٌ وَجَازَ اَنْ يَكُوْنَ خَبَرًا اَيْ لَا اَحَدَ مِثْلُ زَيْدٍ وَ

دي چې وي کزید اسم او خبر یې محذوف یعنی لا مثله موجود او جائز دي چې وي خبر یعني لا احد مثل زید او که

اِنْ جَعَلْنَاهُ حَرْفًا فَالْاِسْمُ مَحْذُوْفٌ اَيْ لَا اَحَدَ كَزَيْدٍ.

چیرته مونږ وګرځوو کاف حرف نو اسم به محذوف وي یعني لا احد کزید.

**خلاصه د متن** : صاحب د کافیې وایي چې په لا علیک مثال کې د لای نفي جنس اسم لره اکثر حذف کولی شي .

**اغراض د جامي** : مثل : په دې عبارت سره شارح بیان د ضابطې او قاعدې کوي د مثل نه مراد هر هغه ترکیب دي چې په هغې کې د لا اسم په حذف کولو باندې څه قرینه موجود وي مثال لا علیک په دې کې د لا اسم محذوف دي چې بأس دي په اصل کې لا بأس علیک وو د دې په حذف باندې قرینه داده چې لا حرف دي او علی هم حرف دي حالانکه حرف په حرف باندې نه داخلیږي نو معلومه شوه چې د لا اسم محذوف دي .

ولا یحذف الا : په دې عبارت سره شارح د لا اسم د حذف کولو شرائط بیانوي چې د لا اسم لره حذف کول هله جائز دي چې کله خبر موجود وي او د اشرط یې ځکه لږولی دي چې نقصان لازم نه شي ځکه چې کله خبر موجود نه وي او اسم لره هم حذف کړي شي نو د لا نه په غیر معمول کیدل لازم راځي .

وقولهم : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : ستا د اقول چې د لا اسم حذف کول هله جائز دي کله چې موجود وي د امنقوض او مات دي د عربو په دې قول سره چې کزید ځکه چې په دې کې اسم او خبر دواړه محذوف دي ځکه چې کزید جار مجرور دي

**جواب** : مونږ داخبره نه منو چې په دې قول کې اسم اوخبر دواړه محذوف دي بلکې په دې کې یو محذوف دي ځکه چې په کزید کې کاف د دوه (۲) حالونه خالي نه دي : (۱) یا خو کاف اسمیه دي په معنی د مثل سره (۲) اویاحرف دي که کاف اسمیه په معنی د مثل سره دي نو دا لا اسم جوړیږي اوخبر به یې محذوف وي معنی به یې دا وي چې لا مثل زید موجود اودا هم کیدې شي چې داخبر وي د لا اود لا اسم محذوف وي چې احدٌ دي نو عبارت به داسې شي چې لا احد مثل زید اوکه کاف حرف وي نوبیابه اسم محذوف وي او کزید به یې خبر جوړ شي مثال لا احد کزید .

## ﴿ خَبَرُ مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ بِلَيْسَ ﴾ :

## د ما و لا المشبهتین بلیس د خبر تعریف :

| خَبَرُ مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَيْنِ فِي النَّفْيِ وَ الدُّخُوْلِ عَلَى الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ بِلَيْسَ هُوَ الْمُسْنَدُ بَعْدَ دُخُوْلِهِمَا |
|---|
| خبرد ماولاچې مشابه وي په نفي کې اوپه دخول کې په جمله اسمیه باندې په لیس سره دامسند دي پس دداخلیدو |
| أَيْ دُخُوْلِ مَا وَلَا وَ هِيَ أَيْ خَبَرِيَّةُ خَبَرِ مَا وَلَا لَهُمَا وَ كَذَا اِسْمِيَّةُ اِسْمِهِمَا |
| ددې دواړو نه یعنې دخول د ما او لا نه اودا یعنې خبردا خبر دي د ما و لا ددې دواړو وپاره اوهمدا رنګې اسمیت د اسم ددې |
| لَهُمَا لُغَةٌ حِجَازِيَّةٌ وَ خَصَّ الْخَبَرِيَّةَ بِالذِّكْرِ لِاَنَّ اِعْمَالَهُمَا وَ جَعْلَ اِسْمِهِمَا |
| دواړو ددې دواړو دپاره لغت حجازي دي اوخاص یې کړو خبریت د ذکر سره ځکه عمل ددې دواړو او اسم ددې دواړو |
| وَ خَبَرِهِمَا اِسْماً وَ خَبَراً لَهُمَا اِنَّمَا يَظْهَرُ بِاِعْتِبَارِ الْخَبَرِ فَجَعْلُ الْخَبَرِ خَبَراً لَهُمَا |
| اوخبر ددې دواړو اسم اوخبر ددې دواړو دپاره داظاهریږي په اعتبار دخبر سره نووې ګرځول خبرخبر ددې دواړو |
| اِنَّمَا هُوَ فِيْ لُغَةِ اَهْلِ الْحِجَازِ وَ اَمَّا بَنُوْ تَمِيْمٍ فَحَيْثُ لَا يَذْهَبُوْنَ اِلَى اِعْمَالِهِمَا |
| دپاره اودادې په لغت داهل حجاز کې اوهرچې بنوتمیم دي نودوې ذهاب نه دې کړې عمل ور کولو طرف ته نودوې |
| لَا يَجْعَلُوْنَ الْخَبَرَ خَبَراً لَهُمَا وَلَا الْاِسْمَ اسْمًا لَهُمَا بَلْ هُمَا مُبْتَدَأٌ وَخَبَرُهُ عَلَى مَاكَانَا عَلَيْهِ قَبْلَ |
| نه ګرځوي خبر ددې دواړو دپاره اونه اسم ددې دواړو دپاره اسم بلکې مبتدا اوخبر په هغه څه باندې چې وو مخکې د |
| دُخُوْلِهِمَا عَلَيْهِمَا وَ لُغَةُ اَهْلِ الْحِجَازِ هِيَ الَّتِيْ جَاءَ عَلَيْهَا التَّنْزِيْلُ |
| دخول ددې دواړو نه په دې دواړو باندې اولغت داهل حجاز داهغه دي چې راغلي دي قرآن مجید په دې باندې |
| قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى مَا هٰذَا بَشَراً وَ مَا هُنَّ اُمَّهَاتِهِمْ . |
| الله تعالى فرمايلي دي مَا هٰذَا بَشَراً او وَمَا هُنَّ اُمَّهَاتِهِمْ |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې د دې ځاې نه آخري قسم د منصوباتو ذکر کوي د منصوباتو د قسمونو نه يو قسم د **ما** او **لا** خبر دي چې د **ليس** سره يې تشبيه ورکړې شوي ده د دې تعريف دادي چې د دې نه ديو داخليدو نه وروستو به دا مسند وي .

**اغراض دجامي** : في النفي : په دې عبارت سره شارح وجه د شبه بيانوي وجه د شبه معنی د نفي او جمله اسميه باندې داخليدل دي يعني چې لکه څنګه په **ليس** کې د نفي معنی ده په **ما** و**لا** کې هم د نفي معنی ده او لکه څنګه چې **ليس** په جمله اسميه باندې داخليږي همدارنګې **ما** و**لا** هم په جمله اسميه باندې داخليږي .

اي دخول ما ولا : په دې عبارت سره شارح د ضمير د مرجع بيان کوي .

اي خبرية : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د هِيَ ضمير مرجع خبر د **ما** و**لا** دي او دا مذکر دي او ضمير د مؤنث دي نو د راجع او مرجع په مينځ کې مطابقت نشته دي حالانکه د ضمير او د ضمير په مرجع کې مطابقت ضروري دي .

**جواب** : د هِيَ ضمير مرجع خبر د ما ولا نه دي بلکه د دې مرجع خبريت دي کوم چې د خبر نه معلوميږي معنی داده چې د **ما** و**لا** خبر د دې خبر کيدل او د دې اسم اسم کيدل دا لغت حجازيه دي .

وخص : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : لکه څنګه چې د ما ولا خبر د دې خبر کيدل دا د اهلِ حجازو لغت دي نو همدارنګې د ما ولا اسم د دې اسم کيدل هم د اهلِ حجازو لغت دي نو بيا مصنف رحمه الله خبر لره په خاص طور باندې ولې ذکر کړو ؟

**جواب** : مصنف رحمه الله خبريت لره په خاص طور باندې ځکه ذکر کړه چې **ما** و**لا** ته عمل ورکول او د دې اسم او د دې خبر لره د دې خبر جوړول دي دا د خبر د اعتبار سره ظاهريږي بهر حال خبر لره د دې خبر جوړول دا د اهلِ حجازو لغت دي ليکن **بنو تميم** **ما** او **لا** ته عمل نه ورکوي د دې وجې نه هغوي ما ولا اسم لره د دې اسم نه جوړوي او خبر لره د دې خبر نه جوړوي بلکه د هغوي په نزد دا مبتدا او خبر دي لکه څنګه چې دا د ما ولا د داخليدو نه مخکې مبتدا او خبر وو .

**ولغة** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : مصنف رحمه الله داهلِ حجازو لغت ولې اختيار کړو ؟

**جواب** : ځکه چې قرآن داهلِ حجازو دلغت تائيد کوي د دې وجې دايې اختيار کړو دالله تعالى قول دي : ما هذا بشرا ، او ما هن امهاتهم په دې کې ما عمل کوي ولې که ما عامل نه وي کړي نو بشراً او امهاتهم دا به مرفوع وي حالانکه دامرفوع نه دي بلکه منصوب دي .

## د ما او لا د عمل باطل کيدو صورتونه :

| وَ اِذَا زِيْدَتْ اِنْ مَعَ مَا نَحْوُ مَا اِنْ زَيْدٌ قَائِمٌ قِيْلَ اِنَّمَا خُصِّصَتْ مَا بِالذِّكْرِ لِاَنَّهَا لَا |
|---|
| اوکله چې زيات کړې شي ان سره د ما لکه ما ان زيد قائم چاويلي دي چې خاص يې کړو ما په ذکر سره ځکه چې دا نه |
| تُزَادُ مَعَ لَا فِيْ اِسْتِعْمَالِهِمْ وَهِيَ زَائِدَةٌ عِنْدَ الْبَصْرِيِّيْنَ نَافِيَةٌ مُؤَكِّدَةٌ عِنْدَ الْكُوْفِيِّيْنَ اَوِ انْتَقَضَ |
| زياتيږي د لا سره په استعمال د عربو کې او دا زائده ده په نزد د بصرينو او نافيه مؤکده ده د کوفيانو په نزد او يا ماتيږي |
| النَّفْيُ بِاِلَّا نَحْوُ مَا زَيْدٌ اِلَّا قَائِمٌ اَوْ تَقَدَّمَ الْخَبَرُ نَحْوُ مَا قَائِمٌ زَيْدٌ بَطَلَ الْعَمَلُ اَيْ عَمَلُ مَا اِذَا كَانَ مَعَ وَاحِدٍ |
| نفي په الا سره لکه ما زيد الا قائم يا مقدم وي خبر لکه ما قائم زيد نو باطليږي عمل يعني عمل د ما چې کله وي سره يو |
| مِنْ هٰذِهِ الْاُمُوْرِ الثَّلَاثَةِ اَمَّا اِذَا زِيْدَتْ اِنْ فَلِاَنَّ مَا عَامِلٌ ضَعِيْفٌ عَمِلَ |
| د دې امورو ثلاثو نه کله چې دې لره زائد کړې شي نو د دې وجهې نه باطليږي ځکه د ما عامل ضعيف دي عمل کوي |
| لِشِبْهِهٖ بِـ لَيْسَ فَلَمَّا فُصِلَ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ مَعْمُوْلِهَا لَمْ تَعْمَلْ وَ |
| دوجهې د مشابهت نه د ليس سره نو هرکله فصل واقع شو په مينځ د دې او په مينځ د معمول کې نو عمل نه کوي او |
| اَمَّا اِذَا انْتَقَضَ النَّفْيُ بِـ اِلَّا فَلِاَنَّ عَمَلَهَا لِمَعْنَى النَّفْيِ فَلَمَّا انْتَقَضَ |
| هرکله چې ماته شي نفي په الا نو د دې وجهې نه چې عمل د دې د پاره د معنى د نفي ده نو هرکله چې ماته شوه نفي |
| بَطَلَ الْعَمَلُ وَ اَمَّا اِذَا تَقَدَّمَ الْخَبَرُ فَلِتَغَيُّرِ التَّرْتِيْبِ مَعَ ضُعْفِهَا فِي الْعَمَلِ. |
| نو باطل شو عمل او هرکله چې مقدم شو خبر نو د وجهې د تغير د ترتيب نه سره د ضعف د دې نه په عمل کې. |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافيې وايي چې په درې (۳) صورتونو کې د ما و لا عمل باطليږي :

(۱) ما و لا سره ان زائده جمع شي مثال لکه ما ان زيد قائم .

(۲) کله چې نفي د الا د وجې نه ماته شي مثال لکه ما زيد الا قائم .

(۳) خبر په اسم باندې مقدم شي مثال لکه مازيد قائم .

**اغراض دجامي** : قيل انها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب

ور کول دي

**سوال**: لکه څنګه چې ان زائد کیدل د ماعمل باطلوي نو همدارنګې د لا عمل هم باطلوي نو مصنف رحمه الله ما ولې خاص طور باندې ذکر کړه ؟.

**جواب**: مصنف رحمه الله ما خاص طور باندې ځکه ذکر کړه چې د عربو په استعمال کې ان د لا سره نه زائد کیږي باقي دبصريانو په نزد ان زائد کيږي او دکوفيانو په نزد ان نافيه مؤکده وي.

**اما اذا زيدت**: په دې عبارت سره شارح بيان دعلت کوي او په ذکر شوي صورت کې د ماولا د عمل دباطل کيدو وجه بيانوي کله چې دې سره ان زائد وي نو ددې استعمال ددې دپاره باطليږي چې دا عمل ضعيف دي ځکه چې دا دليس سره دمشابهت دوجې نه عمل کوي کله چې ددې او ددې دمعمول په مينځ کې فاصله راشي نو دا عمل نه شي کولې ځکه چې دعامل ضعيف معمول په مفصول کې عمل نه شي کولې او کله چې دالا دوجې نه نفي ماته شي نو دا عمل ځکه نه شي کولې چې ددې معنی دنفي دوجې نه وي کله چې نفي ماته شي نو ددې عمل باطليږي او کله چې خبر په اسم باندې مقدم شي نو په دغه ددې عمل ځکه باطليږي چې ترتيب کې تغير لازم راځي حالانکه دا عمل ضعيف دي او ددې عمل دپاره ترتيب شرط دي کله چې ترتيب بدل شي نو دغه وخت دا عمل نه شي کولې لکه څنګه چې داد الا په مابعد کې عمل نه شي کولې نو په دې صورتونو کې په معطوف باندې رفع واجب ده دخبر په محل باندې د محمول کيدو دوجې نه ځکه چې دا په اصل کې مرفوع دي خبر دمبتدا دوجې نه .

## د ما او لا د معطوف اعراب :

| وَ إِذَا عُطِفَ عَلَيْهِ أَيْ عَلَى خَبَرِهِمَا بِمُوْجِبٍ بِكَسْرِ الْجِيْمِ أَيْ |
|---|
| او هر کله چې عطف کړې شي په دې باندې يعني په خبر ددې دواړو باندې په موجب باندې په کسرې دجيم يعني په |
| بِعَاطِفٍ يُفِيْدُ الْإِيْجَابَ بَعْدَ النَّفْيِ وَهُوَ بَلْ وَلٰكِنْ نَحْوُ مَا زَيْدٌ مُقِيْمًا بَلْ مُسَافِرٌ وَمَا عَمْرٌو قَائِمًا |
| داسې عاطف سره چې فائده کوي دايجاب پس دنفي نه او هغه بل اولکن دي لکه مازيد مقيما بل مسافر و ماعمرو قائما |
| لٰكِنْ قَاعِدٌ فَالرَّفْعُ أَيْ فَحُكْمُ الْمَعْطُوْفِ الرَّفْعُ لَا غَيْرُ بِكَوْنِهِمَا بِمَنْزِلَةِ إِلَّا فِي نَقْضِ النَّفْيِ. |
| لکن قاعد نو رفع ده يعني حکم دمعطوف رفع ده نه بل څه په کيدو ددې دواړو په منزله د الا په ماتيدو د نفي کې |

**خلاصه دمتن او شرحه**: مصنف رحمه الله دا مسئله بيانوي چې کله د ما ولا په خبر باندې

د داسې حرف په ذريعې سره عطف وکړي شي کوم چې د ايجاب فائده ورکوي نو معطوف باندې رفع واجب ده او حروف موجب دوه (۲) دي : (۱) بل . (۲) لکن ، مثال لکه **مازيد مقيما بل مسافر** ، او **ما عمرو قائماً لکن قاعد** د دې وجه داده چې د ما او لا عمل د نفي دوجې نه دي او د حروف ايجاب دوجې نه نفي ماتيږي لکه څنګه چې د الا دوجې نه نفي ماتيږي د دې وجې نه **ما** او **لا** حروف ايجاب **بل** او **لکن** مابعد کې عمل نه کوي لهذا په معطوف باندې رفع واجب ده د خبر په محل باندې محمول کولو سره .

## تمت المنصوبات بحمدالله وعونه

## ﴿اَلْمَجْرُوْرَات﴾ :
## د مجروراتو تعريف :

هُوَ مَا اشْتَمَلَ أَيْ اِسْمٌ نِ اشْتَمَلَ لِتَخْرُجَ الْحُرُوْفُ الْاَوَاخِرُ الَّتِيْ هِيَ مَحَالُّ الْاِعْرَابِ
دا هغه دي چې مشتمل وي يعنې هغه اسم دي چې مشتمل وي ددې دپاره چې خارج کړي هغه آخري حروف چې هغه

فَاِنَّهُ لَا يُطْلَقُ عَلَيْهَا الْمَرْفُوْعَاتُ وَ الْمَنْصُوْبَاتُ وَ الْمَجْرُوْرَاتُ اِصْطِلَاحًا لِاَنَّهَا اَقْسَامُ الْاِسْمِ
محل د اعراب وي ځکه اطلاق نه کيږي په دې باندې د مرفوعاتو منصوباتو او د مجروراتو اصطلاحاً ځکه چې دا

عَلٰى عَلَمِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ أَيْ عَلَامَةِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ مِنْ حَيْثُ هُوَ الْمُضَافُ اِلَيْهِ يَعْنِيْ اَلْجَرَّ
اقسام د اسم دي په علامت د مضاف اليه يعني د علامت د مضاف اليه د دې حيثيت نه چې دا مضاف اليه دي يعنې

سَوَاءٌ كَانَ بِالْكَسْرَةِ اَوِ الْفَتْحَةِ اَوِ الْيَاءِ لَفْظاً اَوْ تَقْدِيْراً وَ اِنَّمَا قُلْنَا مِنْ حَيْثُ هُوَ مُضَافٌ
جر برابره خبره ده که وي دا په کسرې سره او يا فتحې سره او يا ياء سره لفظاً او يا تقديراً او مونږ وويل من حيث هو مضاف

اِلَيْهِ لِاَنَّ الْجَرَّ لَيْسَ عَلَامَةً لِذَاتِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ بَلْ لِحَيْثِيَّةِ كَوْنِهٖ مُضَافاً اِلَيْهِ وَ الْمُضَافُ
اليه ځکه جر نه دي علامت د ذات د مضاف اليه د پاره بلکې د پاره د حيثيت د کيدو د دې نه مضاف اليه او مضاف اليه

اِلَيْهِ وَ اِنْ كَانَ مُخْتَصاً بِمَا عَرَّفَهٗ بِهٖ لٰكِنَّ الْمُشْتَمِلَ عَلٰى عَلَامَتِهٖ اَعَمُّ مِنْهُ وَ مِمَّا هُوَ مُشَبَّهٌ
اگر که مختص وي د هغه څه سره چې تعريف کړي دي مصنف لکن مشتمل په علامت د مضاف عام وي د دې نه او د

بِهٖ فَيَدْخُلُ فِيْ تَعْرِيْفِ الْمَجْرُوْرِ مِثْلُ بِحَسْبِكَ دِرْهَمٌ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ وَ كَذَا الْمُضَافُ اِلَيْهِ
هغه څه نه چې مشابه وي د دې سره نو داخليږي په تعريف د مجرور کې لکه بحسبک درهم وکفی بالله او همدارنګې

بِالْاِضَافَةِ اللَّفْظِيَّةِ وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ دَاخِلاً فِيْ تَعْرِيْفِهٖ.
مضاف اليه په اضافت لفظي سره اگر که داخل نه وي په تعريف د مضاف اليه کې .

**خلاصه د متن** : مصنف رحمه الله د منصوباتو نه د فارغيدو نه وروستو د مجروراتو تعريف او د مجروراتو اقسام ذکر کوي په ذکر شوي عبارت کې صاحب د کافيې د مجرور تعريف کوي چې مجرور هغه اسم دي چې د مضاف اليه په علامت باندې مشتمل وي بيا د مضاف اليه تعريف کوي چې مضاف اليه هر هغه اسم دي چې ددې طرف ته څه څيز په واسطې د حرف جر سره منسوب وي برابره خبره ده که دا لفظاً وي او يا تقديراً وي ليکن مراد مضاف اليه وي .

**اغراض د جامي** : اى اسم : په دې عبارت سره شارح د ما تفسير بيانوي چې ما نکره موصوفه ده چې ددې نه مراد اسم دي ځکه چې دا سم نه بحث کيږي .

لتخرج: په دې عبارت سره شارح د ما تفسير داسم سره د کيدو وجه بيانوي چې د ماتفسير يې د اسم سره ځکه وکړو چې د مجرور تعريف سره د حروفو اواخر خارج شي کوم چې د اعراب محل وي مثلاً په غلام زيد کې د زيد دال ځکه چې اصطلاحاً د حروفو په اواخرو باندې د مرفوعاتو، منصوباتو مجروراتو اطلاق نه کيږي ځکه چې مرفوعات ، منصوبات او مجرورات د اسم اقسام دي د حرف اقسام نه دي .

اصطلاحاً: شارح د دې قيد اضافه ځکه وکړه چې لغةً د حروفو په اواخرو باندې د مرفوعاتو ، منصوباتو او مجروراتو اطلاق کيږي ځکه چې په حقيقت کې دغه د اعراب محل دي البته د نحويانو په اصطلاح کې اطلاق نه کيږي .

اى علامة: په دې عبارت سره شارح د علم معنى متعين کړه چې عَلم په معنى د علامت دي او په معنى د غر او جنډه نه ده .

يعني الجر: په دې عبارت سره شارح د عَلم مضاف اليه د مصداق تعين وکړو چې د علَم مضاف اليه مصداق هغه جر دي .

سواء: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : د مجروراتو تعريف منقوض اومات دي په هغه احمد سره کوم چې په جاءني غلام احمد کې واقع دي ځکه چې دا مجرور دي حالانکه د مضاف اليه علامت په کسرې باندې مشتمل نه دي بلکه په دې باندې فتحه ده .

**جواب** : د مضاف اليه علامت جر دي او جر عام دي برابره خبره ده که په کسرې سره وي مثال مررتُ بابيک بيا په دې هر يو کې تعميم دي برابره خبره ده چې لفظاً وي اويا تقديراً وي مثال لکه مررتُ بحبلى اوپه ذکر شوي مثال کې په احمد باندې جر مشتمل دي ليکن د فتحې سره دي ځکه چې دا غير منصرف دي .

من حيث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : سائل سوال کوي چې تا د مجرور تعريف وکړو چې مشتمل وي د مضاف اليه په علامت باندې او د دې مثال دې ورکړو په غلام زيد سره په دې کې زيد مضاف اليه دي چې مجرور دي ليکن دغه زيد په ضرب زيد کې په علامت د مضاف اليه کې جر باندې مشتمل نه

دي بلکه مرفوع دي نو ستا تعريف منقوض شو په ضرب زيد سره .

**جواب** : نو شارح په من حيث سره سائل ته جواب ورکوي چې تعريف کې د قيد حيثيت ملحوظ دي مجرور هغه اسم دي چې په علامت د مضاف اليه باندې مشتمل وي په دې حيثيت سره چې دا مضاف اليه وي يعنې جر د مضاف اليه ذات دپاره علامت نه دي بلکه د دې مضاف اليه واقع کيدو حيثيت نه علامت دي ځکه چې ضرب زيد کې د زيد مضاف اليه والا حيثيت ختم شوي دي ځکه چې دا په علامت د جر باندې مشتمل نه دي .

**والمضاف اليه** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : دلته سائل سوال کوي چې مصنف رحمه الله د مجرور تعريف دا کړي دي چې **ما اشتمل على علم المضاف اليه** د دې نه وروستو د مضاف اليه تعريف يې وکړو چې **كل اسم نسب اليه شئ بواسطة حرف الجر لفظاً اوتقديراً مرادا** ، چې مضاف اليه هر هغه اسم دي چې د دې طرف ته څه څيز په واسطې د حرف جر سره منسوب وي برابره خبره ده که حرف جر لفظاً وي او يا تقديراً وي ليکن په معنى کې مراد وي نو اوس به د مجرور تعريف داسې شي چې مجرور هغه اسم دي چې داسم په داسې علامت باندې مشتمل وي چې د دې طرف ته څه څيز په واسطې د حرف جر سره منسوب وي برابره خبره ده که لفظاً وي او يا تقديراً وي ليکن په معنى کې مراد وي کله چې د مجرور تعريف داسې شي نو اوس به دا تعريف د بآء زائده سره مجرور وي مثلاً په **بحسبک درهم** کې په **حسبک** باندې صادق نه راځي ځکه چې د دې طرف ته يو څيز منسوب شوي دي ليکن په واسطې د حرف جر سره منسوب نه دي ځکه چې حرف جر زائده دي همدارنګې په **كفى بالله** کې په **بالله** باندې هم صادق نه راځي ځکه چې بآء زائده ده همدارنګې دا تعريف **مجرور بالاضافة اللفظية** مثلاً په **ضارب زيد** کې په **زيد** باندې هم صادق نه راځي ځکه چې د دې طرف ته يو څيز **ضارب** منسوب شوي دي ليکن په واسطې د حرف جر سره منسوب شوي نه دي ځکه چې په اضافت لفظيه کې حرف جر مقدر نه دي .

**جواب** : د څيز علامت د څيز سره مساوي کيدل ضروري نه دي بلکه کله د څيز علامت د څيز نه اعم وي دلته هم جر چې د مضاف اليه علامت دي د مضاف اليه نه اعم دي دا په مضاف اليه کې هم موندلې شي او د مضاف اليه مشابه يعنې **مجرور بالبآء الزائدة** او مجرور بالاضافة کې هم

موندلې شي لهذا اوس د مجرور تعريف مجرور بالباء الزائده او مجرور بالاضافة باندې صادق راځي

## د مضاف اليه تعريف :

| |
|---|
| وَ الْمُضَافُ إِلَيْهِ وَ هُوَ هٰهُنَا غَيْرُ مَا هُوَ الْمُصْطَلَحُ الْمَشْهُوْرُ بَيْنَهُمْ وَ ذَهَبَ |
| او مضاف اليه او دا دلته غير دي د هغه نه چې د نحويانو په اصطلاح كې مشهور دي په مينځ د دوي كې او ذهاب كړي |
| فِيْ ذٰلِكَ اِلٰى مَذْهَبِ سِيْبَوَيْهِ حَيْثُ اَطْلَقَ الْمُضَافَ إِلَيْهِ عَلَى الْمَنْسُوْبِ إِلَيْهِ |
| مصنف په دې كې مذهب د سيبويه ته په داسې شان چې اطلاق يې كړي په مضاف اليه باندې چې منسوب اليه وي |
| بِحَرْفِ الْجَرِّ لَفْظاً أَيْضاً كُلُّ اِسْمٍ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً لِيَشْمَلَ الْجُمَلَ الَّتِيْ يُضَافُ |
| په حرف جر سره لفظاً همدا رنگې هر هغه اسم دي حقيقة او يا حكماً د دې د پاره چې شامل شي هغه جملو ته چې مضاف |
| إِلَيْهَا نَحْوُ يَوْمَ يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ صِدْقُهُمْ فَإِنَّهَا فِيْ حُكْمِ الْمَصَادِرِ نُسِبَ إِلَيْهِ |
| اليه وي لكه يوم ينفع الصادقين صدقهم ځكه دا په حكم د مصادرو كې دي چې نسبت يې شوي وي دې طرف ته د يو |
| شَيْءٌ اِسْماً كَانَ نَحْوُ غُلَامُ زَيْدٍ اَوْ فِعْلاً مِثْلُ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ بِوَاسِطَةِ حَرْفٍ لَفْظاً اَوْ تَقْدِيْراً اَيْ مَلْفُوْظاً كَانَ ذٰلِكَ |
| څيز اسم وي لكه غلام زيد يا فعل وي لكه مررت بزيد په واسطې د حرف جر سره لفظاً او يا تقديراً يعني ملفوظ وي دا |
| الْحَرْفُ كَمَا فِيْ مِثْلِ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ اَوْ مُقَدَّراً حَالَ كَوْنِ ذٰلِكَ الْمُقَدَّرِ مُرَاداً مِنْ حَيْثُ الْعَمَلِ |
| حرف لكه په مررت بزيد مثال كې او يا مقدر وي په داسې حال كې چې دا مقدر وي مراد وي د حيثيت د عمل نه په باقي |
| بِإِبْقَاءِ اَثَرِهٖ وَهُوَ الْجَرُّ مِثْلُ غُلَامُ زَيْدٍ وَخَاتَمُ فِضَّةٍ وَضَرْبَ الْيَوْمِ بِخِلَافِ قُمْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِنَّهُ وَإِنْ نُسِبَ |
| والي دا ثر د دې كې او هغه جر دي لكه غلام زيد وخاتم فضة وضرب اليوم په خلاف د قمت يوم الجمعة ځكه كه څيرته نسبت |
| إِلَيْهِ الْقِيَامُ بِالْحَرْفِ الْمُقَدَّرِ وَ هُوَ فِيْ لٰكِنَّهُ غَيْرُ مُرَادٍ اِذْ لَوْ أُرِيْدَ |
| ـي دې طرف ته د قيام په حرف مقدر سره او هغه في دي لكن غير مراد دي ځكه كه څيرته حرف جر مراد وي نو |
| لَـجُـرَّ بِـهٖ. |
| ـجرور به وو په دې سره يوم. |

**خلاصه د متن** : د دې ځاې نه صاحب د كافيې د مضاف اليه تعريف كوي مضاف اليه هر هغه ـسم دي چې هغې طرف ته څه څيز په واسطې د حرف سره منسوب وي برابره خبره ده كه دا حرف جر لفظاً وي او يا تقديراً وي يعني دا حرف جر يا ملفوظ وي او يا مقدر وي ليكن مراد وي .

**اغراض د جامي** : وهو ههنا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي :

**سوال** : کله چې ديو څيز د ذکر کولو نه وروستو دوهم ځل ذکر کړي شي نو په دوهم ځل په ضمير سره ذکر کيږي په اسم ظاهر سره نه ذکر کيږي او د مضاف اليه ذکر خو مخکې تير شوي دي نو مصنف رحمه الله ته په کار وو چې دايې په ضمير سره ذکر کړي وي اوداسې يې ويلي وي چې وهو کل اسم الخ .

**جواب** : دا مضاف اليه د هغه مضاف اليه نه چې مخکې يې ذکر وشو چې دجمهورو علماو په مينځ کې مصطلح او مشهور دي عين هماغه نه دي بلکه ددې نه خاص دي کوم چې اول يعنې مخکې ذکر شو هغه اعم دي ځکه چې مخکې والامضاف اليه کې تعميم دي چې په دې کې حرف جر مقدر وي يانه وي اوپه دې مضاف اليه کې دجمهورو په نزد د حرف تقدير شرط دي ليکن دمصنف رحمه الله په نزد تقدير دحرف جر شرط نه دي ددې وجې نه مصنف رحمه الله مضاف اليه په اسم ظاهر سره ذکر کړو .

**وذهب في ذلک** : په دې عبارت سره شارح ديوې فائدې بيان دي چې مصنف رحمه الله د مضاف اليه په تعريف کې دجمهورو مخالفت کړي دي اودامام سيبويه رحمه الله د مذهب تقليد يې کړي دي دده په نزد دمضاف اليه تعريف دادې چې کل اسم نُسب إِلَيْهِ شيء بواسطة حرف الجر سواء کان ملفوظاً اومقدراً ، چې مضاف اليه هغه هر هغه اسم دي چې نسبت وشي دې ته ديوڅيز په واسطې دحرف جر سره برابره خبره ده چې دا ملفوظ وي اوکه مقدر وي .

**حقيقةً اوحکماً** : په دې عبارت سره شارح په اسم کې دتعميم بيان کوي چې مضاف اليه اسم وي دا عام دي که اسم حقيقي وي اوکه اسم حکمي وي .

**ليشمل الجمل** : په دې عبارت سره شارح دتعميم دوجې بيان کوي چې داتعميم يې ځکه وکړو چې دمضاف اليه تعريف هغه جملو ته هم شامل شي کوم چې مضاف اليه جوړيږي مثال لکه په يوم ينفع الصادقين صدقهم کې ينفع الصادقين جمله مضاف اليه ده اگر که دا اسم حقيقي نه دي بلکه اسم حکمي دي ځکه چې داد مصادرو په حکم کې دي .

**اسماکان** : په دې عبارت کې شارح تعميم طرف ته اشاره کوي چې په شيء کې تعميم دي برابره خبره ده که اسم وي لکه په غلام زيد کې غلام يا فعل وي لکه په مررتُ بزيد کې مررتُ .

**ملفوظاً** : په دې عبارت کې شارح ترکيب طرف ته اشاره کوي چې لفظاً اوتقديراً دا اسم مفعول په معنى کې خبر دي د کان محذوف دې لره يې داسم مفعول په معنى کې ځکه کړه چې ددې حمل

صحيح شي چې ددې تفصيل مخکې څو څو ځل تير شوي دي ، دلته يې دوباره نه ذکر کوو هلته يې وګورئ

**حال كون**: په دې عبارت کې هم شارح ترکيب طرف ته اشاره کوي چې **مراداً** حال دي **تقديراً** په معنى د **مقدراً** سره چې **دكان** محذوف خبر دي ځکه چې دا خبر دمفعول به په حکم کې دي پس دا مفعول به دحکمي نه حال شو .

**من حيث العمل**: په دې عبارت کې شارح دمراد وضاحت کوي چې د مراد نه مقصود **من حيث العمل** دي **من حيث الذات** نه دي .

**بابقاء اثره**: په دې عبارت سره شارح د**من حيث العمل** صورت بيانوي چې دمراد **من حيث العمل** صورت دادې چې دحرف جر مقدر اثر کوم چې جر دي دا باقي وي لکه **غلام زيد** په دې کې د **غلام** نسبت **زيد** طرف ته په واسطې دحرف لام دي چې مقدر دي ليکن مراد هغه دي ځکه چې ددې اثر جر دي هغه په لفظونو کې باقي دي او په **خاتم فضة** کې د**خاتم** نسبت **فضه** طرف ته په واسطې دحرف جرين دي کوم چې مقدر دي ليکن مراد دي ځکه چې ددې اثر جر دي اوداپه لفظونو کې باقي دي اوهمدارنګې په **ضرب اليوم** کې د**ضرب** نسبت **يوم** طرف ته په واسطې د حرف جر **في** دي کوم چې مقدر دي ليکن دا مراد دي ځکه چې دحرف اثر کوم چې جر دي هغه په لفظونو کې باقي دي .

**بخلاف**: په دې عبارت کې شارح د**مراداً** دقيد فائده بيانوي چې دا قيد احترازي دي په دې سره احتراز دي د هغه **يوم الجمعة** نه کوم چې په **قمتُ يوم الجمعة** مثال کې واقع دي اګرکه د قيام نسبت **يوم الجمعة** طرف ته په واسطې دحرف جر دي کوم چې مقدر دي ليکن دا مراد نه دي ځکه چې که دا مراد وي نو ددې اثر به جر موجود وي او **يومَ** به مفتوح نه وي بلکه مجرور به وي .

## د اضافت شرائط :

| فَالتَّقْدِيْرُ أَيْ تَقْدِيْرُ الْحَرْفِ شَرْطُهُ اَنْ يَّكُوْنَ الْمُضَافُ اِسْمًا اِذْ لَوْ كَانَ فِعْلًا لَا |
|---|
| نوتقديريعني تقديردحرف جرشرط ددې دادې چې وي مضاف اسم ځکه چې که چيرته مضاف فعل وي نونشته |
| بُدَّ مِنْ اَنْ يُّتَلَفَّظَ بِالْحَرْفِ نَحْوُ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ مُجَرَّدًا أَيْ مُنْسَلِخًا عَنْهُ تَنْوِيْنُهُ اَوْ مَا قَامَ |
| خلاصي دتلفظ نه په حرف جرسره لکه مررت بزيدمجرديعني منسلخ وي ددې نه تنوين ددې اوياهغه چې قائم وي په |

مَقَامَهُ مِنْ نُوْنَيِ التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ لِاَجْلِهَا أَيْ لِاَجْلِ الْاِضَافَةِ لِاَنَّ التَّنْوِيْنَ اَوِ النُّوْنَ دَلِيْلٌ عَلٰى تَمَامِ

خاې ددې دنون دتثنيې اودجمع ددې وجهې نه يعنې دوجهې داضافت نه خکه تنوين اويانون دادليل دي په پوره

مَا هِيَ فِيْهِ فَلَمَّا اَرَادُوْ اَنْ يَّمْزُجُوْ الْكَلِمَتَيْنِ مَزْجًا

والي دهغه څه چې هغه وي په دې کې نو هر کله چې اراده وکړه چې يوخاې کړي دوه کلمې په داسې يوخاې کولو

تَكْتَسِبُ بِهِ الْاُوْلٰى مِنَ الثَّانِيَةِ التَّعْرِيْفَ اَوِ التَّخْصِيْصَ اَوِ التَّخْفِيْفَ حَذَفُوْا مِنَ الْاُوْلٰى

سره چې کسب کړي په دې سره اوله کلمه ددويمې نه تعريف اويا تخصيص اويا تخفيف نوحذف کولې به شي داولې

عَلَامَةَ تَمَامِ الْكَلِمَةِ وَ تَمَّمُوْهَا بِالثَّانِيَةِ ثُمَّ الْمُتَبَادِرُ مِنْ هٰذَا التَّعْرِيْفِ نَظَرًا

کلمې نه علامت دتمام والي دکلمې اوپوره به کړي په دويمې کلمې سره بيا متبادر ددې تعريف نه په نظر کولو سره

اِلٰى كَلَامِ الْقَوْمِ حَيْثُ لَيْسُوْا قَائِلِيْنَ بِتَقْدِيْرِ حَرْفِ الْجَرِّ فِي الْاِضَافَةِ اللَّفْظِيَّةِ اَنَّهُ غَيْرُ شَامِلٍ

کلام دنحويانو ته په داسې شان چې دوي نه دي قائلين په تقدير دحرف جر سره په اضافت لفظي کې چې دا غير شامل

لِلْمُضَافِ اِلَيْهِ بِالْاِضَافَةِ اللَّفْظِيَّةِ لٰكِنِ الظَّاهِرُ مِنْ كَلَامِ الْمُصَنِّفِ فِي الْمَتْنِ وَ الصَّرِيْحُ فِيْ شَرْحِهِ

دي دمضاف اليه سره په اضافت لفظي کې لکن ظاهر د کلام دمصنف نه په متن کې اوتصريح په شرحه ددې کې

لَهُ اَنَّ التَّقْسِيْمَ اِلَى الْاِضَافَةِ الْمَعْنَوِيَّةِ وَ اللَّفْظِيَّةِ اِنَّمَا هُوَ لِلْاِضَافَةِ بِتَقْدِيْرِ حَرْفِ الْجَرِّ لٰكِنَّهُ لَمْ يُبَيِّنْ

داده چې تقسيم اضافت معنوي اولفظي ته دادي داضافت دپاره په تقدير دحرف جر سره لکن نه يې دي بيان کړي

تَقْدِيْرَ الْحَرْفِ فِيْهَا لَا فِي الْمَتْنِ وَلَا فِيْ شَرْحِهِ وَلَمْ يُنْقَلْ عَنْهُ شَيْءٌ فِيْهِ مِنْ سَائِرِ مُصَنَّفَاتِهِ

تقدير دحرف جر په دې کې نه په متن کې اونه شرحه کې اونه دي نقل دده نه يوشيز په دې کې دټولو تصنيفاتو دده نه

وَ قَدْ تَكَلَّفَ بَعْضُهُمْ فِيْ اِضَافَةِ الصِّفَةِ اِلٰى مَفْعُوْلِهَا مِثْلُ ضَارِبُ زَيْدٍ بِتَقْدِيْرِ اللَّامِ تَقْوِيَةً

اوتکلف کړي بعضو ددوي نه په اضافت دصفت کې مفعول ته لکه ضارب زيد په تقدير دلام سره په قوت ورکولو کې

لِلْعَمَلِ أَيْ ضَارِبٌ لِزَيْدٍ وَفِيْ اِضَافَتِهَا اِلٰى فَاعِلِهَا مِثْلُ الْحَسَنُ الْوَجْهِ بِتَقْدِيْرِ مِنَ الْبَيَانِيَّةِ فَاِنَّ ذِكْرَ الْوَجْهِ فِيْ

عمل ته يعنې ضارب لزيد اوپه اضافت ددې کې فاعل ته لکه الحسن الوجه په تقدير د مِن بيانيه سره خکه ذکر د وجه په

قَوْلِنَا جَاءَنِيْ زَيْدٌ الْحَسَنُ الْوَجْهِ بِمَنْزِلَةِ التَّمْيِيْزِ فَاِنَّ فِيْ اِسْنَادِ الْحَسَنِ اِلٰى زَيْدٍ اِبْهَامًا فَاِنَّهُ لَا

دې قول زمونږ جاءني زيد الحسن الوجه کې په منزلې دتميز خکه په اسناد دحسن کې زيد ته ابهام دي خکه چې نه

يُعْلَمُ اَنَّهُ اَيُّ شَيْءٍ مِنْهُ حَسَنٌ فَاِذَا ذُكِرَ الْوَجْهُ فَكَاَنَّهُ قَالَ مِنْ حَيْثُ الْوَجْهِ فَاِنْ

معلوميږي چې کوم څيز ددې نه حسن دي چې هر کله يې ذکر کړو وجه نو گوياچې وويل په اعتبار دمخ سره که چيرته

قُلْتَ هٰذَا فِي الْحَقِيْقَةِ تَخْصِيْصٌ فَلَا يَصِحُّ اَنَّ الْاِضَافَةَ اللَّفْظِيَّةَ لَا تُفِيْدُ اِلَّا تَخْفِيْفًا

ته ووايې چې دا په حقيقت کې تخصيص دي نو نه صحيح کيږي چې اضافت لفظي دا فائده نه ورکوي مگر دتخفيف

| |
|---|
| فِي اللَّفظِ قُلنَا كَانَ هٰذَا التَّخْصِيْصُ وَاقِعاً قَبْلَ الاِضَافَةِ فَلاَ يَكُوْنُ مِمَّا تُفِيْدُهُ الاِضَافَةُ |
| په لفظ کې مونږ وایو چې وو دا تخصیص واقع مخکې داضافت نه نو نه به وي دهغه څه نه چې فائده کوي داضافت |
| فَلَيْسَتْ فَائِدَةُ الاِضَافَةِ إِلاَّ التَّخْفِيْفَ فِي اللَّفْظِ. |
| نو نه ده فائده د اضافت مګر تخفیف په لفظ کې |

**خلاصه دمتن :** صاحب دکافیې په دې عبارت کې دخپل مذهب مطابق دهغه اضافت شرط ذکر کوي چیرته چې حرف جر مقدر وي وایي چې اضافت لفظیه په تقدیر دحرف جر سره ددې شرط دادې چې مضاف وي داسې اسم طرف ته چې داضافت دوجې نه تنوین یا دتنوین قائم مقام دي یعنې نون تثنیه اونون دجمع نه خالي کړي شوي وي اوکه مضاف الیه ددې نه خالي شوي نه وي نو هلته حرف جر مقدر کول صحیح نه دي .

**اغراض دجامي : ای تقدیر الحرف:** په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې په تقدیر باندې چې کوم الف لام دي دا دمضاف الیه په عوض کې دي چې الحرف دي په اصل کې تقدیر دعبارت داسې وو چې : **تقدیر الحرف** .

**اذلوکان:** په دې عبارت کې شارح داسماً دقید فائده بیانوي چې داقید احترازي دي په دې سره احتراز دي دفعل نه ځکه چې که مضاف فعل وي نو بیا حرف جر ملفوظ کیدل ضروري دي مثال لکه **مررت بزید** .

**منسلخا:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال :** مجرد داسم مفعول صیغه ده اوقرینه ددې نائب فاعل دي حالانکه دمجرد اسناد تنوین طرف ته صحیح نه دي ځکه چې دمجرد اسناد اسم طرف ته کیدې شي تنوین طرف ته نه شي کیدي ځکه چې اسم معروض دي تنوین عارض دي اوپه دې کې قاعده داده چې یو څیز مسند کیږي معروض طرف ته او عارض طرف ته نه مسند کیږي .

**جواب :** مجرد دتجرید نه ماخوذ دي اودلته دتجرید حقیقي معنی مراد نه ده بلکه مجازي معنی مراد ده چې انسلاخ یعنې زوال دي اوزوال دتنوین صفت دي داسم صفت نه دي .

**اوما قام مقامه:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال :** داضافت دوجې نه چې لکه څنګه دمضاف نه تنوین خالي کولې شي همدارنګې چې کوم شئ دتنوین قائم مقام وي ددې نه هم مضاف خالي کولې شي نو مصنف رحمه الله ولې

ذکر نه کړو ؟

**جواب** : تنوینه معطوف علیه دي او معطوف مع حرف عطف محذوف دي کوم چې **او ما قام مقامه** دي دا په اصل کې داسې وو چې **تنوینه او ما قام مقامه** .

لاجل الاضافة : په دې کې عبارت شارح په **لاجلها** کې د **ها** دضمير مرجع متعين کړي ده چې دضمير مرجع اضافت دي .

لان التنوین : په دې عبارت کې شارح د ذکر شوي شرط وجه بيانوي چې مضاف لره تنوين او ما يقوم مقام التنوين نه دخالي کيدو شرط يې ځکه ولږولو ځکه چې دادوه څيزونه چې کومه کلمه باندې داخل وي دهغې کلمې تاکيداو دليل وي نوداکلمه دخپل مابعد نه منقطع کيږي اواضافت داتصال تقاضا کوي اود اتصال او انفصال په مينځ کې منافات دي د دې وجې نه يې مضاف لره تنوين او دهغه څه چې قائم وي په ځاې دتنوين د دې نه دخالي کيدو شرط ولږولو چې دده دخپل مابعد مضاف اليه سره اتصال او ارتباط پيدا شي .

فلما ارادو : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : کله چې کلمه دتنوين او مايقوم مقام التنوين سره تام کيږي نو بيا تنوين اومايقوم مقام التنوين لره حذف کول شيء آخر ( مضاف اليه ) سره دې لره تام کيدو څه فائده ؟.

**جواب** : د اضافت مقصد مضاف تام کول نه دي بلکه داضافت فائده په مضاف کې تعريف ، تخصيص اوتخفيف دي .

ثم المتبادر : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : دمضاف اليه تعريف جامع نه دي په اضافت لفظيه باندې نه صادقيږي ځکه چې په دې کې حرف جر نه ملفوظ وي اونه مقدر وي .

**جواب** : په اضافت لفظيه کې حرف جر نه موجود کيدل دعامو نحويانو مذهب دي دمصنف رحمه الله په نزد په اضافت لفظيه کې هم حرف جر مقدر کيږي لکه څنګه چې دمصنف رحمه الله د عبارت نه ظاهريږي کوم چې په متن کې موجود دي اودمصنف رحمه الله په خپله شرح امالي کې هم داخبره صراحتاً موجود ده ځکه چې مصنف رحمه الله اضافت لفظيه اومعنويه ددواړو مقسم اضافت په تقدير دحرف جر لره جوړ کړي دي اومقسم په خپله اقسامو کې اعتبار کيږي ددې نه معلومه شوه چې اضافة لفظيه کې هم دهغوي په نزد حرف جر مقدر کيږي او

بیان مصنف رحمه الله داضافت لفظیه په بحث کې تقدیر حرف جر نه دي بیان کړي چې کوم حرف جر دي نه په متن کې او نه په شرح کې اونه په نورو کتابونو کې دهغه نه په دې باره کې څه منقول دي لکه څنګه چې اضافت معنویه کې تقدیر حرف جر بیان کړي دي.

**وقد تكلف بعضهم**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال**: کله چې مصنف رحمه الله تقدیر حرف جر بیان نه کړو چې کوم حرف جر به مقدر وي نو دا مجهول شو معلوم نه شو چې **لام** مقدر دي یا **من** وغیره

**جواب**: نو په **تكلف** سره شارح جواب ور کوي چې په اضافة لفظیه کې حرف جر لره مقدر کولو دپاره بعضې نحویانو داتکلف کړي دي چې کله صیغه صفت خپل مفعول طرف ته مضاف وي نو په دغه وخت کې به لام مقدر وي مثال **ضارب زيد** په اصل کې دا عبارت داسې وو چې **ضارب لزيد**

**تقوية للعمل**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال**: دبعضې نحویانو قول صحیح نه دي څکه چې صیغه دصفت ضارب خپل معمول طرف ته بې دواسطې نه متعدي کیږي نو لام مقدر منلو ته څه ضرورت دي؟

**جواب**: لام دتقدیر دپاره نه دي بلکه تقویت دعمل دپاره دي اوشبه فعل متعدي تقویت په حرف جر سره جائز دي دوجې دضعف دعمل نه البته په خپله فعل متعدي تقویت په حرف جر سره جائز نه دي څکه چې هغه قوي بنفسه وي اوکله چې صیغه دصفت فاعل طرف ته مضاف وي مثال لکه **الحسن الوجه** نو **من** بیانیه مقدر وي د**من** بیانیه دمقدر کیدو وجه داده چې **جاءني زيد الحسن الوجه** کې دالوجه ذکر په منزله دتمییز دي اوپه تمیز کې **من** بیانیه مذکور وي او **الوجه** په منزله دتمیز څکه ده چې دزید په حسن کې ابهام وو چې دهغه کوم څیز ښائسته دي کله چې **الوجه** ذکر شو نو ابهام لرې شو ګویا دا وویل چې **من حيث الوجه** چې زید ښائسته دي په اعتبار دمخ سره

**فان قلت**: شارح یو اعتراض نقل کوي اوپه **قلنا** سره ددې اعتراض جواب ور کوي

**اعتراض**: په **جاءني زيد الحسن الوجه** کې اضافت لفظیه دتخصیص فائده ور کوي څکه چې **الحسن** مبهم وو معلوم نه وو چې کوم څیز حسین دي کله چې **الوجه** ذکر کړو نو په دې کې

تخصيص پيدا شو يعني الحسن الوجه لا غيره لهذا دنحويانو دا وينا چې اضافت لفظيه فقط د تخفيف فائده ورکوي دا صحيح نه ده .

**جواب** : په قلنا سره شارح ددې اعتراض جواب ورکوي چې مونږه دا خبره نه منو چې الحسن الوجه کې د اضافت دوجې نه تخصيص حاصليږي ځکه چې په دې کې کوم تخصيص دې هغه د اضافت نه مخکې الحسن الوجه وو په دې کې تخصيص د فاعل د وجهې نه دې بيا چې کله ددې اضافت و شو نو دضمير دحذف په توسط تخفيف حاصل شو لهذا دا ويل صحيح شو چې اضافت لفظيه فقط دتخفيف فائده ورکوي .

## د اضافت اقسام :

| |
|---|
| وَ هِيَ أَيِ الْإِضَافَةِ بِتَقْدِيرِ حَرْفِ الْجَرِّ مَعْنَوِيَّةٌ أَيْ مَنْسُوبَةٌ إِلَى الْمَعْنٰى لِأَنَّهَا تُفِيدُ مَعْنًى |
| اودا يعني اضافت په تقديردحرف جرسره معنوي دي يعني منسوب دي معنى طرف ته ځکه دا فائده کوي معناً |
| فِي الْمُضَافِ تَعْرِيفاً أَوْ تَخْصِيصاً وَ لَفْظِيَّةٌ أَيْ مَنْسُوبَةٌ إِلَى اللَّفْظِ فَقَطْ دُوْنَ الْمَعْنٰى |
| په مضاف کې د تعريف او يا د تخصيص او لفظي يعني منسوب وي لفظ طرف ته فقط نه معنى طرف ته د |
| لِعَدَمِ سِرَايَتِهَا إِلَيْهِ فَالْمَعْنَوِيَّةُ عَلَامَتُهَا اَنْ يَّكُوْنَ الْمُضَافُ فِيْهَا غَيْرَ صِفَةٍ |
| وجهې د عدم سرايت ددې نه معنى طرف ته نومعنوي علامت ددې دادې چې وي مضاف په دې کې غير صفت |
| كَاسْمِ الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ وَ الصِّفَةِ الْمُشَبَّهَةِ مُضَافَةً إِلَى مَعْمُوْلِهَا فَاعِلِهَا أَوْ مَفْعُوْلِهَا قَبْلَ |
| لکه اسم فاعل او اسم مفعول اوصفت مشبه چې مضاف وي خپل معمول ته فاعل ددې اويامفعول ددې مخکې |
| الْإِضَافَةِ سَوَاءٌ لَمْ يَكُنْ صِفَةً كَغُلَامُ زَيْدٍ أَوْ كَانَ صِفَةً وَ لٰكِنْ غَيْرَ مُضَافَةٍ إِلٰى مَعْمُوْلِهَا |
| د اضافت نه برابره خبره ده نه چې وي صفت لکه غلام زيداوياوي صفت خولکن غير مضاف وي معمول طرف ته |
| بَلْ إِلٰى غَيْرِهٖ كَمُصَارِعِ مِصْرٍ وَ كَرِيْمِ الْبَلَدِ وَ احْتَرَزَ بِهٖ عَنْ نَحْوُ ضَارِبُ زَيْدٍ وَ حَسَنُ |
| بلکې غير معمول طرف ته لکه مصارع مصراو کريم البلداو احتراز يې وکړو په دې سره د ضارب زيد او د حسن |
| الْــوَجْــهِ . |
| الوجه مثال نه . |

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه صاحب دکافيې دخپل مذهب مطابقت اضافت په تقدير دحرف جر سره تقسيم کوي چې ددې دوه (۲) قسمونه دي (۱) معنويه (۲) لفظيه . داضافت معنويه تعريف دادې چې مضاف دا سې صيغه صفت نه وي چې خپل معمول طرف ته مضاف وي

**اغراض دجامي** : الاضافة: په دې عبارت سره شارح د هِيَ دضمير مرجع متعين کوي چې د ضمير مرجع اضافت په تقدير دحرف جر سره دي

منسوبة: په دې عبارت کې شارح دمعنويه وجه تسميه بيانوي په معنويه کې ياء دنسبت ده چې معنی يې ده **منسوبة الى المعنى**.

لانها تفيد: په دې عبارت سره شارح داضافت معنويه وجه دتسميه بيانوي معنويه ته معنوي ځکه وايي چې داپه مضاف کې تعريف ياد تخصيص فائده ورکوي.

اي منسوبة: په دې عبارت کې شارح داضافة لفظيه وجه دتسميه بيانوي چې په لفظيه کې هم ياء دنسبت ده معنی يې ده **منسوبة الى اللفظ**، لفظيه ته لفظيه ځکه وايي چې ددې فائده فقط په لفظ کې ظاهريږي معنی طرف ته سرايت نه کوي يعنې صرف په لفظ کې تخفيف پيدا کوي.

علامتها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي:

**سوال** : دمصنف رحمه الله قول **المعنوية** مبتدا دي او **ان يكون المضاف الخ** مصدر په تاويل دکون کې ددې خبر دي حالانکه خبر په مبتدا باندې حمل وي اودلته حمل صحيح نه دي ځکه چې اضافت معنويه دمضافٍ غير صفة نوم نه دي بلکه اضافت معنويه خو دنسبت په تقدير د حرف جرنوم دي.

**جواب** : **كون المضاف غير صفة** داد **المعنوية** خبر نه دي بلکه دا خبر دي دمبتدا محذوف چې **علامتها** دي مبتدا اوخبر جمله ده او خبر دي دمعنويه

فيها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال** : خبر چې کله جمله وي نو په دې کې عائد کيدل ضروري دي اودلته عائد نشته دي

**جواب** : دلته فيها عائد محذوف دي

كاسم الفاعل: په دې عبارت سره شارح دصيغه صفت مصداق بيانوي دصيغې صفت نه مراد اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه دي

فاعلاً: په دې عبارت کې دمعمول مصداق لره يې متعين کړي دي چې دمعمول مصداق فاعل اومفعول به دي

**قبل الاضافة**: په دې عبارت سره شارح دیوې فائدې بیان کوي چې دلته د معمول نه مراد اضافت نه مخکې معمول دی ځکه چې د اضافت نه وروستو خو هر مضاف خپل معمول طرف ته مضاف وي ځکه چې هر مضاف په خپل مضاف الیه کې عامل وي

**سواء**: په دې عبارت سره شارح په **غیر صفة مضافاً** کې تعمیم بیانوي چې **غیر صفة مضافة الخ** عام دی چې مضاف یا خو دسره نه صیغه دصفت نه وي مثال لکه غلام زید یا صیغه دصفت وي لیکن خپل معمول طرف ته مضاف نه وي مثال **مصارع مصر** په دې کې اګر که **مصارع** صیغه د صفت ده لیکن خپل معمول طرف ته مضاف نه ده ځکه چې **مصر** نه فاعل دی او نه مفعول به دی بلکه مفعول فیه دی او کریم البلد کې کریم اګرچې صیغه دصفت ده لیکن خپل معمول طرف نه مضاف نه ده ځکه چې البلد نه فاعل دی او نه مفعول به دی بلکه مفعول فیه دی

**واحترز به**: په دې عبارت سره شارح د **غیر صفة** قید فائده بیانوي چې دا قید احترازي دی په دې سره احتراز دی د ضارب زید او الحسن الوجه مثال نه ځکه چې په دې دواړو ترکیبونو کې مضاف صیغه دصفت ده کومه چې خپل معمول طرف ته مضاف ده ځکه چې په ضارب زید کې زید د اضافت نه مخکې د ضارب مفعول دی او الحسن الوجه کې الوجه د اضافت نه مخکې د حسن فاعل دی

## د اضافت معنوي اقسام:

وَ هِيَ الإِضَافَةُ الْمَعْنَوِيَّةُ بِحُكْمِ الإِسْتِقْرَاءِ إِمَّا بِمَعْنَى اللاَّمِ فِيمَا أَيْ فِي الْمُضَافِ إِلَيْهِ عَدَا جِنْسِ
او دا اضافت معنوي په حکم د استقراء کې دی یا په معنی دلام سره په دې کې یعني په مضاف الیه کې په غیر د جنس

الْمُضَافِ وَ ظَرْفِهِ أَيْ لاَ يَكُونُ صَادِقاً عَلَى الْمُضَافِ وَ غَيْرِهِ وَلاَ ظَرْفاً لَهُ نَحْوُ
مضاف او د ظرف د مضاف نه یعني نه وي صادق په مضاف او په غیر مضاف او نه ظرف د مضاف الیه دپاره د لکه

غُلاَمُ زَيْدٍ فَإِنَّ زَيْداً لَيْسَ جِنْساً لِلْغُلاَمِ صَادِقاً عَلَيْهِ وَلاَ ظَرْفَهُ فَإِضَافَةُ الْغُلاَمِ إِلَيْهِ
غلام زید ځکه زید نه دی د جنس د غلام نه کوم چې صادق دی په زید باندې او نه ظرف د دې دپاره د نو اضافت د غلام زید

بِمَعْنَى اللاَّمِ أَيْ غُلاَمٌ لِزَيْدٍ وَ إِمَّا بِمَعْنَى مِنَ الْبَيَانِيَّةِ فِي جِنْسِ الْمُضَافِ الصَّادِقِ
طرف ته په معنی دلام یعني غلام لزید دی او هر چې په معنی د من بیانیه دی په جنس د مضاف کې چې صادقیږي په

عَلَيْهِ وَ عَلَى غَيْرِهِ بِشَرْطِ اَنْ يَكُونَ الْمُضَافُ أَيْضاً صَادِقاً عَلَى غَيْرِ الْمُضَافِ إِلَيْهِ فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا
مضاف او په غیر مضاف باندې په دې شرط چې وي مضاف هم دارنګې صادق په غیر مضاف الیه نو وي به په مینځ

عُمُوْمٌ وَ خُصُوْصٌ مِنْ وَجْهٍ وَ إِمَّا بِمَعْنٰى فِيْ فِيْ ظَرْفِهٖ أَيْ ظَرْفِ الْمُضَافِ وَ

ددې دواړو کې عموم خصوص من وجه او هرچې په معنی دفي دي په ظرف د دې کې يعنې په ظرف د مضاف کې نو

الْحَاصِلُ أَنَّ الْمُضَافَ إِلَيْهِ إِمَّا مُبَايِنٌ لِلْمُضَافِ وَ حِيْنَئِذٍ اِنْ كَانَ ظَرْفًا لَهٗ فَالْاِضَافَةُ

حاصل دا چې مضاف اليه به يا مباين وي د مضاف دپاره نو په دې وخت کې که وي ظرف د مضاف دپاره نو اضافت

بِمَعْنٰى فِيْ وَ إِلَّا فَهِيَ بِمَعْنَى اللَّامِ وَ إِمَّا مُسَاوٍ لَهٗ كَلَيْثٍ اَسَدٍ وَ إِمَّا اَعَمُّ مُطْلَقًا

په معنی دفي دي ورنه وي به په معنی دلام او يا به مساوي وي مضاف او مضاف اليه لکه ليث او اسد او يا به اعم مطلق

كَاَحَدِ الْيَوْمِ فَالْاِضَافَةُ عَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ مُمْتَنِعَةٌ وَ إِمَّا اَخَصُّ مُطْلَقًا كَيَوْمِ الْاَحَدِ وَ عِلْمِ الْفِقْهِ وَ

وي لکه احد اليوم نو اضافت په دواړو تقديرونو ممتنع دي او هرچې اخص مطلق دي لکه يوم الاحد او علم الفقه او

شَجَرِ الْاِرَاكِ فَالْاِضَافَةُ حِيْنَئِذٍ أَيْضاً بِمَعْنَى اللَّامِ وَ إِمَّا اَخَصُّ مِنْ وَجْهٍ فَإِنْ كَانَ

شجر الاراک نو اضافت په دې وخت کې همدارنګې په معنی دلام دي او يا به اخص من وجه وي نو که چيرته وي

الْمُضَافُ إِلَيْهِ اَصْلًا لِلْمُضَافِ فَالْاِضَافَةُ بِمَعْنٰى مِنْ وَ إِلَّا فَهِيَ أَيْضاً بِمَعْنَى اللَّامِ

مضاف اليه اصل دپاره د مضاف نو وي به اضافت په معنی د مِن ورنه دا به وي همدارنګې په معنی دلام سره نو

فَاِضَافَةُ خَاتَمٍ اِلٰى فِضَّةٍ بَيَانِيَّةٌ وَ اِضَافَةُ فِضَّةٍ اِلٰى خَاتَمٍ بِمَعْنَى اللَّامِ كَمَا يُقَالُ

اضافت د خاتم فضة طرف ته بيانيه دي او اضافت د فضة خاتم طرف ته په معنی دلام دي لکه څنګه چې ويلې

فِضَّةُ خَاتَمِكَ خَيْرٌ مِنْ فِضَّةِ خَاتَمِيْ وَ اعْلَمْ اَنَّهٗ لَا يَلْزِمُ فِيْمَا هُوَ بِمَعْنَى اللَّامِ اَنْ يَصِحَّ

شوي دي فضة خاتمک خير من فضة خاتمي. پوه شه چې نه دي لازم په هغه څه کې چې وي په معنی دلام چې صحيح

التَّصْرِيْحُ بِهَا بَلْ يَكْفِيْ اِفَادَةُ الْاِخْتِصَاصِ الَّذِيْ هُوَ مَدْلُوْلُ اللَّامِ فَقَوْلُكَ يَوْمُ الْاَحَدِ وَ

شي تصريح په دې سره بلکه کافي ده افاده د هغه اختصاص چې هغه مدلول دلام دي نو دا قول ستا يوم الاحد او

عِلْمُ الْفِقْهِ وَ شَجَرُ الْاِرَاكِ بِمَعْنَى اللَّامِ وَلَا يَصِحُّ اِظْهَارُ اللَّامِ فِيْهِ وَ لِهٰذَا قَالَ

علم الفقه او شجرة الارک په معنی دلام دي او نه صحيح کيږي اظهار د لام په دې قول کې او د دې وجهې نه ويلي

الْمُصَنِّفُ بِمَعْنَى اللَّامِ وَ لَمْ يَقُلْ بِتَقْدِيْرِ اللَّامِ وَ بِهٰذَا الْاَصْلِ يَرْتَفِعُ الْاِشْكَالُ عَنْ كَثِيْرٍ

دي مصنف په معنی د لام سره او نه يې دي ويلي په تقدير د لام سره او په دې اصل سره پورته شو اشکال د ډيرو

مِنْ مَوَادِ الْاِضَافَةِ اللَّامِيَّةِ وَلَا يَحْتَاجُ فِيْهِ اِلَى التَّكَلُّفَاتِ الْبَعِيْدَةِ مِثْلُ كُلُّ رَجُلٍ وَ كُلُّ وَاحِدٍ.

اعتراضونو نه د موادو د اضافت لاميه او نشته ضرورت په دې کې تکلفات بعيده ته لکه کل رجل وکل واحد

**خلاصه دمتن:** صاحب د کافيې په دې عبارت کې د اضافت معنويه بيان کوي چې د اضافت معنويه درې (۳) قسمونه دي (۱) اضافت په معنی د لام سره (۲) اضافت په معنی د من سره

۳. اضافت په معنی دفي سره . ددې دري واړو قسمونو وجه دحصر داده چې مضاف الیه مضف دپاره به یا جنس وي اویابه دمضاف دپاره ظرف وي اویا به ددې دواړو نه هیڅ هم نه وي . ۱. که مضاف الیه دمضاف دپاره جنس نه وي اوظرف هم نه وي نو اضافت په معنی دلام دي مثال لکه غلام زید . ۲. اوکه مضاف الیه دمضاف دپاره جنس وي نو اضافت په معنی دمن دي مثال لکه خاتم فضة . ۳. اوکه مضاف الیه دمضاف دپاره ظرف وي نو اضافت په معنی دفي دي مثال لکه ضرب الیوم

**اغراض دجامي** : اي الاضافة : په دې عبارت کې شارح د هُوَ ضمیر مرجع متعین کړه چې د ضمیر مرجع اضافت معنویه ده .

بحکم الاستقراء : په دې عبارت سره شارح دفائدې په شکل یو وضاحت کوي چې اضافت معنویه په دې دري ۳. واړو قسمونو کې حصر ، حصر استقرائي دي یعنې تلاش او دتتبع نه وروستو مونږ ته دغه اقسام ملاو شو داحصر عقلي نه دي ، بلکه دا حصر استقرائي دي .

في المضاف الیه : په دې عبارت کې شارح د ما مصداق متعین کوي چې د ما مصداق مضاف الیه دي

لا یکون صادقا : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : په غلام زید کې اضافت لامي دي حالانکه په دې کې مضاف الیه دمضاف جنس دې ځکه چې غلام او زید دواړه حیوان ناطق دي نو ددواړو جنس یو دي .

**جواب** : مضاف الیه دمضاف دجنس نه دکیدو مطلب اومقصد دادې چې مضاف الیه مضاف او غیر مضاف دواړو باندې صادق راځي اوپه غلام زید کې زید مضاف اوغیر مضاف باندې صادق نه دي بلکه صرف مضاف په غلام باندې صادق دي ځکه چې په دې کې اضافت په معنی دلام دي

البیانیة : په دې عبارت کې شارح د من وضاحت کوي چې من بیانیه دي .

الصادق علیه : داد جنس صفت کاشفه دي اودجنس نه مراد دادې چې مضاف الیه مضاف او په غیر مضاف باندې صادق وي

بشرط ان : په دې عبارت سره شارح داضافت بیانیه یو شرط بیانوي چې داضافت بیانیه دپاره

صرف داخبره کافي نه ده چې مضاف الیه مضاف باندې هم صادق وي اوغیر مضاف باندې هم صادق وي بلکه داضروري ده چې مضاف هم داسې وي چې مضاف اوغیر مضاف باندې صادق وي یعنې مضاف اومضاف الیه کې عموم اوخصوص من وجه نسبت وي.

**ای ظرف المضاف**: په دې عبارت سره شارح په ظرفه کې د هٔضمیر مرجع متعین کړه چې د ضمیر مرجع مضاف دي

**والحاصل**: په متن کې اختصار وو شارح په **والحاصل** سره داضافت بحث په تفصیل سره بیانوي چې مضاف اومضاف الیه په مینځ کې ټول ممکنه احتمالات لره ذکر کړه ددې حکم بیانوي چې مضاف الیه دپنځه (۵) حالاتو نه به خالي نه وي: یا به مضاف الیه دمضاف مبائن وي. یابه مساوي وي. یا به اعم مطلق وي، یا به اخص مطلق وي اویا به اعم او اخص من وجه وي، که مضاف الیه دمضاف مبائن وي (یعنې په دواړو کې دتبائن نسبت وي) نو دا به ددوه (۲) حالونو نه خالي نه وي مضاف الیه به دمضاف دپاره ظرف وي، اویا به مضاف الیه دمضاف د پاره ظرف نه وي. (۱) که مضاف الیه دمضاف دپره ظرف وي نو دا اضافت به په معنی د **في** وي چې دې ته اضافت ظرفیه ویلې شي، (۲) اوکه مضاف الیه دمضاف دپاره ظرف نه وي نو اضافت به په معنی د لام وي چې دې ته اضافت لامیه ویلې شي، (۳) که مضاف الیه د مضاف سره مساوي وي یعنې په دواړو کې د تساوي او مساوآت نسبت وي مثال لکه **لیث او اسد**(۴) او یابه مضاف الیه دمضاف نه اعم مطلق وي لکه **احد الیوم** په دې دواړو صورتونو کې اضافت جائز نه دي ځکه چې ددې اضافت په معنوي طور باندې څه فائده نه وي. (۵) اوکه مضاف الیه دمضاف نه اخص مطلق وي (یعنې په دواړو کې عموم خصوص مطلق نسبت وي) مثال لکه **یوم الاحد وعلم الفقه وشجر الاراک** نو دا اضافت به په معنی دلام سره وي (۶) او که مضاف الیه دمضاف نه اعم اخص من وجه وي (یعنې په دواړو کې عموم خصوص من وجه نسبت وي) نو دابه هم ددوه (۲) حالونو نه خالي نه وي: مضاف الیه به دمضاف دپاره اصل اوماده وي، اویا به ددې برعکس اومخالف وي (۷) که مضاف الیه دمضاف دپاره اصل وي نو اضافت به په معنی دمن سره وي چې دې ته اضافت بیانیه هم وایي مثال لکه **خاتم فضة**. (۸) که مضاف د مضاف الیه دپاره اصل وي نو اضافت به په معنی د لام سره وي چې دې اضافت ته اضافت لامیه هم وایي مثال لکه **فضة خاتمک خیر من فضة خاتمي**.

واعلم: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: اضافت په معنی دلام به هله صحیح وي چیرته چې لام ظاهرول اوددې تصریح کول صحیح وي اوچیرته چې لام ظاهرول صحیح نه وي هلته به اضافت په معنی دلام سره نه وي لهذا کل رجل اوکل واحدٍ کې اضافت په معنی دلام نه دی په کار ځکه چې دلته لام ظاهرول صحیح نه دي داسې نه شي ویلي کل لرجل کل لواحدٍ حالانکه نحوي حضرات په دې کې اضافت لامیه ته صحیح وایي

**جواب**: اضافت په معنی دلام دپاره ضروري نه دي چې دلام تصریح صحیح وي بلکه اضافت په معنی دلام دپاره ضروري ده چې هغه داختصاص فائده ورکوي کوم چې د لام مدلول دي او په کل رجل او کل واحد کې فائده د اختصاص حاصلیږي ددې وجې نه دلته اضافت لامي صحیح دي

فقولک: په دې عبارت سره شارح دتیر شوي مضمون دتاکید دپاره نور استشهادات اودلائل پیش کوي چې اضافت په معنی دلام دصحت دپاره دلام تصریح ضروري نه ده بلکه افادهٔ د اختصاص ضروري ده دغه وجه ده چې په یوم الاحد علم الفقه شجر الاراک کې اضافت په معنی د لام دي حالانکه په دې کې لام ظاهرول صحیح نه دي ځکه چې مصنف رحمه الله بمعنی اللام وویل بتقدیر اللام یې ونه ویل که بتقدیر اللام یې ویلي وي نوذکر شوي اعتراض واردیدو چې کل رجل او کل واحد . وغیره کې اضافت په معنی د لام دي حالانکه په دې کې د لام تقدیر جائز نه دي

وبهذا الاصل یرتفع الاشکال: په دې عبارت سره شارح مزید وضاحت کوي که دا اصل اوقاعده مخې ته کیخودې شي نو داضافت لامیه په باره کې ډیر اشکال رفع کیږي مثلاً علم الفقه اوکل واحد وغیره ځکه چې اضافت په معنی دلام دصحت دپاره داضروري نه ده چې لام ظاهرول دې صحیح وي بلکه افاده داختصاص چې دلام مدلول دي هغه موندل ضروري وي لهذا دې امثله لره دصحیح کولودپاره اوس دې تکلفاتو طرف ته احتیاج اوضرورت نشته دي چې ددې بعضې شارحینو ارتکاب کړي دي مثلاً بعضې شارحینو ویلي دي چې په دې مثالونو کې لام ظاهرول صحیح دي مثال لکه د کل رجل تقدیر کل فرد لرجل دي یعني کل فرد ثابت لرجل وغیره

## د في د اضافت د استعمال قليل بيان :

وَ هُوَ أَيْ كَوْنِ الْإِضَافَةِ بِمَعْنٰى فِيْ قَلِيْلٌ فِيْ اِسْتِعْمَالَاتِهِمْ وَ رَدَّهَا اَكْثَرُ النُّحَاةِ إِلَى الْإِضَافَةِ بِمَعْنَى

او دا يعني كيدل د اضافت په معنى د في كم دي په استعمال د عربو كې او راجع كړې اكثرو نحاتو اضافت په معنى

اللَّامِ فَإِنَّ مَعْنٰى ضَرْبُ الْيَوْمِ ضَرْبٌ لَهُ اِخْتِصَاصٌ بِالْيَوْمِ بِمُلَابَسَةِ الْوُقُوْعِ فِيْهِ

دلام طرف ته خكه معنى د ضرب اليوم ضرب له اختصاص باليوم ده د وجهې د ملابست د وقوع د ضرب نه په يوم كې

فَإِنْ قُلْتَ فَعَلٰى هٰذَا يُمْكِنُ رَدُّ الْإِضَافَةِ بِمَعْنٰى مِنْ أَيْضاً إِلَى الْإِضَافَةِ بِمَعْنَى

كه چيرته ته ووايې چې بنا په دې چې ممكن دي رد كول د اضافت معنى د من ته هم دا رنګې اضافت ته په معنى

اللَّامِ لِلْإِخْتِصَاصِ الْوَاقِعِ بَيْنَ الْمُبَيَّنِ وَ الْمُبَيِّنِ قُلْنَا نَعَمْ لٰكِنْ لِمَا كَانَتِ

دلام د پاره د اختصاص چې واقع دي په مينځ د مبين او د مبيّن كې مونږ وايو چې صحيح ده لكن هر كله چې وو

الْإِضَافَةُ بِمَعْنٰى فِيْ قَلِيْلاً رَدُّوْهَا إِلَى الْإِضَافَةِ بِمَعْنَى اللَّامِ تَقْلِيْلاً لِلْأَقْسَامِ وَ أَمَّا الْإِضَافَةُ

اضافت په معنى د في كم نو راجع يې كړو اضافت معنى دلام طرف ته د وجهې د كم والي د اقسامو او هر چې اضافت

بِمَعْنٰى مِنْ فَهِيَ كَثِيْرَةٌ فِيْ كَلَامِهِمْ فَالْأَوْلٰى بِهَا أَنْ تُجْعَلَ قِسْماً عَلٰى حِدَةٍ نَحْوُ غُلَامُ

په معنى د في دي نو دا ډيري دي په كلام د عربو كې نو اولى په دې سره دا ده چې وګرځول شي دا يو قسم جدا لكه غلام

زَيْدٍ مِثَالٌ لِلْإِضَافَةِ بِمَعْنَى اللَّامِ أَيْ غُلَامٌ لِزَيْدٍ وَ خَاتَمُ فِضَّةٍ مِثَالٌ لِلْإِضَافَةِ بِمَعْنٰى

زيد دا مثال دي د پاره د اضافت په معنى دلام يعني غلام لزيد او خاتم فضة دا مثال دي د پاره د اضافت په معنى د

مِنْ أَيْ خَاتَمٌ مِنْ فِضَّةٍ وَضَرْبُ الْيَوْمِ مِثَالٌ لِلْإِضَافَةِ بِمَعْنٰى فِيْ أَيْ ضَرْبٌ وَاقِعٌ فِي الْيَوْمِ .

من يعني خاتم من فضة او ضرب اليوم دا مثال دي د پاره د اضافت په معنى د في يعني ضرب واقع في اليوم .

**خلاصه د متن** : صاحب د كافيه په دې عبارت كې دا بيانوي چې د اضافت معنويه د دري (۳) قسمونو نه اضافت په معنى في سره په استعمال كې قليل دي په دې بناء باندې بعضې نحويانو دې قسم اضافت بمعنى لام طرف ته واپس كول د اضافت معنويه دوه (۲) قسمونه جوړ كړي دي د دې نه وروستو ماتن د معنويه د دري (۳) قسمونو مثالونه وركړي دي غلام زيد دا د اضافت لامي مثال دي په اصل كې دا غلام لزيد وو او خاتم فضة دا د اضافت په معنى د من مثال دي په اصل كې دا خاتم من فضة وو او ضرب اليوم اضافت دا اضافت په معنى د في مثال دي يعني ضرب واقع في اليوم .

**اغراض د جامي** : كون الاضافة : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب

ر کول دي

**سوال** : ضمير اوددې په مرجع کې مطابقت نشته دي ځکه چې ضمير مفرد مذکر دي او اضافت مؤنث دي حالانکه دراجع اودمرجع په مینځ کې مطابقت ضروري دی.

**جواب** : دضمير مرجع اضافته نه دي بلکه کون الاضافة دي اوکون مذکر دي لهذا دراجع او مرجع په مینځ کې مطابقت پیدا شو.

في استعمالاتهم : په دې عبارت سره شارح د قابل دصلې بيان کوي.

اكثر النحاة : په دې عبارت سره شارح داضافه په معنى دفي دکم واقع کیدو وضاحت کوي چې اکثرو نحويانو اضافت په معنى دفي لره اضافت په معنى دلام طرف ته واپس کړي دي ځکه چې اضافت لامي نه مقصود اومفاداختصاص دي اوهغه په اضافت په معنى دفي کې موندلې شي ځکه چې دضرب اليوم معنى ده ضرب له اختصاص باليوم ځکه چې ضرب په يوم کې واقع دي.

فان قلت : په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه قلنا سره ددې اعتراض جواب ورکوي:

**اعتراض** : لکه څنګه چې اضافت په معنى دفي کې داضافت لاميه مقصود چې اختصاص دې موندلې شي همدارنګې اضافت په معنى دمن کې هم داضافت لاميه مقصود اومفاد اختصاص موندلې کيږي ځکه چې په اضافت بيانيه کې مضاف مبين (اسم فاعل) او مضاف اليه مبين (اسم مفعول) دي اومبين اومبين کې اختصاص وي نو مناسب دادې چې اضافت په معنى دمن لره هم اضافت په معنى دلام طرف ته واپس کړي وي ځکه چې داضافت معنويه اقسام قليل نه اقل به شي داسې يې ولې ونه کړه ؟.

**جواب** : شارح په قلنا سره ددې جواب ورکوي چې مونږ منو چې اضافت په معنى دمن کې هم د اختصاص معنى موندلې کيږي لیکن اضافت په معنى دفي سره قليل دي نو دکمو اقسامو په خاطر اضافت په معنى دفي لره اضافت په معنى دلام طرف ته واپس کړو لیکن اضافت په معنى د من کثير الاستعمال دي لهذا دې دپاره اولى اومناسب داده چې دې لره خان مستقل قسم جوړ کړي شي دچاتابع دې نه کړي شي.

مثال للاضافة بمعنى اللام : په دې عبارت سره شارح دجامي دممثل له تعين کوي غلام زيد دا

اضافت په معنی د لام مثال دي په اصل کې دا غلام لزید وو ، خاتم فضة داد اضافت په معنی د من مثال دي دا په اصل کې خاتم من فضة وو ، ضرب الیوم دا داضافت په معنی د في مثال دي په اصل کې دا ضرب واقع في الیوم وو.

## داضافت معنوي فوائد :

| |
|---|
| وَ تُفِيْدُ أَيِ الإِضَافَةُ الْمَعْنَوِيَّةُ تَعْرِيفاً أَيْ تَعْرِيْفَ الْمُضَافِ مَعَ الْمُضَافِ إِلَيْهِ الْمَعْرِفَةِ لِأَنَّ الْهَيْئَةَ التَّرْكِيْبِيَّةَ |
| اوفائده ورکوي یعنې اضافت معنوي دتعریف یعنې دتعریف دمضاف مضاف الیه معرفې سره څکه هیئت ترکیبه |
| فِي الإِضَافَةِ الْمَعْنَوِيَّةِ مَوْضُوْعَةٌ لِلدَّلَالَةِ عَلَى مَعْلُوْمِيَّةِ الْمُضَافِ لَا أَنَّ نِسْبَةَ أَمْرٍ إِلَى مُعَيَّنٍ يَسْتَلْزِمُ |
| په اضافت معنوي کې وضع شوي دپاره ددلالت په معلومیت دمضاف نه داچې نسبت دامر معین مستلزم دي |
| مَعْلُوْمِيَّةَ الْمَنْسُوْبِ وَ مَعْهُوْدِيَّتَهُ فَإِنَّ ذٰلِكَ غَيْرُ لَازِمٍ كَمَا لَا يَخْفٰى فَإِنْ قُلْتَ قَدْ |
| معلومیت دمنسوب اومعهودیت ته څکه داغیرلازم دي لکه څنګه چې داپټه نه ده بیاکه ته ووایې چې کله کله |
| يُقَالُ جَاءَنِيْ غُلَامُ زَيْدٍ مِنْ غَيْرِ إِشَارَةٍ إِلَى وَاحِدٍ مُعَيَّنٍ فَلَا يَكُوْنُ هَيْأَةُ التَّرْكِيْبِ الإِضَافِيِّ مَوْضُوْعَةً لِمَعْلُوْمِيَّةِ |
| ویل کیږي جاء ني غلام زید په غیر داشارې نه یومعین ته نونه وي هیئت دترکیب اضافي موضوع دپاره دمعلومیت د |
| الْمُضَافِ قُلْنَا ذٰلِكَ كَمَا أَنَّ الْمُعَرَّفَ بِاللَّامِ فِيْ أَصْلِ الْوَضْعِ لِمُعَيَّنٍ ثُمَّ قَدْ يُسْتَعْمَلُ |
| مضاف مونږ وایوچې دالکه څنګه چې معرف باللام په اصل وضع کې دمعین دپاره دي بیاکله کله استعمالیږي |
| بِلَا إِشَارَةٍ إِلَى مُعَيَّنٍ كَمَا فِيْ قَوْلِهِ ع وَ لَقَدْ أَمُرُّ عَلَى اللَّئِيْمِ يَسُبُّنِيْ وَ ذٰلِكَ عَلَى خِلَافِ وَضْعِهِ وَ لَيْسَ يَجْرِيْ |
| بې داشارې نه معین ته لکه په دې قول دقائل کې ولقدامر علی اللئیم یسبني اودا په خلاف دوضع ددې کې اونه جاري |
| هٰذَا الْحُكْمُ فِيْ نَحْوِ غَيْرٍ وَ مِثْلٍ فَإِنَّ إِضَافَتَهُمَا لَا تُفِيْدُ التَّعْرِيْفَ وَ إِنْ كَانَ مَعَ |
| کیږي داحکم په په شان د غیر او د مثل څکه اضافت ددې دواړو فائده نه ورکوي دتعریف اوکه چیرته وي سره د |
| الْمُضَافِ إِلَيْهِ الْمَعْرِفَةِ لِتَوَغُّلِهِمَا فِي الإِبْهَامِ إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ لِلْمُضَافِ إِلَيْهِ ضِدٌّ وَاحِدٌ |
| مضاف الیه معرفه دوجهې دشدت ددې دواړونه په ابهام کې مګرکه چیرته وي دمضاف الیه دپاره یو ضدچې |
| يُعْرَفُ بِغَيْرِيَّتِهٖ كَقَوْلِكَ عَلَيْكَ بِالْحَرَكَةِ غَيْرِ السُّكُوْنِ وَ كَذٰلِكَ إِذَا كَانَ لِلْمُضَافِ |
| پیژندل کیږي ددې په غیریت سره لکه داقول علیک بالحرکة غیر السکون اوهمدارنګې چې کله وي دپاره دمضاف |
| إِلَيْهِ مِثْلٌ اِشْتَهَرَ بِمُمَاثَلَتِهٖ فِيْ شَيْءٍ مِنَ الْأَشْيَاءِ كَالْعِلْمِ وَ الشُّجَاعَةِ فَقِيْلَ لَهُ جَاءَ |
| الیه مثال چې مشهوروي په مماثلت ددې سره په یوڅیزکې داشیاونه لکه علم اوشجاعت نوویلې شي دوي ته جاء |
| مِثْلُكَ كَانَ مَعْرِفَةً إِذَا قُصِدَ الَّذِيْ يُمَاثِلُهُ فِي الشَّيْءِ الْفُلَانِيِّ وَ تُفِيْدُ الإِضَافَةُ |
| مثلک نووي به دامعرفه چې کله قصدوکړې شي دهغه چې مماثل وي په فلاني څیزکې اوفائده ورکوي اضافت |

| الْمَعْنَوِيَّةُ تَخْصِيصاً أَيْ تَخْصِيصَ الْمُضَافِ مَعَ الْمُضَافِ إِلَيْهِ النَّكِرَةِ نَحْوُ غُلَامُ رَجُلٍ فَإِنَّ التَّخْصِيصَ تَقْلِيلُ |
|---|
| معنوي دتخصيص يعني دتخصيص دمضاف مضاف اليه سره د نکرې لکه غلام رجل ځکه تخصيص داتقليل د |
| الشُّرَكَاءِ وَلاَ شَكَّ أَنَّ الْغُلَامَ قَبْلَ إِضَافَتِهِ إِلَى رَجُلٍ كَانَ مُشْتَرِكاً بَيْنَ غُلَامِ رَجُلٍ |
| شرکاودي اوشک نشته په دې کې چې غلام مخکې داضافت ددې نه رجل ته دامشترک وويه مينځ دغلام رجل |
| وَ غُلَامُ إِمْرَأَةٍ فَلَمَّا أُضِيفُ إِلَى رَجُلٍ خَرَجَ عَنْهُ غُلَامُ إِمْرَأَةٍ وَ قَلَّتِ الشُّرَكَاءُ فِيْهِ. |
| اود غلام امرأة نوهرکله چې يې اضافت وشورجل ته نوخارج شو ددې نه غلام امرأة اوکم شو شرکاء په دې کې |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې وايي چې داضافت معنويه دوه (۲) فائدې دي : (۱) دمضاف تعريف . (۲) دمضاف تخصيص . کله چې مضاف اليه معرفه وي نو اضافت معنويه مضاف د تعريف فائده ورکوي مثال غلام زيد اوکله چې مضاف اليه نکره وي نو دمضاف تخصيص فائده ورکوي لکه غلام رجل .

**اغراض دجامي** : اى الاضافة المعنوية : په دې عبارت سره شارح دتفيد دضمير مرجع متعين کړه چې دضمير مرجع اضافت معنويه ده .

تعريف المضاف : په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې په **تعريفاً** باندې تنوين دمضاف اليه په عوض کې دي .

المضاف اليه : په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې **المعرفة** صفت دي دموصوف محذوف چې **المضاف اليه** دي .

لان الهيأة : په دې عبارت سره داضافت معنويه دتعريف دفائدې ورکولو وجه بيانوي چې کله مضاف اليه معرفه وي نو داضافت معنويه هيئت ترکيبيه دمضاف معلوميت باندې دلالت کولو دپاره وضع کړې شوي دي ځکه چې دمضاف اليه تعريف اومعلوميت مضاف طرف ته سرايت کوي ځکه چې ددواړو په مينځ کې قوي اتصال او ارتباط لفظي موجود دي ګويا چې دا په منزله دکلمې واحدې ده ځکه چې مضاف به هم معرفه جوړ شي .

لا ان نسبة : په دې عبارت سره شارح دجامي په فاضل هندي رحمه الله باندې رد کوي ، فاضل هندي رحمه الله اضافت معنويه مضاف دتعريف فائدې ورکولو علت او وجه دابيان کړي ده چې ديو څيز څه معين څيز طرف ته اسناد کول دا منسوب کول معلوميت اومعهوديت ته مستلزم دي ليکن شارح رحمه الله ددې رد کړي دي ځکه چې اسناد الى امر معين دا څيز منسوب

معلومیت ته مستلزم نه دي خکه چې ډیر کله نسبت یو امر معین طرف ته کیږي لیکن منسوب معرفه نه شي کیدي مثلاً دخبر اسناد مبتدا طرف ته کیږي چې امر معین دي لیکن دا نسبت دخبر تعریف ته مستلزم نه دي همدارنګې په اضافت لفظیه کې هم نسبت امر معین طرف ته کیږي مثلاً **ضارب زید** لیکن دا تعریف ته مستلزم نه دي نه چې **اسناد الی امر معین** طرف ته .

**فان قلت**: په دې عبارت سره شارح یو اعتراض کوي او په **قلنا** سره ددې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض** : کله چې واحد معین طرف ته داشارې کولو نه په غیر لکه **جاءني غلام زید** وویل شي نو په دې کې **زید** مضاف الیه معرفه ده اوهیئت ترکیبیه موجود دي ددې باوجود د مضاف تعریف حاصل نه شو نو داقول صحیح نه شو چې داضافت معنویه هیئت ترکیبیه دمضاف معلومیت اومعهودیت طرف ته مستلزم دي .

**جواب** : په **قلنا** سره شارح ددې اعتراض جواب ورکوي چې دجواب حاصل دادې چې زمونږ بحث په وضع کې دي په استعمال کې نه دي اوپه ذکر شوي مثال کې **غلام** نکره پاتې کیدل او معرفه نه جوړیدل عارضِ استعمال دوجې نه دي شارح ددې مثال پیش کوي نکه ال دا تعریف دپاره موضوع دي لیکن کله چې څه معین اشاره کولو نه په غیر مستعمل دي نو ددې مدخل نکره ګرځي او مفید د تعریف نه شي کیدې نو دا صرف دعارض داستعمال دوجې نه کیږي او خلاف وضع کیږي لکه څنګه چې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دي **ولقد امر على اللئيم يسبني** (او زه دیو کمینه په خوا تیرشوم نو هغه ماته کنځلې کولې ) ، نو په دې کې **اللئيم** باندې لام دتعریف فائده نه ورکوي ځکه چې **اللئيم** موصوف دي او **يسبني** جمله فعلیه ددې خبر ده او جمله دنکرې صفت جوړیدې شي د معرفې صفت نه شي جوړیدې ددې نه معلومه شوه چې په **اللئيم** باندې لام دتعریف دپاره نه دي ، دویم مثال په قرآن مجید کې الله تعالی فرمایلي دي **كمثل الحمار يحمل اسفاراً** . په دې آیت کې **الحمار** دمعرف باللام کیدو باوجود نکره ده ځکه چې **يحمل** جمله فعلیه ددې صفت نکره ده .

**ولیس یجري**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال** : دمصنف رحمه الله دا وینا چې اضافت معنویه دمضاف تعریف فائده ورکوي دا

منقوض دي په لفظ دمثل او غير سره کوم مثل چې زيد اوغير زيد کې واقع دي ځکه چې دا معرفه نه ده باوجود ددې چې په دې کې اضافت معنويه دي اومضاف اليه معرفه هم ده .

**جواب** : دجواب حاصل دادې چې لفظ دغير اومثل دذکر شوې قاعدې نه مستثنی دي دا دواړه اګر چې معرفې طرف ته مضاف وي نو بيا هم په دې کې تعريف متحقق نه وي ځکه چې دا دواړه متوغل في الابهام دي يعني په دې کې ابهام ډير زيات عميق دي البته کله چې د غير مضاف اليه داسې اسم وي چې دهغې فقط يو ضد وي کوم چې دمضاف اليه غيريت سره مشهور وي نو په داسې صورت کې لفظ دمثل او غير داضافت دوجې نه معرفه جوړيږي مثال لکه عليک بالحرکة غير السکون په دې کې لفظ دغير مضاف اليه يعنې دسکون فقط يو ضد دي يعنې حرکت اوداد سکون غيريت سره مشهور دي ددې وجې نه لفظ غير معرفه جوړ شو .

وکذلک : په دې عبارت سره شارح دلفظ مثل وضاحت کوي چې کله دمثل دلفظ اضافت داسې متعلق طرف ته وي چې دهغې يو داسې مثل وي چې ددې سره په مماثلت اومشابهت کې هغه مشهور اومعروف وي مثلاً علم وشجاعت نو په داسې صورت کې اضافت معنويه دمضاف دتعريف فائده ورکوي مثلاً امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله ددې مماثلت اوصفت په علم کې مشهور دي که امام ابوحنيفه رحمه الله ته وويل شي جاءني مثلک او لفظ مثل نه مراد هغه سړي واخستې شي کوم چې امام صاحب سره په صفت دعلم کې مماثل وي نو مثل معرفه جوړيږي ، همدارنګې حضرت علي رضي الله عنه ته وويل شي چې جاءني مثلک او د لفظ مثل نه هغه سړي مراد واخستې شي کوم چې دحضرت علي رضي الله عنه په وصف دشجاعت کې مماثل اومشابه وي نو لفظ دمثل معرفه جوړيږي همدارنګې حاتم طائي ته وويل شي چې جاءني مثلک ، اولفظ دمثل نه هغه سړي مراد واخستې شي کوم چې په صفت دجود اوسخا کې دحاتم طائي سره مماثل اومشابه وي نو لفظ د مثل معرفه جوړيږي .

وتفيد الاضافة المعنوية : په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې دتخصيصاً عطف په تعريفاً باندې دي

تخصيص المضاف : په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې په تخصيصاً باندې چې کوم تنوين دي دا دمضاف اليه محذوف په عوض کې دي په اصل کې عبارت تخصيص المضاف وو

المضاف اليه . په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې النکرة صفت دي د موصوف محذوف چې

مضاف اليه دي.

نحو غلام رجل: په دې عبارت سره شارح مثال په ممثل له باندې تطبيق کوي مثال لکه غلام رجل په دې کې مضاف اليه نکره ده ځکه چې په مضاف کې تخصيص راځي ځکه چې تخصيص نوم دي د تقليل الاشتراک يعنې دکم اشتراک او غلام رجل طرف ته داضافت نه مخکې عام وو سړي او ښځې دواړو ته غلام شامل وو کله چې ددې اضافت رجل طرف ته وشو نو ددې نه غلام آمرأة يعنې ښځه غلامه ترې خارجه شوه نو په دې سره اشتراک کم شو لهذا په دې کې تخصيص پيدا شو

## داضافت معنوي شرائط:

| |
|---|
| وَ شَرْطُهَا أَيْ شَرْطُ الْإِضَافَةِ الْمَعْنَوِيَّةِ تَجْرِيْدُ الْمُضَافِ إِذَا كَانَ مَعْرِفَةً مِنَ التَّعْرِيْفِ فَإِنْ كَانَ ذَا اللَّامِ |
| اوشرط ددې يعنې شرط داضافت معنوي تجريد د مضاف دي چې کله وي معرفه د تعريف نه که چيرته ذولام وي |
| حُذِفَ لَامُهُ وَ إِنْ كَانَ عِلْماً نُكِّرَ بِأَنْ يُجْعَلَ وَاحِداً مِنْ |
| نوحذف کولې به شي لام ددې او که چيرته علم وي نو نکره کولې به شي په دې طريقې چې وګرځول شي يو ددې |
| جُمْلَةِ مَنْ سُمِّيَ بِذٰلِكَ الْإِسْمِ وَ إِنْ لَمْ يَكُنْ مَعْرِفَةً فَلَا حَاجَةَ إِلَى التَّجْرِيْدِ بَلْ لَا يُمْكِنُ |
| جملې موسوم نه په دې اسم سره او که چيرته معرفه نه وي نو نشته ضرورت تجريد ته بلکې ممکن نه دي تجريد |
| وَ الْمُرَادُ بِالتَّجْرِيْدِ تَجَرُّدُهُ وَ خُلُوُّهُ مِنَ التَّعْرِيْفِ عِنْدَ الْإِضَافَةِ سَوَاءٌ كَانَ نَكِرَةً فِيْ |
| ددې او مراد په تجريد سره تجرد او خالي والي دي د تعريف نه په وخت داضافت کې برابره خبره ده که وي نکره په |
| نَفْسِهٖ مِنْ غَيْرِ تَجْرِيْدٍ أَوْ كَانَ مَعْرِفَةً جُرِّدَتْ عَنِ التَّعْرِيْفِ وَ إِنَّمَا يَجِبُ التَّجْرِيْدُ لِأَنَّ |
| خپله په غير د تجريد نه او يا وي معرفه چې خالي شوې وي د تعريف نه او په تحقيق سره واجب دي تجريد ځکه |
| الْمَعْرِفَةَ لَوْ أُضِيْفَتْ إِلَى النَّكِرَةِ لَكَانَ طَلَباً لِلْأَدْنٰى وَ هُوَ التَّخْصِيْصُ مَعَ حُصُوْلِ الْأَعْلٰى وَ |
| معرفه که چيرته اضافت و شي نکرې ته نو وي به طلب د ادنی نه او دا تخصيص دي سره د حصول د اعلی نه او |
| هُوَ التَّعْرِيْفُ وَ لَوْ أُضِيْفَتْ إِلَى الْمَعْرِفَةِ لَكَانَ تَحْصِيْلُ الْحَاصِلِ فَتَضِيْعُ الْإِضَافَةُ |
| هغه تعريف دي او که چيرته يې اضافت و شي معرفې ته نو وي به تحصيل د حاصل نو ضائع به وي اضافت په |
| حَيْثُ لَا تُفِيْدُ تَعْرِيْفًا وَلَا تَخْصِيْصاً فَإِنْ قِيْلَ لَا فَرْقَ بَيْنَ إِضَافَةِ |
| داسې شان چې فائده به نه ورکوي د تعريف او نه د تخصيص بيا که وويلې شي چې نشته فرق په مينځ د اضافت |
| الْمَعْرِفَةِ وَبَيْنَ جَعْلِهَا عِلْمًا فِيْ نَحْوِ النَّجْمِ وَ الثُّرَيَّا وَ الصَّعْقِ وَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ لُزُوْمِ تَعْرِيْفِ الْمُعَرَّفِ |
| دمعرفې او په مينځ د ګرځولو ددې کې عَلَم په النجم والثريا والصعق وابن عباس مثال کې په لزوم د تعريف دمعرف |

فَمَا بَالُهُمْ جَوَّزُوْا هٰذَا دُوْنَ ذٰلِكَ قِيْلَ لَا نُسَلِّمُ اَنَّ فِيْ هٰذِهِ الْاَمْثِلَةِ تَعْرِيْفَ الْمُعَرَّفِ بَلْ فِيْهَا

کې نو دوي جائز کړي دا نوويل شوي دي چې مونږ نه منوچې په دې مثالونو کې تعريف د معرف دي بلکې په دې

زَوَالُ تَعْرِيْفٍ وَ هُوَ التَّعْرِيْفُ الْحَاصِلُ بِاللَّامِ اَوِ الْإِضَافَةِ وَ حُصُوْلُ تَعْرِيْفٍ آخَرَ وَ هُوَ

کې زوال د تعريف دي او هغه تعريف چې حاصل دي په لام سره او يا اضافت سره او حصول د بل تعريف او هغه

التَّعْرِيْفُ بِالْعِلْمِيَّةِ فَإِنَّهَا حِيْنَ صَارَتْ اَعْلَامًا لَمْ يَبْقَ فِيْهَا الْإِشَارَةُ إِلٰى مَعْلُوْمِيَّتِهَا بِاللَّامِ اَوِ

تعريف بالعلميت دي نو هر کله چې دا وګرځول اعلام نو باقي پاتې نه شو په دې اشاره د دې معلوميت باللام او

الإِضَافَةِ فَلَا يَلْزَمُ فِيْهَا تَعْرِيْفُ الْمُعَرَّفِ بَلْ تَبْدِيْلُ تَعْرِيْفٍ بِتَعْرِيْفٍ آخَرَ.

اضافت نه نو نه دي لازم په دې کې تعريف د معرف بلکې بدلول د يو تعريف په بل تعريف سره .

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب د کافيې د اضافت معنويه شرط بيانوي چې مضاف لره د تعريف نه خالي کړي شوي وي که مضاف د تعريف نه خالي شوي نه وي بلکه دا د مخکې نه معرفه ده نو د دې اضافت صحيح نه دي .

**اغراض دجامي** : شرط الاضافة: په دې عبارت کې شارح د هاء د ضمير مرجع متعين کوي چې د ضمير مرجع اضافة معنويه دي

**اذا کان معرفة**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : مضاف د تعريف نه خالي کول دا د دې خبرې تقاضا کوي چې د مخکې نه تعريف موجود وي لهذا چيرته چې د شروع نه تعريف نه وي لکه غلام رجل نو په دې کې د اضافت معنويه شرط نه شي موندلې نو اضافت معنويه متحقق نه شوه ځکه چې قاعده ده چې اذا فات الشرط فات المشروط کله چې شرط فوت او ختم شي نو مشروط هم فوت کيږي او ختميږي حالانکه په دې کې اضافت معنويه موجود دي

**جواب** : شارح د دې دوه جوابونه ورکوي

**جواب (۱)** : دا شرط مطلقا نه دي بلکه دا شرط په هغه کې دي چې کله مضاف معرفه وي که مضاف معرفه نه وي نو د تجريد ضرورت نشته دي بلکه تجريد ممکن نه دي

**فان کان ذا اللام** : په دې عبارت کې شارح د تجريد المضاف من التعريف صورت بيانوي چې کله مضاف معرف باللام وي نو لام به حذف کولې شي او که مضاف علم وي نو دې لره به نکره جوړولې شي د نکرې جوړولو صورت دا دې چې د دې نوم د جماعت د افرادو نه يو فرد معين

مراد واخستلې شي مثال لکه زیدنا خیر من زیدکم ( زمونږ زید ستاسو دزید نه بهتر دي ) .

**جواب (۲)** : <u>والمراد</u> : په دې عبارت سره شارح دويم جواب ورکوي چې دلته دتجريد نه **مجازاً** تجرد مراد دي يعنې باب تفعيل **مجازاً** دتفعل په معنى کې دي په معنى دمضاف خالي کيدل برابره خبره ده که دادتجريد نه په **غير في نفسه** نکره وي يامعرفه وي ليکن دې لره د تعريف نه خالي کړې شوي وي .

**<u>وانما يجب</u>** : په دې عبارت سره شارح دذکر شوي شرط وجه بيانوي چې دا شرط يې ځکه ولږولو چې که مضاف معرفه وي نودمضاف اليه دوه(۲) صورتونه دي : (۱) مضاف به نکره وي .(۲) او يا به معرفه وي که مضاف نکره وي نو اعلى يعنې تعريف کيدو سره ادنى يعنې دتخصيص طلب لازم راځي کوم چې باطل دي اوکه مضاف اليه معرفه وي نو دتحصيل حاصل خرابي لازم راځي ځکه چې کله مضاف اليه معرفه وي نو اضافت معنويه دمضاف تعريف فائده ورکوي اوهغه د مخکې نه حاصل دي .

**<u>فان قيل</u>** : په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي اوپه **قيل** سره ددې اعتراض جواب ورکوي :

**اعتراض** : دمعرفې اضافت اودمعرفې دعلم جوړولو په مينځ کې څه فرق نشته دي ځکه چې لکه څنګه دمعرفې اضافت نه **تعريف المعرف** لازم راځي همدارنګې معرفې لره دعلم جوړولو سره هم **تعريف المعرف** لازم راځي بيا څه وجه ده چې نحويانو دمعرفې اضافت ناجائز کړې دي ليکن معرفې لره علم جوړولو لره جائز کړې دي مثال لکه **النجم** او **الثريا** او**الصعق** دا دمخکې نه دالف لام دوجې نه معرفه وو بيا دې لره دستورو وغيره علم جوړ کړو نو دعلميت دوجې نه دوباره تعريف راغلې داهم تحصيل دحاصل دي همدارنګې ابن عباس داضافت دوجې نه معرفه وو بيا دې لره دحضرت عبدالله بن عباس علم جوړ کړې شو .

**جواب** : مونږ نه منو چې په دې مثالونو کې تعريف المعرف دي بلکه په دې کې تبديل تعريف بتعريف آخر وزوال تعريف اول دي يعنې مخکې درې (۳) مثالونو کې چې کوم تعريف الف لام د وجې نه وو اوڅلورم مثال کې داضافت دوجې نه حاصل وو دې څلورو کې دعلميت راتلو د وجې نه تعريف باللام زائل اوختميږي اونوي تعريف په عليمت سره به حاصل شي ځکه چې کله اعلام جوړ شو نو ددې معلوميت باللام يا معلوميت بالاضافة طرف ته اشاره باقي نه پاتې

کبري لهذا په دې کې تعريف المعرف نه دی بلکه تبديل تعريف بتعريف آخر دی تبديل تعريف اوتحصيل اوحاصل کې غټ فرق دی .

## د يو سوال مقدر جواب :

| |
|---|
| وَ مَا اَجَازَهُ الْكُوْفِيُّوْنَ مِنْ تَرْكِيْبِ الثَّلٰثَةِ الْاَثْوَابِ وَ شِبْهِهٖ مِنَ الْعَدَدِ الْمُعَرَّفِ بِاللَّامِ الْمُضَافِ |
| اوهغه چې جائز کړي کوفيانو د ترکيب نه الثلثة الاثواب او د دې مشابه د عدد نه چې معرف باللام او مضاف وي |
| اِلٰى مَعْدُوْدِهٖ نَحْوُ الْخَمْسَةُ الدَّرَاهِمِ وَ الْمِأَةُ الدِّيْنَارِ ضَعِيْفٌ قِيَاساً وَ اِسْتِعْمَالاً اَمَّا قِيَاساً فَلِمَا |
| خپل معدود طرف ته لکه الخمسة الدراهم او المأة الدينار ضعيف دی قياسا او استعمالا هرچې قياسا دی نو د دې |
| ذُكِرَ مِنْ لُزُوْمِ تَحْصِيْلِ الْحَاصِلِ وَ اَمَّا اِسْتِعْمَالاً فَلِمَا ثَبَتَ |
| وجهې نه چې کوم ذکر شو د لزوم د تحصيل د حاصل نه او هرچې استعمالا دی نو د دې وجهې نه چې ثابت شوې دی |
| مِنَ الْفُصَحَاءِ مِنْ تَرْكِ اللَّامِ قَالَ ذُو الرِّمَّةِ ع ثَلٰثُ الْاَثَافِيْ وَ الدِّيَارُ الْبَلَاقِعُ وَ اَمَّا مَا جَاءَ فِي الْحَدِيْثِ مِنْ قَوْلِهٖ |
| د فصحاوو نه د پريخودو د لام ويلي دي ذوالرمه ثلث الاثافي والديار البلاقع او هغه چې راغلي په حديث د نبي کريم |
| عَلَيْهِ السَّلَامُ بِالْاَلْفِ الدِّيْنَارِ فَعَلَى الْبَدَلِ دُوْنَ الْاِضَافَةِ. |
| صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې بالالف الدينار نو د ابنا په بدل نه په اضافت. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : ستا د تجريد المضاف من التعريف شرط منقوض اومات دی په الثلاثة الاثواب الخمسة الدراهم او المأة الدينار وغيره سره ځکه چې په دې کې مضاف د الف لام نه ، نه دی خالي شوی نو تجريد المضاف والاشرط باطل شو او د کوفي نحويان په هغه اعداد کې کوم چې خپل معدود تميز طرف ته مضاف وي تعريف باللام يې جائز کړي دي .

**جواب** : د کوفي نحويانو په هغه اعداد کې کوم چې خپل اعداد طرف ته مضاف وي تعريف باللام جائز کول ضعيف دي.

**اغراض دجامي** : ترکيب: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : من په الثلثة الاثواب باندې داخليدل صحيح نه دی ځکه چې من حرف جر دی او حرف جر په اسم باندې داخليږي اسم د مفرد قسم دی او الثلثة الاثواب د امرکب دی .

**جواب** : الثلثة الاثواب دا د ترکيب په تاويل کې دی او ترکيب اسم دی .

المعرف باللام : په دې عبارت کې شارح تعین دمراد کوي چې د شبهه نه مراد هغه اسم دي کوم چې معرف باللام وي اوخپل معدود طرف ته مضاف وي مثال لکه الثلثة الاثواب ، الخمسة الدراهم او المأة الدینار .

قیاساً واستعمالاً : په دې عبارت سره شارح دضعف صورت بیانوي چې داضعیف دي دقیاس په لحاظ اودا استعمال په لحاظ سره اوقیاس دلحاظ نه ددې وجې نه چې په دې صورت کې تحصیل دحاصل خرابي لازم راځي استعمال دلحاظ نه ځکه چې دفصحاء نه ترک دلام ثابت دي په دې باندې د ذوالرمه شاعر شعر په دلیل کې پیش کړي دي ثلث الاثافي والدیار البلاقع ، په دې کې ثلث خپل معدود طرف ته په غیر دلام نه مضاف دي .

لفظي تحقیق : الاثافي دا ثفیة جمع ده هغه کاڼړي ته وایي چې په کوم باندې کټوی ایخودي شي او دا دري کاڼړي دي .

بلاقع : په دې عبارت سره شارح د بلاقع دمعنی بیان کوي چې بلاقع د بلقع جمع ده ددې معنی ده خالي داوبو اود ګیاه نه .

دیار بلاقع : په دې عبارت سره شارح ددیار بلاقع معنی بیانوي چې دیار بلاقع هغه ځایونه ته وایي کوم چې داوبو او ګیاه نه خالي وي .

ترجمه دشعر : په نغري باندې کټوی ایخودو دپاره دري کاڼړي او وران ځایونه .

اماما جاء : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي .

سوال : تا په تجرید المضاف کې دالتعریف شرط دصحیح ثابتیدو دپاره ذکر شوو مثالونو لره ضعیف اود غیر فصحاو کلام ګرځولې دي لیکن دنبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دي چې : اغسلوا یوم الجمعة ولو اشتریتم نصف الصاع بالالف الدینار ( دجمعې په ورځ غسل کوئ اګرکه تاسو نیم صاع داوبو د زرو ( ۱۰۰۰ ) دینارو په بدله کې اخلئ ) ، ددې په باره کې ستاسو څه رأی ده ؟ په دې کې الالف اسم عدد دي کوم چې خپل معدود الدینار طرف ته مضاف دي اوپه دې باندې لام دتعریف موجود دي ولې داهم ضعیف اوغیر فصیح دي داسې ویل نا ممکن دي ځکه چې دا د افصح العرب او دافصح الفصحاء تاج العرب والعجم بادشاه فصاحت وبلاغت کلام اوکلام الملوک ملوک الکلام وینا ده .

**جواب** : دنبي كريم ﷺ به وينا كې الالف ، الدينار طرف ته مضاف نه دي بلكه الالف مبدل منه او الدينار ددې نه بدل دي .

## دا ضافت لفظي تعريف :

| |
|---|
| وَ الْإِضَافَةُ اللَّفْظِيَّةُ عَلَامَتُهَا اَنْ يَكُوْنَ الْمُضَافُ صِفَةً اِحْتِرَازٌ عَمَّا اِذَا لَمْ يَكُنْ صِفَةً نَحْوُ غُلَامُ زَيْدٍ |
| اود اضافت لفظي علامت دادې چې وي به مضاف صفت دا احتراز دي د هغه نه چې نه وي صفت لكه غلام زيد |
| مُضَافَةً إِلَى مَعْمُوْلِهَا اِحْتِرَازٌ عَمَّا اِذَا كَانَتْ مُضَافَةً إِلَى غَيْرِ مَعْمُوْلِهَا نَحْوُ مُصَارِعُ الْبَلَدِ |
| چې مضاف وي خپل معمول طرف ته احترازدي دهغه نه چې مضاف وي غير معمول طرف ته لكه مصارع البلد |
| وَكَرِيْمُ الْعَصْرِ مِثْلُ ضَارِبُ زَيْدٍ مِنْ قَبِيْلِ اِضَافَةِ اِسْمِ الْفَاعِلِ إِلَى مَفْعُوْلِهِ وَحَسَنُ الْوَجْهِ مِنْ قَبِيْلِ |
| او كريم العصر لكه ضارب زيد د قبيلې د اضافت د اسم فاعل نه خپل مفعول طرف ته او حسن الوجه د قبيلې د |
| اِضَافَةِ الصِّفَةِ الْمُشَبَّهَةِ إِلَى فَاعِلِهَا. |
| اضافت دصفت مشبه نه خپل فاعل طرف ته. |

**خلاصه دمتن** : دصاحب دكافيې دعبارت حاصل دادې چې داضافت لفظيه علامت دادې چې دمضاف صيغه دداسې صفت وي چې خپل معمول ( يعني خپل فاعل يا مفعول ) طرف ته مضاف وي مثال لكه ضارب زيد او حسن الوجه .

**اغراض دجامي** : الاضافة: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې اللفظية صفت دې د موصوف محذوف چې الاضافة دي .

علامتها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي :

**سوال** : دمصنف رحمه الله قول المعنوية مبتدا ده او ان يكون المضاف الخ مصدر په تاويل دكون سره ددې خبر دي حالانكه خبر په مبتدا باندې حمل وي اودلته حمل صحيح نه دي ځكه چې اضافت معنويه د مضاف غير صفة نوم نه دي بلكه اضافت معنويه خو دنسبت په تقدير د حرف جر نوم دي .

**جواب** : كون المضاف غير صفة داد المعنوية خبر نه دي بلكه دا خبر دي دمبتدا محذوف چې علامتها دي مبتدا اوخبر جمله ده او خبر دي دمعنويه .

المضاف: په دې عبارت كې شارح دضمير مرجع بيان كړي ده چې دضمير مرجع مضاف دي .

احترازٌ عما اذا لم يكن: په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې مضافة الى معمولها قيد احترازي دي په دې عبارت سره احتراز دي د هغه صيغې دصفت نه کوم چې خپل معمول طرف ته مضاف نه وي بلکه غير معمول طرف ته مضاف وي مثال لکه مصارع البلد او کريم العصر په دې مثالونو کې مضاف اګرچې صيغه دصفت ده ليکن خپل معمول طرف ته مضاف نه دي ځکه چې البلد او العصر دانه فاعل دي اونه مفعول به دي بلکه مفعول فيه دي .

من قبيل: په دې عبارت کې شارح دممثل لـه دتعين بيـان کوي چې ضارب زيد دصفت دهغې صيغې مثال دي کوم چې خپل معمول مفعول به طرف ته مضاف کوي .

من قبيل: په دې عبارت سره شارح دممثل له دتعين بيان کوي چې حسن الوجه دصفتِ مشبه مثال دي کوم چې خپل معمول فاعل طرف ته مضاف کوي .

## داضافت لفظي فائده :

| وَلَا تُفِيْدُ الْإِضَافَةُ اللَّفْظِيَّةُ فَائِدَةً إِلَّا تَخْفِيْفًا لَا تَعْرِيْفًا وَلَا تَخْصِيْصاً لِكَوْنِهَا فِيْ |
|---|
| او فائده نه ورکوي اضافت لفظي هيڅ فائده مګر د تخفيف نه د تعريف او نه د تخصيص د وجهې د کيدو نه په |
| تَقْدِيْرِ الْإِنْفِصَالِ فِي اللَّفْظِ لَا فِي الْمَعْنٰى بِأَنْ يَسْقُطَ بَعْضُ الْمَعَانِيْ عَنْ مُلَاحَظَةِ الْعَقْلِ بِإِزَاءِ مَا |
| تقدير د انفصال په لفظ کې نه په معنی کې چې ساقط شي بعضې معاني دملاحظې دعقل نه په مقابلې د هغه |
| يَسْقُطُ مِنَ اللَّفْظِ بَلِ الْمَعْنٰى عَلٰى مَا كَانَ عَلَيْهِ قَبْلَ الْإِضَافَةِ وَ التَّخْفِيْفِ اللَّفْظِيِّ إِمَّا فِيْ |
| چې ساقطيږي د لفظ نه بلکه معنی وي په هغه حال باندې چې وه مخکې د اضافت نه او تخفيف لفظي يا به په |
| لَفْظِ الْمُضَافِ فَقَطْ بِحَذْفِ التَّنْوِيْنِ حَقِيْقَةً مِثْلُ ضَارِبُ زَيْدٍ أَوْ حُكْمًا مِثْلُ حَوَاجُّ بَيْتِ اللّٰهِ أَوْ بِحَذْفِ |
| لفظ دمضاف کې وي فقط په حذف دتنوين سره حقيقةً لکه ضارب زيد او يا حکماً لکه حواج بيت الله او يا په حذف د |
| نُوْنِي التَّثْنِيَةِ وَالْجَمْعِ مِثْلُ ضَارِبَا زَيْدٍ وَضَارِبُوْا زَيْدٍ وَإِمَّا فِيْ لَفْظِ الْمُضَافِ إِلَيْهِ فَقَطْ بِحَذْفِ الضَّمِيْرِ وَاسْتِتَارِهِ |
| نون دتثنيې او دجمع سره لکه ضاربا زيد وضاربوا زيد او يا په لفظ دمضاف اليه کې فقط په حذف دضمير او دمستتر |
| فِي الصِّفَةِ كَالْقَائِمِ الْغُلَامِ كَانَ أَصْلُهُ الْقَائِمُ غُلَامُهُ حُذِفَ الضَّمِيْرُ مِنْ غُلَامِهِ وَ |
| کولو د دې نه په صفت کې لکه القائم الغلام چې وو اصل د دې القائم غلامه نو حذف کړې شو ضمير د غلامه نه او |
| اسْتُتِرَ فِي الْقَائِمِ وَ أُضِيْفَ الْقَائِمُ إِلَيْهِ لِلتَّخْفِيْفِ فِي الْمُضَافِ إِلَيْهِ فَقَطْ وَ إِمَّا فِي الْمُضَافِ |
| مستتر شو په القائم کې او اضافت وشو دالقائم دې طرف ته دپاره د تخفيف په مضاف اليه کې فقط او يا په مضاف |
| وَ الْمُضَافِ إِلَيْهِ مَعًا نَحْوُ زَيْدٌ قَائِمُ الْغُلَامِ أَصْلُهُ قَائِمٌ غُلَامُهُ فَالتَّخْفِيْفُ فِي الْمُضَافِ |
| او مضاف اليه په دواړو کې يوځاې لکه زيد قائم الغلام چې اصل د دې قائم غلامه وو نو تخفيف په مضاف کې په |

بِحَذْفِ التَّنْوِيْنِ وَ فِي الْمُضَافِ إِلَيْهِ بِحَذْفِ الضَّمِيْرِ وَ اسْتِتَارِهٖ فِي الصِّفَةِ.

حذف دتنوين سره اوپه مضاف اليه کې په حذف دضمير سره اوپه مستترکولوسره په صفت کې.

**خلاصه دمتن**: صاحب د کافيې په دې عبارت کې داضافت لفظيه فائده ذکر کوي اضافت لفظيه فقط تخفيف في اللفظ فائده ورکوي تعريف يادتخصيص معنوي فائده نه ورکوي.

**اغراض دجامي**: الاضافة اللفظية: په دې عبارت کې شارح دتفيد دضمير مرجع متعين کوي چې د تفيد دضمير مرجع اضافت لفظيه دې مطلق اضافت نه دې.

فائدة الا تخفيفا: په دې عبارت کې دا بيانوي چې دتخفيفا قيد احترازي دې په دې سره احتراز دې دتعريف اودتخصيص نه ځکه چې اضافت لفظيه دتعريف اوتخصيص فائده نه ورکوي.

لكونها: په دې عبارت سره شارح داضافت لفظيه دتعريف اودتخصيص دفائدې نه ورکولو وجه بيانوي چې اضافت لفظيه دتعريف اودتخصيص فائده ځکه نه ورکوي چې اضافت لفظيه کې مضاف اومضاف اليه داضافت نه مخکې عامل اومعمول وي اوعامل دخپل معمول نه منفصل وي اواضافت حقيقيه داتصال تقاضا کوي اودعامليت اودمعموليت معنى داضافت نه وروستو هم باقي پاتې کيږي نو انفصال هم باقي پاتې کيږي ګويا چې په حقيقت کې اضافت نشته دې ددې وجې نه اضافت لفظيه دتعريف اودتخصيص فائده نه ورکوي.

في اللفظ لا في المعنى: په دې عبارت کې شارح دا بيانوي چې د في اللفظ قيد احترازي دې په دې سره دتخفيف في المعنى نه احتراز دې ځکه چې اضافت لفظيه دتخفيف في المعنى فائده نه ورکوي.

بأن يسقط بعض المعاني: په دې عبارت کې دتخفيف في المعنى صورت بيانوي ددې صورت دادې چې دلفظ نه دبعضې حروفو دساقطيدو په مقابله کې بعضې معاني هم ساقط شي ليکن اضافت لفظيه دتخفيف في المعنى فائده نه ورکوي پس معاني چې څنګه داضافت نه مخکې باقي وو همدارنګې داضافت نه وروستو به هم باقي وي.

والتخفيف اللفظي: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي.

**سوال**: مصنف رحمه الله دتخفيفا نه وروستو في اللفظ ويلي دي في المضاف يې ولې نه دي ويلي حالانکه د اللفظ نه مراد مضاف دي.

**جواب**: دجواب حاصل دادې چې في اللفظ يې ځکه وويلو ځکه چې تخفيف صرف دمضاف

سره خاص نه دي بلکه ددې درې (۳) صورتونه دي (۱) تخفيف فقط په مضاف کې وي . (۲) يا تخفيف فقط په مضاف اليه کې وي . (۳) يا تخفيف په مضاف او په مضاف اليه دواړو کې وي که تخفيفاً في اللفظ په خاې في المضاف يې ويلي وي نو شبه وه چې تخفيف فقط دمضاف سره خاص دي که تخفيف فقط په مضاف کې وي نو ددې دوه (۲) صورتونه دي : (۱) يا به مضاف مفرد وي ، (۲) اويا به مضاف تثنيه اوجمع وي ، که مضاف مفرد وي نو په دې کې تخفيف د حذف تنوين په ذريعه حاصليږي برابره خبره ده که حذف دتنوين حقيقةً وي ياحکماً وي دحقيقةً مثال لکه ضارب زيد په اصل کې دا ضارب زيداً وو داضافت دوجې نه تنوين ساقط شو ، دحذف د تنوين حکماً مثال لکه حواج بيت الله ، حواج په اصل کې حواجج وو په وزن د مساجد ددې تنوين دغير منصرف کيدو دوجې نه داضافت نه مخکې ساقط وو بيا داضافت د وجې نه اګر چې تنوين حقيقةً ساقط نه شو ليکن حکماً ساقط شو .

دحکماً مطلب دادې که وي نو داضافت د وجې نه به ساقط کيږي که مضاف تثنيه اوجمع وي نو بيا حذف دنون په ذريعه تخفيف حاصليږي مثال لکه ضاربآ زيد داپه اصل کې ضاربان زيداً وو داضافت دوجې نه نون ساقط شو اوضاربو زيد داپه اصل کې ضاربون زيداً وو داضافت دوجې نه نون ساقط شو تخفيف فقط په مضاف اليه کې وي نو ددې صورت دادې چې دمضاف اليه نه ضمير حذف شي اوپه صيغه د صفت کې دا مقدر ومنلې شي مثال لکه القائم الغلام داپه اصل کې القائم غلامه وو دغلام نه ضمير حذف شو اوپه القائم کې دا مستتر ومنل شو که تخفيف په مضاف اومضاف اليه په دواړو کې وي مثال زيد قائم الغلام دا په اصل کې قائم غلامه وو په مضاف کې تخفيف حاصل وي دحذف نون په ذريعه اوپه مضاف اليه کې دحذف ضمير په ذريعه دمضاف مضاف اليه نه ضمير حذف شو دې لره په صيغه دصفت کې مستتر ومنلو .

## په اضافت لفظي کې په تخفيف د تفريع بيان :

| وَمِنْ ثَمَّ أَيْ مِنْ جِهَةِ وُجُوْبِ إِفَادَةِ الْإِضَافَةِ اللَّفْظِيَّةِ التَّخْفِيْفِ وَ انْتِفَاءِ كُلٍّ وَاحِدٍ مِنَ التَّعْرِيْفِ وَالتَّخْصِيْصِ |
|---|
| اوددې وجهې نه يعني دجهت دوجوب دافادې داضافت لفظي تخفيف اوانتفاء دهريو دتعريف اوتخصيص نه |
| جَازَ تَرْكِيْبُ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ حَسَنِ الْوَجْهِ بِإِضَافَةِ الصِّفَةِ إِلَى مَعْمُوْلِهَا وَ جَعْلِهَا صِفَةً |
| جائزدې ترکيب د مررت برجل حسن الوجه په اضافت دصفت سره خپل معمول ته اوګرخولې يې دې صفت دپاره د |

لِلنَّكِرَةِ فَمِنْ جِهَةِ اَنَّهَا لَمْ تُفِدْ تَعْرِيْفًا جَازَ هٰذَا التَّرْكِيْبُ وَامْتَنَعَ تَرْكِيْبُ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ حَسَنِ الْوَجْهِ

نکرې نو د دې وجهې نه فائده نه ورکوي د تعریف نو جائز دی دا ترکیب او ممتنع دی ترکیب د مررت بزید حسن الوجه

فَلَوْ اَفَادَتْ تَعْرِيْفًا لَمْ يَجُزِ الْاَوَّلُ لِلُزُوْمِ كَوْنِ الْمَعْرِفَةِ صِفَةً

نو که چیرته یې فائده ورکولې د تعریف نو نه به وي جائز اول مثال د وجهې د لزوم د کیدو د معرفې نه صفت د پاره

لِلنَّكِرَةِ وَ لَجَازَ الثَّانِيْ لِكَوْنِ الْمَعْرِفَةِ اِذَنْ صِفَةً لِلْمَعْرِفَةِ

د نکرې او جائز به وي دویم مثال د وجهې د کیدو د معرفې نه په هغه وخت کې چې وي صفت د پاره د معرفې

وَ الْمُرَادُ اَنَّ الْمُشَارَ اِلَيْهِ بِثَمَّ وَهُوَ مَجْمُوْعُ اُمُوْرٍ ثَلٰثَةٍ وُجُوْبُ اِفَادَةِ الْاِضَافَةِ اللَّفْظِيَّةِ التَّخْفِيْفَ

او مراد دا دی چې مشار الیه په ثَمَّ سره په مجموع کې درې امور دي وجوب د افادې د اضافت لفظي تخفیف او

انْتِفَاءِ التَّعْرِيْفِ وَ انْتِفَاءِ التَّخْصِيْصِ يَسْتَلْزِمُ جَوَازَ التَّرْكِيْبِ الْاَوَّلِ وَامْتِنَاعَ الثَّانِيْ وَلَا يَلْزَمُ

انتفاء د تعریف او انتفاء د تخصیص مستلزم دی جواز د ترکیب د اول مثال او امتناع د دویم مثال او نه لازمیږي به

مِنْ ذٰلِكَ اَنْ يَّكُوْنَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ تِلْكَ الْاُمُوْرِ دَخْلٌ فِيْ ذٰلِكَ الْاِسْتِلْزَامِ بَلْ يَجُوْزُ اَنْ يَّكُوْنَ بِاعْتِبَارِ بَعْضِهَا

دې سره چې وي د دې هر یو درې امورو د پاره دخل په دې استلزام کې بلکې جائز دی چې وي په اعتبار د بعضو

فَلَا يَرِدُ اَنَّهُ لَا دَخْلَ فِيْ ذٰلِكَ الْاِسْتِلْزَامِ لِانْتِفَاءِ التَّخْصِيْصِ.

سره نو نه وارديږي اعتراض چې نشته دی دخل په دې استلزام کې د وجهې د انتفاء د تخصیص نه.

**خلاصه دمتن** : د دې ځای نه په ماقبل باندې د تفریع بیان دی ځکه چې اضافت لفظیه فقط تخفیف فائده ورکوي د دې وجې نه مررتُ برجل حسن الوجه ترکیب جائز دی ځکه چې حسن الوجه د نکره کیدو په وجه رجل د نکرې صفت جوړیدی شي او مررت بزید حسن الوجه ترکیب ممتنع دی ځکه چې حسن الوجه د نکره کیدو په وجه د معرفې زید صفت نه شي جوړیدی.

**اغراض دجامي** : من جهة: په دې عبارت کې شارح د ثَمَّ مشار الیه متعین کوي چې د ثَمَّ مشار الیه درې (۳) څیزونه دي : (۱) اضافت لفظیه د تخفیف فائده ورکوي . (۲) اضافت لفظیه د تعریف فائده نه ورکوي . (۳) اضافت لفظیه د تخصیص فائده نه ورکوي .

ترکیب: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : جاز فعل او مررت برجل حسن الوجه د دې فاعل دی حالانکه دا فاعل نه شي جوړیدی ځکه چې فاعل اسم وي او اسم د مفرد قسم دی او دا مرکب او جمله ده .

**جواب** : دا د ترکیب په تاویل کې دی او ترکیب اسم او مفرد دی لهذا دې لره فاعل جوړول

صحيح دي .

**بالاضافة:** په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي :

**سوال :** سائل سوال كوي چې كيدې شي چې جواز ددې مثال سره خاص وي ددې نه غير په بل مثال كې جائز نه وي حالانكه داسې نه دي بلكه مررتُ برجل شريف النسب والامثال هم جائز دي .

**جواب :** باضافة الصفة سره شارح ددې سوال جواب وركوي چې مررت برجل حسن الوجه نه دغه خاص مثال اوماده مراد نه ده بلكه مراد دادې چې صيغه دصفت خپل معمول طرف ته مضاف وي اونكره صفت جوړ كړې شي برابره خبره ده كه دغه ماده وي اويابله ماده وي .

**فمن جهة:** په دې عبارت شره شارح متفرع عليه بيانوي دامثال د دري امورو نه په دويم امر يعنې انتفاء تعريف باندې متفرع دي حاصل دتفريع دادې چې اضافت لفظيه دتعريف فائده نه وركوي ددې وجې نه مررت برجل حسن الوجه تركيب جائز دي ځكه چې په دې كې موصوف رجل نكره اوددې صفت حسن الوجه هم داضافت لفظيه كيدو دوجې نه نكره ده لهذا دموصوف او صفت په مينځ كې مطابقت پيدا شو .

اومررت بزيد حسن الوجه والاتركيب ممتنع دي ځكه چې په دې كې موصوف زيد معرفه ده اوصفت حسن الوجه نكره ده ځكه چې دا اضافت لفظيه دي لهذا د موصوف اودصفت په مينځ كې مطابقت نشته دي كه اضافت لفظيه دتعريف فائده وركولې نو معامله به برعكس وه اول تركيب به ممتنع وي ځكه چې په دې صورت كې دمعرفې نكره صفت جوړيدل لازم راتلو اودويم تركيب به جائز وي ځكه چې په دې صورت كې معرفه به د معرفې صفت وي .

**والمراد:** په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي :

**سوال :** اول تركيب يعنې مررتُ برجل حسن الوجهِ جواز اودويم تركيب مررت بزيد حسن الوجه په امتناع كې انتفاء دتخصيص څه دخل نشته دي بلكه دامتفرع عليه دي افاده دتخصيص اوانتفاء دتعريف باندې نو بيا امور ثلاثه لره د ثَمَّ مشاراليه جوړيدل څنګه صحيح شو ولې چې د اول تركيب جواز مستلزم افاده دتخفيف ده كوم چې په دې كې موجود ده اودويم تركيب دامتناع مستلزم انتفاء تعريف دي جواز اوامتناع كې دتخصيص څه دخل نشته دي لهذا انتفاء دتخصيص لره د ثَمَّ مشار اليه جوړول نه دي په كار .

**جواب** : مجموعه امور ثلاثه لره د ثُمَّ مشار اليه دجوړيدونه دا نه لازميږي چې امورو ثلاثه نه هر يو ته هغه استلزام يعني داول ترکيب جواز ددويم ترکيب په امتناع کې دخل وي بلکه کيدې شي چې دا استلزام داکثر په اعتبار سره وي نو دللاکثر حکم الکل قاعدې لاندې مجموعه امور ثلاثه لره مشار اليه جوړ کړه اګرچې په تفريع کې دخل دوو (۲) ته دي .

## په اضافت لفظيه کې په تخفيف نور تفريعات :

| وَ مِنْ جِهَةِ اَنَّهَا تُفِيْدُ تَخْفِيْفًا جَازَ تَرْكِيْبُ الضَّارِبَا زَيْدٍ وَ الضَّارِبُوْا زَيْدٍ لِحُصُوْلِ |
|---|
| اوددې وجهې نه چې دا فائده ورکوي دتخفيف نوجائزدې ترکيب دالضاربازيداودالضاربوازيد د وجهې دحصول |
| التَّخْفِيْفِ بِحَذْفِ النُّوْنِ وَ امْتَنَعَ الضَّارِبُ زَيْدٍ لِعَدَمِ التَّخْفِيْفِ لِاَنَّ تَنْوِيْنَ الضَّارِبِ اِنَّمَا سَقَطَ |
| د تخفيف په حذف دنون سره اوممتنع دي الضارب زيد د وجهې د عدم تخفيف نه ځکه تنوين د الضارب دا ساقط |
| لِلْاَلِفِ وَ اللَّامِ لَا لِلْاِضَافَةِ وَلَا شَكَّ اَنَّهُ لَا دَخْلَ فِيْ هٰذَا التَّفْرِيْعِ |
| شوې دې د الف لام د وجهې نه ، نه د اضافت د وجهې او نشته شک چې نشته دخل په دې تفريع کې د وجهې د |
| لِاِنْتِفَاءِ التَّعْرِيْفِ وَلَا لِاِنْتِفَاءِ التَّخْصِيْصِ بَلْ يَكْفِيْ فِيْهِ وُجُوْبُ التَّخْفِيْفِ فَقَطْ وَ عَلٰى هٰذَا |
| انتفاء د تعريف نه او نه د انتفاء د تخصيص نه بلکې کافي دي په دې کې وجوب د تخفيف فقط او بناء په دې |
| كَانَ الْاَنْسَبُ تَقْدِيْمَ هٰذَا الْفَرْعِ لٰكِنَّهُ اَخَّرَهُ لِكَثْرَةِ لَوَاحِقِهٖ . |
| باندې وومناسب تقديم ددې فرعې ليکن وروستو يې کړو دوجهې دکثرت لواحقونه . |

**خلاصه دمتن** : وجاز سره صاحب دکافيې دا بيانوي چې اضافت لفظيه خو دتخفيف فائده ورکوي ددې وجې نه الضاربا زيدا والضاربو زيد تراکيب جائزدي اوالضاربا زيد ترکيب ممتنع دي .

**اغراض دجامي** : <u>من جهة</u> : په دې عبارت سره شارح متفرع عليه بيانوي چې مثال دامور ثلاثه نه اول امر يعني وجوب تخفيف باندې متفرع دي ځکه چې اضافت لفظيه دتخفيف فائده ورکوي ددې وجې نه الضاربازيدا والضاربوزيد تراکيب جائز دي اوالضارب زيد ترکيب ممتنع دي .

<u>لحصول</u> : په دې عبارت سره شارح ددغه دواړو ترکيبونو دجواز وجه بيانوي چې په دې کې د حذف نون دوجې نه تخفيف حاصل دي .

<u>لعدم التخفيف</u> : په دې عبارت سره شارح دالضارب زيد دعدم جواز وجه بيانوي چې دا ترکيب ځکه ممتنع دي چې په دې کې تخفيف نه دي حاصل شوي ولې چې د الضارب تنوين سقوط د الف لام دوجې نه دي داضافت دوجې نه ، نه دي .

ولا شک: ددې ځاې نه شارح يو تمهيد بيانوي دهغه اعتراض دپاره کوم چې په وعلى هذا سره بيانوي ، تمهيد دادې چې داکومه تفريع شوې ده چې الضارب زيد او الضاربو زيد والاترکيب جائز او الضارب زيد والاترکيب ناجائز دي دا متفرع دي په فقط اضافت لفظيه افاده تخفيف باندې په دې تفريع کې انتفاء دتخصيص اوانتفاء تعريف ته ذره برابر هم دخل نشته دي .

وعلى هذا: په دې عبارت سره شارح يو سوال رانقل کوي او په لکنه سره ددې سوال جواب ورکوي :

**سوال** : مصنف رحمه الله دپاره مناسب دا وو چې دويمه تفريع يې په اوله تفريع باندې مقدم کړې وې ځکه چې دويمه تفريع متفرع ده په امر واحد باندې کوم چې وجوب دتخفيف دي او اوله تفريع متفرع دي په امرينو باندې کوم چې وجوب تخفيف او انتفاء دتعريف دي نو دويم تعريف په منزله دمفرد اواوله تفريع په منزله دمرکب کې شوه اومفرد دمرکب نه مقدم وي لهذا دويمه تفريع په اوله تفريع باندې مقدم کول په کار وو .

**جواب** : په لکنه سره شارح ددې جواب ورکوي چې واقعي مناسب دغه وو چې دوهمه تفريع په اوله تفريع باندې مقدم کړې وې ليکن مصنف رحمه الله دوهمه تفريع ددې وجې نه مؤخرکړه چې ددې مباحث اولواحق کثيردي مثلا په دې کې دامام فراءرحمه الله اختلاف اودلائل دي چې دې لره په تفصيل سره ذکر کيږي ددې وجې نه يې دويمه تفريع مؤخر کړه په اوله تفريع باندې .

## په اضافت لفظي کې د نحويانو اختلاف :

| |
|---|
| خِلَافًا لِلْفَرَّاءِ فَإِنَّهُ يُجَوِّزُ تَرْكِيْبَ الضَّارِبُ زَيْدٍ لِأَنَّهُ تَوَهَّمَ أَنَّ دُخُوْلَ لَامِ التَّعْرِيْفِ إِنَّمَا |
| خلافاثابت دي فراءلره ځکه چې داجائزکوي ترکيب دالضارب زيد ځکه چې ده وهم کړي چې دخول دلام تعريف دا |
| هُوَ بَعْدَ الْإِضَافَةِ فَحَصَلَ التَّخْفِيْفُ بِحَذْفِ التَّنْوِيْنِ بِسَبَبِ الْإِضَافَةِ ثُمَّ عَرَفَ بِاللَّامِ وَ |
| وي پس داضافت نه نوحاصل شوتخفيف په حذف دتنوين سره په سبب داضافت بيايې معرف کړوپه لام سره او |
| أَجَابَ الْمُصَنِّفُ عَنْهُ فِيْ شَرْحِهٖ بِأَنَّهُ غَيْرُ مُسْتَقِيْمٍ لِأَنَّ الْقَوْلَ بِتَأَخُّرِ اللَّامِ الْمُتَقَدِّمَةِ |
| جواب ورکړي مصنف ددې نه په خپل شرحه کې چې دا صحيح نه دي ځکه قول په وروستو کولو د لام چې مقدم |
| حِسًّا عَلَى الْإِضَافَةِ مُجَرَّدُ ادِّعَاءٍ مُخَالِفٍ لِلظَّاهِرِ. |
| دي په حسي طورسره په اضافت باندې صرف ددعوى ده اومخالف دي دظاهرسره . |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې دامام فراء رحمه الله دالضارب زيد ترکيب په باره کې اختلاف

بیانوي اودامام فراء رحمه الله په دې باره کې څلور (۴) دلیلونه ذکر کوي ددې جواب ورکوي په ذکر شوي عبارت کې دامام فراء اول دلیل دی چې ددې مکمل تفصیل اودمصنف رحمه الله دطرف نه ددې جوابات په شرحه کې را روان دي :

**اغراض دجامي : فانه یجوز ترکیب** : په دې عبارت کې شارح دامام فراء رحمه الله اختلاف ذکر کوي امام فراء رحمه الله الضارب زید ترکیب ته جائز وایي اوپه دې باندې امام فراء رحمه الله څو دلائل هم پیش کړي دي چې هغه دلائلو لره صاحب دکافیې په تفصیل سره ذکر کوي اود هغې جواب هم په تفصیل سره ورکوي .

**امالانه** : په دې عبارت کې شارح دامام فراء رحمه الله داول دلیل بیان کوي :

**اول دلیل دامام فراءرحمه الله** : په الضارب زید کې په الضارب باندې الف لام داضافت نه وروستو داخل شوي دي اوددې دخول نه مخکې داضافت دوجې نه تنوین ساقط شوي وو ځکه چې دحذف تنوین دوجې نه کوم تخفیف حاصل شوي دي هغه داضافت لفظیه په سبب سره دي دالف لام دسبب نه ، نه دي ځکه چې الف لام وروستو داخل شوي دي .

**واجاب** : په دې عبارت سره صاحب د کافیې په خپله شرح کې امام فراء رحمه الله ته جواب ور کړي دي چې امام فراء رحمه الله دا ویلي دي چې په الضارب زید کې د لام دخول د اضافت نه مؤخر دي دا توهم او دعوی محض بلا دلیل او د ظاهر او د حس خلاف دي ځکه چې ظاهر دغه ده چې دلام دخول د اضافت نه مخکې دي .

## دامام فراءرحمه الله اول دلیل او د هغې جواب :

| وَ أَمَّا لَمَّا وَقَعَ فِيْ شِعْرِ الْأَعْشٰى مِنْ قَوْلِهِ اَلْوَاهِبُ الْمِأَةِ الْهِجَانِ وَ عَبْدِهَا فَإِنَّ قَوْلَهُ وَ عَبْدِهَا بِالْجَرِّ |
|---|
| اوچې کله واقع شو په شعر داعشی کې دده داقول الواهب المأة الهجان وعبدها ځکه قول دده وعبدها په جرسره |
| مَعْطُوْفٌ عَلَى الْمِأَةِ فَصَارَ الْمَعْنٰى بِاِعْتِبَارِ الْعَطْفِ اَلْوَاهِبُ عَبْدِهَا فَهُوَ مِنْ بَابِ الضَّارِبُ زَيْدٍ |
| معطوف دي په مأة باندې نووګرځیده معنی په اعتبار دعطف دالواهب عبدها سره نودا دقبیلې دباب دالضارب زید |
| فَكَمَا لَا يَمْتَنِعُ ذٰلِكَ حَيْثُ أَتٰى بِهٖ بَعْضُ الْبُلَغَاءِ لَا يَمْتَنِعُ هٰذَا |
| نه دي نولکه څنګه چې نه دي ممتنع داپه داسې شان چې راتګ کړي په دې باندې بعضې بلغاونودا جائزنه دي |
| فَأَجَابَ الْمُصَنِّفُ عَنْهُ بِقَوْلِهٖ وَضَعْفُ الْوَاهِبِ الْمِائَةِ الْهِجَانِ وَعَبْدِهَا يَعْنِيْ أَنَّ هٰذَا الْقَوْلَ ضَعِيْفٌ لَا يَقْوٰى |
| نوجواب ورکړو مصنف ددې نه په دې قول وضعف الواهب المائة الهجان وعبدها سره یعنې داقول ضعیف دي قوي |

فِي الْفَصَاحَةِ بِحَيْثُ يُسْتَدَلُّ بِهِ لِمَا عَرَفْتَ مِنْ اِمْتِنَاعِ

نه دي په فصاحت کي په داسې شان چې استدلال کړي په دې سره دوجهې دهغې نه چې تاوپيژنده د امتناع د

مِثْلِ اَلضَّارِبُ زَيْدٍ لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ فِي الْإِضَافَةِ وَلَا يَخْفٰى اَنَّ فِيْهِ شَوْبَ مُصَادَرَةٍ عَلَى

الضارب زيدمثال دوجهې دعدم فائدې په اضافت کې اوپټه دې نه وي چې په دې کې شائبه دمصادرة على

الْمَطْلُوْبِ اَللّٰهُمَّ اِلَّا اَنْ يُقَالَ الْمُرَادُ بِهِ اَنَّهُ ضَعِيْفٌ فِي الْاِسْتِدْلَالِ بِهِ اِذْ لَا نَصَّ

المطلوب ده اللهم مګرکه داوويلې شي چې مرادپه دې سره ضعيف دي په استدلال کولوکې خکه چې نشته نص

فِيْهِ عَلَى الْجَرِّ فَاِنَّهُ يَحْتَمِلُ النَّصْبَ حَمْلاً عَلَى الْمَحَلِّ اَوْ عَلٰى اَنَّهُ

په دې کې په جرباندې خکه هغه احتمال لري د نصب د وجهې د حمل نه په محل باندې او يا په دې بناء چې دا

مَفْعُوْلٌ مَعَهُ اَوْ لِاَنَّهُ قَدْ يُتَحَمَّلُ فِي الْمَعْطُوْفِ مَا لَا يُتَحَمَّلُ فِي الْمَعْطُوْفِ

مفعول معه دي او يا دې وجهې نه چې کله احتمال لري په معطوف کې دهغه څه چې احتمال نه لري په معطوف

عَلَيْهِ كَمَا فِي رُبَّ شَاةٍ وَ سَخْلَتِهَا حَيْثُ جَازَ هٰذَا التَّرْكِيْبُ وَ لَمْ يَجُزْ رُبَّ سَخْلَتِهَا بِاِدْخَالِ رُبَّ

عليه کې لکه په رب شاة وسخلتها کې په داسې شان چې جائزدي داترکيب اونه دي جائزرب سخلتهاپه داخلولودرب

عَلٰى سَخْلَتِهَا بِدُوْنِ الْعَطْفِ وَالْبَيْتِ بِتَمَامِهِ:

په سخلتها باندې په غير دعطف نه اوبيت پوره داسې دي:

| عُوْذًا يُزَجِّيْ خَلْفَهَا اَطْفَالُهَا | اَلْوَاهِبُ الْمِائَةِ الْهِجَانِ وَ عَبْدِهَا |
|---|---|
| دده پسې وروستووي نوي پيداشوي ماشومان | بخښونکي دسلوسپينواوښاونواودمريانونخلي |

اَيْ مَمْدُوْحُهُ الْوَاهِبُ الْمِائَةِ الْهِجَانِ اَيْ اَلْبِيْضِ مِنَ النُّوْقِ يَسْتَوِيْ فِيْهِ الْجَمْعُ وَالْوَاحِدُ وَالْهِجَانُ

يعني ممدوح دشاعربخښونکي دسلواوښانويعني دسپينواوښانوچې برابردي په دې کې جمع اوواحداوالهجان

صِفَةٌ لِلْمِائَةِ اَوْ بَدَلٌ عَنْهَا اَوْ مِنْ قَبِيْلِ الثَّلٰثَةِ الْاَثْوَابِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الْكُوْفِيَّةِ وَ عَبْدُهَا

صفت دي دمائة دپاره اويابدل دي دې نه اويادقبيلې دالثلاثة الاثواب نه دي لکه دامذهب دکوفيانودي وعبدها

اَيْ رَاعِيْهَا تَشْبِيْهًا لَهُ بِالْعَبْدِ لِقِيَامِهِ بِحَقِّ خِدْمَتِهَا اَوْ عَبْدِهَا حَقِيْقَةً

يعني راعيهاداتشبيه دراعي ده دعبدسره دوجهې د اودريدو نه په حق د خدمت دده کې او يا عبد دي حقيقتا په

بِاِضَافَتِهِ لِاَدْنٰى مُلَابَسَةٍ عُوْذًا بِالذَّالِ الْمُعْجَمَةِ جَمْعُ عَائِذٍ اَيْ حَدِيْثَاتِ النَّتَائِجِ حَالٌ مِنَ الْمِائَةِ

اضافت ددې سره دادنى ملابست نه عوذاپه ذال معجمه سره جمع دعائذده يعني نومولوداحال دي دالمائة نه

يُزَجِّيْ بِالزَّاءِ الْمُعْجَمَةِ وَالْجِيْمِ عَلٰى صِيْغَةِ الْمَعْلُوْمِ الْمُذَكَّرِ اَيْ يَسُوْقُ وَفَاعِلُهُ ضَمِيْرُ الْعَبْدِ وَاَطْفَالُهَا

يزجي په زاء معجمه سره اوجيم په صيغې دمعلوم مذکرسره يعني نخلي اوفاعل دده ضمير دعبددي أواطفالها

| |
|---|
| مَنْصُوبٌ عَلَى الْمَفْعُوْلِيَّةِ اَوْ عَلٰى صِيْغَةِ الْمَجْهُوْلِ الْمُؤَنَّثِ وَ اَطْفَالِهَا مَرْفُوْعٌ عَلٰى اَنَّهُ مَفْعُوْلُ مَا لَمْ يُسَمَّ |
| منصوب دي بنابر مفعوليت اويا په صيغې دمجهول مؤنث او اطفالها مرفوع دي بنا په دې چې دامفعول مالم يسم |
| فَاعِلُهُ وَ حَقِيْقَةُ الْاَمْرِ لَا تَنْكَشِفُ اِلَّا بَعْدَ مَعْرِفَةِ حَرَكَةِ حَرْفِ الرَّوِيْ مِنَ الْقَصِيْدَةِ. |
| فاعله دي اوحقيقت دامرنه ښكاره كيږي مګرپس دمعرفت دحركت دحرف روي دقصيدې. |

**خلاصه دمتن:** لكه څنه چې مخكې تير شو چې صاحب دكافيې په دې عبارت كې هم داما فراء باقي دليلونه ذكر كوي اودهغې جوابوه وركوي چې دهغې تفصيل په شرح كې را روان دي نو دلته هم د امام فراء رحمه الله دليل بيانوي او بيا صاحب د كافيې د هغه دليل جواب وركوي

**اغراض دجامي:** واماالما وقع: په دې عبارت كې شارح دامام فراء رحمه الله ددوهم دليل بيان كوي

**دويم دليل دامام فراء رحمه الله:** امام فراء رحمه الله داعشي شاعر دشعر نه استدلال كوي او محل داستشهاد دشعر داجمله ده چې الواهب المأة الهجان وعبدها.

**طريقه داستدلال:** په وعبدها كې واو عاطفه دي اود عبدها عطف په المأة باندې دي نو په ذريعه دعطف عبارت داسې جوړيږي چې الواهب عبدها اودابعينه د الضارب زيد په شان دي ځكه چې مضاف معرف باللام دي اومضاف اليه هم معرفه ده نو لكه څنګه چې د الواهب عبدها تركيب جائز دي ځكه چې داديو فصيح اوبليغ شاعر كلام دي همدارنګې الضارب زيد هم جائز كيدل په كار دي.

**فاجاب المصنف:** په دې عبارت كې غرض دشارح صاحب دكافيې دامام فراء ددويم دليل جواب نقل كوي اوددې وضاحت اوتشريح كوي دجواب تشريح داده چې دشاعر داقول ضعيف دي په دې كې دفصاحت په اعتبار سره دومره قوت نشته دي چې ددې نه استدلال وكړې شي او وجه داده چې په الواهب عبدها كې اضافت لفظيه دي اواضافت لفظيه دتخفيف فائده وركوي اوهغه نه حاصليږي ځكه چې دالواهب تنوين سقوط دالف لام دوجې نه دي داضافت دوجې نه ، نه دي مثال لكه په الضارب زيد كې اضافت لفظيه دي اوداضافت لفظي نه فائده دتخفيف نه حاصليږي نو دا جائز نه دي همدارنګې الواهب عبدها تركيب هم جائز نه دي.

**ولا يخفی:** په دې عبارت کې شارح دذکر شوي جواب په تقرير باندې اعتراض کوي :

**اعتراض** : په دې جواب کې مصادرة على المطلوب يعنې د دَور بوي دي ځکه چې مطلوب او مدعی يعنې الضارب زيد دامتناع ثبوت دليلِ خصم يعنې الواهب عبدها په ابطال باندې موقوف دي اوبيا دوباره ددليلِ خصم ابطال موقوف شوي دي دمطلوب په اثبات باندې يعنې الف موقوف دي په ب باندې اوبيا ب موقوف دي په الف باندې دې ته دَور او مصادرة على المطلوب وايي

**فائده** : مصادرة المطلوب په اصطلاح دمناظره کې دې ته وايي چې دعوی لره ددليل جز جوړ کړي شي يا په نورو لفظونو کې نتيجه لره دقياس جز جوړ کړي شي اوددې څلور (۴) قسمونه دي : (۱) مطلوب اودعوی (نتيجه) بعينه دليل وي . (۲) مطلوب مدعی (نتيجه) ددليل جُزء وي . (۳) په مطلوب او دعوی (نتيجه) باندې دليل موقوف وي . (۴) په دعوی او مطلوب (نتيجه) باندې ددليل جزء موقوف وي .

اودلته مصادرة على المطلوب داسې دي چې اثباتِ مطلوب يعنې دالضارب زيد امتناع د مخالف دليل په الواهب عبدها په ابطال باندې موقوف دي بيا مصنف رحمه الله دمخالف دليل الواهب عبدها په ابطال سره دخپل مطلوب اثبات باندې موقوف کړي دي چې د الواهب عبدها ترکيب ځکه ضعيف او باطل دي چې دادالضارب زيد په شان دي .

**سوال** : سائل سوال کوي چې مصنف رحمه الله شوب مصادرة على المطلوب وويل مصادرة على المطلوب يې ولې ونه ويل دشوب (شائبه) په اضافت کې څه حکمت دي ؟ .

**جواب** : ددې سوال جواب دادې چې دمصادرة على المطلوب څلور (۴) قسمونه دي اودلته ددې څلورو نه يو صورت هم نشته دي نه خومطلوب بعينه دليل دي ، اونه مطلوب ددليل جزء دي ، اونه په مطلوب باندې دليل موقوف دي ، اونه په مطلوب باندې ددليل جزء موقوف دي بلکه دلته مطلوب لره دهغه دليل دابطال دليل جوړ کړي شو چې په کوم دليل سره خصم دمطلوب نقيض (يعنې ددې په شان دترکيب جواز) لره ثابت کړي دي اوپه دې کې حقيقةً مصادرة على المطلوب خو نه دي البته دمصادرة على المطلوب شائبه موجود ده ځکه چې دمطلوب اثبات موقوف دي په هغه دليل دابطال باندې کوم چې دمطلوب نقيض لره ثابتوي اودلته مطلوب لره دهغه دليل دابطال دليل جوړ کړي شوي دي چې دکوم دليل سره خصم دمطلوب نقيض ثابت

کړي دي نو دا عین مصادرة نه دي بلکه په دې کې د مصادرة علی المطلوب شبه او شائبه ده ددې وجې نه شارح شوب مصادرة علی المطلوب ویلي دي بعینه مصادرة علی المطلوب یې نه دي ویلي .

اللهم : دا عبارت دمذکوره جواب په تقریر باندې مبني دي په دې باندې چې دضعف فاعل قول دي اوس اللهم سره دذکر شوي جواب ددویم تقریر بیان دي دا تقریر مبني دي په دې باندې چې دضعف فاعل استدلال دي چې دهغې حاصل دادې چې په دې قول سره دفراء نحوي استدلال ضعیف دي بیا شارح ددې استدلال دضعف دوه (۲) وجهې بیان کړي دي :

**اوله وجه دضعف : اذلانص :** په دې عبارت کې شارح دضعف داولې وجهې بیان کوي چې دا استدلال به هله قوي وي چې کله په عبدها باندې جر متعین اومتیقن وي حالانکه دعبدها جر یقیني اومنصوص نه دي بلکه په دې کې دنصب هم احتمال دي دنصب دوه (۲) وجهې دي :

(۱) : ددې وجې نه منصوب دي چې دا المأة په محل باندې محمول دي او المأة محلاً منصوب دي په دې اعتبار سره چې دالواهب مفعول به دي . (۲) : واو په معنی د مع دي او عبدها منصوب دي بناء بر مفعول معه .

**دوهمه وجه دضعف : اولانه :** په دې عبارت کې دضعف ددویمې وجهې بیان کوي چې کله یو څیز په معطوف علیه کې جائز وي اوپه معطوف کې جائز نه وي لکه رب شاة وسخلتها رب په ذریعه د عطف وسخلتها معرفه باندې داخل دي اودا جائز دي اودعطف نه په غیر رب سخلتها ناجائز دي ځکه چې رب په نکره داخلیږي په معرفه نه داخلیږي ځکه چې رب دتقلیل اوتکثیر دپاره راځي او تقلیل اوتکثیر دا په نکره کې کیږي په معرفه کې خو تعین وي داسې کیدې شي چې الواهب وعبدها عطف سره جائز وي اودعطف نه په غیر الواهب عبدها ناجائز وي .

**والبیت بتمامه :** په دې عبارت سره شارح مکمل شعر پیش کوي چې پوره مطلب واضح شي :

| اَلْوَاهِبُ الْمِائَةِ الْهِجَانِ وَ عَبْدِهَا | عُوْذًا یُزَجِّي خَلْفَهَا اَطْفَالَهَا |
|---|---|
| بخښونکي دسلوسپینواوښانواودمریانو | نخلي دده پسې وروستو نوي پیداشوي بچي |

**ای بالبیض :** په دې عبارت سره شارح دغیر مشهور تفسیر په مشهور سره کوي چې الهجان سپینې اوښې ته وایي .

**ای ممدوحه :** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال**: الواهب صیغه دصفت اسم فاعل او المأة قبل الاضافة ددې معمول مفعول به دي حالانکه صیغه دصفت دعمل دپاره دشپږو (۲) امورو نه په یو باندې اعتماد ضروري دي اودلته یو هم موجود نه دي لهذا دا اضافت لفظیه نه شي کیدې چې اضافت لفظیه نه شو یقیناً دا به اضافت معنویه وي ځکه چې او س دخصم ددې نه استدلال کول اوضعف سره ددې جواب ورکول به ټول باطل شي.

**جواب**: الواهب خبر دي د مبتدا محذوف چې ممدوحه دي اودایه دغې مبتدا محذوف باندې اعتماد کوي اوعمل کوي لهذا عمل به صحیح وي او ضافت لفظیه به وي اودخصم استدلال په وضعف سره ددې جواب ټول به صحیح وي.

**تبصره**: لیکن مولانا وسیم ګل باسولي رحمه الله دمولانا محمد عمر کابلي رحمه الله داسوال اوجواب رد کړي دي هغه وایي چې په الواهب باندې الف لام موصونه دي واهب صیغه دصفت په دغې باندې اعتماد کوي اوعمل کوي ددې وجې نه په ممدوحه سره شارح دجامي غرض او مقصد هغه نه دي کوم چې علامه کابلي رحمه الله ذکر کړي دي بلکه غرض اومقصد دهغه سوال مقدر جواب ورکول دي چې الواهب ددوه (۲) حالونه خالي نه دي: (۱) یا به مبتدا وي، (۲) اویا به خبر وي. که مبتدا وي نو خبر چیرته دي که خبر وي نو مبتدا چیرته ده نو شارح جامي رحمه الله ممدوحه لفظ مقدر کړو اوجواب یې ورکړو چې الواهب خبر دي دمبتدا محذوف چې ممدوحه دي.

یستوي: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال**: المائة مونث او الهجان مذکر دي هسدارنګې المائة جمع معنوي او الهجان مفرد دي ددې وجې نه الهجان دالمائة صفت جوړول صحیح نه دي تذکیراً اوتانیثاً افراداً وجمعاً ددوي په مینځ کې مطابقت نشته دي همدارنګې د الهجان تفسیر په البیض سره کول هم صحیح نه دي ځکه چې الهجان مفرد او البیض جمع دد

**جواب**: الهجان په واحد اوجمع دواړو کې برابر استعمالیږي دلته دجمع په حیثیت استعمالیږي نو دالهجان تفسیر په البیض سره کول صحیح دي اوجمع د جماعة په تاویل کې ده اوجماعة مؤنث دي لهذا الهجان دالمائة صفت جوړول هم صحیح شو

الهجان صفة : په دې عبارت کې شارح د الهجان د ترکيب بيان کوي چې د دې په ترکيب کې د
(۳) احتمالات دي (۱) داد المائة صفت دي (۲) داد المائة نه بدل دي . (۳) داد الثلثة الاثواب
قبيلې څخه دي يعني اسم عدد خپل معدود طرف ته مضاف دي لکه څنګه چې داد کوفي
مذهب دي

ای راعيها : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : د عبدها ضمير المائة الهجان طرف ته راجع دي او عبد دې طرف ته مضاف دي معنى
يې داشي چې د هغه سلو (۱۰۰) اوښو غلام دا معنى صحيح نه ده ځکه چې د عبد معنى مملو
ده او د المائة الهجان د پاره مملوکيت نه شي کيدي ځکه چې دا غير ذوي العقول دي .

**جواب** : شارح د دې دوه (۲) جوابات ور کړي دي .

**جواب (۱)** : په راعيها سره اول جواب ور کوي چې د لته د عبد حقيقي معنى مراد نه ده بلک
مجازي معنى مراد ده چې د عبد مجازي معنى راعي ده په دواړو کې مناسبت او علاقه داده چ
لکه څنګه چې عبد د خپل مولى د خدمت د پاره هر وخت مستعد او تيار او سيږي نو همدا رنګ
راعي هم د ځاروو د خدمت د پاره هر وخت مستعد او تيار او سيږي

**جواب (۲)** : او عبدها : په دې عبارت سره شارح دويم جواب ور کوي چې عبد په خپله حقيق
معنى کې دي او د عبد اضافت ضمير د مائة طرف ته د ادنى ملابست او مناسبت د وجې نه د
هغه ادنى ملابست دا دې چې مولى غلام لره د ځارو خدمت د پاره اخستي دي نو ګويا د هغ
ځاروو غلام شو

عوذا : په دې عبارت سره شارح د عوذا لغوي تحقيق بيانوي چې عوذا په ذال سره د عائذ جمع ده
حديثات النتائج : په دې عبارت سره شارح د معنى بيان کوي چې حديثات النتائج په معنى نو
پيدا شو بچو والا

حال من المائة : په دې عبارت سره شارح ترکيب بيانوي چې دا حال دي د المائة نه

يزجي : په دې عبارت سره شارح تحقيق صيغوي ، ترکيبي او معنوي بيانوي په اعتبار د صيغ
سره په دې کې دوه (۲) احتماله دي (۱) واحد مذکر غائب د باب د افعال نه په معنى د يسو
دي او د دې فاعل ضمير مستتر دي چې د دې مرجع عبد دي او اطفالها منصوب ده بناء بر مفعو

به (۲) داصيغه دواحد مؤنث غائب فعل مضارع مجهول دباب دتفعيل نه او **اطفالها** دامرفوع دي بناء برنائب دي

**وحقيقة الامر**: په دي عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال**: سائل سوال کوي چې په او **على صيغة المجهول** کې او دترددد اوتشکيک دپاره دي نو دصيغې دترجي حالت مشکوک شو په قطعي اويقيني طور سره معلوم نه شو چې داد معلوم صيغه ده يا د مجهول

**جواب**: شارح په **وحقيقة الامر** سره ددې جواب ورکوي چې ددې حقيقت دحرف روي يعنې د قصيدې آخري اشعار دحرف حرکت دليدو نه منکشف او ظاهريږي که باقي اشعارو کې په آخري حرف باندې نصب وي نو **اطفالها** به منصوب وي او **يزجي** به دمعلوم صيغه وي اوکه آخري حرف مرفوع وي نو **يزجي** به مجهول وي او **اطفالها** به مرفوع وي بناء برنائب فاعل.

## دامام فراء رحمه الله دويم دليل او د هغې جواب:

| |
|---|
| وَ إِمَّا لِأَنَّهُ قَاسَهُ عَلَى اَلضَّارِبِ الرَّجُلِ وَ الضَّارِبُکَ فَأَجَابَ الْمُصَنِّفُ عَنْهُ بِقَوْلِهِ |
| اويادې وجې نه چې فراء قياس کړي په الضارب الرجل والضاربک باندې نوجواب ورکړو مصنف ددې نه په دې قول |
| وَ إِنَّمَا جَازَ الضَّارِبُ الرَّجُلِ يَعْنِيْ کَانَ الْقِيَاسُ عَدَمَ جَوَازِهِ لِانْتِفَاءِ التَّخْفِيْفِ بِزَوَالِ التَّنْوِيْنِ |
| سره چې په تحقيق سره جائزدي الضارب الرجل يعني ووقياس عدم جوازدوجې دانتفاء دتخفيف نه په زوال دتنوين |
| بِاللَّامِ لٰکِنَّهُ جَازَ حَمْلاً عَلَى الْوَجْهِ الْمُخْتَارِ فِي الْحَسَنِ الْوَجْهِ وَ هُوَ جَرُّ الْوَجْهِ بِالْإِضَافَةِ |
| باللام سره لکن جائزکړي دي دوجې دحمل کولونه په غوره وجه په الحسن الوجه کې اوهغه جردوجه دي په اضافت |
| وَ فِيْهِ وَجْهَانِ آخَرَانِ رَفْعُهُ عَلَى الْفَاعِلِيَّةِ وَ نَصْبُهُ عَلَى التَّشْبِيْهِ بِالْمَفْعُوْلِ وَ |
| سره اوپه دي کې دوه وجهې دي نورې يو د رفع ده بنابرفاعليت اوبل نصب دي دوجې دتشبيه نه دمفعول سره او |
| وَجْهِ الْحَمْلِ اشْتِرَاکُهُمَا فِيْ کَوْنِ الْمُضَافِ صِفَةً وَالْمُضَافِ إِلَيْهِ جِنْساً مُعَرَّفَتَيْنِ بِاللَّامِ وَهٰذَا الْإِشْتِرَاکُ مَفْقُوْدٌ |
| وجه دحمل اشتراک ددواړودي په کيدو دمضاف کې صفت اومضاف اليه جنس معرفه باللام اودا اشتراک مفقود |
| بَيْنَ الضَّارِبُ زَيْدٍ وَ الْحَسَنُ الْوَجْهِ فَقِيَاسُهُ عَلَيْهِ قِيَاسٌ مَعَ الْفَارِقِ. |
| دي په مينځ د الضارب زيد والحسن الوجه کې نوقياس ددې په الضارب زيد باندې قياس مع الفارق دي |

**خلاصه دمتن**: په دي عبارت کې دامام فراء رحمه الله دريم دليل بيانوي چې دي لره صاحب د کافيې ذکر کوي اوددې جواب ورکوي چې ددې مکمل تفصيل په اغراض جامي کې لاندې

وکوري

**اغراض دجامي** : واما لانه قاسه: په دې عبارت سره شارح دامام فراء رحمه الله دريم دليل بيانوي

**دريم دليل** : امام فراء نحوي رحمه الله الضارب زيد په الضارب الرجل باندې قياس کړي دي چې الضارب الرجل باندې په دواړو کې علت مشترکه دادې چې په دې کې د اضافت لفظيه دوجې نه تخفيف في اللفظ نه حاصليږي ځکه چې په الضارب الرجل د الضارب تنوين سقوط د الف لام دوجې نه شوي دې داضافت دوجې نه . نه دې او الضارب الرجل بالاتفاق جائز دي لهذا د الضارب زيد ترکيب هم جنز کيدل په کار وو .

فاجاب: په دې عبارت کې شارح دامام فراء ددريم دليل جواب په تفصيل سره بيانوي چې ددې اصل دادې چې دقياس تقاضا دغه وه چې د الضارب الرجل ترکيب جائز نه دې ځکه چې په دې کې اضافت لفظيه دتخفيف فائده نه ورکوي ځکه چې دتنوين زوال اوسقوط د الف دوجې نه شوي دي نه داضافت دوجې نه ليکن دې لره الحسن الوجه په وجه مختار باندې محمول شو اوجائز کړي شو .

وهو جر الوجه بالاضافة: په دې عبارت کې شارح په الحسن الوجه کې غوره وجه د الوجه داضافت دوجې نه مجرور کيدل دي چې په الحسن الوجه کې غوره وجه د الوجه اضافت دوجې نه مجرور کيدل دي جر ځکه مختار دي چې په الوجه باندې رفع اونصب مخدوش او قبيح دي چې الحسن الوجه جمله ده اوصفت دي دزيد اصل جمله ده جاءني زيد الحسن الوجه نو د مرفوع کيدو په صورت کې په دې کې به ضمير نه وي کوم چې موصوف زيد طرف ته راجع دي حالانکه په جمله صفتيه کې ضمير کيدل ضروري دي نصب ځکه مخدوش دي چې ددې تشبه بالمفعول دوجې نه دي او جر بالاصالة دي ځکه چې جر مختار دي

وفيه وجهان آخران: په دې عبارت سره شارح په الحسن الوجه کې د دوه (۲) وجهو بيان کوي کومې چې غير مختارې دي (۱) ددې رفع بناء برفاعليت باندې (۲) نصب دمفعول سره د مشابهت دوجې نه

الوجه دمفعول به سره ددې وجې نه مشابه ده چې الوجه په اصل کې په منزله دتميز ده يعني

الحسن الوجه په منزله د حسن وجها دي او تميز د مفعول په شان منصوب وي او الوجه مشابه بالمفعول دي بعينه مفعول نه شي جوړيدي ځکه چې الحسن لازمي دي د مفعول تقاضا نه کوي.

وجه الحمل: په دې عبارت سره شارح الضارب الرجل لره الحسن الوجه په غوره وجه باندې د محمول کيدو وجه بيانوي چې دا دواړه ترکيبونه په دوه (۲) امرونو کې مشترک دي. (۱) په دواړو کې مضاف صيغه دصفت ده چې معرف باللام دي (۲) په دواړو کې مضاف اليه جنس معرف باللام دي د دې وجې نه الضارب الرجل لره په الحسن الوجه باندې قياس کړي او جائز کړي دي ليکن دا اشتراک الضارب زيد او الحسن الوجه کې مفقود وو لهذا الضارب زيد لره په الضارب الرجل باندې قياس کول قياس مع الفارق دي.

## د امام فراء رحمه الله دريم دليل او د هغې جواب:

| |
|---|
| وَ الضَّارِبُکَ يَعْنِيْ إِنَّمَا جَازَ الضَّارِبُکَ مَعَ اَنَّ الْقِيَاسَ عَدَمُ جَوَازِهٖ لِمَا عَرَفْتَ وَ |
| او الضاربک يعني جائز شو الضاربک سره ددې چې قياس عدم جواز دي دوجې دهغه څه نه چې تا پيژندلي دي او |
| كَذَا شِبْهُهٗ وَ هُوَ الضَّارِبِيْ وَ الضَّارِبُهٗ وَ غَيْرُهُمَا فِيْمَنْ قَالَ اَيْ فِيْ قَوْلِ مَنْ |
| همدا رنګې مشابه ددې او هغه الضاربي او الضاربه او غير ددې نه دي په هغه څه کې چې وايي يعني په قول دهغه |
| قَالَ يَعْنِيْ سِيْبَوَيْهٖ وَ اَتْبَاعَهٗ اَنَّهٗ اَيْ الضَّارِبُ فِي الضَّارِبُکَ مُضَافٌ دُوْنَ مَنْ |
| چا کې چې ويلي دي يعني سيبويه او اتباع دده چې دا يعني الضارب په الضاربک کې مضاف دي نه قول دهغه چا |
| قَالَ اَنَّهٗ غَيْرُ مُضَافٍ وَ الْکَافُ مَنْصُوْبُ الْمَحَلِّ عَلَى الْمَفْعُوْلِيَّةِ وَ التَّنْوِيْنُ مَحْذُوْفٌ لِاِتِّصَالِ |
| چې وايي چې دا غير مضاف دي او کاف منصوب المحل دي بنا بر مفعوليت او تنوين محذوف دي د وجې د اتصال د |
| الضَّمِيْرِ لَا لِلْاِضَافَةِ فَاِنَّهٗ لَا يَحْتَاجُ جَوَازِهٖ اِلٰى حَمْلٍ حَمْلاً اَيْ |
| ضمير نه د اضافت د وجې نه ځکه چې محتاج نه دي جواز ددې په يو چا د حمل کولو د وجې د حمل کولو نه يعني د |
| لِمَحْمُوْلِيَّتِهٖ عَلٰى ضَارِبُکَ فَاتَّحَدَ فَاعِلُ الْمَفْعُوْلِ لَهٗ وَ الْفِعْلِ الْمُعَلَّلِ بِهٖ اَعْنِيْ جَازَ وَ بَيَانُهٗ |
| حمل کولو دي نه په ضاربک باندې نو يو شو فاعل د مفعول له او د فعل معلل به چې هغه جاز دي او بيان ددې دا دي |
| اَنَّهُمْ اِذَا وَصَلُوْا اَسْمَاءِ الْفَاعِلِيْنَ وَ الْمَفْعُوْلِيْنَ مُجَرَّدَةً عَنِ اللَّامِ بِمَفْعُوْلَاتِهَا وَ كَانَتْ مُضْمَرَ ۃٍ مُتَّصِلَاتٍ |
| چې دوي کله موصول کړي اسماء افعال او اسماء مفعول چې مجرد وي د لام نه په مفعولاتو سره او وو مضمرات متصل |
| اِلْتَزَمُوْا الْاِضَافَةَ وَلَمْ يَنْظُرُوْا اِلٰى تَحَقُّقِ تَخْفِيْفِ فَقَالُوْا ضَارِبُکَ وَ اِنْ لَمْ يَحْصُلِ التَّخْفِيْفُ |
| نو لازم يې کړو اضافت او نظر يې ونه کړو تحقق د تخفيف ته نو وويل ضاربک اګر که نه حاصليږي تخفيف |

بِالْاِضَافَةِ بَلْ بِنَفْسِ اِتِّصَالِ الضَّمِيْرِ ثُمَّ لِمَا لَمْ يَعْتَبِرُوْا التَّخْفِيْفَ فِيْ ضَارِبُكَ وَ جَوَّزُوْهُ بِدُوْنِهٖ

اضافت سره بلکې په نفس اتصال دضمیر سره د بیا هر کله چې نه وو معتبر تخفیف په ضاربک کې او جائزیې کړو په غیر

حَمَلُوْا الضَّارِبُكَ عَلَيْهِ لِاَنَّهُمَا مِنْ بَابٍ وَاحِدٍ حَيْثُ كَانَ كُلٌّ مِنْهُمَا اِسْمَ فَاعِلٍ

ددې نه نو حمل یې کړو الضاربک په دې باندې خکه چې دا دواړه دیو باب نه دي ځکه چې هریو ددې نه اسم فاعل

مُضَافاً اِلٰى مُضْمَرٍ مُتَّصِلٍ مَحْذُوْفاً تَنْوِيْنُهٗ قَبْلَ الْاِضَافَةِ لَا لِلْاِضَافَةِ وَ لَمْ يَحْمِلُوْا الضَّارِبُ زَيْدٍ

مضاف مضمر متصل ته چې محذوف دې تنوین ددې مخکې داضافت نه او نه یې دې حمل کړې الضارب زید په

عَلَيْهِ لِاَنَّهُمَا لَيْسَا مِنْ بَابٍ وَاحِدٍ وَ الدَّلِيْلُ عَلٰى اَنَّ سُقُوْطَ التَّنْوِيْنِ فِيْ ضَارِبُكَ لِاِتِّصَالِ

دې باندې خکه چې دا دواړه نه دي دیو باب نه او دلیل ددې سقوط دتنوین دې په ضاربک کې دوجې داتصال د

الْكَافِ لَا لِلْاِضَافَةِ اِنَّهَا لَوْ سَقَطَتْ بِالْاِضَافَةِ لَكَانَ يَنْبَغِيْ اَنْ يُتَصَوَّرَ ذٰلِكَ اَوَّلًا عَلٰى

کاف نه. نه داضافت دوجې که چیرته ساقط شي داضافت دوجې نه نو وي به مناسب چې متصورشي دا اولا په

وَجْهٍ يَكُوْنُ الضَّمِيْرُ مَنْصُوْبًا بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ ثُمَّ يُضَافُ وَ يُقَالُ ضَارِبُكَ كَمَا

داسې وجې سره چې وي ضمیر منصوب بنا بر مفعولیت او بیا مضاف شي او وویل شي ضاربک لکه څنګه چې

يُتَصَوَّرُ ضَارِبٌ زَيْداً ثُمَّ يُضَافُ وَ يُقَالُ ضَارِبُ زَيْدٍ وَ لَنْ يُتَصَوَّرَ ضَارِبٌ كَ فَعُلِمَ

متصور دې ضارب زیدا او بیا مضاف شوې وي او ویلې شوې وي ضارب زید او نه دې متصور ضارب ک نو معلومه شوه

اَنَّهَا سَقَطَتْ لِاِتِّصَالِ الْكَافِ لَا لِلْاِضَافَةِ وَ لِقَائِلٍ اَنْ يَّقُوْلَ لِمَ

چې دا ساقط شوې دې دوجې داتصاف دکاف نه. نه داضافت نه او جائز دې دقائل دپاره چې ووایې دخه وجې نه

لَا يَجُوْزُ اَنْ يَّكُوْنَ اَصْلُ ضَارِبُكَ ضَارِبٌ اِيَّاكَ لِلْفَصْلِ بِالتَّنْوِيْنِ ثُمَّ لِمَا اُضِيْفَ حُذِفَ

نه دې جائز چې وي اصل دضاربک ضارب ایاک دپاره دفصل په تنوین سره او بیا هر کله چې اضافت وشو حذف د

التَّنْوِيْنُ وَ صَارَ الضَّمِيْرُ الْمُنْفَصِلُ مُتَّصِلاً فَصَارَ ضَارِبُكَ وَ حَصَلَ التَّخْفِيْفُ جِدًّا ثُمَّ حُمِلَ

تنوین ته او وګرځید ضمیر منصل متصل نو وګرځید ضاربک او حاصل شو تخفیف په قطعي طور بیا یې حمل کړو

الضَّارِبُكَ عَلَيْهِ لِاَنَّهُمَا مِنْ بَابٍ وَاحِدٍ حَيْثُ كَانَ كُلٌّ مِنْهُمَا اِسْمَ فَاعِلٍ مُضَافًا

الضاربک په دې باندې خکه چې دادواړه دیو باب نه دي په داسې شان چې وو هریو ددې دواړو نه اسم فاعل مضاف

اِلٰى مُضْمَرٍ مُتَّصِلٍ مِنْ غَيْرِ اِعْتِبَارِ حَذْفِ تَنْوِيْنِهِمَا قَبْلَ الْاِضَافَةِ لَا لِلْاِضَافَةِ وَ لَمْ يَحْمِلُوْا

مضمر متصل ته په غیر د اعتبار د حذف د تنوین د دواړو مخکې داضافت نه نه د اضافت نه او نه یې دې حمل کړې

الضَّارِبِ زَيْدٍ عَلَيْهِ لِاَنَّهُمَا لَيْسَ مِنْ بَابٍ وَاحِدٍ.

الضارب زید په دې باندې خکه چې دواړه دیو باب نه. نه دي

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې دامام فراء رحمه الله څلورم دليل بيان کوي چې دې لره يې ذکر کړه اوصاحب دکافيې ددې جواب ورکوي چې ددې مکمل تفصيل لاندې په شرحه کې ذکر کيږي

**څلورم دليل دامام فراءرحمه الله** : امام فراء رحمه الله الضارب زيد په الضاربک باندې قياس کړي دي په دواړو کې علت مشترکه دادې چې په دې کې داضافت لفظيه نه **تخفيف في اللفظ** نه حاصليږي ځکه چې الضاربک کې دتنوين سقوط دالف لام دوجې نه شوي دي داضافت د وجې نه ، نه دي اوکله چې الضاربک جائز دي نو الضارب زيد به هم جائز وي .

**اغراض دجامي** : الضاربک: په دې عبارت کې صاحب دکافيې دامام فراء رحمه الله د څلورم دليل جواب ورکوي يعنې شارح ددې جواب وضاحت کوي چې نحويان خو الضاربک کې داضافت قائل نه دي بلکه هغوي وايي چې په دې کې الف لام په معنی دالذي اسم موصول دي او ضارب په معنی دضرب دي اوکاف ضمير منصوب متصل مفعول به دي اوضارب تنوين د حذف او سقوط دضمير دانصال دوجې نه دي داضافت دوجې نه ، نه دي ددې مذهب مطابق د الضاربک ترکيب دجواز دڅه حمل محتاج نه دي ځکه چې کله په الضاربک کې کوم چې دامام فراء مقيس عليه دي اضافت نشته دي .

نو دامام فراء رحمه الله الضارب زيد په الضاربک باندې قياس کول به څنګه صحيح شي اوکه په الضاربک کې اضافت ومنل شي لکه څنګه چې دامام سيبويه اود ددې د متبعينو مذهب دي نو په دې وخت کې هم امام فراء رحمه الله الضارب زيد په الضاربک باندې قياس کول صحيح نه دي ځکه چې دقياس دشرائطو نه يو شرط داهم دي چې مقيس عليه خلافِ قياس نه وي اودلته مقيس عليه يعنې الضاربک خلافِ قياس دي ځکه چې دقياس تقاضا داوه چې الضاربک ترکيب جائز نه وي ځکه چې په دې کې اضافت لفظيه دي اواضافت لفظيه فائده **تخفيف في اللفظ** نه حاصليږي ځکه چې په دې کې تنوين دسقوط دالف لام دوجې نه دې داضافت دوجې نه ، نه دي ليکن نحويانو دې لره په ضاربک باندې محمول کړي اوخلافِ قياس جائز يې ګرځولې دي .

**يعني انما جاز**: په دې عبارت کې شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې دالضاربک عطف په الرجل باندې دي .

**وكذا شبهه**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې دغه د دليل صرف په الضاربک سره نه دی بلکه د دې مشبه الضاربي الضاربه وغيره هم د دوی دليلونه دي په دې کې هم صيغه صفت معرف باللام ضمير طرف ته مضاف دی

**وهو الضاربي**: په دې عبارت کې د مشبه مصداق بيانوي چې د مشبه مصداق الضاربي او الضاربه وغيره دي

**اى قال من قال يعني سيبويه**: په دې عبارت سره شارح د مَن مصداق متعين کوي چې د مَن مصداق سيبويه او د ده متبعين دي

**اى الضارب**: په دې عبارت کې شارح د ضمير مرجع متعين کوي چې د ضمير مرجع ضارب دی کوم چې په الضاربک کې واقع دي

**دون من قال**: په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې د مصنف قول فيمن قال نه معلوميږي چې په دې کې بل مذهب هم شته دي نو شارح رحمه الله نور مذاهب بيانوي چې د هغې مذاهبو ذکر مخکې بيان شوي دي

**اى لمحموليته**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: حملاً مفعول له دی د جاز او لام محذوف دي حالانکه د مفعول له لام لره د حذف کيدو شرائطو کې يو شرط دا دي چې مفعول له او فعل معلل به د دواړو فاعل يو وي او دلته فاعل جدا دي ځکه چې د جاز فاعل ضاربک دي او د حملاً فاعل متکلم دي

**جواب**: دلته مصدر مبني للمفعول حملاً د محمول په معنی کې دي او محمول الضاربک دی لهذا فعل معلل او د مفعول له فاعل يو شو دي لره علامه جامي په فاتحد فاعل المفعول له والفعل المعلل عبارت سره بيان کړي دي

**وبيانه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: محمول او د محمول عليه په مينځ کې مناسبت ضروري دي او دلته مناسبت نشته ځکه چې الضاربک معرف باللام دی او ضاربک مجرد عن اللام دي نو ستا الضاربک لره په ضاربک باندې محمول کول څنګه درست شو

**جواب**: په دې کې يو مناسبت په مناسبت سره شو هغه دا چې د نحويانو قاعده ده

چې کله اسم فاعل او اسم مفعول مجرد عن اللام وي او دا دضمیر متصل سره یوځاي شي نو هغوي دې طرف ته داضافت التزام کوي او دې خبرې طرف ته نظر نه کوي چې په دې کې د اضافت دوجې نه تخفیف حاصل شوي دي یا نه دي حاصل شوي بلکه په غیر دحصول دتخفیف نه هم هغوي دې لره جائز کوي پس ددې قاعدې مطابق کله چې هغوي ضاربک لره دکاف ضمیر سره یوځاي کول وغوښتل نو دې طرف ته داضافت التزام یې وکړو او ضاربک یې وویلو اګر که د اضافت دوجې نه تخفیف حاصل نه شو ، نه په مضاف کې اونه په مضاف الیه کې بلکه په مضاف کې تخفیف دنفس اتصال دضمیر دوجې نه حاصل شوي دي نو کله چې نحویان د ضاربک ترکیب نه بلا اعتبار تخفیف جائز کړو نو د الضاربک اضافت هم په دې باندې قیاس او محمول کړه او جائزیې کړه اګرچې په دې کې هم داضافت دوجې نه تخفیف نه دي حاصل شوي اوپه الضاربک باندې یې ځکه محمول کړو ځکه چې دواړه دیو باب نه دي په دواړو کې مناسبت اوموافقت تامه موجود دي ځکه چې دواړه داسم فاعل صیغې دي اودواړه ضمیر متصل طرف ته مضاف دي اوپه دواړو کې تنوین داضافت نه مخکې داتصال ضمیر دوجې نه حذف شوي دي داضافت دوجې نه ، نه دي حذف شوي .

<u>ولم یحملوا الضارب زید</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : لکه څنګه چې الضاربک په ضارب باندې محمول کړي شوي دي دمناسبت دوجې نه همدغسې الضارب زید لره هم د ضاربک سره په دې اعتبار سره مناسبت دي چې دواړه داسم فاعل صیغې دي نو دې لره یې ولې محمول نه کړو ؟

**جواب** : الضارب زید اګرچې داسم فاعل واقع کیدو په اعتبار سره د ضاربک سره مناسبت لري لیکن ضمیر متصل طرف ته مضاف کیدو په اعتبار سره مناسبت نه لري ددې وجې نه الضارب زید لره په ضاربک باندې محمول کول او ددې اضافت لره یې جائز نه دي ګرځولي .

<u>والدلیل</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال** : ستا سره څه دلیل دي چې په ضاربک کې دتنوین سقوط داتصال ضمیر دوجې نه شوي دي داضافت نه سقوط دتنوین نه دي شوي اوزمونږ دعوی ده چې دتنوین سقوط د اضافت دوجې نه شوي دي

**جواب** : ددې دلیل دادي چې داضافت دوجې نه دتنوین سقوط هلته کیږي چیرته چې :

اضافت نه مخکې مضاف او مضاف الیه لره جدا کلمه متصور شي اوپه مضاف باندې تنوین ولوستل شي بیا ددې اضافت مابعد طرف ته وکړې شي چې دکومې وجې نه تنوین ساقط شي لکه الضارب زید کې داضافت نه مخکې دواړو لره جدا کول ضارب زیداً لوستل متصور کیدي شي ضارب مرفوع او زیداً بناء بر مفعولیت منصوب دي ددې نه وروستو دضارب اضافت زید طرف ته وشو چې دهغې دوجې نه دضارب نه تنوین ساقط شو لیکن په ضاربک کې دا خبره نه شي متصور کیدي چې دواړه جدا شي اوضاربک ولوستل شي دضارب رفع او ک نصب سره بناء بر مفعولیت شي ځکه چې دکاف متصل انفصال ناممکن دي لهذا په ضاربک کې دتنوین سقوط داضافت دوجې نه ، نه دي شوي بلکه اتصال دضمیر دوجې نه شوي دي .

**ولقائل:** په دې عبارت سره شارح په ذکر شوي دلیل باندې اعتراض کوي چې کیدي شي چې د ضاربک رجل ضارب ایاک وي ضمیر مفضل سره بیا چې کله ضارب لره مضاف کړې شو ایاک طرف ته نو داضافت دوجې نه دمضاف نه تنوین ساقط شو اوضمیر مفضل په متصل سره بدل شو نو په دې کې په اعلی درجه تخفیف حاصل شو . ځکه چې په مضاف اومضاف الیه دواړو کې تخفیف حاصل شوي دي په مضاف کې تنوین ساقط شو اوپه مضاف الیه کې ضمیر منفصل متصل شو چې ددې سره اختصار وشو نو علی وجه الکمال تخفیف حاصل شو بیا الضاربک په دې باندې محمول کړې شو ځکه چې دواړه دیو باب نه دي اوالضارب زید لره محمول نه کړې شو ځکه چې دواړه دیو باب نه ، نه دي .

**جواب** : ددې اعتراض جواب شارح نه دي ورکړي لیکن ددې جواب داکیدي شي چې که د ضاربک اصل ضارب ایاک وي نوداداهل عربو نه به مسموع وي لکه څنګه چې الضارب زید متصور او مسموع دي حالانکه داهل عربو نه ضارب ایاک مسموع نه دي نو ددې نه معلومه شوه چې ددې اصل ضارب ایاک متصور نه دي ، همدارنګې مونږ دا نه منو چې ضاربک په اصل کې ضارب ایاک وو ځکه چې ضمیر متصل اصل ، اومنفصل خلاف اصل دي نو په دې کې عدول داصل نه خلاف اصل ته لازم راځي چې دا باطل دي .

## دماتن دعبارت یوبل وضاحت :

| وَاعْلَمْ اَنَّا حَمَلْنَا قَوْلَهُ وَضَعْفَ الوَاهِبُ المِائَةِ الهِجَانِ وَعَبْدِهَا وَقَوْلَهُ الضَّارِبُ الرَّجُلِ وَ الضَّارِبُكَ |
|---|
| اوپوه شه چې حمل کړو مونږ داقول دمصنف وضعف الواهب المائة الهجان وعبدها او داقول الضارب الرجل او الضاربک |

| |
|---|
| حَمْلاً عَلٰى نَظِيْرِيْهِمَا عَلَى الْاَجْوِبَةِ عَنْ اِسْتِدْلَالَاتِ الْفَرَّاءِ عَلٰى جَوَازِ الضَّارِبُ زَيْدٍ عَنْ جَانِبِ |
| دوجې دحمل کولونه په دواړومثالونوباندې په جواباتوباندې داستدلالاتو دفراءنه په جواز دالضارب زيد دطرف د |
| الْمُصَنِّفِ عَلٰى مُوَافَقَةِ بَعْضِ الشَّارِحِيْنَ وَ لَکَ اَنْ تَجْعَلَ کُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهَا اِشَارَةً اِلٰى مَسْأَلَةٍ عَلٰى حِدَةٍ |
| مصنف نه په موافقت دبعضې شارحينو اوجائزدي تاته چې ته وګرځوې هريوددې نه اشاره مسئلې جداته دوجې |
| مُنَاسِبَةٍ لِلْحُکْمِ بِاِمْتِنَاعِ الضَّارِبُ زَيْدٍ فَمَعْنٰى قَوْلِهٖ وَ ضَعُفَ الْوَاهِبُ الْهِجَانِ وَ عَبْدِهَا اَنَّهٗ ضَعُفَ |
| دمناسبت نه دحکم سره په امتناع دالضارب زيدنومعنى دقول دمصنف وضعف الواهب المائة الهجان وعبدها چې |
| عَطْفُ الْمُجَرَّدِ عَنِ اللَّامِ عَلَى الْمَحَلّٰى بِهِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ صِفَةً مُصَدَّرَةً بِاللَّامِ لِاَنَّهٗ بِتَوَسُّطِ الْعَطْفِ |
| ضعيف دي عطف دمجرد عن اللام په محلى به مضاف اليه صفت مصدر باللام باندې ځکه په توسط دعطف |
| يَصِيْرُ مِثْلَ الضَّارِبُ زَيْدٍ کَمَا عَرَفْتَ وَ اِنَّمَا لَمْ يَحْکُمْ عَلَيْهِ بِالْاِمْتِنَاعِ بَلْ بِالضُّعْفِ |
| سره ګرځي په شان دالضارب زيدلکه څنګه چې تاوپيژندل اوحکم نه شي کولې په دې باندې دامتناع بلکې دضعف |
| لِاَنَّهٗ قَدْ يُتَحَمَّلُ فِي الْمَعْطُوْفِ مَا لَا يُتَحَمَّلُ فِي الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ |
| حکم لرولې شي ځکه چې کله حمل کولې شي په معطوف کې هغه څه چې نه شي حمل کولې په معطوف عليه کې |
| وَ حِيْنَئِذٍ يَنْدَفِعُ مَا فِيْهِ مِنْ تَوَهُّمِ شَائِبَةِ الْمُصَادَرَةِ عَلَى الْمَطْلُوْبِ عَلَى التَّقْدِيْرِ الْاَوَّلِ |
| اوپه دې وخت کې دفع کيږي هغه چې وي په دې کې توهم دشائبې دمصادرې على المطلوب په اول تقدير باندې |
| وَ اِرْجَاعُ کُلٍّ مِنَ الصُّوْرَتَيْنِ الْاَخِيْرَتَيْنِ اِلٰى مَسْأَلَةٍ ظَاهِرٌ وَ يَتَضَمَّنُ الرَّدَّ عَلَى الْفَرَّاءِ فِي الْاِسْتِدْلَالِ |
| اوداراجع کولودهريودواړوآخرني صورتونو ظاهرمسئلې ته اومتضمن دي رد په فراء په استدلال باندې په |
| بِهِمَا. |
| دواړومثالوکې. |

**خلاصه دمتن:** په دې ذکر شوي متن کې شارح دماتن دعبارت وضعف الواهب المائة الهجان وعبدها ، او د الضارب الرجل او الضاربک ، په يوې بلې طريقې سره وضاحت کوي.

**اغراض دجامي:** واعلم انا حملنا: په دې عبارت کې شارح دجامي دمخکني عبارت يو بل تقرير او وضاحت کوي دماتن اقوال: (۱) الواهب المائة الهجان وعبدها. او (۲) الضارب الرجل او الضاربک ، ددې اقوالو خو يو تقرير او وضاحت مخکې تير شوي دي اودا تقرير او وضاحت عام شارحين مثلاً علامه رضي وغيره دطريقې مطابق دي چې ددې نه مقصود دفراء نحوي د استدلالاتو جوابات ورکول دي ليکن ددې ټول عبارت يو بل تقرير او وضاحت هم کيدې شي چې هغې لره په دې عبارت کې شارح د واعلم په عنوان سره ذکر کوي داهم کيدې شي چې د

ماتن به عبارت کې دې دري (۳) مثالونو نه دهر يو نه يو مستقل او جدا مسئلې طرف ته اشاره وي کوم چې دالضارب زيد دامتناع دحکم مناسب وي اوهغه په **الضارب زيد** په امتناع باندې دلالت کوي همدارنګې داول قول **ضعيف** سره دې مسئلې طرف ته اشاره ده چې **هغه اسم کوم** چې مجرد عن اللام وي ددې عطف په داسې معرف باللام باندې ضعيف دي چې **هغې طرف ته** صيغه دصفت معرف باللام مضاف وي اوضعيف ددې وجې نه دي چې **په واسطې دعطف دابه** د **الضارب زيد** په شان شي حالانکه د**الضارب زيد** ترکيب ناجائز دي نو دا**مستقل مسئله الضارب زيد** ترکيب په امتناع باندې دلالت کوي.

**وانمالم يحكم**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي:

**سوال**: کله چې دالضارب زيد ترکيب ممتنع دي نو **الواهب المائة الهجان وعبدها** ترکيب هم ممتنع کيدل په کار وو دې لره ضعيف ولې ګرځولې دي؟

**جواب**: کله ناکله په معطوف کې هغه څه جائز وي کوم چې په معطوف عليه کې جائز نه وي چې دهغې څه تفصيل مخکې تير شوي دي ددې وجې نه يې دضعف حکم لرولې دي اودامتناع حکم يې نه دې لرولي

**وحينئذ**: په دې عبارت سره شارح دا واضحه کوي چې دکله دمصنف قول **وضعف الواهب المائة الهجان وعبدها** لره مستقل مسئله وګرځولې شي نو په دې باندې **مصادرة على المطلوب** شائبې والا اشکال به هم دفع شي کوم چې په اول تقدير باندې واردېدو

**وارجاع كل من الصورتين**: په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې دويم اودريم صورت لره مستقل مسئلې طرف ته راجع کول ظاهر او واضح دي دې لره دبيان کيدو ضرورت نشته دي ليکن ددې اوسني زماني دطالبانو دپاره واضح نه دي ددې وجې نه ددې لږ مختصر شان وضاحت کيږي.

دوهم قول سره دې مسئلې طرف ته اشاره ده چې صفت معرف باللام داضافت جنس معرف باللام طرف الى ... **الوجه** په غوره وجه باندې محمول کول جائز دي اګرچې داضافت دوجې نه تخفيف حاصل نه وي

دريم قول سره دې مسئلې طرف ته اشاره ده چې دصفت معرف باللام اضافت ضمير طرف ته جائز دي په دې صفت باندې محمول کول کوم چې مجرد ... اللام وي اوضمير طرف ته مضاف

وي اګرچې د اضافت دوجې نه تخفيف حاصل نه وي

**ويتضمن**: د دې دوه (۲) مسئلو سره دفراء د استدلال رد به هم وشي هغه دا سې چې کله په الضارب الرجل او الضاربک کې د اضافت جواز په غير باندې د محمول کيدو دوجې نه شوي دې نو دا عاجز خو په خپله دغير محتاج او دغير نه سوال کوونکي شو نو د دې نه استدلال کول الضارب زيد په جواز باندې د استعاره من المستعير وسوال من الفقير يعني دفقير نه سوال کول دقبيلې نه به شي کوم چې مناسب نه دي

## د صفت موصوف او د موصوف صفت طرف ته د اضافت بيان :

| |
|---|
| وَلَا يُضَافُ مَوْصُوْفٌ إِلَى صِفَتِهِ مَعَ بَقَاءِ مَعْنَى الْمُفَادِ بِالتَّرْكِيْبِ الْوَصْفِيِّ بِحَالِهِ |
| او نه شي مضاف کولې موصوف صفت طرف ته سره دبقاء د معنى چې مستفاد ده د ترکيب وصفي نه په خپل حال |
| لِأَنَّ لِكُلٍّ مِنْ هَيْئَتَيِ التَّرْكِيْبِ الْوَصْفِيِّ وَ الْإِضَافِيِّ مَعْنًى آخَرَ لَا يَقُوْمُ أَحَدُهُمَا مَقَامَ |
| باندې ځکه د هر يو د دواړو هيئتونو د ترکيب وصفي او اضافي بله معنى ده چې نه قائميږي يو د دې دواړو نه په ځاې |
| الْآخَرِ وَ لِهٰذَا الْمَعْنٰى بِعَيْنِهِ لاَ تُضَافُ صِفَةٌ إِلَى مَوْصُوْفِهَا فَلاَ يُقَال مَسْجِدُ الْجَامِعِ |
| دبل باندې او د دې وجې نه معنى بعينه نه شي مضاف کيدې د صفت موصوف طرف ته نو نه شي ويلې مسجد الجامع |
| بِمَعْنَى الْمَسْجِدُ الْجَامِعِ وَجَرْدُ قَطِيْفَةٍ بِمَعْنٰى قَطِيْفَةٌ جَرْدٌ خِلاَفاً لِلْكُوْفِيَّةِ فَإِنَّ مَسْجِدَ الْجَامِعِ عِنْدَهُمْ |
| په معنى د المسجدُ الجامع او جرد قطيفة په معنى د قطيفة جرد خلاف ثابت دې کوفيانو لره ځکه مسجد الجامع د دوي |
| بِمَعْنَى الْمَسْجِدِ الْجَامِعُ وَجَرْدُ قَطِيْفَةٍ بِمَعْنٰى قَطِيْفَةٌ جَرْدٌ مِنْ غَيْرِ فَرْقٍ. |
| په نزد په معنى د المسجد الجامع دې او جرد قطيفة په معنى د قطيفة جرد دې په غير د څه فرق نه |

**خلاصه د متن**: صاحب د کافيې په دې عبارت کې دوه (۲) قاعدې بيانوي موصوف د دې صفت طرف ته نه شي مضاف کيدې (۲) او د صفت اضافت هم موصوف طرف ته نه شي کيدې

(۱) د دې يو وجه خو علامه جامي رحمه الله ذکر کوي.

(۲) دوهمه وجه داده چې د موصوف اضافت صفت ته په دې صورت کې اجتماع د ضدينو لازم راځي ځکه چې صفت په اعراب کې د موصوف تابع وي او مضاف اليه هميشه مجرور وي نو بيا څيز په يو وخت کې مرفوع او مجرور کيدل لازم راځي او دا جائز نه دي

(۳) دريمه وجه داده چې عدم جواز داده چې موصوف اخص من الصفة او يا مساوي الصفة وي او مضاف عام وي د مضاف اليه نه يا مباين وي نو يو څيز په يو وخت کې احتمال [illegible]

اومساوي اومبائن كيدل لازم راخي داهم اجتماع دضدينو لازم راخي.

**اغراض دجامي** : مع بقاء : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال** : په دې کې څه حرج دي چې موصوف دخپل صفت طرف ته مضاف کړي شي په دې حيثيت سره چې معنى وصفي معنى اضافي طرف ته منتقل کړي شي کله چې ترکيب وصفي ختم شي نو ددې په ځاې به ترکيب اضافي راشي نو ددې په جواز کې څه اشکال نه پاتې کيږي

**جواب** : موصوف دصفت طرف ته اضافت على الاطلاق ممتنع نه دي بلکه هغه وخت ممتنع دي چې په وخت داضافت کې معنى وصفي اوترکيب وصفي په خپل حال باقي پاتې کيدل معنى اضافي طرف ته منتقل نه وي.

لان لکل: په دې عبارت سره شارح دذکر شوي قاعدې وجه بيانوي چې دهيئت ترکيب وصفي معنى بله ده او دهيئت ترکيب اضافي معنى بله ده دهر يو معنى جدا جدا اويوه معنى دبلې نه مختلف ده اوددې نه ځوک دبل قائم مقام نه شي کيدي دترکيب وصفي معنى ده تقييد الشيء بالشيء مع صحة حمل الثاني على الاول ، چې يو ځيز په بل ځيز مقيد کول چې ددويم ځيز حمل کول په اول ځيز باندې صحيح وي ، مثال لکه زيد الفاضل.

او د ترکيب اضافي معنى ده نسبة شيء الى شيء مع عدم صحة حمل الثاني على الاول على الاغلب . د يو ځيز بل ځيز طرف ته نسبت کول ليکن د دويم ځيز په اول ځيز باندې حمل کول غالباً صحيح نه وي مثال لکه غلام زيد کله چې دهر يو معنى جدا جدا او مختلف وي نو ديو ترکيب نه د بل ترکيب معنى مراد اخستل جائز نه دي.

**فائده** : د على الاغلب قيد يې ځکه ولږولو چې په اضافت بيانيه کې دمضاف اليه حمل په مضاف باندې صحيح کيږي

ولهذا المعنى: په دې عبارت سره شارح دابيانوي چې صفت دموصوف طرف ته دنه مضاف کيدو وجه بعينه هغه ده کومه چې صفت طرف ته دنه مضاف کيدو وجه ده

تضاف: په دې عبارت کې شارح ددې خبرې وضاحت کوي چې دصفت عطف په موصوف باندې دي

فلا يقال: په دې عبارت سره شارح په دواړو قاعدو باندې تفريع كول بيانوي كله چې د موصوف اضافت صفت طرف ته نه شي كيدې او د صفت اضافت موصوف طرف ته نه شي كيدې نو په المسجد الجامع كې موصوف لره صفت طرف ته مضاف كول مسجد الجامع او په قطيفة جرد كې صفت لره موصوف طرف ته مضاف كول جرد قطيفة نه شي ويلې يعني تركيب اضافي نه تركيب وصفي معنى مراد نه شي اخستې.

خلافاللكوفية: په دې عبارت كې شارح بيان د اختلاف كوې كوفيان حضرات موصوف د صفت طرف ته اضافت او صفت موصوف طرف ته اضافت جائز ګڼړي د هغوې په نزد تركيب اضافي نه د تركيب وصفي معنى مراد اخستې شي

## د موصوف صفت طرف ته په مضاف كولو باندې اعتراض:

| |
|---|
| وَ يَرِدُ عَلَى الْقَاعِدَةِ الْأُوْلَى وَ هُوَ قَوْلُهُ لاَ يُضَافُ مَوْصُوْفٌ إِلَى صِفَتِهِ |
| او وارديږي اعتراض په اوله قاعده چې هغه دا قول د مصنف دې چې نه مضاف كيږي موصوف خپل صفت ته |
| مِثْلُ مَسْجِدِ الْجَامِعِ وَ جَانِبِ الْغَرْبِيِّ وَصَلٰوةُ الْأُوْلٰى وَ بَقْلَةُ الْحَمْقَاءِ فَإِنَّ فِيْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ هٰذِهِ التَّرَاكِيْبِ أُضِيْفَ |
| لكه مسجد الجامع او جانب الغربي او صلوة الاولى او بقلة الحمقاء خكه چې په هريو د دې تراكيبو نه مضاف شوې |
| مَوْصُوْفٌ إِلَى صِفَتِهِ فَإِنَّ الْجَامِعَ صِفَةُ الْمَسْجِدِ وَ الْغَرْبِيُّ صِفَةُ الْجَانِبِ وَ الْأُوْلَى |
| مضاف خپل صفت طرف نه خكه الجامع دا صفت دې د پاره د المسجد او الغربي دا صفت دې د الجانب او الاولى دا |
| صِفَةُ الصَّلٰوةِ وَ الْحَمْقَاءُ صِفَةُ الْبَقْلَةِ وَ قَدْ أُضِيْفَ إِلَيْهَا مَوْصُوْفَاتُهَا |
| صفت دې د الصلوة او الحمقاء دا صفت دې د البقلاء او په تحقيق سره اضافت شوې دې طرف ته موصوفات د دوې |
| وَ أُجِيْبَ بِأَنَّ مِثْلَ هٰذِهِ التَّرَاكِيْبِ مُتَأَوَّلٌ فَمَسْجِدُ الْجَامِعِ مُتَأَوَّلٌ بِمَسْجِدِ الْوَقْتِ الْجَامِعِ |
| او جواب وركړې شوې چې په شان د دې تراكيبو مؤول دې نو مسجد الجامع دا مؤول دې په مسجد الوقت الجامع سره |
| وَ ذٰلِكَ يَحْتَمِلُ مَعْنَيَيْنِ أَحَدُهُمَا أَنْ يَكُوْنَ الْوَقْتُ مُقَدَّراً فِيْ نَظْمِ الْكَلَامِ وَ يَكُوْنُ الْمَسْجِدُ مُضَافاً إِلَيْهِ |
| او دا احتمال لري د دوو معنيو د دې نه داچې وي الوقت مقدر په نظم د كلام كې او وي مسجد مضاف دې طرف |
| وَ الْجَامِعُ صِفَةٌ لِلْوَقْتِ فَيَنْدَفِعُ الْإِيْرَادُ بِوَجْهَيْنِ فَإِنَّ الْجَامِعَ لَيْسَ مُضَافاً إِلَيْهِ وَلاَ |
| ته او الجامع صفت دې د الوقت د پاره نو دفع شوا اعتراض په دوه وجهو سره خكه الجامع نه دې مضاف اليه او نه |
| صِفَةً لِلْمُضَافِ وَ ثَانِيْهِمَا أَنْ يَكُوْنَ الْوَقْتُ مَحْذُوْفاً وَ الْجَامِعُ قَائِماً مَقَامَهُ مَنُوْطاً عَلَيْهِ |
| صفت د پاره د مضاف او دويم داچې وي الوقت محذوف او الجامع قائم مقام د دې او مشتمل وي په دې باندې نو |

فَيَكُوْنُ بِمَنْزِلَةِ الصِّفَاتِ الْغَالِبَةِ فَيُضَافُ الْمَسْجِدُ إِلَيْهِ فَيَنْدَفِعُ الْإِيْرَادُ بِوَجْهٍ وَاحِدٍ وَ هُوَ

وي په منزله دصفات غالبه نومضاف شوالمسجددې طرف ته نودفع شواعتراض په يوې وجهې سره اوهغه دا

أَنَّ الْجَامِعَ لَيْسَ صِفَةً لِلْمُضَافِ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ صَلٰوةُ الْأُوْلٰى وَ بَقْلَةُ الْحَمْقَاءِ مُتَأَوَّلٌ بِصَلٰوةِ

چې نه دي الجامع صفت دپاره دمضاف اوپه همدې قياس باندې صلوة الاولى او بقلة الحمقاء دامتاول دي په صلوة

السَّاعَةِ الْأُوْلٰى وَبَقْلَةِ الْحَبَّةِ الْحَمْقَاءِ عَلَى الْاِحْتِمَالَيْنِ الْمَذْكُوْرَيْنِ لٰكِنَّ هٰذَا التَّاوِيْلَ لَا يَتَمَشّٰى فِيْ جَانِبِ الْغَرْبِيِّ

الساعة الاولى اوپه بقلة الحبة الحمقاء په دواړواحتماليو مذكوربنولكن داتاويل نه چليږي په طرف د الغربي كې

فَإِنَّهُ لَا شَكَّ أَنَّ الْمَقْصُوْدَ تَوْصِيْفُ الْجَانِبِ بِالْغَرْبِيَّةِ لَا تَوْصِيْفُ مَكَانٍ هُوَ

خكه چې نشته شک په دې کې چې مقصودهغه توصيف دالجانب دي په غربيت سره نه توصيف دمکان چې په

جَانِبُهُ بِهَا اَللّٰهُمَّ إِلَّا أَنْ يُّقَالَ هُنَاكَ مَكَانَانِ جُزْءٌ وَ كُلٌّ

طرف دغرب کې وي اې الله (زمامؤاخذه ونه کړې) مګرداچې وويل شي چې دلته دوه مکانه دي يوجزءاوبل کل

فَالْمَكَانُ الَّذِيْ أُضِيْفَ إِلَيْهِ الْجَانِبُ هُوَ الْجُزْءُ وَ الْإِضَافَةُ بَيَانِيَّةٌ وَ الْمَكَانُ الَّذِيْ

نوهغه مکان چې اضافت شوې وي دې طرف ته د الجانب نوداجزء دي اواضافت بيانيه دي اوهغه مکان طرف ته

أُعْتُبِرَ الْجَانِبُ بِالنِّسْبَةِ إِلَيْهِ هُوَ الْكُلُّ فَيَسْتَقِيْمُ الْمَعْنٰى.

چې معتبر دي دجانب په نسبت سره دې طرف ته نوهغه کُل دي نوصحيح به شي معنى.

**خلاصه دمتن** : په دواړو قاعدو باندې اعتراض كيږي صاحب دكافيې هغه اعتراض ذكر كوي اوبيا ددې اعتراض جواب وركوي اوله قاعده يعنې لايضاف موصوف الى صفته چې موصوف خپل صفت ته نه مضاف كيږي په دې باندې دا اعتراض كيږي چې مسجد الجامع وجانب الغربي وصلوة الاولى وبقلة الحمقاء په تراكيبو كې ستا قاعده ماته شوي دي خكه چې په دې ټولو تركيبونو كې موصوف خپل صفت طرف ته مضاف كيږي چې دهغې ماتن داجواب وركوي چې په دې كې تاويل شوي دي اوددې تاويل تفصيل شارح لاندې په تفصيل سره بيان كړي دي.

**اغراض دجامي** : ويرد على القاعدة الاولى: په دې عبارت سره شارح دسوال دمحل تعين كړي دي چې محلِ سوال اوله قاعده ده.

**وهو قوله** : په دې عبارت سره شارح داولې قاعدې تعين كوي چې اوله قاعده داده چې لايضاف موصوف الى صفته ، چې موصوف خپل صفت ته نه شي مضاف كيدي.

**فان في كل** : په دې عبارت كې شارح دماتن دبيان كړې سوال وضاحت كوي چې په مسجد الجامع

وجانب الغربي وصلوة الاولى وبقلة الحمقاء كې په هر تركيب كې موصوف خپل صفت طرف ته مضاف شوي دي ځكه چې الجامع دالمسجد صفت دي الغربي دالجانب صفت دي او الاولى دالصلوة صفت دي اوحمقاء د بقلة صفت دي دې طرف ته ددې خپل موصوفات مضاف شوي دي.

متأول: صاحب دكافيې ددې جواب وركوي چې دا ټول تركيبونه متأول دي په دې كې تاويل شوي دي په راتلونكي عبارت كې شارح ددې تاويلاتو وضاحت اوبيان كوي.

فمسجد الجامع: په دې عبارت كې دتاويل اودجواب وضاحت كوي چې مسجد الجامع د مع مسجد الوقت الجامع په تاويل كې دي اوپه دې تاويل كې ددوه (۲) معنو احتمال دي اوله معنى الوقت په نظمِ كلام كې مقدر دي اومسجد دې طرف ته مضاف دي او الجامع دالوقت صفت دي په دې صورت كې اعتراض په دوه (۲) وجهو سره دفع شو:

اوله وجه داده چې الجامع دمسجد مضاف اليه نه دي بلكه داد الوقت صفت دي ، دويمه وجه داده چې الجامع دا مضاف د مسجد صفت نه دي بلكه د الوقت صفت دي.

دوهم احتمال دادې چې الوقت محذوف دي اوالجامع ددې قائم مقام په دې باندې مشتمل دي په دې وخت كې الجامع چې دموصوف محذوف قائم مقام دي صفات غالبه يعنې صفات مجازيه نه به شي اوصفات غالبه هغه صفات دي چې دځه تعلق اوعلاقې دوجې نه غير موصوف دپاره صفت مقرر شوي وي ديته صفاتِ مجازيه هم ويلې شي مثال والقرآن الحكيم او القرآن العظيم كې حكيم اوعظيم دقرآن صفت واقع شوي دي حالانكه دا په حقيقت كې دقرآن صفت نه دي بلكه دصاحب قرآن صفت دي او همدارنګې دلته په حقيقت كې دالجامع موصوف الوقت دي ليكن مجازاً مسجد لره ددې موصوف جوړ شو اوكوم چې حقيقةً موصوف وو هغه لره حذف كړي شو بيا په حقيقت كې المسجد موصوف نه دي بلكه مضاف دي دې لره الجامع طرف ته مضاف شو.

په دې صورت كې په يوه وجهې سره اعتراض دفع شو چې الجامع دمسجد مضاف صفت نه دي بلكه دالوقت محذوف صفت دي اوبعينه دغه تاويل په صلوة الاولى كې به هم وي چې داپه اصل كې د صلوة الساعة الاولى په تاويل كې دي اوبقلة الحمقاء دا دبقلة الحية الحمقاء په تاويل كې دي.

په دې کې هم دوه (۲) احتماله دي کوم چې په المسجد الجامع کې وو.

لکن هذا: په دې عبارت کې شارح یو اعتراض نقل کوي اوبه اللهم سره ددې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض**: ذکر شوي تاويل صلوة الاولى اوبقلة الحمقاء کې خو چليږي ليکن په جانب الغربي کې نه شي چليدې خکه چې که جانب الغربي کې تاويل وشي نو داسې به وايي چې جانب المکان الغربي او الغربي لره دالمکان صفت جوړولې شي اوداصحيح نه دي ځکه چې مقصود متکلم جانب لره په غربيت سره موصوف کول دي نه مکان سره ځکه چې مکان عبارت دي د مجموع الارض نه لهذا دا غربي سره نه شي موصوف کيدې.

**جواب**: شارح په اللهم سره ددې اعتراض جواب ورکوي چې په دې ځاې کې دوه (۲) مکانه دي (۱) مکان جُز (۲) مکان کُل، هغه مکان چې هغې طرف ته جانب مضاف دي هغه جزء دي او اضافت بيانيه دي معنى يې ده چې الجانب الذي هو المکان الغربي نو د مکان جزء نه مراد هغه مکان دي کوم چې متصل بالمغرب دي اومکان کُل نه مراد جميع الارض دي.

**فائده (۱)**: په داسې مقام باندې داللهم مفهوم داوي ګويا چې مصنف رحمه الله داسې وايي چې اى الله! زما مؤاخذه ونه کړې چې زما اولني کلام غير تام دي بلکې داستثناء محتاج دي ددې نه زه استثناء کومه.

**فائده (۲)**: هو جانبه بها کې داول ضمير د هُوَ مرجع جانب دي اود جانبه ضمير مرجع مکان دي اود بها د ضمير مرجع الغربية دي.

## د صفت موصوف طرف ته په اضافت کې يو اعتراض:

| |
|---|
| وَ يَرِدُ عَلَى الْقَاعِدَةِ الثَّانِيَةِ وَ هُوَ قَوْلُهُ وَلَا صِفَةُ إِلَى مَوْصُوْفِهَا مِثْلُ جَرْدُ قَطِيْفَةٍ وَ |
| اووارد بيږي اعتراض په دويمه قاعده باندې اوهغه داقول د مصنف دي چې ولاصفة الى موصوفها لکه جرد قطيفة او |
| إِخْلَاقُ ثِيَابٍ فَإِنَّ أَصْلَهُمَا قَطِيْفَةٌ جَرْدٌ وَ ثِيَابٌ أَخْلَاقٌ قُدِّمَتِ الصِّفَةُ عَلَى الْمَوْصُوْفِ وَ |
| اخلاق ثياب ځکه اصل ددې دواړو قطيفة جرداو ثياب اخلاق دي نو مخکې کړې شو صفت په موصوف باندې او |
| أُضِيْفَ إِلَيْهِ وَ أُجِيْبَ عَنْهُ بِأَنَّهُ مُتَأَوَّلٌ بِأَنَّهُمْ حَذَفُوْا |
| اضافت وکړې شو د موصوف صفت طرف ته اوجواب ورکړې شوددې نه چې داموّول دي په دې طريقه چې حذف |

| |
|---|
| قَطِيْفَةٍ مِنْ قَوْلِهِمْ قَطِيْفَةٌ جَرْدٌ حَتّٰى صَارَ كَاَنَّهُ اِسْمٌ غَيْرُ صِفَةٍ فَلَمَّا |
| کړي دي عربو او يا نحاتو قطيفة د خپل قول قطيفة جرد نه تر دې پورې چې ګويا دا اسم غير صفت دي نو هر کله چې |
| قَصَدُوْا تَخْصِيْصَهُ لِكَوْنِهِ صَالِحًا لِاَنْ يَكُوْنَ قطيفة وَ غَيْرَهَا مِثْلُ خَاتَمٍ فِيْ |
| دوي قصد کړو تخصيص دوجې د دې چې دا صلاحيت لري چې هغه قطيفة وي او يا غير د دې نه په شان د خاتم په |
| كَوْنِهِ صَالِحًا لِاَنْ يَكُوْنَ فِضَّةً وَ غَيْرَهَا اَضَافُوْهُ اِلٰى جِنْسِهِ الَّذِيْ يَتَخَصَّصُ |
| کيدو د دې کې چې دا صلاحيت لري چې وي فضة او يا غير فضة نو مضاف يې کړو جنس طرف ته هغه چې تخصيص |
| بِهِ كَمَا اَضَافُوْا خَاتَمًا اِلٰى فِضَّةٍ فَلَيْسَ اِضَافَةُ اِلَيْهَا مِنْ |
| حاصل وي په دې سره لکه څنګه يې چې اضافت کړو د خاتم فضة ته نو نه دي اضافت د دې قطيفة طرف ته د دې |
| حَيْثُ اَنَّهُ صِفَةٌ لَهَا بَلْ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ جِنْسٌ مُبْهَمٌ اُضِيْفَ اِلَيْهَا |
| حيثيت نه چې دا صفت دي د دې د پاره بلکې د دې حيثيت نه چې دا جنس مبهم نه دي چې اضافت يې شوې دي |
| لِيَتَخَصَّصَ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ اَخْلَاقُ ثِيَابٍ. |
| طرف ته د دې د پاره چې خاص شي او په دې قياس باندې اخلاق ثياب دي. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې . دويم سوال جواب ورکوي کوم چې دده په بيان کړي شوي قاعده باندې وارديږي چې صفت خپل موصوف ته نه مضاف کيږي چې ددې تفصيل لاندې په شرحه کې ذکر دي .

**اغراض دجامي** : ويرد على القاعدة الثانية : په دې کې محل دسوال تعين دي چې محل دسوال هغه دوهمه قاعده ده

**وهو قوله** : په دې عبارت کې د دويمې قاعدې تعين بې وکړه چې دويمه قاعده ولاصفة الى موصوفها ده .

**فان اصلهما** : په دې عبارت کې دسوال دتقرير بيان دي چې جرد قطيفة په اصل کې قطيفة جرد دي قطيفه موصوف جرد صفت دي صفت په موصوف باندې مقدم شوي دي او خپل موصوف طرف ته مضاف شوې . دې همدا رنګې د اخلاق ثياب اصل ثياب اخلاق دي ثياب موصوف او اخلاق صفت دي صفت په موصوف مقدم شوي او دې طرف ته مضاف شوي دي لهذا ستا دا وينا چې صفت خپل موصوف طرف ته نه مضاف کيږي دا څنګه صحيح دي

**متأول** : ماتن ددې جواب ورکوي چې دا متأول يعني په دې کې تاويل شوي دي

بأنهم: په دې عبارت کې شارح دتاویل صورت بیانوي چې په اصل کې دنحویانو قول په قطیفة جرد کې مخکې قطیفة حذف کړې شو اوداحذف ځکه وشو چې قطیفة هم په اصل کې یوه کلمه ده کله چې دنورو کلماتو حذف جائز دې نو دقطیفه حذف هم جائز دې ددې نه وروستو جرد یواځې اوبلا موصوف پاتې شو .اوس داصفت په منزله داسم غیر صفت یعنې دذات په درجه کې راغلې اوس په دې کې ابهام پیدا شو چې هغه جرد څه څیز دې ؟ قطیفه دې یابل څیز دې ځکه چې په دې کې د قطیفه کیدو صلاحیت هم شته دې اوغیرقطیفه کیدو صلاحیت هم شته دې لکه څنګه چې په خاتم کې دې دفضه نه جوړشوي یاځه بل څیز نه جوړ شوي څیزونه اوپه خاتم کې فضه کیدو صلاحیت هم دې اوغیر فضه صلاحیت هم دې بیا چې هغوي دابهام د لرې کولو دجرد تخصیص اراده وکړه نو دې لره یې دوباره مضاف کړو ددې جنس قطیفه طرف ته چې ددې دوجې نه په دې کې تخصیص راغلې لکه څنګه چې په خاتم کې دابهام درفع کولو دپاره دې لره فضة طرف ته مضاف کړه چې په دې کې تخصیص راشي لیکن د جرد اضافت قطیفة طرف ته په دې حیثیت سره نه دې چې ددې صفت دې بلکې په دې حیثیت سره دې چې هغه جنس مبهم دې هغه لره قطیفة طرف ته مضاف کړې شو چې ابهام رفع شي اوتخصیص پیدا شي او همدارنګې تاویل په اخلاق ثیاب کې به هم وي چې دابهام رفع دپاره دې لره راوړې شو دصفت دحیثیت نه ، نه دې راوړل شي .

حذفوا: ددې مصداق یا عرب دي او یا نحویان دي .

قصدوا: ددې مصداق هم یا عرب دي او یا نحویان .

## دعام خاص طرف ته داضافت ذکر :

| وَلَا يُضَافُ اِسْمٌ مُمَاثِلٌ أَيْ مُشَابِهٌ لِلْمُضَافِ إِلَيْهِ فِي الْعُمُوْمِ وَ الْخُصُوْصِ اِلٰى ذٰلِكَ الْمُضَافِ |
|---|
| اونه مضاف کیږي هغه اسم چې مماثل یعنې مشابه وي دمضاف الیه سره په عموم اوخصوص کې دې مضاف |
| إِلَيْهِ سَوَاءٌ كَانَا مُتَرَادِفَيْنِ كَلَيْثٍ وَ اَسَدٍ فِي الْاَعْيَانِ وَ الْجُثَثِ وَ حَبْسٍ وَ مَنْعٍ فِي الْمَعَانِيْ |
| الیه طرف ته برابره خبره ده که دادواړه مترادف وي لکه لیث او اسد په ذات اوجوثو کې اوحبس او منع په معاني |
| وَ الْاَحْدَاثِ اَوْ غَيْرَ مُتَرَادِفَيْنِ بَلْ مُتَسَاوِيَيْنِ فِي الصِّدْقِ كَالْاِنْسَانِ وَ النَّاطِقِ لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ فِيْ ذِكْرِ |
| اواحداث کې اويامترادف نه وي بلکه متساوي وي په صدق کې لکه انسان اوناطق دوجې دعدم فائدې په ذکر |

| |
|---|
| الْمُضَافِ إِلَيْهِ فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ رَأَيْتُ لَيْثَ أَسَدٍ لَا يُفِيْدُ إِلَّا مَا يُفِيْدُهُ |
| د مضاف اليه کې ځکه چې کله تا وويل رأيت ليث اسد دا فائده نه ورکوي مګر د هغه څه فائده ورکوي کومه چې |
| رَأَيْتُ لَيْثًا بِدُوْنِ ذِكْرِ الْأَسَدِ وَ إِضَافَةِ اللَّيْثِ فَيَكُوْنُ ذِكْرُ الْأَسَدِ وَ إِضَافَةُ اللَّيْثِ إِلَيْهِ |
| رأيت ليثاً ورکوي په غير د ذکر د اسد نه او اضافت د ليث دې طرف ته نو وي به ذکر د اسد او اضافت د ليث دې طرف ته |
| لَغْواً لَا فَائِدَةَ فِيْهِ بِخِلَافِ إِضَافَةِ الْعَامِ إِلَى الْخَاصِ فِيْ مِثْلِ كُلُّ الدَّرَاهِمِ وَ عَيْنُ الشَّيْءِ فَإِنَّهُ |
| لغوه دې هيڅ فائده يې نه وي په دې کې په خلاف د اضافت د عام خاص ته په شان د کل الدراهم وعين الشيء ځکه |
| أَيِ الْمُضَافُ فِيْهِمَا يَخْتَصُّ بِهِ أَيْ يَصِيْرُ خَاصًا بِسَبَبِ إِضَافَتِهِ إِلَى الْمُضَافِ إِلَيْهِ |
| يعني مضاف په دې دواړو کې خاص وي ترديٍ پورې يعني ګرځوي خاص په سبب د اضافت د مضاف مضاف اليه |
| وَ لَا يَبْقَى عَلَى عُمُوْمِهِ سَوَاءٌ أَفَادَتِ الْإِضَافَةُ التَّعْرِيْفَ أَوِ التَّخْصِيْصَ |
| طرف ته او باقي پاتې نه شو په خپل عموم باندې برابره خبره ده که فائده کوي اضافت د تعريف او يا د تخصيص |
| وَ أَعْمِيَّةُ الْعَيْنِ عَنِ الشَّيْءِ إِذَا كَانَ اللَّامُ فِيْهِ لِلْعَهْدِ ظَاهِرَةٌ وَ أَمَّا إِذَا كَانَ لِلْجِنْسِ |
| او عام کيدل د عين د شئ نه چې کله وي لام په دې کې د پاره د عهد وي او ظاهر وي او هر کله چې وي د پاره د جنس |
| فَفِيْهَا خَفَاءٌ. |
| نو بيا په دې کې خفاء ده. |

**خلاصه د متن**: صاحب د کافيې د عبارت حاصل دا دې چې کله دوه (۲) اسمونه په عموم او خصوص کې ديو بل مماثل او مشابه وي نو د دې نه ديو اضافت بل طرف ته جائز نه دې مثال لکه ليث او اسد حبس و منع ځکه چې په دې اضافت کې څه فائده نشته دې مثال رأيت ليث اسد که چيرته د عام اضافت خاص طرف ته وشي مثال کل الدراهم عين الشيء نو دا تخصيص د فائدې ورکولو په بناء جائز دې.

**اغراض د جامي**: اى مشابه: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مماثلت عبارت دې د اشتراک الشيئين في النوع نه يعني د دوه شيانو د مشارکت نه په نوعه کې مثلاً زيد وعمر په نوع انساني کې شريک دي نو ويلې شي چې دا په خپل مينځ کې مماثل دي ليکن مصنف رحمه الله ليث او اسد والامثال پيش کړي دي په دې کې مماثلت نشته دې ځکه چې دا دواړه شريک في النوع نه دي بلکه عموم وخصوص والاوصف کې شريک دي يو مثال د ممثل له مطابق نه شو.

**جواب** : دلته مماثل په معنى د مشابه دي او مشابهت نوم دي د اشتراک في الوصف واشتراک
الكيفية لهذا مثال د ممثل له سره مطابق دي

الى ذلک المضاف اليه: په دې عبارت کې شارح د للمضاف دصلې بيان کوي .

سواء کانا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : د مماثل نه متبادر الى الذهن مترادف دي نو مطلب به يې داشي چې د يو مترادف
اضافت د بل مترادف طرف ته نه کيږي لهذا داقاعده به منقوضه اوماته شي په انسان او ناطق
سره ځکه چې دا دواړه مترادف نه دي ددې باوجود د يو اضافت بل طرف ته جائز نه دي انسان
اوناطق اوبالعکس ويل جائز نه دي حالانکه د ذکر شوې قاعدې مطابق دا اضافت جائز کيدل
په کار دي

**جواب** : په مماثل اومشابه کې تعميم دي برابره خبره ده که مترادفين وي يا متساويين في الصدق
وي اګرچې مترادفين نه وي د مترادفينو مثال لکه ليث واسد داد اعيانو اواجسامو مثال دي او
منع وحبس داد معانيو اواحداثو مثال دي غير مترادفين ليکن مساوي في الصدق مثال انسان او
ناطق

في الاعيان: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : د مثال نه مقصود د ممثل له وضاحت وي او وضاحت خو په يو مثال سره کيږي نو
مصنف رحمه الله دوه (۲) مثالونه ولې ذکر کړل ؟

**جواب** : د مثالونو تعدد د ممثل له د تعدد د وجې نه دي ليث او اسد د اعيانو اوجواهرو مثالونه
دي عين قائم بالذات ته ويلې شي يعنې چې کوم په خپل قيام کې غير ته محتاج نه وي حبس او
منع داد معاني اواحداث اواعراض مثالونه دي احداث د حدث جمع دي اودا هغې ته وايي چې
قائم بالغير وي

لعدم الفائدة: په دې عبارت کې شارح د ماتن د ذکر شوې اضافت د عدم جواز وجه بيان کړې
ده

في ذکر المضاف اليه: په دې عبارت سره شارح ددې تفصيل بيانوي چې کله دوه (۲) اسمونه په
عموم اوخصوص کې د يو بل سره مماثل اومشابه وي نو ددې نه د يو اضافت بل طرف ته ځکه

جائز نه دي چې د دې اضافت څه فائده نشته دي مثلاً کله چې ليث اسد طرف ته مضاف شي رأيت ليث اسد وويلي شي نو د دې نه هغه فائده حاصليږي کومه چې دليث اسد طرف ته داضافت نه په غير د رأيت ليثاً نه حاصله شوي وي لهذا اسد لره ذکر کول ليث اسد طرف ته مضاف کول لغوه او بې فائدي دي ځکه چې دا اضافت جائز نه دي .

بخلاف کل الدراهم : دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې دعام اضافت خاص طرف ته جائز دي ځکه چې دا مفيد دي اوداضافت دوجې نه په عام کې تخصيص راځي مثال کل الدراهم په دې کې کل داضافت نه مخکې عام وو دراهم اودنانير ټولو ته شامل وو کله چې ددې اضافت دراهمو طرف ته وشو نو په دې کې تخصيص راغې اوداددراهم سره خاص شو او همدارنګې عين الشيء په دې کې عين داضافت نه مخکې عام وو موجود اومعدوم ټولو ته شامل وو کله چې ددې اضافت الشيء طرف ته وشو نو په دې کې تخصيص راغې ځکه دا اضافت جائز دي .

اضافة العام الى الخاص : د بخلاف نه وروستو د اضافة العام الى الخاص په اضافه کولو سره شارح ديو سوال مقدر جواب ورکوي :

**سوال** : مصنف رحمه الله خو قاعده کليه بيانوي جزئيات نه بيانوي او کل الدراهم ، عين الشيء داقاعده کليه نه ده بلکه دادقاعدې جُزي مثالونه دي .

**جواب** : د کل الدراهم نه مراد اضافة العام الى الخاص دي اوکل الدراهم ، عين الشيء ددې مثالونه دي ګويا دمثالونو په ضمن کې قاعده کليه بيان کړه لهذا داهم قاعده کليه ده .

المضاف : په دې عبارت کې شارح د فانه دضمير مرجع يې متعين کړه چې دضمير مرجع مضاف دي .

اى يصير : په دې عبارت کې شارح دې خبرې طرف ته اشاره وکړه چې يختص لازمي دي دباء د وجې نه متعدي نه دي معنى داده چې مضاف اليه داضافت دوجې نه په عام کې تخصيص راي دا خاص کيږي .

بسبب : په دې عبارت سره شارح اشاره وکړه چې د به باء سببيه ده .

ولا يبقى : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي .

**سوال** : په کل الدارهم کې کل نکره او دراهم معرفه ده او قاعده داده چې د نکرې اضافت معرفې ته د تعریف فائده ورکوي د تخصیص فائده نه ورکوي نو د مصنف رحمه الله یختص ویل به څنګه صحیح شي .

**جواب** : خصوص د دوه (۲) څیزونو په مقابله کې راځي : (۱) د عموم په مقابله کې . (۲) د تعریف په مقابله کې دلته خصوص د عموم په مقابله کې دي مطلب دادې چې خاص طرف ته د اضافت سره مضاف هم خاص شي او د دې عموم باقي پاتي نه شي برابره خبره ده که اضافت د تعریف فائده ورکوي یا د تخصیص .

واصمیة: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : په عین الشيء کې لکه څنګه چې عین عام دي نو همدارنګې الشيء هم عام دي لهذا دا د اضافة العام الی العام د قبیلې نه شو د اضافة العام الی الخاص د قبیلې نه ، نه شو .

**جواب** : په عین الشيء کې په شيء باندې چې کوم الف لام دي په دې کې دوه (۲) احتماله دي (۱) الف لام عهدي دي . (۲) الف لام جنسي دي ، که الف لام عهدي وي نو بیا عین د شيء نه عام کیدل ظاهر دي ځکه چې په دې وخت کې د شيء نه مراد معهود في الخارج وي او که الف لام جنسي وي نو بیا عین د شيء نه عام کیدو خفاء ده .

**فائده** : شارح د دې خفاء جواب نه دي ورکړي لیکن د دې جواب دادې چې د شيء دوه (۲) معاني دي : (۱) موجود في الخارج . (۲) ما یمکن ان یعلم ویخبر عنه ، او دلته دویمه معنی مراد ده او عین د شيء نه په دویمې معنی سره اعم ده .

## د یو سوال مقدر جواب :

| |
|---|
| وَ يَرِدُ عَلَى قَوْلِهِمْ لَا يُضَافُ اِسْمٌ مُمَاثِلٌ لِلْمُضَافِ اِلَيْهِ فِي الْعُمُوْمِ وَ الْخُصُوْصِ قَوْلُهُمْ |
| او وارد یږي اعتراض د ده په قول لا یضاف اسم مماثل للمضاف الیه في العموم و الخصوص قاعده باندې د ده دا قول |
| سَعِيْدُ كُرْزٍ فَاِنَّ سَعِيْدًا وَ كُرْزًا اِسْمَانِ لِمُسَمًّى وَاحِدٍ كَلَيْثٍ وَ اَسَدٍ مَعَ اَنَّهُ اُضِيْفَ |
| سعید کرز ځکه سعیدا او کرزا دواړه نومونه دي دپاره د یو مسمی لکه لیث او اسد سره د دې چې اضافت یې شوي |
| اَحَدُهُمَا اِلَى الْاٰخَرِ فَاُجِيْبَ بِاَنَّهُ مُتَاَوَّلٌ بِحَمْلِ اَحَدِهِمَا عَلَى الْمَدْلُوْلِ وَ الْاٰخَرِ |
| یو د دې دواړو نه بل ته نو جواب ورکړي شو د دې نه چې دا مؤول دي په حمل کولو یو د دې نه په مدلول باندې او بل |

| عَلَى اللَّفْظِ فَكَأَنَّكَ إِذَا قُلْتَ جَاءَنِيْ سَعِيْدُ كُرْزٍ قُلْتَ جَاءَنِيْ مَدْلُوْلُ هٰذَا اللَّفْظِ وَ لَمْ يَقُوْلُوْا كُرْزُ |
|---|
| په لفظ باندې نوهر كله چې تاوويل جاءني سعيد كرزنوتا جاءني مدلول هذا اللفظ وويل اوهغوي نه دي ويلي كرز |
| سَعِيْدٍ لِأَنَّ قَصْدَهُمْ بِالْإِضَافَةِ التَّوْضِيْحُ وَاللَّقَبُ أَوْضَحُ مِنَ الْإِسْمِ غَالِباً . |
| سعيد ځکه مقصود د اضافت نه وضاحت دي او لقب دا اوضح دي د اسم نه غالبا. |

**خلاصه دمتن** : صاحب د كافيې په دې عبارت كې په ذكر شوي قاعده باندې كيدونكي د سوال مقدر جواب وركوي چې سعيد اوكرز دواړه ديو سړي نوم دي نو داپه عموم اوخصوص كې مماثل شو ددې باوجود داضافت سره سعيد كرز ويلي كيږي چې ددې ماتن داجواب وركړې دي چې په دې كې تاويل شوي دي چې ددې تفصيل لاندې په شرحه كې ذكر كيږي .

**اغراض دجامي** : ويرد على القاعدة الثانية : په دې كې محل دسوال تعين دي چې محل دسوال هغه دويمه قاعده ده .

وهو قوله : په دې عبارت كې ددويمې قاعدې تعين يې وكړه چې دويمه قاعده ولاصفة الى موصوفها ده .

فان اصلهما : په دې عبارت كې دسوال دتقرير بيان دي چې جرد قطيفة په اصل كې قطيفة جرد دي قطيفه موصوف جرد صفت دي صفت په موصوف باندې مقدم شوي دي اوخپل موصوف طرف ته مضاف شوي دي همدارنګې داخلاق ثياب اصل ثياب اخلاق دي ثياب موصوف او اخلاق صفت دي صفت په موصوف مقدم شوي اودې طرف ته مضاف شوي دي لهذا ستا دا وينا چې صفت خپل موصوف طرف ته نه مضاف كيږي داځنګه صحيح دي .

متأول : ماتن ددې جواب وركوي چې دا متأول يعني په دې كې تاويل شوي دي .

بانهم : په دې عبارت كې شارح دتاويل صورت بيانوي چې په اصل كې دنحويانو قول په قطيفة جرد كې مخكې قطيفة حذف كړي شو اوداحذف ځكه وشو چې قطيفة هم په اصل كې يوه كلمه ده كله چې دنورو كلماتو حذف جائز دي نو دقطيفه حذف هم جائز دي ددې نه وروستو جرد يواځې اوبلا موصوف پاتې شو .اوس داصفت په منزله داسم غير صفت يعني دذات په درجه كې راغلي اوس په دې كې ابهام پيدا شو چې هغه جرد څه څيز دي ؟ قطيفه دي يابل څيز دي ځكه چې په دې كې قطيفه كيدو صلاحيت هم شته دي اوغيرقطيفه كيدو صلاحيت هم

شته دي لکه څنګه چې په خاتم کې دي د فضه نه جوړ شوي يا خه بل څيز نه جوړ شوي څيزونه
اوپه خاتم کې فضه کيدو صلاحيت هم دي او غير فضه صلاحيت هم دي بيا چې هغوي دابهام
دلري کولو دجرد تخصيص اراده وکړه نو دې لره يې دوباره مضاف کړو ددې جنس قطيفه طرف
ته چې ددې دوجې نه په دې کې تخصيص راغلي لکه څنګه چې په خاتم کې دابهام درفع کولو
دپاره دې لره فضة طرف ته مضاف کړه چې په دې کې تخصيص راشي ليکن د جرد اضافت
قطيفة طرف ته په دې حيثيت سره نه دي چې ددې صفت دي بلکې په دې حيثيت سره دي چې
هغه جنس مبهم دي هغه لره قطيفة طرف ته مضاف کړي شو چې ابهام رفع شي او تخصيص
پيدا شي او همدارنګې تاويل په اخلاق ثياب کې به هم وي چې دابهام درفع کولو دپاره يې
راوړي شو دصفت دحيثيت نه ، نه دي راوړل شي .

## د اسم صحيح ياء د متکلم طرف ته اضافت :

وَ اِذَا اُضِيْفَ الْاِسْمُ الصَّحِيْحُ وَ هُوَ فِيْ عُرْفِ النُّحَاةِ مَا لَيْسَ فِيْ آخِرِهٖ حَرْفُ
او کله چې اضافت وکړې شي د اسم صحيح او دا په عرف دنحويانو کې هغه دي چې نه وي په آخر ددې کې حرف

عِلَّةٍ اَوِ الْمُلْحَقُ بِهٖ وَ هُوَ مَا فِيْ آخِرِهٖ وَاوٌ اَوْ يَاءٌ قَبْلَهُمَا سَاكِنٌ وَ اِنَّمَا
علت او يا ملحق وي دصحيح سره او دا هغه دي چې وي په آخر ددې کې واو يا ياء او ماقبل ددې ساکن وي او دا به

كَانَ مُلْحَقًا بِالصَّحِيْحِ لِاَنَّ حَرْفَ الْعِلَّةِ بَعْدَ السُّكُوْنِ لَا تَثْقُلُ عَلَيْهَا الْحَرَكَةُ لِمُعَارَضَةِ
وي ملحق دصحيح پورې ځکه چې حرف علت پس دسکون نه، نه ثقيل کيږي په دې باندې حرکت دوجې د معارضت

خِفَّةِ السُّكُوْنِ ثِقْلَ الْحَرَكَةُ وَ لِاَنَّ حَرْفَ الْعِلَّةِ بَعْدَ السُّكُوْنِ مِثْلِهَا بَعْدَ السُّكُوْتِ فِي الْوُقُوْعِ بَعْدَ
دخفت دسکون دثقل حرکت نه او داځکه چې حرف علت پس دسکون نه په شان دپس دسکوت په وقوع دي پس د

اِسْتِرَاحَةِ اللِّسَانِ وَلَا تَثْقُلُ عَلَيْهَا الْحَرَكَةُ بَعْدَ السُّكُوْتِ يَعْنِيْ فِي الْاِبْتِدَاءِ كَذَا بَعْدَ
آرام والي دژبې نه او نه ثقيل کيږي په دې باندې حرکت پس دسکوت نه يعني په ابتداء کې همدارنګې پس د

السُّكُوْنِ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ كُسِرَ آخِرُهٗ لِلتَّنَاسُبِ مِثْلُ ثَوْبِيْ وَ دَارِيْ فِي الصَّحِيْحِ
سکون نه ياء د متکلم طرف ته نو کسره به ورکړې شي آخر ددې ته دوجې د مناسبت نه لکه ثوبي او داري په صحيح کې

وَ ظَبْيِيْ وَ دَلْوِيْ فِي الْمُلْحَقِ بِهٖ وَ الْيَاءُ مَفْتُوْحَةٌ اَوْ سَاكِنَةٌ وَ قَدْ اُخْتُلِفَ فِيْ اَنَّ اَيَّهُمَا الْاَصْلُ
او ظبيي او دلوي په ملحق بالصحيح کې او ياء به يا مفتوح وي او يا ساکن او په دې کې اختلاف دي چې کوم يو اصل دي

وَ الصَّحِيْحُ اَنَّهُ الْفَتْحُ اِذَ الْاَصْلُ فِي الْكَلِمَةِ الَّتِيْ عَلٰى حَرْفٍ وَاحِدٍ هُوَ الْحَرَكَةُ لِئَلَّا
او صحيح دا ده چې فتحه دا اصل ده په هغه کلمه کې چې هغه په يو حرف وي چې هغه حرکت دي ددې وجې نه چې

| |
|---|
| يَلْزَمَ الْإِبْتِدَاءِ بِالسَّاكِنِ حَقِيْقَةً اَوْ حُكْماً وَ الْاَصْلُ فِيْ مَا بُنِيَ عَلَى الْحَرْكَةِ الْفَتْحِ وَ السُّكُوْنِ اِنَّمَا هُوَ |
| چې لازم نه شي ابتدا په ساکن حقيقتاً او يا حکماً او اصل په هغه کلمو کې چې مبني بالحرکة وي فتحه ده او سکون دا |
| عَـارِضٌ لِلتَّـخْـفِيْفِ . |
| عارض وي دپاره دتخفيف |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافيې په دې عبارت کې دابيانوي چې کله يو اسم صحيح يا ملحق په صحيح اضافت ياء متکلم طرف ته وشي نو هغه به څنګه لوستلي شي ددې مختلف صورتونه : ي چې ددې وضاحت په شرحه کې ذکر شوي دي .

**اغراض دجامي** : اذا اضيف الاسم : دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې کله اسم صحيح يا ملحق بالصحيح لره ياء متکلم طرف ته مضاف کړې شي نو ددې په آخر کې : ياء مناسبت دوجې نه کسره ورکولې شي اوپه خپله په ياء کې دوه (۲) وجهې جائز دي : (۱) د ياء سکون (۲) د ياء فتحه .

وهو في عُرف النحاة : په دې عبارت کې شارح دنحويانو په نزد دصحيح تعريف کوي چې صحيح هغه دي چې دهغې دفاء ، عين او لام کلمې په مقابله کې حرف علت نه وي .

وهو ما في آخره : په دې عبارت کې شارح دملحق بالصحيح تعريف کوي چې ملحق بالصحيح هغه دي چې دهغې په آخر کې واو يا ياء وي اوددې ماقبل ساکن وي .

وانما كان : په دې عبارت کې شارح ملحق بالصحيح ته دملحق بالصحيح ويلو وجه بيانوي چې ملحق بالصحيح ته ملحق بالصحيح ويل په دې کې دوه (۲) وجهې دي .

**اوله وجه** : هغه حرف علت کوم چې دسکون نه وروستو واقع وي په دې باندې حرکت ثقيل نه وي ځکه چې دسکون خفت دهغه حرکت دثقل معارض به شي نو کله چې دصحيح په شان په دې باندې حرکت ثقيل نه دي نو داملحق بالصحيح شو .

**دويمه وجه** : هغه حرف علت چې دسکون نه وروستو واقع وي هغه دهغه حرف علت په مثل دي کوم چې دسکوت نه وروستو واقع ووي يعني په ابتداء کې واقع وي وجه دمشابهت اومماثلت دواړه استراحة اللسان نه وروستو واقع کيدل دي اوهغه حرف علت کوم چې دسکوت نه وروستو واقع وي په هغه باندې حرکت ثقيل نه دي دا ثقل برداشت کوي همدارنګې هغه حرف علت کوم

چې د سکون نه وروستو واقع وي هغه باندې هم حرکت ثقيل نه دي لهذا هغې ته ملحق بالصحيح وايي

للتناسب: په دې عبارت کې اسم صحيح يا ملحق بالصحيح په آخر کې کسره ورکولو وجه بيانوي چې د دې په آخر کې کسره د ياء د مناسبت د وجې نه ده ځکه چې ياء غواړي چې زما ماقبل مکسور وي د اسم صحيح مثال ثوبي او داري د ملحق بالصحيح مثال ظبي او دلوي .

والياء مفتوحه اوساکنه: د صاحب د کافيې د عبارت حاصل دا دې چې هغه اسم کوم چې مضاف وي ياء متکلم طرف ته او د هغې په آخر کې کسره جائز ده او په خپله په ياء باندې فتحه اوسکون دوه وجهې جائز دي په دې باندې اتفاق دي .

وقد اختلف: په دې عبارت کې شارح بيان د اختلاف کوي چې اختلاف په دې خبره کې دي چې اصل څه شئ دي فتحه ده يا سکون نو وايي چې صحيح دا ده چې په ياء باندې اصل فتحه ده ځکه چې هغه کلمه چې د هغې بناء په حرف واحد باندې وي په هغې کې اصل حرکت دي چې ابتداء په سکون لازم رانه شي نه حقيقةً اونه حکماً ، حقيقةً په هغه صورت کې چې کله حرف واحد په ابتداء کې وي اوحکماً په هغه وخت کې دي چې کله په مينځ د کلام کې وي نو ثابته شوه چې هغه کلمه چې د هغې بناء په حرفِ واحد باندې وي په هغې کې اصل حرکت دي نه چې سکون بيا په حرکات ثلاثه کې اصل فتحه ده ځکه چې دا اخف الحرکات ده د دې وجې نه په ياء باندې فتحه اصل شوه اوسکون عارض د تخفيف د وجې نه دي .

## په اسم صحيح کې د آخري الف حکم :

| فَإِنْ كَانَ آخِرُهُ أَيْ آخِرُ الْإِسْمِ الْمُضَافِ إِلَى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ أَلِفًا تُثْبَتُ أَيِ الْأَلِفُ عَلَى اللُّغَةِ |
|---|
| که چيرته وو آخر د دې يعني آخر د هغه اسم چې مضاف وي ياء د متکلم طرف ته الف وي نو ثابتيږي الف په لغت |
| الْفَصِيحَةِ لِعَدَمِ مُوجِبِ الْإِنْقِلَابِ نَحْوُ عَصَايَ وَرَحَايَ وَهُذَيْلٌ وَهِيَ قَبِيلَةٌ مِنَ الْعَرَبِ تَقْلِبُهَا أَيِ الْأَلِفَ |
| فصيحه باندې د وجې د عدم وجوب د بدلون نه لکه عصاىَ ورحاىَ او هذيل دا يوه قبيله ده د عرب و ابدلوي يعني الف |
| حَالَ كَوْنِهَا لِغَيْرِ التَّثْنِيَةِ يَاءً لِمُشَاكَلَةِ يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ وَ تُدْغِمُ |
| په داسې حال کې چې کله دا د غير د تثنيې د پاره وي ياء د متکلم سره د وجې د مشاکلة د ياء د متکلم نه او مدغم کولي |
| فِي الْيَاءِ مِثْلُ عَصَيَّ وَ رَحَيَّ وَلَا تَقْلِبُ أَلِفَ التَّثْنِيَةِ كَغُلَامَايَ لِالْتِبَاسِ الْمَرْفُوعِ بِغَيْرِهِ |
| به شي په ياء کې لکه عصيّ ورحيّ اونه به شي بدلولي الف د تثنيې لکه غلاماى د وجې د التباس د مرفوع نه د غير |

| |
|---|
| بِسَبَبِ الْقَلْبِ . |
| مرفوع سره د وجې دبدلون نه |

**خلاصه دمتن** : ددې خاې نه دهغه اسم حکم بيانوي چې دهغې په آخر کې الف وي اوهغه مضاف وي ياء دمتکلم طرف ته يعني هغه اسم کوم چې ياء دمتکلم طرف ته مضاف وي که دهغې په آخر کې الف وي نو دفصيح لغت مطابق هغه به ثابت پاتي کيږي برابره خبره ده که الف دتثنيې وي مثال لکه غلامای ياپه غير دتثنيې وي مثال لکه عصای ورحای ليکن قبيله د هذيل دغير تثنيې الف په ياء سره بدلوي او ياء په ياء کې مدغم کوي مثال عصي ورحي .

**اغراض دجامي** : اى آخر الاسم المضاف: په دې عبارت کې شارح دضمير مرجع متعين کړي ده .

اى الالف: په دې عبارت کې شارح دضمير مرجع متعين کړي ده چې دثبت هي ضمير مستتر مرجع الف دي .

على اللغة الفصيحة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : تا وويل چې د مضاف الى ياء المتكلم په آخر کې چې الف وي هغه به ثابت پاتي کيږي حالانکه قبيله دهذيل دې لره باقي نه پاتي کوي بلکه الف غير تثنيې لره په ياء سره بدلوي .

**جواب** : په لغتِ فصيحه کې الف باقي پاتي کيږي اوپه لغت دهذيل هغه غير فصيحه دي نو لهذا دلته اشکال نه کيږي .

لعدم موجب: په دې عبارت سره شارح دالف ثابت پاتي کيدو وجه بيانوي چې دهغې حاصل دادې چې الف لره ځکه ثابت پاتي کيږي چې ددې تبديل کيدو څه موجب اوسبب نشته دي نه خو ددې نه مخکې کسره شته دي چې دې لره په ياء سره دبدليدو تقاضا وکړي اونه ددې نه مخکې ضمه شته دي چې دې لره په واو سره دبدليدو تقاضا وکړي ددې وجې نه الف به ثابت پاتي کيږي .

اى قبيلة من العرب: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : په تقلب کې هي ضمير مستتر مرجع هذيل دي اودا مذکر دي او هِيَ ضمير مؤنث دي لهذا دراجع اومرجع په مينځ کې مطابقت نشته دي .

**جواب** : مرجع هذیل دقبیله په تاویل کې ده ګویا تانیث معنوي دي لهذا دراجع اود مرجع په مینځ کې مطابقت پیدا شو

ای الالف: په دې عبارت کې شارح د **ها** دضمیر مرجع متعین کړه چې دضمیر مرجع **الف** دي.

حال کونها: په دې عبارت کې شارح بیان دترکیب کوي چې **لغیر التثنیه** ظرف مستقر متعلق **کائنة** حال دي د**تقلبها** د**هاء** ضمیر نه چې دهغې مرجع الف دي

لمشاکلة یاء المتکلم : په دې عبارت کې شارح دادغام وجه بیانوي چې دغیر تثنیه الف په یاء سره بدلول دیاء مشاکلة دوجې نه دي هغه داسې چې **یاء** غواړي چې زما ماقبل دې مکسور وي اوعصای او رحای کې ماقبل مکسور نه دي ددې وجې نه **مشاکلة** مفقود اومعدو دي نو د مشاکلت دپیدا کولو دپاره مو **الف** په **یاء** سره تبدیل کړو اوقبیله هذیل دتثنیې **الف** په **یاء** سره نه بدلوي ځکه چې که دتثنیې **الف** په **یاء** سره بدل کړي شي نو دتثنیې حالت رفعي دحالت نصبي اوجري سره التباس لازم راځي مثلاً **غلامای** په **الف** سره په حالت رفعي کې که الف په یاء سره بدل شي اویاء په یاء کې مدغم کړي شي نو **غلامي** به شي اوحالت نصبي اوجري هم د**یاء** سره دي نو په صورت داضافت کې یاء دمتکلم ته په حالت دنصب اوجر کې هم **غلامي** به وي نو حالت رفعي دحالت نصبي اوجري سره التباس لازم راځي ددې وجې نه هذیل هم دغیر تثنیې الف په **یاء** سره بدلوي

## داسم صحیح په آخر کې د یاء حکم :

| وَ اِنْ كَانَ آخِرُ الْاِسْمِ الْمُضَافِ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ يَاءً اُدْغِمَتْ فِيْ يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ |
|---|
| اوکه چیرته وو آخر د هغه اسم چې مضاف وي یاء دمتکلم طرف ته یاءنومدغم کولې به شي په یاءدمتکلم کې د |
| لِاجْتِمَاعِ الْمِثْلَيْنِ فِيْمَا هُوَ كَالْكَلِمَةِ الْوَاحِدَةِ مِثْلُ مُسْلِمِيْنَ اِذَا اُضِيْفَ |
| وجې د جمع کیدو د دوه مثلو په هغه کلمه کې چې هغه په شان د یوې کلمې دي لکه مسلمین چې کله یې اضافت |
| اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ وَ اُسْقِطَتِ النُّوْنُ لِلْاِضَافَةِ وَ اُدْغِمَتِ الْيَاءُ فِي الْيَاءِ فَصَارَ |
| وشي یاء دمتکلم طرف ته اوساقط یې کړونون دوجې داضافت نه اومدغم یې کړه یاءپه یاءکې نووګرځیدو |
| مُسْلِمِيَّ |
| مسلمي |

**خلاصه دمتن** : د دې خاې نه صاحب د کافيې دهغه اسم حکم بيانوي چې دهغې په آخر کې ياء وي اوهغه مضاف وي ياء د متکلم طرف ته اوکه دهغه په آخر کې ياء وي نو ياء متکلم به په ياء کې مدغم کيږي

**اغراض دجامي** : فِي ياء المتکلم : په دې عبارت کې شارح د ادغمت دصلې بيان کوي .

لاجتماع المثلين : په دې عبارت کې شارح دادغام وجه بيانوي ياء په ياء کې دادغام کولو وجه داده چې هغه دوه کلمې کوم چې په منزله دکلمې واحدې وي که په دې کې دوه حرف ديو جنس نه جمع شي نو يو په بل کې مدغم کيږي اومضاف مضاف اليه هم په منزله دکلمې واحدې دي کله چې په دې کې دوه ياء جمع شي نو يو په بل کې مدغم کولې شي مثال لکه مسلمين کله چې ددې اضافت ياء دمتکلم طرف ته وشو نو داضافت دوجې نه نون ساقط شو نو دوه ياء جمع شوې نواوله ياءموپه دوهمه ياءکې مدغم کړه نوپه تثنيه کې مسلمي شواوپه جمع کې مسلمي شو.

## د اسم صحيح په آخر کې د واو حکم :

وَ اِنْ كَانَ آخِرُهٗ وَاوًا قُلِبَتِ الْوَاوُ يَاءً لِاجْتِمَاعِ الْوَاوِ وَ الْيَاءِ وَ الْاُوْلٰى سَاكِنَةٌ مِثْلُ

اوکه چيرته وو آخر ددې واو نو بدلولې به شي واوپه ياء سره د وجې د جمع کيدو د واو او ياءاواول ساکن وولکه

مُسْلِمُوْنَ اِذَا اُضِيْفَ اِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ قُلِبَتْ وَاوُهٗ يَاءً وَ اُدْغِمَتِ الْيَاءُ فِي الْيَاءِ

مسلمون چې کله يې اضافت وشي ياءدمتکلم ته نوبدلولې به شي واوپه ياءسره او مدغم کولې به شي ياءپه ياء

وَ كُسِرَ مَا قَبْلَهَا لِاَنَّهَا لَمَّا انْقَلَبَتْ يَاءً سَاكِنَةً يُوْجِبُ بَقَاءُ الضَّمَّةِ

کې اوکسره به ورکړلې شي ماقبل ددې ته ځکه چې کله بدل شوواوپه ياءساکنه سره نوواجبوي بقاء دضمې

قَبْلَهَا تَغَيُّرَهَا فَحُرِّكَتْ بِالْحَرَكَةِ الْمُنَاسِبَةِ لَهَا فَقِيْلَ مُسْلِمِيَّ وَ اِنْ كَانَتْ قَبْلَ

مخکې ددې نه تغير ددې نوحرکت ورکړې شومناسب حرکت ددې سره نووې ويل مسلمي اوکه چيرته وومخکې

الْيَاءِ اَوِ الْوَاوِ فَتْحَةٌ بَقِيَ مَا قَبْلَهَا مَفْتُوْحًا كَقَوْلِكَ فِي مُسْلِمَيْنِ مُسْلِمَيَّ وَ فِي مُصْطَفَوْنَ

دياءنه اويادواونه فتحه نوباقي به وي ماقبل ددې مفتوح لکه داقول ستاپه مسلمين کې مسلمي اوپه مصطفون کې

مُصْطَفَيَّ لِخِفَّةِ الْفَتْحَةِ وَ فُتِحَتِ الْيَاءُ اَيْ يَاءُ الْمُتَكَلِّمِ فِي الصُّوَرِ الثَّلٰثِ

مصطفي دوجې دخفت دفتحې نه اوفتحه به ورکړې شي ياءته يعني ياءدمتکلم ته په درې صورتونو کې دوجې د

لِلسَّاكِنَيْنِ اَيْ لِلُزُوْمِ اِلْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ اِنْ لَمْ تُحَرَّكْ وَ اُخْتِيْرَ الْفَتْحُ

ساکنينونه يعني دلزوم دالتقاءساکنينونه که چيرې حرکت ورنه کړې ياءدمتکلم ته اوغوره يې کړه فتحه دوجې

| لِـخِـفَّـتِـهِ . |
| --- |
| دخفت دفتحې نه . |

**خلاصه دمتن** : دلته دهغه اسم حکم بيانوي چې دهغې په آخر کې واو وي اودا مضاف وي ياء د متکلم طرف ته اوکه ددې په آخر کې واو وي نو هغه واو به په ياء سره بدلولې شي اوياء به په ياء کې مدغم کولې شي اوماقبل ته به کسره ورکولې کيږي .

**اغراض دجامي** : الواو : په دې عبارت کې شارح دضمير مرجع متعين کوي چې دقلبت هي د ضمير مرجع واو دي .

لاجتماع الواو والياء : په دې عبارت کې شارح واوپه ياء سره دبدليدو وجه بيانوي قاعده داده چې کله واو اوياء جمع شي اوپه دې کې اول ساکن وي نو واو په ياء سربدلول اوياء په ياء کې مدغم کولې شي مثال لکه مسلمون کله چې ددې اضافت وشو نو نون دجمع وغورځيدو واو اوياء يو ځاې جمع شوي په دې کې اول ساکن دي واو په ياء سره بدل شو اوياء په ياء کې مدغم شوه .

لانها لما انقلبت : دلته شارح دياء ماقبل ته دکسرې ورکولو بيان کوي چې کله واو ساکنه په ياء سره بدل شو نو دماقبل ضمه ددې خبرې تقاضا کوي چې ياء په واو سره بدل شي ځکه چې قاعده داده چې کله ياء ساکن وي اوددې ماقبل مضموم وي نو واو په ياء سره بدليږي پس په دې صورت کې رجوع لازم راځي هغه څيز طرف ته چې دکوم نه اعراض شوي وو ددې وجې نه ضروري ده چې ياء ماقبل ته هغه حرکت ورکړې شي کوم چې دياء سره مناسب وي اود ياء سره مناسب حرکت هغه کسره ده ځکه يې ماقبل ته کسره ورکړه اوکه دياء ماقبل مفتوح وي نو هغه به په خپل حال پريخودلې شي مثال لکه مسلمين کله چې ددې اضافت ياء دمتکلم طرف ته وشو نو نون داضافت د وجې نه وغورځيدو نو پس دوه ياء ګانې جمع شوي نو اوله ياء په دويمه ياء کې مدغم شوه نو مسلمي په تثنيه کې او مسلمي په جمع کې شوه همدارنګې مصطفون کله چې ددې اضافت ياء دمتکلم طرف ته وشو نو نون وغورځيدو پس واو او ياء جمع شو په دې کې اول ساکن وو واو په ياء سره بدل شو اوياء په ياء کې مدغم شوه نو مصطفي جوړشو .

فتحت الياء اى ياء المتكلم : په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې په ياء باندې الف لام د مضاف اليه په عوض کې دي يا دعهد دي مطلق ياء مراد نه ده بلکه ياء متکلم مراد ده .

في الصور الثلث: په دې کې شارح ازاله د يو وهم کوي هغه وهم دا وو چې شا[illegible] تحت الياء تعلق دې آخري صورت سره وي حالانکه داسې نه دي بلکه د دې تعلق د[illegible] صورتونو سره دي

اى للزوم التقاء الساكنين: په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې دسکنين مضاف او مضاف اليه دواړه محذوف دي مطلب دا دې چې که حرکت ورنه کړي شي نو التقاء ساکين لازم راځي باقي فتحه يې ځکه اختيار کړه چې فتحه اخف الحرکات ده.

## د اسماء ستة مکبره ياء طرف ته اضافت:

وَ أَمَّا الْأَسْمَاءُ السِّتَّةُ الَّتِيْ مَرَّ الْبَحْثُ عَنْهَا مُضَافَةً إِلٰى غَيْرِ يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ فَأَخِيْ وَأَبِيْ أَيْ فَالْحَالُ فِيْ

اوهرچې اسماء ستة هغه چې تيرشوي بحث د دې نه چې مضاف وي غير د ياء متکلم ته نو اخي وابي يعني حال په

أَخٍ وَ أَبٍ مِنْهَا إِذَا أُضِيْفَ إِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ اَنْ يُقَالَ اَخِيْ وَ اَبِيْ مِثْلَ يَدِيْ وَ دَمِيْ بِلَا

اخ او اب کې د دې نه چې کله اضافت وشي ياء د متکلم طرف ته چې وويل شي اخي او ابي لکه يدي او دمي په غير

رَدِّ الْمَحْذُوْفِ لِجَعْلِهٖ نَسْيًا مَّنْسِيًّا وَ أَجَازَ الْمُبَرِّدُ فِيْهِمَا اَخِيَّ وَ اَبِيَّ بِرَدِّ

دواپس کولو د محذوف د وجې د ګرځولو د دې نه نسيا منسيا او جائز کړي مبرد په دې دواړو کې اخي او ابي په واپس

لَامِ الْفِعْلِ فِيْهِمَا وَ هِيَ الْوَاوُ وَ جَعْلِهَا يَاءً وَ إِدْغَامِ الْيَاءِ فِي الْيَاءِ وَ تَمَسَّکَ فِيْ

کولو د لام د فعل په دې دواړو کې چې هغه واو دي او ګرځول د دې ياء دي او ادغام د ياء په ياء کې او دليل نيولي په

ذٰلِکَ بِقَوْلِ الشَّاعِرِ:

دې کې په قول د شاعر:

وَ اَبِيَّ مَا لَکَ ذُو الْمَجَازِ بِدَارٍ

او زما د پلار دې قسم وي چې نشته په ذوالمجاز بازار کې کوم کور

وَ حَمَلَ الْاَخَ عَلَى الْاَبِ لِتَقَارُبِهِمَا لَفْظاً وَ مَعْنًى وَ أَجَابَ عَنْهُ الْمُصَنِّفُ

او حمل کول داخ په اب باندې د وجې د نزديکت د دې دواړو نه دي لفظاً او معنی او جواب ورکړي د دې نه مصنف

فِيْ شَرْحِهٖ بِأَنَّ ذٰلِکَ خِلَافُ الْقِيَاسِ وَ اِسْتِعْمَالِ الْفُصَحَاءِ مَعَ اَنَّهٗ يَحْتَمِلُ اَنْ يَّكُوْنَ الْمُقْسَمُ بِهٖ

په خپله شرحه کې چې دا خلاف قياس او د فصحاو د استعمال خلاف دي سره د دې چې احتمال لري چې وي مقسم به

أَيْ اَبِيَّ جَمْعُ اَبٍ فَاَصْلُهٗ اَبِيْنَ سَقَطَتِ النُّوْنُ فِي الْاِضَافَةِ فَاجْتَمَعَتْ يَاآنِ فَاُدْغِمَتِ

يعني ابي جمع داب ده نو اصل د دې ابين ده نو ساقط شو نون په اضافت کې نو جمع شوې دوه ياګانې نو مدغم شوه

الْاُوْلٰى فِي الثَّانِيَةِ فَصَارَ اَبِيَّ وَ قَدْ جَاءَ جَمْعُهٗ هٰکَذَا فِيْ قَوْلِ الشَّاعِرِ. شِعْر:

اوله ياء په دويمه کې نو ابي وګرځيد او په تحقيق سره راغلي ده جمع د دې همدا رنګې په قول د شاعر کې شعر:

| فَلَمَّا تَبَيَّنَ اَصْوَاتُنَا | بَكَيْنَ وَ فَدَّيْنَنَا بِالْاَبْيَنَا |
| --- | --- |
| هر كله چې ښكاره شو آوازونه زمونږ | نو هغوي وژړل او ووي ويل چې فدا دې وي په تاسو ابا مزمونږ |

| أَيْ لَمَّا سَمِعْنَ وَ عَلِمْنَ اَصْوَاتَنَا بَكَيْنَ وَ قُلْنَ لَنَا آبَاءُنَا |
| --- |
| يعني هر كله چې يې واوريدل او پوه شول په آوازونو زمونږنوويي ژړل او ووي ويل مونږته چې وي دې پلاران زمونږ |
| فِدَاؤُكُمْ . |
| قربان په تاسو |

**خلاصه دمتن** : صاحب دكافيې په دې عبارت كې داسماء سته مكبره په باره كې وايي چې كله دا ياء متكلم طرف ته مضاف وي او كله چې داضافت نه په غير وي نو ددې اعراب څنګه وي ، چې ددې تفصيل شارح لاندې په شرح كې ذكر كوي .

**اغراض دجامي** : واما الاسماء الستة : په دې عبارت كې صاحب دكافيې دابيانوي چې داسماء سته مكبره نه اب او اخ لره ياء دمتكلم طرف ته مضاف كړي شي نو اخي او ابي به ويلې شي اولام كلمه چې واو دې هغه به نه واپس كيږي

الى مر البحث : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي :

**سوال** : كلمه داما كې دوه (۲) احتماله دي (۱) يا اما تفصيليه دي (۲) يا اما استنافيه دي اودا دواړه احتمالونه صحيح نه دي اول احتمال ځكه صحيح نه دي چې تفصيل داجمال تقاضا كوي اوددې مخكې اجمال نشته دي اودويم احتمال ځكه صحيح نه دي چې اما استنافيه د كلام په شروع كې وي اودا په وسط دكلام كې دي

**جواب** : اما تفصيليه ده باقي پاتې شو داسوال چې مخكې يې اجمال نشته دي نو ددې جواب دادې چې اجمال مخكې داسماء سته مكبر داعراب په بحث كې تيرشوي دي نو اشكال دفع شو

مضافة : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي :

**سوال** : كله چې ددې بحث مخكې وشونو دادوباره ذكر كول بې فائدې او اشتغال بما لا يعني دي

**جواب** : مخكې ددې حيثيت نه ددې بحث وو چې دا مضاف الى غير ياء متكلم وي اودلته ددې حيثيت نه ددې بحث دي چې دا ياء متكلم طرف ته مضاف وي

فالحال في اخي وابي : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي .

**سوال** : د مصنف رحمه الله قول فاخي وابي جزاء ده د اما شرطيه کوم چې متضمن معنی د شرط مبتدا دي ليکن دې لره جزاء جوړول صحيح نه دي ځکه چې د جزاء دپاره جمله کيدل شرط دي داجمله نه ده بلکه مفرد دي

**جواب** : اخي وابي خبر دي د مبتدا محذوف چې فالحال دي مبتدا خبر جمله جزاء ده نو لهذا اشکال دفع شو

منها: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال** : د مصنف رحمه الله په عبارت کې فاخي وابي حمل دي په الاسماء الستة باندې حالانکه حمل صحيح نه دي ځکه چې اسماء ستة صرف اخي وابي نه دي بلکه دا خو شپږ (۲) دي

**جواب** : فاخي وابي اسماء ستة نه دي بلکه د دې نه بعض دي

اذا اضيف: په دې عبارت سره شارح د حذف د قيد طرف ته اشاره وکړه چې خروج عن المبحث لازم رانه شي مطلب دا دي چې د اسماء ستة نه اخ او اب لره چې کله ياء متکلم طرف ته مضاف شي نو اخي او ابي ويلي کيږي د يدي اودمي په شان يعني لام کلمه کومه چې واو دي هغه نه شي واپس کيدي بلکه هغه نسياً منسياً په درجه کې شوي دي

واجاز المبرد: په دې عبارت کې شارح د نحويانو اختلاف بيانوي چې مبرد نحوي په اخ او اب کې اخي او ابي جائز کړي دي يعني لام کلمه کومه چې واو دي هغه لره واپس کول په ياء سره بدلول او ياء په ياء کې مدغم کولې شي

وتمسک: په دې عبارت سره شارح د امام مبرد دليل بيانوي امام مبرد د شاعر د دې قول نه استدلال کوي چې وابي مالک ذوالمجاز بدار په دې کې شاعر واو واپس کړي دي او په ياء سره يې بدل کړي دي او ياء په ياء کې مدغم کړي ده د دې وجې نه هغه ياء مشدد لوستلې ده مکمل شعر داسې دي چې :

قَدَرٌ اَحَلَّکَ ذَا الْمَجَازِ وَقَدْ اَرٰى      وَاَبِيَّ مَالِکَ ذُوْالْمَجَازِ بِدَارِ

دالله تعالی تقدير تا لره په ذوالمجاز بازار کې کوز کړي يې اوزه ګمان کومه . اوزما دې په حيل پلار قسم وي چې ستا دپاره په ذوالمجاز منی ، کې هيڅ کور نشته دي

وحمل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي

**سوال** : په شعر کې خو صرف د ابي ذکر دي مبرد اخي لره ولې يوځاې کړي دي ؟

**جواب** : مبرد اخ په اب باندې محمول کړي دي ځکه چې دواړه لفظاً اومعناً يو بل ته قريب او نژدې دي لفظاً ځکه چې ددواړو په شروع کې همزه ده اوپه آخر کې واو محذوف دي اودواړه ثلاثي دي اومعناً ځکه چې دواړه داسماء اضافيه څخه دي ځکه چې داخ معنى ده من له اخ د اب معنى ده من له ابن همدارنګې په دواړو کې تعدد دمعنى دي .

واجاب عن المصنف في شرحه : په دې عبارت کې شارح دامام مبرد ددليل جواب کوي مصنف په خپله شرح کې ددې دوه (۲) جوابات ورکړي دي :

**جواب (۱)** : دمبرد دا استدلال خلاف قياس اوخلاف استعمال دي خلاف قياس خو ځکه دي چې د اضافت فائده تخفيف ده هغه نه حاصليږي اودفصحاو داستعمال خلاف ځکه دي چې د فصحاو په کلام کې داضافت په وخت کې واو واپس کول اوپه ياء سره بدلول اوياء په ياء کې مدغم کول مسموع نه دي .

**جواب (۲)** : دا احتمال هم دي چې په دې شعر کې ابي مقسم به داب جمع وي په اصل کې ابين وو کله چې دې لره ي ء دمتکلم طرف ته مضاف شو نو نون داضافت دوجې نه وغورځيدو بيا ياء په ياء کې مدغم شوه نو ابي ترې جوړ شو .

وقد جاء : په دې عبارت کې شارح ددې خبرې دليل پيش کوي چې داب جمع ابين په کلام دعربو کې واقع ده لکه څنګه چې دشاعر په دې قول کې واقع ده چې :

فَلَمَّا تَبَيَّنَّ اَصْوَاتُنَا بَكَيْنَ وَفَدَّيْنَنَا بِالْاَبِيْنَا

پس کله چې زمونږ آواز ه ښکاره شول نو هغه ښځې په ژړا شوي اومونږ ته يې وويل چې زمونږ پلاران دې په تاسو باندې قربان وي .

**وجه داستدلال** : ددې شعر په آخر کې ابين جمع ده داب ددې نه معلومه شوه چې داب جمع ابين راځي دالابينا په آخر کې الف داشباع دپاره دي .

## د حمي او د هني حکم :

| وَ تَقُوْلُ أَيْ اِمْرَأَةٌ قَائِلَةٌ لِامْتِنَاعِ اِضَافَةِ الحَمِ إِلَى الْمُذَكَّرِ حَمِيْ وَ هَنِيْ بِلَا رَدِّ الْمَحْذُوْفِ |
|---|
| اووايي به يعني ښځه چې قائله ده دوجې دممتنع کيدو داضافت دحم مذکر ته حمي اوهني بې درد دمحذوف نه په |

| عِنْدَ الْاِضَافَةِ إِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ وَ اِنَّمَا فَصَلَهُمَا عَنْ اَخِيْ وَ اَبِيْ لِاَنَّهُ لَمْ يُنْقَلْ عَنِ |
|---|
| وخت داضافت کې ياء دمتکلم ته اوپه تحقيق سره جدايې کړو حمي او هني داخي او ابي نه خکه چې نه دي نقل : |
| الْمُبَرِّدِ فِيْهِمَا فِي الْمَشْهُوْرِ مَا يُخَالِفُ مَذْهَبَ الْجَمْهُوْرِ وَ اِنْ نَقَلَ عَنْهُ بَعْضُهُمْ ذٰلِكَ الْخِلَافَ |
| مبردنه په دې کې قول مشهورچې مخالف وي دمذهب دجمهوروا گرکه نقل وي دبعضې نحويانونه دااختلاف |
| فِي الْاَسْمَاءِ الْاَرْبَعَةِ . |
| په اسماء اربعه کې |

**خلاصه دمتن** : دصاحب دکافيې دعبارت حاصل دادې چې ښځه حم او هن لره ياء دمتکلم طرف ته داضافت په وخت کې لام کلمه محذوف لره د رد نه په غير حمي او هني ويلي شي .

**اغراض دجامي** : الامرأة: په دې عبارت کې شارح بيان دصيغې کوي چې تقول د واحد مؤنث غائب صيغه ده د مخاطب مذکر صيغه نه ده

لامتناع: په دې عبارت کې شارح دصيغې دمؤنث وجه بيانوي چې د حم معنى ده دسړي طرف د ښځې رشته دار يعنې ليور ، لهذا د حم اضافت مذکر طرف ته ممتنع دي ددې وجې نه دا د واحد مؤنث غائب صيغه ده .

وانما فصلهما: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور کول دي :

**سوال** : مصنف حمي هني لره داخي او ابي نه جدا ولې ذکر کړه دهغې سره يې يوځاې ولې ذکر نه کړه حالانکه دټولو يو حکم دي چې په وخت داضافت کې ياء دمتکلم طرف ته ددې آخري حرف محذوف نه واپس کيږي .

**جواب** : مصنف رحمه الله حمي او هني لره داخي او ابي نه جدا ځکه ذکر کړه چې په حمي او هني کې د جمهورو سره دمبرد اختلاف مشهور نه دي اګرکه بعضې حضراتو په ټولو اسماء اربعه کې اختلاف نقل کړي دي ليکن هغه غير مشهور دي او ابي او اخي کې د جمهورو سره دمبرد اختلاف معروف اومشهور دي ددغې فرق دوجې نه حمي او هني يې جدا ذکر کړه

## د فم او د نورو اسماء سته مکبرو بيان :

| وَ يُقَالُ فِيْ فَمٍ حَالَ إِضَافَتِهِ إِلٰى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ فِيَّ بِالرَّدِّ وَ الْقَلْبِ وَ الْاِدْغَامِ فِي الْاَكْثَرِ |
|---|
| اوويلي شي في په فم کې په وخت داضافت ددې کې ياء دمتکلم ته فيَّ په رد کولوسره قلب اوادغام ته په اکثر کې |

أَيْ فِيْ اَكْثَرِ مَوَارِدِ اِسْتِعْمَالَاتِهٖ وَ فَمِيْ فِيْ بَعْضِهَا اِبْقَاءً لِلْمِيْمِ الْمُعَوَّضِ عَنِ

يعني په اكثرو مواضعو د استعمال ددې كې او فمي په بعضې استعمالاتو كې دوجې د باقي كيدو د ميم نه عوض د

الْوَاوِ عِنْدَ قَطْعِهٖ عَنِ الْاِضَافَةِ وَ اِذَا قُطِعَتْ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ الْخَمْسَةِ عَنِ الْاِضَافَةِ قِيْلَ اَخٌ وَ

واو نه په وخت د قطع ددې كې د اضافت نه او چې كله قطع شي دا اسماء خمسه د اضافت نه نو ويلي به شي اخ او

اَبٌ وَ حَمٌ وَ هَنٌ وَ فَمٌ بِالْحَرَكَاتِ الثَّلٰثِ وَ لٰكِنْ فَتْحُ الْفَاءِ اَفْصَحُ مِنْهُمَا أَيْ مِنَ الضَّمِ وَ

اب او حم او هن او فم په حركات ثلاثه سره ليكن فتحه د فاء دا ډيره فصيحه ده ددې دواړو نه يعني د ضمې او

الْكَسْرِ وَ جَاءَ حَمٌ مِثْلُ يَدٍ فَيُقَالُ هٰذَا حَمٌ وَ حَمُكِ وَ رَأَيْتُ حَمًا اَوْ حَمَكِ وَ مَرَرْتُ بِحَمٍ اَوْ حَمِكِ وَ مِثْلُ

كسرې نه او راغلي حم په شان د يد نو ويلي به شي هذا حم وحمكِ ورأيتُ حما او حمكَ ومررت بحمٍ او حمك او په شان د

خَبْءٍ بِالْهَمْزَةِ فَيُقَالُ هٰذَا حَمْءٌ اَوْ حَمْؤُكِ وَ رَأَيْتُ حَمْأً اَوْ حَمْأَكِ وَ مَرَرْتُ بِحَمْءٍ اَوْ حَمْئِكِ وَ مِثْلُ دَلْوٍ بِالْوَاوِ

خبء په همزې سره نو ويلي به شي هذا حمْءٌ او حمؤكِ ورأيت حمأً او حمأكِ ومررتُ بحمْءٍ او حمئكِ او په شان د دلو په واو سره

فَيُقَالُ هٰذَا حَمْوٌ اَوْ حَمْوُكِ وَ رَأَيْتُ حَمْوًا اَوْ حَمْوَكِ وَ مَرَرْتُ بِحَمْوٍ اَوْ حَمْوِكِ وَ مِثْلُ عَصَا بِالْاَلِفِ فَيُقَالُ

نو ويلي به شي هذا حموٌ او حموك ورأيت حمواً او حموك ومررت بحموٍ او حموك او په شان د عصاء په الف سره نو ويلي به شي

هٰذَا حَمًا وَ حَمَاكِ وَ رَأَيْتُ حَمًا وَ حَمَاكِ وَ مَرَرْتُ بِحَمًا وَ حَمَاكِ مُطْلَقًا أَيْ جَوَازُ حَمٍ مِثَالُ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ الْاَرْبَعَةِ مُطْلَقًا

هذا حماً وحماكِ ورأيت حما و حماكِ ومررت بحماً و حماكِ مطلقا يعني جواز د حمٍ په شان ددې اسماء اربعو مطلقا

غَيْرُ مُقَيَّدٍ بِحَالِ الْاِفْرَادِ وَ الْاِضَافَةِ بَلْ تَجِيْءُ هٰذِهِ الْوُجُوْهُ فِيْهِ فِيْ كُلٍّ مِنْ حَالَتَيِ الْاِفْرَادِ وَ الْاِضَافَةِ وَ

نه مقيد په حال د افراد او اضافت كې بلكې راځي دا وجوه په دې كې په هريو د دواړو حالتونو د افراد او د اضافت او

جَاءَ هَنٌ مِثْلُ يَدٍ مُطْلَقًا أَيْ فِي الْاِفْرَادِ وَ الْاِضَافَةِ يُقَالُ هٰذَا هَنٌ وَ رَأَيْتُ هَنًا وَ مَرَرْتُ بِهَنٍ وَ هٰذَا هَنُكَ وَ

راغلي هن په شان د يدٍ مطلقا يعني په افراد او اضافت كې نو ويلي به شي هذا هنٌ ورأيتُ هناً ومررت بهن وهذا هنك و

رَأَيْتُ هَنَكَ وَ مَرَرْتُ بِهَنِكَ.

رأيت هنك ومررت بهنك.

**خلاصه دمتن** : د صاحب د كافيې د عبارت حاصل او نتيجه دا ده چې كله فم ياء د متكلم طرف ته مضاف شي نو په اكثرو استعمالاتو كې عين كلمه يعني واو محذوف لره واپس شي او هغه په ياء سره بدل شي او ياء په ياء كې مدغم كيږي او في ويلي شي او بعضې استعمالاتو كې ميم لره باقي ساتلي شي او فمي ويلى كيږي كوم ميم چې قطع عن الاضافة په وخت كې د واو په عوض كې راوړي شوي وو

**اغراض دجامي** : حال اضافته: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ور كول دي

**سوال** : لكه څنګه چې آخري حرف رد كولې شي في ويلي كيږي همدارنګې فوه هم ويلي كيږي نو بيا د في تخصيص يې ولې وكړو ؟

**جواب** : مونږ بحث كوو په اضافت الى ياء المتكلم كې په دې صورت كې في ويلي كيږي او فوه په غير داضافت نه ويلي كيږي هغه زمونږ دبحث نه خارج دي

اى في اكثر موارد: په دې عبارت سره شارح اشاره كوي چې د في الاكثر نه اكثر مراد نه دي بلكه اكثر موارد داستعمال مراد دي .

واذا قطعت : دصاحب دكافيې دعبارت حاصل دادې چې اسماء ستة نه د ذو نه غير باقي پنځه (۵) كله چې مقطوع عن الاضافة وي نو اخ ، اب ، هن ، حم ، فم ويلي شي يعنې اعراب بالحركت به جاري كيږي مثال لكه هذا اخ رأيت اخا ومررتُ باخ اودويمه خبره يې دابيان كړي ده چې په فم كې دري (۳) لغتونه دي . (۱) فُم په ضمې د فاء سره . (۲) فَم په فتحې دفاء سره . (۳) فِم په كسرې دفاء سره ليكن فتحه دضمې اوكسرې نه زيات فصيحه ده په حم كې ذكر شوي لغت نه غير څلور (۴) لغتونه نور هم دي .

(۱) د يد په شان يعنې لام كلمه دواو محذوفه نسياً منسياً په درجه كې وي ددې لغت مطابق په حالت دافراد كې هذا حم رأيتُ حما ومررت بحم ويلي كيږي او په حالت داضافت كې هذا حمك ورأيت حمك ومررتُ بحمك ويلي شي .

(۲) د خبأ په شان يعنې لام كلمه كومه چې واو ده هغه لره واپس كول په همزې سره بدل شي ددې لغت مطابق په حالت دافراد كې ويلي شي هذا حمء ورأيت حمأ ومررتُ بحمءٍ اوپه حالت د اضافت كې ويلي كيږي هذا حموكِ ورأيتُ حماكِ ومررتُ بحمئكِ .

(۳) د دلو په شان يعنې واو محذوفه واپس كول په خپل حالت باندې باقي ساتلي شي ددې لغت مطابق په حالت دافراد كې ويلي كيږي هذا حمو ورأيت حموا ومررتُ بحموا وپه حالت داضافت كې به ويلي شي هذا حموک ورأيت حموک ومررت بحموک

(۴) دعصا په شان یعنې واو محذوفه لره واپس کول په الف مقصوره سره بدلول نو ددې لغت مطابق په حالت دافراد کې هذا حماً ورأیت حماً ومررتُ بحماً ویلي شي اوپه حالت د اضافت کې هذا حماکِ ورأیت حماک ومررتُ بحماک ویلي شي یعنې په دريٰ واړو حالتونو کې به اعراب تقدیري وي

مطلقاً اي: په دې عبارت کې شارح داطلاق دمفهوم وضاحت کوي د مطلقاً مطلب دادې چې حم د اسماء اربعه مذکوره په شان استعمالیدل داپه حالت دافراد اوپه حالت داضافت کې دځه سره مقید نه وي بلکه دا وجوه اربعه په حالت دافراد اوپه حالت داضافت کې په دواړو کې جاري کیږي

وجاء هن: په هن کې دلغت مذکوره نه غیر یو بل لغت هم شته دي هغه دادې چې هن مطلقاً دید په شان وي یعنې په حالت دافراد اوپه حالت داضافت کې په دواړو صورتونو کې لام کلمه محذوفه واپس نه کړي شي ددې لغت مطابق په حالت افراد کې ویلي کیږي هذا هن ورأیت هناً ومررتُ بهن اوپه حالت داضافت کې ویلي کیږي هذا هنک ورأیت هنک ومررتُ بهنک.

## د ذو د اضافت حکم:

وَ ذُوْ لَا يُضَافُ إِلَى مُضْمَرٍ لِاَنَّهُ وُضِعَ وُصْلَةً إِلَى الْوَصْفِ بِأَسْمَاءِ الْاَجْنَاسِ وَ

اوذونه مضاف کیږي مضمرته ځکه چې ذو وضع کړې شوې دپاره دوسیلې وصف ته په اسماء جنس سره او

الضَّمِيْرُ لَيْسَ بِاِسْمِ جِنْسٍ وَ قَدْ اُضِيْفَ إِلَيْهِ عَلَى سَبِيْلِ الشُّذُوْذِ كَقَوْلِ الشَّاعِرِ شِعْرٌ:

ضمیرنه اسم جنس او په تحقیق سره اضافت شوې دې طرف ته په طریقې د شذوذ لکه دا قول د شاعرشعر:

إِنَّمَا يَعْرِفُ ذَا الْفَضْلِ مِنَ النَّاسِ ذَوُوْهُ

په تحقیق سره پیژني حوند دفضل دخلکونه صاحب دفضل

وَ لَوْ قِيْلَ لَا يُضَافُ إِلَى غَيْرِ اِسْمِ الْجِنْسِ لَكَانَ اَشْمَلَ وَ كَاَنَّهُ خَصَّ الْمُضْمَرَ بِالذِّكْرِ لِاَنَّهُ

اوکه چاوویل چې ذو نه مضاف کیږي په غیرد اسم جنس نه نووي به داخاص کول دمضمرپه ذکرپورې ځکه چې

كَانَ الْبَعْضُ تِلْكَ الْاَسْمَاءِ حُكْمٌ خَاصٌّ عِنْدَ اِضَافَتِهِ إِلَى يَاءِ الْمُتَكَلِّمِ فَنَفَى اِضَافَتَهُ

د بعضو دپاره وو ددې داسماودپاره خاص حکم په وخت داضافت د ذوکې یاء دمتکلم ته نونفي یې کړواضافت

إِلَى الْمُضْمَرِ مُطْلَقًا نَفْيًا لِاِخْتِصَاصِهِ بِحُكْمٍ خَاصٍّ بِاِعْتِبَارِ اِضَافَتِهِ إِلَيْهِ وَلَا يَقْطَعُ اَيْ

ددې مضمرنه مطلق نفي دوجې داختصاص ددې نه په خاص حکم بورې په اعتبارد اضافت سره دې طرف ته او

| ذُوْ عَنِ الْإِضَافَةِ لِأَنَّ جَعْلَهُ وُصْلَةً إِلَى أَسْمَاءِ الْأَجْنَاسِ لَيْسَ إِلَّا بِإِضَافَتِهِ |
| --- |
| نه قطع کیږي یعني ذو د اضافت نه ځکه کرځول د دې وسیله اسماء جنس طرف ته نه دي مګر په اضافت د دې |
| إِلَيْهَا. |
| سره دې طرف ته |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافیې په دې عبارت کې د اسماء سته مکبره نه د ذو په باره کې وایي چې ذو ضمیر طرف ته نه مضاف کیږي همدارنګې ذو همیشه د اضافت سره مستعملیږي د اضافت نه په غیر نه مستعملیږي

**اغراض دجامي** : لانه وضع وصلة: په دې عبارت کې شارح د ذو د ضمیر طرف ته د نه مضاف کیدو وجه بیانوي چې د ذو وضع د دې د پاره ده چې هغه اسم جنس طرف ته مضاف او هغه لره د ماقبل صفت جوړوي او ضمیر اسم جنس نه وي لهذا دا که ضمیر طرف ته مضاف شي دا به د هغه وضع خلاف وي لیکن کله کله علی سبیل الشذوذ ذو ضمیر طرف ته مضاف کیږي لکه څنګه چې د شاعر په قول کې دي :

| إِنَّمَا يَعْرِفُ ذَا الْفَضْلِ مِنَ النَّاسِ ذُوْوْهُ |
| --- |
| په تحقیق سره پیژني خاوند د فضل د خلکو نه صاحب د فضل |

چې مکمل شعر دا سې دي :

| أَهْنَا الْمَعْرُوْفِ مَا لَمْ يُبْتَذَلْ فِيْهِ الْوُجُوْهُ | إِنَّمَا يَعْرِفُ ذَا الْفَضْلِ مِنَ النَّاسِ ذُوْوْهُ |
| --- | --- |
| مبارک په نعمتونو کې هغه نعمت دي چې خرچ نه شي په دې کې مخونه (یعني په بې عزتې سره حاصل نه شي). | او په تحقیق سره پیژني خاوند د فضل د خلکو نه صاحب د فضل. |

**یعني په نعمتونو کې مبارک نعمت هغه دي چې په هغې کې مخونه خرچ نه شي ( یعني په سوال او په بې عزتي سره هغه نعمت حاصل نه شي ) په تحقیق سره پیژني خاوند د فضل د خلکو نه خاوند د فضل .**

په دې عبارت کې ذو ضمیر طرف ته مضاف دي لیکن دا شاذ دي .

ولو قیل: په دې عبارت سره شارح یو اعتراض نقل کوي او په فکانه سره د دې جواب ور کوي :

**اعتراض** : ذو چې لکه څنګه ضمیر طرف ته نه مضاف کیږي نو همدارنګې اسماء موصوله اسماء اشاره ، اعلام طرف ته هم نه مضاف کیږي نو که مصنف رحمه الله لایضاف الی غیر اسم

الجنس وبلي وي نو داب زيات اشمل وي ځکه چې ضمير او اسم ظاهر غير جنس ټولو ته به شامل وي مصنف داسي ولې ونه کړه ؟

**جواب** : مصنف رحمه الله ضمير په خصوصي طور باندي ځکه ذکر کړو چې اسماء ستهٔ بعضې اسماء په اضافت الى ياء المتكلم په وخت کې مخصوص احکام دي لکه اخي وابي کې امام مبرد واو واپس کول هغه لره په ياء سره بدلول اوياء په ياء کې مدغم کول ابي او اخي ويل همدارنګې په فم کې واو واپس کول په ياء سره بدلول اوياء په ياء کې مدغم کول نو مصنف رحمه الله ذو مطلق ضمير طرف ته داضافت نفي وکړه چې دا وهم پيدا نه شي چې لکه څنګه نورو اسماء سته دپاره داضافت الى ياء المتكلم په وخت کې خاص احکام دي نو همدارنګې ذو دپاره هم داضافت الى ياء المتكلم په وخت کې بعضې احکام مخصوص دي نو مصنف رحمه الله ذو لايضاف الى مضمر ويلو سره دا بيانوي چې ذو خو ضمير طرف ته نه مضاف کيږي ددي باوجود ددي دپاره اضافت الى ياء المتكلم په اعتبار سره بعضې احکام مخصوص دي .

ذو لايقطع : په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې ذو مقطوع عن الاضافت نه دي ځکه چې د ذو وضع ددي دپاره ده چې دا اسم جنس طرف ته مضاف شي او هغه لره دماقبل دپاره صفت جوړ شي اوداهله کيدي شي چې کله دا اسم جنس طرف ته مضاف وي ددي وجې نه دي ته اضافت لازم دي اودا مقطوع عن الاضافت نه وي .

## تمت المجروات بحمدالله تعالى و عونه

# التوابع

(١) نعت :

(٢) معطوف بالحرف :

(٣) تاكيد :

(٤) بدل :

(٥) عطفِ بيان :

# ﴿اَلتَّوَابِعُ﴾ :

## د توابعو تعريف :

| |
|---|
| وَ هُوَ جَمْعُ تَابِعٍ مَنْقُوْلٌ عَنِ الْوَصْفِيَّةِ إِلَى الْاِسْمِيَّةِ وَ الْفَاعِلُ الْاِسْمِيُّ يُجْمَعُ عَلَى فَوَاعِلَ كَالْكَاهِلِ عَلَى |
| او دا جمع د تابع ده چې نقل شوي د وصفيت نه اسميت ته او فاعل اسمي جمع راځي په وزن د فواعل لکه کاهل په |
| الْكَوَاهِلِ وَ الْمُرَادُ بِهَا تَوَابِعُ الْمَرْفُوْعَاتِ وَ الْمَنْصُوْبَاتِ وَ الْمَجْرُوْرَاتِ الَّتِيْ هِيَ اَقْسَامُ الْاِسْمِ فَلَا |
| وزن د کواهل او مراد په دې سره توابع د مرفوعاتو ،منصوباتو او مجروراتو دي هغه چې اقسام د اسم دي نو نه |
| يَنْتَقِضُ حَدُّهَا بِخُرُوْجِ نَحْوُ اِنَّ اِنَّ وَ ضَرَبَ ضَرَبَ لِعَدَمِ كَوْنِهِمَا مِنْ اَفْرَادِ الْمَحْدُوْدِ كُلُّ ثَانٍ |
| ماتيږي تعريف د دې په وتو د ان ان وضرب ضرب مثال سره دوجې د نه کيدو د افرادو د محدود نه هر هغه دويم دي |
| أَيْ كُلُّ مُتَأَخِّرٍ مَتَى لَوْ حِظَ مَعَ سَابِقِهٖ كَانَ فِي الرُّتْبَةِ الثَّانِيَةِ مِنْهُ |
| يعني هر هغه وروستي دي چې کله لحاظ وکړي شي د مخکې سره نو دا به وي په دويمه مرتبه کې د دې نه نو |
| فَدَخَلَ فِيْهِ التَّابِعُ الثَّانِيْ وَ الثَّالِثُ فَصَاعِدًا مُتَلَبِّسٍ بِاِعْرَابِ سَابِقِهٖ أَيْ بِجِنْسِ |
| داخل شو په دې کې دويم او دريم تابع او د دې نه زيات چې متلبس وي د خپل مخکني اعراب سره يعني په جنس د |
| اِعْرَابِ سَابِقِهٖ بِحَيْثُ يَكُوْنُ اِعْرَابُهُ مِنْ جِنْسِ اِعْرَابِ سَابِقِهٖ نَاشٍ كِلَاهُمَا مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ |
| اعراب مخکني په داسې شان چې وي اعراب د دې د جنس د اعراب سابقه نه چې پيدا اوي دواړه د يو جهت |
| شَخْصِيَّةٍ مِثْلُ جَاءَنِيْ زَيْدُنِ الْعَالِمُ فَاِنَّ الْعَالِمَ إِذَا لَوْ حِظَ مَعَ زَيْدٍ كَانَ فِي الرُّتْبَةِ الثَّانِيَةِ |
| شخصيه نه لکه جاءني زيدن العالم که چيرته لحاظ وکړي شي د زيد سره نو وي به دا په دويمه رتبه کې |
| مِنْهُ وَ اِعْرَابُهُ مِنْ جِنْسِ اِعْرَابِهٖ وَهُوَ الرَّفْعُ وَالرَّفْعُ فِيْ كُلٍّ مِنْهُمَا نَاشٍ مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ شَخْصِيَّةٍ |
| د دې نه او اعراب د دې د جنس نه دې او هغه رفع ده او رفع په هر يو د دې دواړو کې پيدا ده د يو جهت شخصي نه چې |
| هِيَ فَاعِلِيَّةُ زَيْدِنِ الْعَالِمِ لِاَنَّ الْمَجِيْئَ الْمَنْسُوْبَ إِلَى زَيْدٍ فِيْ قَصْدِ الْمُتَكَلِّمِ مَنْسُوْبٌ |
| هغه فاعليت د زيدن العالم دي خکه چې راتګ کوم چې منسوب دي زيد ته په قصد د متکلم کې منسوب دي |
| إِلَيْهِ مَعَ تَابِعِهٖ لَا إِلَيْهِ مُطْلَقًا. |
| زيد طرف ته سره د تابع د دې نه ،نه زيد طرف ته مطلقاً. |

**خلاصه د متن :** مصنف رحمه الله د مرفوعاتو ،منصوباتو او مجروراتو نه د فارغيدو نه پس د دې د توابعو ذکر کوي توابع ټول پنځه (۵) دي :

**وجه د حصر :** تابع به د دوه حالونو نه خالي نه وي : يا به مقصود بالنسبة وي او يا به نه وي و که

چیرته مقصود بالنسبة وي نو دابه بیاددوه حالونو نه خالي نه وي دتابع اودمتبوع په مینځ کې به یاحرف عطف وي اویابه نه وي که چیرته دتابع اودمتبوع په مینځ کې حرف عطف وي نو دا عطف بالحرف شو اوکه چیرته دتابع اودمتبوع په مینځ کې حرف عطف نه وي نو دابدل شو ، اوکه چیرته مقصود بالنسبة نه وي نو دابه هم ددوه حالونو نه خالي نه وي تابع به په داسې معنی باندې دلالت کوي چې هغه معنی په متبوع کې موندلې شي اویانه ، که معنی په متبوع کې موندلې شوه نو دانعت شو ، اوکه چیرته معنی په متبوع کې نه شوه موندلې نو دا بیا ددوه حالونو نه به خالي نه وي یابه دمتبوع دویم ځل ذکر شوي وي اویانه که چیرته دمتبوع دویم ځل ذکر شوي وو نو دا تاکید اوکه چیرته دمتبوع دویم ځل ذکر نه وو شوي نو دا عطف بیان شو.

**اغراض دجامي** : وهو جمع تابع : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : توابع دچا جمع ده ؟ دتابع اوکه دتابعة . اودا دواړه احتمالات صحیح نه دي ، اول احتمال خو ځکه صحیح نه دي چې تابع فاعل وصفي دي اودفاعل وصفي جمع دفواعل په وزن باندې نه راځي ، اودویم احتمال ځکه صحیح نه دي چې توابع صفت دي دالاسماء اوقاعده داده چې اتصاف الجمع بالجمع داد اتصاف المفرد بالمفرد تقاضا کوي نو ددې قاعدې مطابق چې کله توابع دالاسماء صفت دي نو ددې واحد به تابعة دالاسم صفة وي الاسم مذکر اوالتابعة مؤنث دي نو دموصوف اودصفت په مینځ کې مطابقت نه راځي .

**جواب** : توابع داجمع ده دتابع ، پاتې شو داسوال چې تابع فاعل وصفي دي اودفاعل وصفي جمع دفواعل په وزن نه راځي نوددې جواب دادې چې اګرچې په حقیقت کې دافاعل وصفي دي لیکن دلته دادوصفیت نه اسمیت طرف ته نقل شوي دي ځکه چې تابع اوس اسم جوړشوي دي هر دویم اسم کوم چې معرب وي په مخکني اعراب سره دیو جهت نه اودفاعل اسمي جمع د فواعل په وزن باندې راځي لکه کاهل چې ددې جمع کواهل راځي ، لهذا دتابع جمع توابع راتلي شي .

والمراد: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دتابع تعریف جامع نه دي ځکه چې دا په ان ان کې په دویم ان او په ضرب ضرب کې په دویم ضرب باندې صادق نه راځي ځکه چې دامعرب په مخکني اعراب سره نه دي ځکه ح.

دلته دسره اعراب نشته ځکه دا دواړه مبني الاصل دي حالانکه دا هم تابع دي
**جواب**: دتوابع نه مراد توابع المرفوعات والمنصوبات والمجرورات دي مطلق توابع نه دي اوپه دې باندې قرينه داده چې ددې توابعو نه بحث کيږي لهذا په ان ان کې دويم ان اوپه ضرب ضرب کې په دويم ضرب باندې تعريف صادق نه راتلل دادتعريف دجامعيت دپاره مضر نه دي .
**اى كل متاخر**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :
**سوال**: دتابع تعريف جامع نه دي ځکه چې دا په جاءني زيد العالم والعاقل والفاضل کې په عاقل او فاضل باندې صادق نه راځي ځکه چې دادويم تابع نه دي بلکه دريم اوڅلورم دي .
**جواب**: دلته ددويم نه مراد هر متأخر اووروستو راتلونکي دي برابره خبره ده که هغه دويم وي اوکه دريم وي اوکه څلورم وي اوداټول په مابعد کې دي ځکه چې تعريف په ټولو باندې صادق راځي .
**متى لوحظ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د ددري (۳) سوالونو مقدرو جواب ورکول دي .
**سوال (۱)**: دتابع تعريف په هغه تابع باندې صادق نه راځي کوم چې دخپل متبوع نه مقدم وي لکه ورحمة الله عليکم السلام ، داپه اصل کې عليکم السلام ورحمة الله دي په دې کې رحمة الله تابع دي ليکن په دې باندې تعريف صادق نه راځي ځکه چې دا متأخر نه دي بلکه مقدم دي .
**جواب**: دلته دمتأخر نه مراد په ذکر کې متأخر نه دي بلکه په رتبه اودرجه کې متأخر دي مقصد دادی چې تابع هر هغه متأخر دي چې کله ددې دخپل سابق (متبوع) سره لحاظ وکړې شي نو دا په دويمه مرتبه باندې وي که چيرته لفظاً مقدم وي لهذا تعريف په دې باندې صادق راځي کوم چې دخپل متبوع نه مقدم دي ليکن هغه تقديم په ذکر کې دي په رتبه کې نه دي .
**سوال (۲)**: دتابع داتعريف په هغه عمرو باندې صادق نه راځي کوم چې په جاءني زيد وعمرو بکر کې [illegible] دي ځکه چې دامتاخر نه دي بلکه متوسط دي .
**جواب**: دمتاخر نه مراد په نسبت سره متبوع ته دي نه په نسبت سره غير ته اوپه جاءني زيدوعمروبکر کې عمرو دخپل متبوع په نسبت متأخر دي لهذا په دې باندې تعريف صادق راځي
**سوال (۳)**: چې کله دثاني نه مراد متأخر دي نو د مصنف دېر [illegible] ب دا وو چې د متأخر لفظ

يې ذکر کړي وي ددې دپاره چې اشکال دسره وارد شوي نه وي ددې په ځاې يې د ثاني لفظ ولې ذکر کړو؟

**جواب** : شارح په متی لو حظ سره ددې جواب ورکړي چې دلته دثاني نه مراد دادې چې کله ددې د خپل متبوع سره لحاظ وساتل شي نو داپه دويمه مرتبه اوپه دويمه درجه باندې وي کله دثاني نه دويمه رتبه اودويمه درجه مراد ده نو ددې دپاره يواځې همدا لفظ دثاني مناسب ... نه لفظ دمتأخر ددې وجې نه مصنف رحمه الله دثاني لفظ غوره او ذکر کړو

**متلبس**: په د ... عبارت سره شارح بيان دترکيب کوي چې باعراب سابق داظرف مستقر متعلق دي تر متلبس پورې نو داصفت شو د ثاني دپاره

**اى بجنس اعراب سابقه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دتابع داتعريف دتابع په افرادو کې په يو فرد باندې صادق نه راځي ځکه چې دتابع په افرادو کې کم نه کم داسې نشته چې هغه په مخکني اعراب سره معرب وي ځکه چې اعراب يو عرض دي اوضابطه اوقاعده داده چې **قيام العرض بالمحلين المختلفين محال** ، ديو عرض قائميدل ددوه محلينو مختلفو پورې دامحال دي نو لهذا دتابع تعريف په يوفرد باندې هم صادق نه راځي

**جواب** : داعراب سابقه نه مخکې مضاف محذوف دي کوم چې جنس دي تقدير دعبارت داسې دي چې **بجنس اعراب سابقه** . معنى به يې داوي چې تابع هر هغه دويم دي چې په هغې کې د مخکني اعراب جنس وسوندل شي نه بعينه مخکني اعراب وموندل شي .

**بحيث يكون اعرابه من جنس اعراب سابقه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : دتابع تعريف په جاءني زيد ابوک کې په ابوک باندې صادق نه راځي ځکه چې ددې اعراب متبوع داعراب دجنس نه . نه دي دمتبوع اعراب دحرف جنس نه ، دي دتابع اعراب من جنس الحرکة دي

**جواب** : دجنس نه مراد دادې چې دواړه دمرفوع يادمنصوب يادمجرور کيدو حيثيت نه ديو جنس نه وي يعني که چيرته متبوع مرفوع وي نوتابع به بې هم مرفوع وي که چيرته متبوع يې

منصوب وي نو تابع به يې هم منصوب وي اوکه چيرته متبوع يې مجرور وي نو تابع به يې هم مجرور وي ، داعام دي که اعراب حرکتي وي اوکه حرفي ياپه يو باندې اعراب حرکتي وي اوپه دويم باندې حرفي

شخصية: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دتابع تعريف دخول دغير نه مانع نه دي ځکه چې داتعريف په خبر باندې صادق نه راځي ځکه چې هغه دويم په مخکني اعراب سره دي او ديوجهت نه هم دي ځکه چې مبتدا اوخبر ددواړو اعراب ديوعامل دوجې نه وي کوم چې ابتداء دي حالانکه دخبر تابع نه دي .

**جواب** : دتابع په تعريف کې د من جهة واحدة نه مراد وحدت شخصي دي وحدة نوعي نه دي اود مبتدا اوخبر په مينځ کې وحدت نوعي دي نه شخصي ځکه چې که چيرته په دواړو کې عامل ابتداء وي ليکن هغه ابتداء ددې حيثيت نه چې دمسند اليه تقاضا کوي په مبتدا کې عامل دي اوددې حيثيت نه چې دمسند تقاضا کوي داپه خبر کې عامل دي .

مثل جاءني: په دې عبارت سره شارح مثال بيانوي لکه جاءني زيد العالم .

فان العالم : په دې عبارت سره شارح مثال په ممثل له باندې تطبيق کوي چې دعالم دزيد په اعتبار سره لحاظ وکړې شي نو داپه دې اعتبار سره داپه دويمه مرتبه کې دي اوددې اعراب د ماقبل اعراب دجنس نه دي اوهغه رفع ده اورفع په دواړو کې ديوجهت شخصيه نه پيدا کيدونکي دي اوهغه يوجهت شخصيه فاعليت دي ځکه چې هغه مجيئت کوم چې دمتکلم په قصد کې زيد طرف ته منسوب دي هغه سره ددې زيد دتابع د زيد طرف ته منسوب دي ، مطلقا زيد طرف ته منسوب نه دي .

## د توابعو په تعريف کې د قيودو فوائد :

| فَقَوْلُهُ كُلُّ ثَانٍ يَشْمِلُ التَّوَابِعَ وَ خَبَرَ الْمُبْتَدَاِ وَ خَبَرَيْ كَانَ وَ اَنَّ وَ اَخَوَاتِهَا وَ ثَانِيْ |
|---|
| نوداقول دمصنف كل ثان شامليږي توابعو ،ته اومبتدااوخبراوخبردكان اودان اوداخواتوددې دواړواوددوه |
| مَفْعُوْلَيْ ظَنَنْتُ وَ اَعْطَيْتُ وَقَوْلُهُ بِاِعْرَابِ سَابِقِهِ يُخْرِجُ الْكُلَّ اِلَّا خَبَرَ الْمُبْتَدَاِ وَ ثَانِيْ مَفْعُوْلَيْ ظَنَنْتُ وَ |
| مفعولينود ظننت اود اعطيت ته اوداقول باعراب سابقه خارجوي تول مگر خبر دمبتدااودوه مفعولين د ظننت اود |
| اَعْطَيْتُ وَقَوْلُهُ مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ يُخْرِجُ هٰذِهِ الْاَشْيَاءَ لِاَنَّ الْعَامِلَ فِي الْمُبْتَدَاِ وَالْخَبَرِ وَاِنْ كَانَ هُوَ الْاِبْتِدَاءُ اَعْنِي التَّجَرُّدَ |
| اعطيت اوداقول من جهة واحدة خارجوي دابول شيان ځکه عامل په مبتدااوخبر کې اگر که ابتداوي يعني خالي |

| |
|---|
| عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ لِلْإِسْنَادِ لٰكِنَّ هٰذَا الْمَعْنٰى مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ يَقْتَضِيْ مُسْنَداً اِلَيْهِ صَارَ عَامِلًا |
| والي دعوامل لفظيه نه دپاره داسناد لکن دامعنی ددې حيثيت نه چې تقاضاکوي دمسنداليه نوو گرځيد عامل |
| فِي الْمُبْتَدَاِ وَ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ يَقْتَضِيْ مُسْنَداً صَارَ عَامِلًا فِي الْخَبَرِ فَلَيْسَ اِرْتِفَاعُهُمَا |
| په مبتدا کې اوددې حيثيت نه چې داتقاضاکوي دمسندنوو گرځيد عامل په خبرکې نونه دي مرفوع کيدل ددي |
| مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ وَ كَذَا ظَنَنْتُ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ يَقْتَضِيْ مَظْنُوْنًا فِيْهِ وَ مَظْنُوْنًا عَمِلَ فِيْ |
| ديوجهت نه اوهمدارنگې ظننت ددې حيثيت نه چې تقاضاکوي دمظنون فيه اومظنون عمل کوي په دواړو |
| مَفْعُوْلَيْهِ فَلَيْسَ اِنْتِصَابُهُمَا مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ وَ كَذٰلِكَ اَعْطَيْتُ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ |
| مفعولينوکې نونه دي منصوب کيدل ددې دواړوديوجهت نه اوهمدارنگې اعطيت ددې حيثيت نه چې دا |
| يَقْتَضِيْ آخِذًا وَ مَاخُوْذًا عَمِلَ فِيْ مَفْعُوْلِهِ فَلَيْسَ اِنْتِصَابُهُمَا مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ. |
| تقاضاکوي دآخذاوماخوذاوعمل کوي په خپلودواړومفعولينوکې نونه دي انتصاب ددې دواړوديوجهت نه . |

**خلاصه دمتن** : داعبارت مکمل شرحه ده دمخکښي ذکر شوي متن نور مزيد وضاحت کوي.

**اغراض دجامي** : **فقوله کل ثان** : په دې عبارت کې شارح دتعريف دقيودو فوائد بيانوي چې **کل ثان** په منزله دجنس دي ټولوتوابعو يعنې دمبتداخبر ،دکان خبر ، دان خبر اودباب **ظننت** مفعول ثاني اودباب اعطيت مفعول ثاني ټولو ته شامل دي ځکه چې په دې کې هر دويم دي ، **باعراب سابقه** داپه منزله داول فصل دي ددې نه دمبتدا خبر اودباب ظننت مفعول ثاني اود باب اعطيت مفعول ثاني نه علاوه نور ټول خارج شو، ځکه چې هغه معرب باعراب سابقه نه دي، **من جهة واحدة** دا په منزله د دويم فصل دي، ددې نه د مبتدا خبر باب اعطيت او ظننت مفعول ثاني ووتل. دَ مبتدا خبر خو ددې وجې نه، چې مبتدا او خبر په دواړو کې اگر چې عامل ابتداء ده يعنې عامل لفظي نه خالي کيدل د اسناد دپاره، ليکن دا معنی د ابتداء ددې حيثيت نه، چې دا د مسند اليه تقاضا کوي. په مبتدا کې عامل دي او ددې حيثيت نه چې هغه د مسند تقاضا کوي، خبر کې عامل دي، نو د مبتداء او خبر دواړو مرفوع کيدل د جهت واحده نه، نه دي او باب ظننت مفعول ثاني ددې نه خارج شو اگر چې مفعول اول او مفعول ثاني دواړو کښې عامل ظننت دي.

ليکن ظننت ددې حيثيت نه، چې د مظنون فيه تقاضا کوي، په اول مفعول کې عامل دي او ددې حيثيت نه، چې د مظنون تقاضا کوي، په دويم مفعول کې عامل دي، پس اول مفعول او

دويم مفعول د دواړو نصب جهت واحده نه نه دي. او باب اعطيت مفعول ثاني ددې نه خارج شو اګر چې مفعول اول او ثاني کې اعطيت عامل دي مګر اعطيت ددې حيثيت نه، چې هغه د آخذ تقاضا کوي. مفعول اول کې عامل دي او ددې حيثيت نه، چې هغه د ماخوذ تقاضا کوي، مفعول ثاني کې عامل دي . لهذا اول مفعول او دويم مفعول دواړو نصب جهت واحده نه.نه شو

## د يو سوال مقدر جواب :

| |
|---|
| وَاعْلَمْ اَنَّ الاِعْرَابَ الْمُعْتَبَرَ فِيْ هٰذَا التَّعْرِيْفِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى اللاحِقِ وَ السَّابِقِ اَعَمُّ مِنْ |
| پوهه شه چې هغه اعراب چې معتبر دي په دې تعريف کې په نسبت سره لاحق اوسابق ته داعام دي ددې نه چې |
| اَنْ يَّكُوْنَ لَفْظِيًّا اَوْ تَقْدِيْرِيًّا اَوْ مَحَلِيًّا حَقِيْقَةً اَوْحُكْمًا فَلَا يَرِدُ نَحْوُ جَاءَنِيْ هٰؤُلَاءِ الرِّجَالُ وَيَازَيْدُنِ |
| وي لفظي اوياتقديري اوبامحلي. حقيقتاً اوياحکماًنونه واردېږي اعتراض په جاءني هؤلاء الرجال او يا زيدن |
| الْعَاقِلُ وَ لَا رَجُلَ ظَرِيْفًا. |
| العاقل باندې او نه په لا رجل ظريفاً باندې |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره شارح يو سوال مقدر رانقل کوي .

**اغراض دجامي** : واعلم: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال**: د تابع دا تعريف جامع نه دي. ځکه دا په هغه الرجال باندې صادق نه دي، کوم چې په هؤلاء الرجال کې واقع دي، ددې وجې نه هؤلاء رفع محلي او الرجال رفع لفظي دي، نو دا معرب باعراب سابقه نه شو همدارنګې دا تعريف په هغه العاقل باندې هم صادق نه راځي، کوم چې په يازيدنِ العاقل کې واقع دي، ځکه چې دزيدُ ضمه مبني ده او العاقل رفع اعرابي ده، دا هم معرب باعراب سابقه نه شو . نو دا تعريف په ظريفاً باندې هم صادق نه شو . چې کوم په لا رجل ظريفاً کې واقع دي . ځکه چې د رجل فتحه بنايي ده او د ظريفاً نصب اعرابي دي دا هم معرب باعراب سابقه نه شو . همدارنګې دا تعريف په هغه عالم باندې صادق نه راځي، کوم چې په جاءني موسى العالم کې واقع دي. ځکه چې د موسى رفع تقديري ده او د عالم رفع لفظي ده، نو دا هم معرب باعراب سابقه نه شو . حالانکه دا ټول توابع دي.

**جواب**: دا تابع په مخکې تعريف کې (متبوع) او لاحق (تابع) په اعتبار سره چې کوم اعراب

معتبر دي. په دې كې تعميم دي. برابره خبره ده چې دا لفظي وي او كه تقديري. او كه حكمي . اعرابي وي او يا محلي. د دې تعميم نه پس دا تعريف په هغه ټولو توابعو باندې صادق راځي، ځكه چې په اول مثال هؤلاء كې كسره اعراب نه دي. نه حقيقتاً او نه حكماً بلكې په دې كې اعراب محلي دي. ځكه چې د دې په لفظ باندې حمل جائز نه دي. بلكې په محل باندې به محمول كيږي او د دې محل رفع دي. لهذا دالرجال رفع واجب ده او په دويم مثال كې د زيد اعراب حكمي دي. ځكه چې په زيد كې ضمه اګر چې په حقيقت كې اعراب نه دي. مګر د اعراب په حكم كې دي. ځكه چې په دې كې دوه ۲، وجهې جائز دي لكه څنګه چې د دې تفصيل په منصوب تو كې تير شوي دي . كه چېرته د زيد ضمه د رفع په حكم كې نه وي. نو د دې صفت په لفظ باندې محمول كول او مرفوع ويل به جائز نه وي او په دريم مثال كې د رجل فتح اعراب يعني د نصب په حكم كې دي د دې وجې نه د نصب سره د ظريفاً لفظ په رجل باندې حمل جائز دي. او ظريفاً په رجل باندې محمول كول او مبني ويل هم جائز دي او په محل بعيد باندې حمل كول او رفع ويل هم جائز دي

## په تعريف د توابعو كې د لفظ د كل بيان :

| ثُمَّ اِنَّ لَفْظَةَ كُلِّ هٰهُنَا لَيْسَتْ فِيْ مَوْقِعِهَا لِاَنَّ التَّعْرِيْفَ اِنَّمَا يَكُوْنُ لِلْجِنْسِ وَ بِالْجِنْسِ لَا لِلْاِفْرَادِ |
|---|
| بيا لفظ د كل د لته نه دي په خپل ځاې باندې ځكه تعريف داوي د پاره د جنس په جنس كې او نه دافرادو د پاره په |
| وَ بِالْاَفْرَادِ فَالْمَحْدُوْدُ بِالْحَقِيْقَةِ التَّابِعُ وَالْحَدُّ مَدْخُوْلُ كُلِّ وَهُوَ ثَانٍ بِاِعْرَابِ سَابِقِهٖ مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ |
| افرادو كې نو محدود په حقيقت كې تابع دي او تعريف مدخول د كل دي او هغه ثان باعراب سابقه من جهة واحده دي |
| لٰكِنَّهٗ لَمَّا اُدْخِلَ كُلُّ عَلَيْهِ اَفَادَ صِدْقَ الْمَحْدُوْدِ عَلٰى كُلِّ اَفْرَادِ الْحَدِّ فَيَكُوْنُ |
| ليكن هر كله چې داخل شو كل په دې باندې نو فائده كوي صدق د محدود په ټولو افرادو د تعريف باندې نو وي به |
| مَانِعًا وَ الظَّاهِرُ اِنْحِصَارُ الْمَحْدُوْدِ فِيْهَا لِعَدَمِ ذِكْرِ غَيْرِهَا فَيَكُوْنُ جَامِعًا فَيَحْصِلُ حَدٌّ جَامِعٌ |
| مانع او ظاهر انحصار د محدود دي په دې كې د وجې د عدم د ذكر د غير نه نو وي به جامع نو حاصل شو تعريف جامع |
| وَ مَانِعٌ يَكُوْنُ جَمْعُهٗ وَ مَنْعُهٗ كَالْمَنْصُوْصِ عَلَيْهِ. |
| او مانع نو وي به جمع كيدل د تعريف او مانع كيدل د تعريف په شان د منصوص عليه |

**خلاصه د متن :** په دې عبارت سره شارح د توابع په تعريف كې د لفظ د كل بيان كوي

**اغراض د جامي :** ثم ان لفظة كل ههنا: په دې عبارت سره شارح يو سوال را نقل كوي او په

المحدود سره ددې سوال جواب ورکوي

**سوال**: په تعریف کې لفظ دکل ذکر په خپل ځای کې نه دي، ځکه چې لفظ د کل دافرادو داحاطې دپاره راځي، ددې په تعریف کې د ذکر کولو سره په افرادو سره تعریف لازم راځي. حالانکه تعریف دافرادو سره نه وي، بلکې دجنس سره وي او توابع په صیغې د جمع سره ذکر کول صحیح نه دي، ځکه چې په جمع کې افراد ملحوظ وي، نو ددې نه د افرادو تعریف لازم راځي، حالانکه تعریف د افرادو نه وي، بلکې د جنس وي خلاصه دا چې محدود د پلوه جنس کیدل ضروري دي او د حد لپاره هم قاعده ده چې التعریف للجنس بالجنس؟

**جواب**: شارح د فالمحدود نه ددې جواب ورکوي، چې دلته محدود په حقیقت کې توابع نه دي، بلکې تابع دي، چې په دې باندې دتوابع جمع دلالت کوي او حد په حقیقت کې د کل مدخول ثاني دي، یعنې تعریف ثاني باعراب سابقه نه شروع کیږي او لفظ د کل دحد نه خارج دی لهذا نه تعریف دافرادو سره لازم راغلو او نه د افرادو تعریف لازم راغلو.

لکنه لما ادخل کل: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: کله چې لفظ د کل په تعریف کې داخل نه دي، او د هغې حصه نه ده، نو ددې د ذکر کولو څه فائده ده؟

**جواب**: دلفظ دکل د ذکر کولو فائده د تعریف مانع گرځول دي، ځکه چې لفظ د کل دا فائده ورکړې ده، چې محدود د حد په افرادو کې په هر هر فرد باندې صادق راشي، نو تعریف د دخول دغیرنه مانع شو، ځکه چې د مانع کیدلو مطلب دادې چې هر هغه شئ چې په هغه باندې حد صادق وي، نو په هغې باندې به محدود هم صادق وي کلما صدق علیه الحد صدق علیه المحدود.

والظاهر انحصار: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: لفظ د کل دذکر کولو سره تعریف مانع خو شو، لیکن جامع نه شو.

**جواب**: ظاهره داده، چې محدود د حد په افرادو (توابع خمسه) کې محصور او بند دي، ځکه چې ددې نه غیر ذکر په کې نشته، یعنې د پنځو توابعو نه غیر ذکر په کې نشته، معلومه شوه چې محدود هم په دې پنځو کې منحصر دي، پس تعریف جامع نه شو او ددې جامعیت او

مانعیت لفظ د کل د وجې نه د منصوص علیه په شان شو

## د نعت تعریف :

| |
|---|
| اَلنَّعْتُ تَابِعٌ جِنْسٌ شَامِلٌ لِلتَّوَابِعِ كُلِّهَا وَ قَوْلُهُ يَدُلُّ عَلٰى مَعْنًى |
| نعت تابع دي دهغه جنس دپاره چې شامل وي ټولو توابعو ته او دا قول د مصنف چې دلالت کوي په داسې معنی |
| فِيْ مَتْبُوْعِهِ اَيْ يَدُلُّ بِهَيْأَةٍ تَرْكِيْبِيَّةٍ مَعَ مَتْبُوْعِهِ عَلٰى |
| چې هغه ددې په متبوع کې وي، یعنې دلالت کوي په داسې هیئت ترکیبه باندې چې وي سره د متبوع ددې په |
| حُصُوْلِ مَعْنًى فِيْ مَتْبُوْعِهِ مُطْلَقًا اَيْ دَلَالَةً مُطْلَقَةً غَيْرِ مُقَيَّدَةٍ بِخُصُوْصِيَّةِ مَادَّةٍ مِنَ الْمَوَادِ اِحْتِرَازٌ |
| حصول د معنی په متبوع کې مطلقا یعنې دلالت مطلقه غیر مقیده په خصوصیت د مادې سره د مادونه احترازدي |
| عَنْ سَائِرِ التَّوَابِعِ وَلَا يَرِدُ عَلَيْهِ الْبَدَلُ فِيْ مِثْلِ قَوْلِكَ اَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ عِلْمُهُ وَ الْمَعْطُوْفُ فِيْ مِثْلِ قَوْلِكَ |
| د ټولو توابعو نه او نه وارديږي په دې باندې بدل په شان د قول ستا اعجبني زید علمه او معطوف په شان د قول ستا |
| اَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ وَ عِلْمُهُ وَلَا التَّاكِيْدُ فِيْ مِثْلِ قَوْلِكَ جَاءَنِيْ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ لِدَلَالَةِ كُلِّهِمْ |
| اعجبني زید وعلمه او وارد دې نه وي اعتراض تاکید کې په شان د قول ستا جاءني القوم کلهم د وجې د دلالت د کلهم نه |
| عَلٰى مَعْنَى الشُّمُوْلِ فِيْ الْقَوْمِ فَاِنَّ دَلَالَةَ التَّوَابِعِ فِيْ هٰذِهِ الْاَمْثِلَةِ عَلٰى حُصُوْلِ مَعْنًى فِيْ الْمَتْبُوْعِ اِنَّمَا هِيَ |
| په معنی د شمول باندې په قوم کې ځکه دلالت د توابعو په دې مثالونو کې په حصول د معنی ده په متبوع کې دا |
| لِخُصُوْصِ مَوَادِهَا فَلَوْ جُرِّدَتْ عَنْ هٰذِهِ الْمَوَادِ كَمَا يُقَالُ اَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ غُلَامُهُ |
| دې د پاره د خصوص د مادونو که چیرته خالي کړې شي ددې مادونه لکه څنګه چې ویلي شي اعجبني زید غلامه |
| وَ اَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ وَ غُلَامُهُ اَوْ جَاءَنِيْ زَيْدٌ نَفْسُهُ لَا تَجِدُ لَهَا دَلَالَةً عَلٰى مَعْنًى فِيْ مَتْبُوْعَاتِهَا |
| او اعجبني زید وغلامه او جاءني زید نفسه نو نه موندل کیږي ددې دپاره دلالت په معنی باندې په متبوعاتو ددې کې |
| بِخِلَافِ الصِّفَةِ فَاِنَّ الْهَيْئَةَ التَّرْكِيْبِيَّةَ بَيْنَ الصِّفَةِ وَ الْمَوْصُوْفِ تَدُلُّ عَلٰى حُصُوْلِ مَعْنًى فِيْ |
| په خلاف د صفت ځکه هیئت ترکیبه په مینځ د صفت او د موصوف کې دا دلالت کوي په حصول د معنی باندې په |
| مَتْبُوْعِهَا فِيْ اَيِّ مَادَّةٍ كَانَتْ. |
| متبوعاتو کې په هره ماده کې چې وي. |

**خلاصه دمتن :** صاحب کافیه په دې عبارت کې د توابع د اول قسم نعت تعریف کوي، ددې نه پس ددې احکام بیانوي، د نعت تعریف دادې، چې نعت هغه تابع دي، چې هغه په داسې معنی باندې دلالت کوي چې هغه ددې په متبوع کې بیا موندې شي، مطلقاً یعنې په هر حال کې او په هره ماده کې.

**اغراض دجامي** : جنس شامل : په دې عبارت سره نه شارح دقیودو فوائد بیانوي ، لفظ د تابع په منزله د جنس دي، چي ټولو توابعو ته شامل دي

ای یدل بهیئة ترکیبیة مع متبوعه : په دې عبارت سره شارح دمتن وضاحت کوي، چې د هیئت ترکیبي نه په غیر حالت انفرادي کې نعت په مطلق معنی باندې دلالت کوي، په هغه معنی دلالت نه کوي کومه چې په متبوع کې ده، لیکن هیئت ترکیبي سره په داسې معنی باندې دلالت کوي، چې کومه په متبوع کې بیامونديږ شي.

یا بهیئة ترکیبیة مع متبوعه: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د نعت تعریف جامع نه دي په جآءنی زید هذا کې په هذا باندې صادق نه راځي، ځکه چې هذا په داسې معنی باندې دلالت نه کوي، چې هغه هغه په متبوع کې وي. ځکه چې د هذا معنی اشاره ده او دا معنی په زید متبوع کې نشته.

**جواب** : د مایدل علی معنی فی متبوعه نه مراد دادي چې نعت ددې هیئت ترکیبیه سره دخپل متبوع سره یو ځای شي او په داسې معنی باندې دلالت وکړي چې هغه ددې په متبوع کې موندلې شي او په ذکر شوي مثال کې هم کلمه د هذا دهیئت ترکیبیه نه پس دخپل متبوع زید سره یو ځای شي او په داسې معنی باندې دلالت کوي چې هغه دده په متبوع کې وي، هغه د زیدٌ مشارالیه کیدل دي.

علی حصول: په دې عبارت کې شارح بیان دترکیب کوي ، چې د فی متبوعه ظرف مستقر دحاصل سره متعلق شو اودا صفت دي دمعنی . یا په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د نعت تعریف جامع نه دي، په هغه صفت باندې صادق نه راځي کوم چې په قضیه کاذبه کې واقع وي مثلاً جاءني زید المضروب لکل شخص . اوس د هر سړي مضروب کیدل داسې معنی ده. چې هغه په زید کې متصور نه وي حالانکه المضروب د زید صفت دي .

**جواب** : د دلالت علی معنی فی متبوعه نه مراد دلالت علی حصول معنی و فهم معنی دي، یعنې نعت په داسې معنی باندې دلالت کوي کومه چې دمتبوع نه حاصل ده. او د متبوع نه فهمیږي برابره

خبره ده که په حقیقت کې هغه معنی متصوره وي، اویا نه او په ذکر شوي مثال کې هیئت ترکیبیه په حصول معنی او په فهم معنی باندې دلالت کوي چې هغه **مضروبیت زید لکل شخص** دي دا اګر چې په واقع کې کذب دي.

**ای دلالة معلقة**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي ، چې **مطلقاً** د **یدل** مفعول مطلق دي په اعتبار دحذف دموصوف سره دا په اصل کې **دلالة مطلقةً** وو.

**غیر مقیدة**: په دې عبارت کې شارح دیو وهم ازاله کوي

**وهم**: وهم دا دې چې کیدای شي چې د **مطلقاً** نه مراد **عموم في النعت** وي، یعنې ددې نه د نعت دواړه قسمونه ( **نعت بحال المنوت** یا **نعت بحال متعلق المنعوت**) طرف ته اشاره ده، شارح دغه وهم لرې کړو، د **مطلقاً** نه مراد دادې چې د نعت دلالت په حصول دمعنی باندې دمادې دخصوصیت د وجې نه ، نه دي بلکې ټولو ځایونو کې موجود دي.

**احتراز**: په دې عبارت سره غرض دشارح د قیودو د فوائدو بیان کوي، چې **یدل علی معنی** په منزله د فصل دي، ددې نه د نعت نه غیر باقي ټول توابع ووتل.

**ولا یرد**: په دې عبارت سره غرض دشارح دیو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د نعت تعریف دخول دغیر نه مانع نه دي، په بدل اوپه **معطوف بحرف** اوپه تاکید باندې صادق راځي ، ځکه چې داپه داسې معنی باندې دلالت کوي، چې هغه ددې په متبوع کې موندل کیږي ، لکه **اعجبني زید علمه**، په دې کې **علمه** بدل دي او دا په داسې معنی باندې دلالت کوي، چې هغه ددې متبوع په **زید** کې شته او **اعجبنی زید و علمه** په دې کې **علمه** معطوف بحرف دي او دا په داسې معنی باندې دلالت کوي ، چې هغه ددې په متبوع **زید** کې شته . او په **جآءنی القوم کلهم** کې **کلهم** تاکید دي او دا په داسې معنی باندې دلالت کوي، چې هغه ددې په متبوع یعنې په **قوم** باندې دلالت کوي.

**جواب**: دنعت په نعریف کې د **مطلقا** قید سره بدل، عطف او تاکید درې واړه خارج شو. ځکه چې د **مطلقا** مطلب دادې چې د نعت دلالت په معنی منعوت باندې د څه مادې د خصوصیت د وجې نه، نه وي بلکې ټولو افرادواو ټولو موادو کې موجود وي، په خلاف دبدل ،عطف بحرف او تاکید نه، چې دداسې مثالونو په معنی باندې دلالت کول چې هغه ددې په متبوع کې وي دا

ددې موادو د خصوصیت د وجې نه مطلقاً نه دي . داوجه ده چې کـه چیرتـه دامثالونـه ددې موادو نه خالي کړې شي نوداپه دې معنی باندې دلالت نه کوي کوم چې ددې په متبوع کې موندلې شي مثلاً چې کله داعجبني زید علمه په ځاې اعجبني زید غلامه ووایي ، نو بدل یعني غلامه په دې معنی دلالت نه کوي، چې کوم په متبوع یعني زید کې موندلې شي اوداعجبني زید و علمه په ځاې اعجبني زید و غلامه وویلې شي نومعطوف بحرف یعني غلامه په دې معنی باندې دلالت نه کوي کوم چې ددې په متبوع یعني په زید کې موندلې شي ، همدارنګې دجاءني القوم کلهم په ځاې جاءني زید نفسه وویلي ، نو تاکید یعني نفسه په هغـه معنی دلالت نه کوي، چې کومه په متبوع یعني زید کې ده. په خلاف د نعت نه، چې ددې دلالت د متبوع په معنی باندې په ټولو مادو اوپه هرځاې اوپه هر حال کې وي ، کوم معین اومخصوص مـادو سره خاص نه وي مثلاً جاءني زید بن العالم کې العالم لرې کړې، اوددې په ځـاې القائم یـا الفاضل ولرې ، نو دا هم په معنی صفتي باندې دلالت کوي .

## د نعت فائدې :

| |
|---|
| وَ فَائِدَتُهُ اَيْ فَائِدَةُ النَّعْتِ غَالِبًا تَخْصِيْصٌ فِي النَّكِرَةِ كَرَجُلٍ عَالِمٍ اَوْ تَوْضِيْحٌ فِي الْمَعْرِفَةِ |
| او فائدې ددې یعني فائدې د نعت غالباً تخصیص په نکره کې دی لکه رجل عالم اویاتوضیح په معرفه کې |
| كَزَيْدِنِ الظَّرِيْفِ وَ قَدْ يَكُوْنُ لِمُجَرَّدِ الثَّنَاءِ مِنْ غَيْرِ قَصْدِ تَخْصِيْصٍ وَتَوْضِيْحٍ نَحْوُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ |
| لکه زیدن الظریف او کله کله وي یواځې دثناء دپاره په غیرد قصد دتخصیص اوتوضیح نه لکه بسم الله الرحمن |
| الرَّحِيْمِ اَوْ لِمُجَرَّدِ الذَّمِ اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ اَوْ لِمُجَرَّدِ التَّاكِيْدِ مِثْلُ نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ |
| الرحیم اویایواځې دذم دپاره لکه اعوذ بالله من الشیطن الرجیم اویایواځې د تاکید دپاره لکه نفخة واحدة چې |
| تُفْهَمُ مِنَ التَّاءِ فِيْ نَفْخَةٍ فَاُكِّدَتْ بِالْوَحْدَةِ. |
| فهمیږي دتاء نه په نفخه کې نوتاکید یې وشوپه وحدت کې. |

**خلاصه دمتن :** صاحب دکافیې په دې عبارت کې دنعت تقسیم کوي په اعتبار دفائدې سره په اعتبـار دفائـدې سره نعت په پنځه (۵) قسمه دي : (۱) نعت مخصصه. (۲) نعت موضحه. (۳)نعت مادحه (۴) نعت ذامه (۵) نعت موکده . د هر یو قسم تعریف سره د مثـالونو لاندې په شرحه کې ذکر شوي دي .

**اغراض دجامي :** نعت په اعتبار د فائدې سره په پنځه (۵) قسمه دي : (۱) نعت مخصصه

(۲) نعت موضحه (۳) نعت مادحه (۴) نعت ذامه (۵) نعت موکده.

**(۱) نعت مخصصه**: دا هغه دي چې ددې منعوت (موصوف) نکره وي او هغه صفت په دې کې تخصیص وکړي او د تخصیص معنی ده **تقلیل الاشتراك في النكرات** (نکره کې د شرکاو کمیدل) یعنې نعت نه مخکې منعوت چې په کومو افرادو صادق راتلو، دنعت نه پس هغه په دغه ټولو افرادو باندې صادق نه راځي، بلکې په بعضو افرادو باندې صادق راځي، لکه **جاءني رجل العالم**، په دې کې دنعت نه مخکې رجل عام وو، چې هغه عالم جاهل ټولو ته شامل وو، کله چې ددې صفت عالم راوړې شونو په دې کې تخصیص وشو، نو دتخصیص دوجې نه اشتراك کم شو، نو ددې نه رجل جاهل خارج شو.

**(۲) نعت موضحه**: داهغه دي چې د ددې منعوت معرفه وي او دنعت نه مراد دمنعوت وضاحت وي، دتوضیح معنی ده **رفع الاجمال عن المعارف**، دمعرفې نه اجمال ختمول لکه **جاءني زيد الفاضل** په دې کې فاضل د زيد نعت دي، دنعت نه مخکې په زيد کې اجمال او ابهام وو، کله چې دده نعت راوړې شو نو هغه اجمال ختم شو.

**(۳) نعت مادحه**: داهغه دي چې ددې موصوف معرفه وي او دنعت نه مراد د منعوت مدحه وي، لکه **بسم الله الرحمن الرحيم**.

**(۴) نعت ذامه**: داهغه دي چې ددې موصوف معرفه وي، او دنعت نه مقصود د منعوت مذمت وي، لکه **اعوذ بالله من الشيطن الرجيم**.

**(۵) نعت موکده**: داهغه دي چې دادهغه معنی تاکید کوي کومه چې دموصوف نه فهمیږي لکه **نفخة واحدة** په دې کې **نفخة واحدة** دتاء نه فهمیږي، ځکه چې دا **تاء** د وحدت ده بیا وحدت د تاکید دپاره ذکر دي.

په دې پنځو (۵) کې صفت مخصصه او موضحه کثیر الاستعمال اوډیر استعمالیدونکي دي او باقي درې یعنې مادحه، ذامه، موکده، قلیل الاستعمال اوکم استعمالیدونکي دي.

<u>اي فائدة النعت</u>: په دې عبارت سره شارح په **فائدته** کې د **ة** ضمیر مرجع بیانوي چې په فائدته کې د **ة** ضمیر مرجع نعت دي

<u>غالباً</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : په عبارت کې اصل ایجاز او اختصار وي. نو مصنف رحمه الله ته په کار وو، چې داسې یې ویلی وي **وفائدته تخصیص او توضیح... وقد یکون** یې ولې زیات کړو؟

**جواب** : اول او دویم قسم کثیر الاستعمال دي او باقي درې قلیل الاستعمال دي، نو مصنف باقي درې قسمونو سره د قَدْ تقلیلیه اضافه وکړه او اشاره یې دې طرف ته وکړه چې دا باقي درې قسمونه کم استعمالیږي.

**من غیر قصد تخصیص و توضیح:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : مونږ دا خبره نه منو. چې په **بسم الله الرحمن الرحیم** کې صفت **الرحمن** او **الرحیم** صرف د ثناء دپاره دي، بلکې دتوضیح دپاره هم دي، ځکه چې کله عالم جاهل لپاره الله تعالی په صفت رحمانیة و رحیمیت موصوف کوي، نو دا د توضیح فائده ورکوي؟

**جواب** : منو چې په دې کښې توضیح ده، مګر زمونږ بحث په هغه صورت کې دي چې کله ددې نه دتخصیص اوتوضیح قصد نه وي اوصرف دثناء دپاره جوړ کړي شي.

## په مختلف فیه مسئله کې د جمهورو رد :

وَ لَمَّا كَانَ غَالِبُ مَوَادِّ الصِّفَةِ الْمُشْتَقَّاتِ تَوَهَّمَ كَثِيْرٌ مِّنَ النَّحْوِيِّيْنَ اَنَّ الْاِشْتِقَاقَ شَرْطٌ فِي النَّعْتِ

اوهر کله چې وزیات مواضع دصفت مشتق نووهم وشوزیاتودنحویانوته چې اشتقاق شرط دي په صفت کې تر

حَتّٰى تَاَوَّلُوْا غَيْرَ الْمُشْتَقِّ اِلَى الْمُشْتَقِّ وَ لَمَّا لَمْ يَكُنْ هٰذَا مَرْضِيًّا لِلْمُصَنِّفِ رَدَّهٗ بِقَوْلِهٖ

دې چې تاویل یې وکړود غیرمشتق مشتق طرف ته نوهر کله چې نه ووخوښ دامصنف ته نورد یې کړو په دې قول

وَ لَا فَصْلُ اَيْ لَا فَرْقَ بَيْنَ اَنْ يَّكُوْنَ النَّعْتُ مُشْتَقًّا اَوْ غَيْرَهٗ فِيْ صِحَّةِ وُقُوْعِهٖ

خپل سره اونشته فرق یعني نشته فق په مینځ ددې کې چې وي صفت مشتق اویاغیرمشتق په صحت دوقوع

نَعْتًا اِذَا كَانَ وَضْعُهٗ اَيْ وَضْعُ غَيْرِ الْمُشْتَقِّ لِغَرَضِ الْمَعْنٰى اَيْ لِغَرَضِ الدَّلَالَةِ

ددې کې نعت چې کله ووضع ددې یعني وضع دغیرمشتق دپاره دغرض دمعنی یعني دپاره دغرض ددلالت

عَلَى الْمَعْنَى الْوَاقِعِ فِي الْمَتْبُوْعِ عُمُوْمًا اَيْ فِيْ جَمِيْعِ الْاِسْتِعْمَالَاتِ مِثْلُ تَمِيْمِيٍّ وَذِيْ مَالٍ فَاِنَّ التَّمِيْمِيَّ

په هغه معنی چې واقع وي په متبوع کې عموما یعني په ټولو استعمالاتو کې لکه تمیمي او ذي مال ځکه تمیمي

يَدُلُّ دَائِمًا عَلٰى اَنَّ لِذَاتٍ مَا نِسْبَةً اِلٰى قَبِيْلَةِ تَمِيْمٍ وَ ذِيْ مَالٍ

دادلالت کوي همیشه په دې خبره چې وي دپاره دهغه ذات چې نسبت یې شوې وي قبیلې دتمیم ته او ذي مال دا

يَدُلُّ عَلَى اَنَّ ذَاتًا مَا صَاحِبُ مَالٍ اَوْ خُصُوْصًا اَيْ فِيْ بَعْضِ الْاِسْتِعْمَالَاتِ بِاَنْ

دلالت كوي په دې چې يوذات چې صاحب دمال وي اوياخصوصايعني په بعضې استعمالاتو كې په دې خبره چې

يَدُلُّ فِيْ بَعْضِ الْمَوَاضِعِ عَلَى حُصُوْلِ مَعْنًى لِذَاتٍ مَا وَ حِيْنَئِذٍ يَجُوْزُ اَنْ يَقَعَ

دلالت وكړي په بعضې مواضعو كې په حصول دمعنى دپاره ديوذات اوپه دې وخت كې جائزدي چې واقع شي

نَعْتًا وَ فِيْ بَعْضِهَا لَا يَدُلُّ عَلَى ذٰلِكَ وَ حِيْنَئِذٍ لَا يَصِحُّ جَعْلُهُ نَعْتًا

صفت اوپه بعضې ددې كې دلالت نه كوي په دې باندې اوپه دې وخت كې نه صحيح كيږي ګرځول ددې نعت

مِثْلُ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ اَيْ رَجُلٍ اَيْ كَامِلٍ فِي الرَّجُوْلِيَّةِ فَاَيُّ رَجُلٍ بِاِعْتِبَارِ دَلَالَتِهٖ فِيْ مِثْلِ هٰذَا

لكه مررت برجل يعني رجل يعني كامل په رجوليت كې نوفاي رجل په اعتبارددلالت ددې سره په شان ددې

التَّرْكِيْبِ عَلَى كَمَالِ الرَّجُوْلِيَّةِ يَصِحُّ اَنْ يَقَعَ نَعْتًا وَفِيْ مِثْلِ اَيُّ رَجُلٍ عِنْدَكَ لَايَدُلُّ عَلَى هٰذَا

تركيب په كمال رجوليت باندې صحيح كيږي چې واقع سي نعت اوپه شان داى رجل عندک دا دلالت نه كوي په دې

الْمَعْنٰى فَلَا يَصِحُّ اَنْ يَقَعَ نَعْتًا وَ مِثْلِ مَرَرْتُ بِهٰذَا الرَّجُلِ فَاِنَّ هٰذَا يَدُلُّ عَلَى ذَاتٍ

معنى باندې نونه صحيح كيږي چې واقع شي صفت اوپه شان دمررت بهذاالرجل ځكه هذادلالت كوي په ذات

مُبْهَمَةٍ وَ الرَّجُلَ عَلَى ذَاتٍ مُعَيَّنَةٍ وَ خُصُوْصِيَّةِ الذَّاتِ الْمُعَيَّنَةِ بِمَنْزِلَةِ مَعْنًى

مبهمه باندې اوالرجل دلالت كوي په ذات معينه باندې اوخصوصيت دذات معينه داپه منزله دمعنى ده چې

حَاصِلٍ فِي الذَّاتِ الْمُبْهَمَةِ فَلِهٰذَا صَحَّ اَنْ يَقَعَ الرَّجُلُ صِفَةً لِهٰذَا وَ فِي الْمَوَاضِعِ الْاُخَرِ

حاصل وي په ذات مبهمه كې نوددې وجې نه صحيح ده چې واقع شي الرجل صفت دپاره دهذااوپه نورو خايونو

الَّتِيْ لَا يَدُلُّ عَلَى هٰذَا الْمَعْنٰى لَا يَصِحُّ اَنْ يَقَعَ صِفَةً وَ ذَهَبَ بَعْضُهُمْ اِلٰى اَنَّ

كې هغه چې دلالت نه كوي په دې معنى نه دي صحيح چې واقع شي صفت اوتللي دي بعضې دې خبرې طرف ته

الرَّجُلَ بَدَلٌ عَنْ اِسْمِ الْاِشَارَةِ وَ بَعْضُهُمْ اِلٰى اَنَّهٗ عَطْفُ بَيَانٍ وَ مِثْلُ مَرَرْتُ

چې الرجل دابدل دي داسم اشارې نه اوبعضې دې طرف ته تللي چې الرجل عطف بيان دي اوپه شان دمررت

بِزَيْدٍ هٰذَا اَيْ بِزَيْدٍ نِ الْمُشَارِ اِلَيْهِ فَهٰذَا فِيْ هٰذَا الْمَوَاضِعِ يَدُلُّ عَلَى مَعْنًى حَاصِلٍ فِيْ ذَاتِ زَيْدٍ

بزيدهذايعني بزيدن المشاراليه نوداپه دې ځاي كې دلالت كوي په داسې معنى چې حاصل وي په ذات د زيد كې

فَوَقَعَ صِفَةً لَهٗ وَ فِي الْمَوَاضِعِ الْاُخَرِ الَّتِيْ لَا يَدُلُّ عَلَى هٰذَا الْمَعْنٰى لَا يَصِحُّ اَنْ

نوواقع شوصفت ددې دپاره اوپه نوروخايونوكې هغه چې دلالت نه كوي په دې معنى نه صحيح كيږي چې

يَقَعَ صِفَةً.

واقع شي صفت.

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب دکافيې ديوې اختلافي مسئلې بيان کوي اوپه جمهورو نحويانو باندې رد دي ، اختلافي مسئله داده، چې په صفت کې اشتقاق شرط دي او که نه ؟ دجمهور نحويانو مذهب دادې چې په نعت کې اشتقاق شرط دي، تر دې که چېرته نعت غير مشتق وي، نو دا به د مشتق په تاويل کې کيږي .

او د مصنف مذهب دادې چې په نعت کې اشتقاق شرط نه دي، بلکې لکه څنګه چې مشتق صفت جوړيږي، همدارنګې غير مشتق هم صفت جوړيږي. په دې شرط چې دغير مشتق وضع په دې معنی باندې ددلالت دپاره وي، چې کومه په متبوع کې وي، په طريقې دعموم وي اوياپه طريقې دخصوص

په طريقې دعموم مطلب دادې چې په ټولو استعمالاتو کې وي لکه تميمي او ذومال، تميمي په هغه ذات باندې دلالت کوي چې کوم بنو تميم طرف ته منسوب وي او دبطريق خصوص مطلب دادې چې په بعضو استعمالاتو کې وي، هغه لفظ په داسې معنی باندې دلالت کوي چې کومه په حاصل في المتبوع باندې دلالت کوي او په بعضې ځاې کې په معنی حاصل في المتبوع باندې دلالت نه کوي. په کوم ځاې کې چې په معنی حاصل فی المتبوع باندې دلالت کوي، هلته ددې نعت جوړېدل صحيح دي او کوم ځاې چې نه کوي، هلته ددې نعت جوړيدل صحيح نه دي، لکه مررت برجل ای رجل په دې کې دای رجل معنی کمال في الرجوليت ده لهذا په دې ترکيب کې ای رجل په دې اعتبار سره، چې په کمال في الرجوليت باندې دلالت کوي او دا دلسې معنی ده، چې هغه ددې په متبوع کې وي. ددې نعت جوړېدل صحيح دي ، او په اې رجل عندك کې ای رجل په داسې معنی باندې دلالت نه کوي، چې کومه ددې په متبوع کې وي، څکه چې ددې نه وړاندې داسې يو څيز نشته، چې د موصوف جوړېدو صلاحيت لري. نه لفظاً اونه تقديراً لهذا ددې نعت جوړيدل صحيح نه دي .

او لکه مررت بهذا الرجل په دې کې هذا په ذات مبهمه باندې دلالت کوي او الرجل په ذات معين باندې دلالت کوي او دذات معين دلالت په منزلـه د داسې معنی دي، چې کومه په ذات مبهم کې وي. ددې وجې نه په دې ترکيب کې الرجل د هذا صفت جوړېدل صحيح دي او په نورو ځايونو کې چې په دې معنی باندې دلالت نه کوي هلته ددې صفت جوړېدل صحيح نه دي او بعضې نحويانو ويلي دي: چې دا د اسم اشارې نه بدل دي .

او بعضو ویلي دي چې دا عطف بیان دي، اوپه مثال **مررت بزید هذا** کې زید مشار الیه ده او **هذا** په داسې معنی باندې دلالت کوي، چې کومه په ذات د زید کې ده لهذا ددې نعت جوړېدل صحیح دي.

**اغراض دجامي**: **ولماکان**: شارح ددې عبارت تعلق د متن د مابعد عبارت **ولا فصل** سره دی، چې په کوم کې مصنف په جمهورو نحویانو باندې رد کړې دي او په دې عبارت کې شارح د جمهورو دوهم وجه او منشأبیانوي، ځکه چې په اکثر ځایونو کې نعت مشتق وي ددې نه جمهور نحویانو ته وهم وشو، چې په نعت کې اشتقاق شرط دي تر دې که چیرته نعت غیر مشتق وي، نو هغه به د مشتق په تاویل کې ګرځي، مګر د مصنف په نزد دا قول صحیح نه دی، ځکه یې **ولا فصل** سره په جمهورو نحویانو باندې رد وکړو، چې د نعت مشتق کېدل ضروري او شرط نه دي. اسم مشتق اوغیر مشتق دواړه صفت جوړېدې شي، پس شرط دادې چې هغه غیر مشتق داسې معنی وصفي دپاره وضع شوې وي چې کومه ددې په متبوع کې وي په طریقې د عموم سره یعنې په ټولو استعمالاتو کې وي مثال لکه **تمیمي** **ذومال** یا په طریقې دخصوص سره یعنې بعضې استعمالاتو کې.

**لا فرق**: په دې عبارت کې شارح بیان دمعنی کوي، چې **فصل** په معنی د فرق دي، د فصل منطقي معنی هغه کلي چې د **ای شيء هو في ذاته** په جواب کې واقع وي دا معنی مراد نه ده.

**في صحة**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مونږ دا خبره نه منو، چې د نعت په مشتق اوغیر مشتق کېدو کې فرق نشته، بلکې فرق شته هغه دا چې د نعت مشتق کېدل اولی دي او د غیر مشتق نعت کېدل غیر اولی دي. مشتق اولی ددې وجې نه، چې په دې کې دا ختلاف نه وتل دي، اویاپه بل عبارت سره دا جواب دي دسوال مقدر:

**سوال**: مونږ نه منو، چې په مشتق او غیر مشتق کې فرق نشته، ځکه چې په نعت مشتق کې عائد ضروري دی. غیر مشتق کې عائد نه دي؟

**جواب**: دعدم فرق نه مراد دادې چې لکه څنګه چې د نعت مشتق کېدل صحیح دي همدارنګې د غیر مشتق نعت کېدل هم صحیح دي داولی اوغیر اولی خبره نه ده، او نه د ضمیر او دعدم ضمیر خبره ده

ای وضع غیر مشتق: په دې عبارت سره شارح د ه ضمیر مرجع بیانوي

لغرض: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د غرض اضافت معنی طرف ته صحیح نه دي، ځکه چې غرض دشئ په شئ باندې مرتب کیږي او معنی په وضع باندې مرتب نه ده بلکې معنی دوضع نه مقدم وي.

**جواب**: اګر چې نفس معنی دوضع نه مقدم وي، لیکن دلالت دلفظ په معنی باندې دوضع نه مؤخر اوپه دې باندې مرتب وي.

الواقع في المتبوع: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دلالت دلفظ په معنی باندې په ټولو الفاظو کې ثابت وي، نو د اذا کان وضعه للغرض الدلالة علی المعنی قیدي به بې فائدې دي ددې هیڅ حاجت نشته.

**جواب**: د دلالة علی المعنی نه مطلق دلالة علی المعنی مراد نه دي، بلکې په داسې معنی باندې دلالت مراد دي، چې په متبوع کې حاصل وي.

ای في جمیع الاستعمالات: په دې عبارت سره شارح ته اشاره وکړه چې دلته عموما منصوب علی الظرفیة وي.

قوله بان یدل: په دې عبارت سره شارح دیو وهم ازاله کوي:

**وهم**: کیدای شي چې دبعض الاستعمالات نه مراد استعمال العرب وي؟.

**ازاله دوهم**: په بان یدل سره ددې وهم ازاله کوي چې د بعض استعمالات نه مراد دادې چې په بعضې ځایونو کې لفظ په داسې معنی باندې دلالت کوي، چې هغه معنی په متبوع کې وي او په بعضې ځایونو کې په داسې معنی باندې دلالت نه کوي بیا شارح په مثالونو سره ددې وضاحت وکړو

## جمله خبریه د نکرې صفت جوړول:

| وَ تُوصَفُ النَّكِرَةُ لَا الْمَعْرِفَةُ بِالْجُمْلَةِ الْخَبَرِيَّةِ الَّتِيْ هِيَ حُكْمِ النَّكِرَةِ لِاَنَّ الدَّلَالَةَ عَلٰى |
|---|
| اووصف به راوړي شي نکره نه معرفه په هغه جمله خبریې سره چې هغه په حکم دنکرې کې وي ځکه دلالت په |
| مَعْنًى فِيْ مَتْبُوْعِهٖ كَمَا تُوْجَدُ فِي الْمُفْرَدِ كَذٰلِكَ تُوْجَدُ فِي الْجُمْلَةِ |
| هغه معنی چې وي په متبوع ددې کې لکه ځنګه چې موندلې شي په مفرد کې همدارنګې موندلې شي په جمله |

| |
|---|
| الْخَبَرِيَّةِ وَ اِنَّمَا قَيَّدَ الْجُمْلَةَ بِالْخَبَرِيَّةِ لِاَنَّ الْاِنْشَائِيَّةَ لَا تَقَعُ صِفَةً اِلَّا بِتَاوِيْلٍ |
| خبریه کي او په دغه سره مقيد يې کړه جمله په خبريې سره ځکه انشائيه نه واقع کيږي صفت مګر په تاويل |
| بَعِيْدٍ كَمَا اِذَا قُلْتَ جَاءَنِيْ رَجُلٌ اِضْرِبْهُ اَيْ مَقُوْلٌ فِيْ حَقِّهِ اِضْرِبْهُ اَيْ مُسْتَحِقٌّ لِاَنَّ يُؤْمَرَ |
| بعيد سره لکه څنګه چي وايي ته جاءني رجل اضربه يعني مقول في حقه اضربه يعني مستحق دي ځکه امر کوي په |
| بِضَرْبِهِ وَ يَلْزَمُهُ فِيْهَا الضَّمِيْرُ الرَّاجِعُ اِلَى تِلْكَ النَّكِرَةِ لِلرَّبْطِ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ اَبُوْهُ قَائِمٌ وَ |
| وهلو دده سره او لازم دي په دې کي ضمير چي راجع وي دې نکرې ته د ربط دپاره لکه جاءني رجل ابوه قائم او په |
| اِذَا لَمْ يَكُنْ فِيْهَا الضَّمِيْرُ الرَّابِطُ تَكُوْنُ اَجْنَبِيَّةً بِالنِّسْبَةِ اِلَى الْمَوْصُوْفِ فَلَا يَصِحُّ |
| هغه وخت کي چي نه وي په دې کي ضمير رابط نو وي به اجنبي په نسبت سره موصوف ته نو نه صحيح کيږي |
| اَنْ تَقَعَ صِفَةً لَهُ مِثْلُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ. |
| چي واقع شي صفت دده دپاره لکه جاءني رجل زيد عالم |

**خلاصه دمتن** : د صاحب کافيه د عبارت حاصل دا دی، چي جمله خبريه د نکرې صفت جوړيدای شي. ليکن په دې کي عائد ضروري وي. چي موصوف طرف ته راجع وي.

**اغراض دجامي** : لا المعرفة : په دې عبارت سره شارح دجامي اشاره کوي دې خبرې طرف ته چي د نکرې قيد احترازي دي. په دې سره احتراز دي د معرفې نه، ځکه چي جمله خبريه د معرفې صفت نه شي جوړيدې. ځکه چي جمله خبريه د نکرې په حکم کې وي. که چېرته موصوف معرفه وي. نو د تعريف او تنکير په اعتبار سره مطابقت نه پاتې کيږي.

التي هي: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : جمله خبريه د نکرې صفت واقع کيدل صحيح نه دي، ځکه چي د موصوف او صفت په مينځ کې د تعريف او تنکير په اعتبار سره مطابقت ضروري دی او که چېرته جمله خبريه د نکرې صفت جوړ شي. نو د موصوف او صفت په مينځ کې به مطابقت پاتې نه شي ځکه چي جمله خبريه نه نکره وي او نه معرفه. ځکه چي نکره او معرفه د اسم مفرد صفات دي او جمله خبريه مرکب وي

**جواب** : مونږ دا خبره نه منو چي جمله خبريه نه معرفه ده او نه نکره. ليکن د نکرې په حکم کې وي لهذا صفت جوړول صحيح دي

**سوال** : جمله خبريه د نکرې په حکم کې ولې وي؟

**جواب**: جمله خبریه د نکرې په حکم کې ځکه وي چې لکه ځنګه چې نکره مفرد په فرد مبهم باندې دلالت کوي، همدارنګې خبریه هم په مضمون مبهم باندې دلالت کوي، لکه ضرب زید جمله خبریه ده، ددې مضمون دجملې ضَرَبَ زَیْدٌ دی اوس دا مضمون جمله دتغلیظ او تخفیف او د زمان او مکان په اعتبار سره مبهم ده.

لان الدلالة: په دې عبارت سره شارح د ذکر شوي قاعدې: توصف النکرة بالجملة وجه بیانوي چې حاصل یې دادې چې صفت دپاره ضروري ده چې هغه معنی دمتبوع په حاصل باندې دلالت وکړي په دلالت مطلقه سره، اوداخبره لکه ځنګه چې په مفرد کې موندل کیږي همدارنګې په جمله خبریه کې هم موندل کیږي نوددې وجې نه دجملې خبریې صفت جوړول صحیح دي.

انما قید: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مصنف رحمه الله دایجاز اواختصار تابع دي اواختصار په دې کې وو چې مصنف رحمه الله وتوصف النکرة بالجملة یې ویل وي دایې د الخبریة سره نه مقید کولو نو ولې یې د جملې خبریې سره مقید کړو؟

**جواب**: دجواب حاصل دادې چې دجملې خبرېې سره یې ددې وجې نه مقید کړو ځکه چې جمله انشائیه دنکرې صفت نه جوړیږي ځکه چې که چیرته موصوف معرفه وي نو صفت د موصوف د توضیح اووضاحت فائده ورکوي اوکه چیرته موصوف نکره وي نو دتخصیص فائده ورکوي نو صفت دموصوف دپاره ثابت کیدل ضروري دي اودیوڅیز دپاره ثابت کیدل فرع ده ددې خبرې چې هغه څیز په خپله ثابت وي اوجمله انشائیه په خپله ثابت نه وي ځکه چې په دې کې ایجاد د مالم یوجد او اثبات د مالم یثبت وي ځکه چې دانکره صفت نه شي جوړیدې البته که چیرته په دې کې تاویل بعید وکړې شي نودنکرې صفت جوړیدې شي مثلاً جاءني رجل اضربه په دې کې دا تاویل وکړې شي چې: جاءني رجل مقول في حقه اضربه نو په دې صورت کې جمله انشائیه دنکرې صفت جوړیدې شي.

اي مستحق: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دا تاویل به په هغه وخت کې صحیح وي چې کله داقول دیو چانه صادر وي اوحالانکه دا دچا نه صادر نه دي.

**جواب** : د مقول في حقه نه مراد هو المستحق لان يومر بضر به دي يعنې د مقول نه مقوليت بالفعل مراد نه دي بلکه استحقاق مقوليت مراد دي .

الا بتاويل بعيد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : لکه څنګه چې په جمله انشائيه کې تاويل ضروري دي همدارنګې په جمله خبريه کې تاويل ته ضرورت راځي، لکه جاءني رجل ابوه قائم ، دقائم الادب په تاويل کې دي، کله چې په دواړو کې تاويل ته ضرورت راځي، نو د جمله خبريه صفت واقع کيدل اود جمله انشائيه نه واقع کيدل ترجيح بلا مرجح دي اودا صحيح نه ده ؟

**جواب** : اګر چې په جمله خبريه کې د تاويل ضرورت وي، ليکن هغه تاويل قريب وي او په جمله انشائيه کې تاويل بعيد ته ضرورت وي او دتاويل بعيد نه بچ کيدل مناسب وي.

په جمله خبريه کې به تاويل داسې وي، چې دا تاويل په نفس جمله کې وي او په جمله انشائيه کې تاويل دجملې نه خارج او د يو زائد امر د يوځاې کولو نه کيږي په ذکر شوي مثال کې يعنې مقول في حقه اضربه په دې کې مقول في حقه دجملې نه خارج او يو امر زائد دي .

فيها: په دې عبارت کې شارح د يلزم د صلې بيان کوي .

الراجع: په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې کله جمله نکره وي، نو په دې کې مطلق ضمير کيدل ضروري نه دي، بلکې د هغه ضمير کېدل ضروري دي کوم چې موصوف طرف ته راجع وي.

للرابط: په دې عبارت کې شارح په جمله خبريه کې دضمير دضروري کيدو وجه بيانوي : چې داځکه ضروري دي چې هغه صفت چې د موصوف سره متعلق کړي ، لکه جاءني رجل ابوه قائم ، په دې کې رجل موصوف او ابوه قائم ددې صفت دي او ه ضمير رابط دي .

او که چيرته په جمله کې ضمير نه وي . نو چونکې جمله مستقل بنفسها جوړيږي اودغير سره دارتباط تقاضا نه کوي نو ځکه په دې وخت کې دموصوف په اعتبار سره به دا اجنبي وي لهذا ددې صفت جوړول صحيح نه دي لکه جاءني رجل زيد عالم

## د نعت اقسام :

وَ يُوْصَفُ بِحَالِ الْمَوْصُوْفِ اَيْ بِحَالٍ قَائِمَةٍ بِهِ نَحْوُ مَرَرْتُ

اووصف راوړې شي په حال د موصوف سره يعنې په داسې حال سره چې هغه قائم وي د موصوف سره لکه مررت

بِرَجُلٍ حَسَنٍ اِذَا الْحَسَنُ حَالُ الرَّجُلِ وَ صِفَتِهِ وَ بِحَالِ مُتَعَلِّقِهِ اَيْ مُتَعَلِّقِ الْمَوْصُوْفِ

برجل حسنٍ ځکه چې حسن حال اوصفت دي د رجل نه اوپه حال د متعلق د دې سره يعنې په متعلق د موصوف

يَعْنِيْ بِصِفَةٍ اِعْتِبَارِيَّةٍ تَحْصُلُ لَهُ مُتَعَلِّقِهِ نَحْوُ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ حَسَنٍ

سره يعنې په صفت اعتباري سره چې حاصليږي د موصوف دپاره د هغه تعلق د وجې نه لکه مررت برجل حسن

غُلَامُهُ اِذْ كَوْنُ الرَّجُلِ حَسَنَ الْغُلَامِ مَعْنًى فِيْهِ وَ اِنْ كَانَ اِعْتِبَارِيًّا.

غلامه ځکه چې کیدل د رجل ښایسته غلام دا معنی په دې کې وه اګر که دا وصف اعتباري وي

**خلاصه دمتن** : دلته صاحب دکافیې د صفت د تقسیم بیان کوي چې صفت په دوه (۲) قسمه دي (۱) صفت بحال الموصوف (۲) صفت بحال متعلق الموصوف. چې د دواړو قسمونو تشریح سره د مثالونو لاندې په شرحه کې ذکر ده

**اغراض دجامي** : دلته شارح د صفت داقسامو بیان کوي چې صفت په دوه (۲) قسمه دي.
(۱) صفت بحال الموصوف (۲) صفت بحال متعلق المصوف.

**(۱) صفت بحال الموصوف**: داهغه دي. چې په داسې معنی باندې دلالت کوي. چې دغه معنی په ذات د متبوع اوپه موصوف کې موندل کیږي لکه **مررت برجل حسن**. په دې کې حسن چې په کومه معنی دلالت کوي، هغه په خپله په رجل کې موندل کیږي.

**(۲) صفت بحال متعلق الموصوف** : داهغه دي. چې په داسې معنی باندې دلالت کوي. چې هغه بالذات خو د موصوف په متعلق کې موندل کیږي لیکن بالاعتبار په خپله په موصوف کې موندل کیږي لکه **مررت برجل حسن غلامه**. په دې کې د **رجل**. **حسن الغلام** کیدل دا په داسې معنی باندې دلالت کوي. چې هغه په خپله په **رجل** کې موجود ده اګر چې اعتباري دي ځکه چې د کوم **رجل** غلام ښایسته وي هغه په خپله هم ښه وي په دې اعتبار سره چې د ده غلام ښه دی

**ای بحال قائمته به:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : لکه څنګه چې صفت بحال الموصوف د موصوف حال بیانوي. همدا رنګې صفت

بحال متعلق الموصوف هم د موصوف حال بیانوي. لهذا ددې دوه (۲) قسمونه جوړول او ددوي تقابل صحیح نه دی

**جواب**: منم چې صفت په اعتبار دمتعلق الموصوف سره هم د موصوف حال بیانوي. لیکن هغه قائم بالموصوف نه دی، بلکې د ده قیام د متعلق الموصوف سره دی همدارنګې چې کله بحال الموصوف کې صفت قائم بعین الموصوف وي لهذا تقابل صحیح دی

**وبحال متعلقه ای متعلق الموصوف**: په دې عبارت سره شارح په **متعلقه** کې د ه ضمیر مرجع بیانوي چې مرجع موصوف دی

**یعني بصفة اعتباریة تحصل له بسبب متعلقه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: کله چې نعت بحال متعلق الموصوف د موصوف د متعلق حال بیانوي، نو هغه ددې متعلق حال او ددې صفت وي نو دادموصوف صفت څنګه جوړیږي ؟

**جواب**: منم چې حقیقتاً هغه د موصوف د متعلق صفت دی. لیکن اعتباراً و مجازاً به د موصوف حال او صفت جوړیږي دصفت اعتباري مطلب دادې چې داپه معنی وصفي موصوف کې د متعلق داعتبار نه اودې دسب نه حاصل وي لکه په مررت برجل حسن غلامه کې حسن والامعنی وصفي په رجل کې دده د متعلق په اعتبار سره حاصلیږي، هم دې ته صفت اعتباریه ویلی کیږي.

## په لسو امورو کې صفت بحاله د متبوع تابع کیدل:

| |
|---|
| فَالْأَوَّلُ أَيِ النَّعْتُ بِحَالِ الْمَوْصُوْفِ يَتْبَعُهُ أَيِ الْمَوْصُوْفَ فِيْ عَشَرَةِ أُمُوْرٍ يُوْجَدُ مِنْهَا فِيْ |
| نواول یعني صفت بحال الموصوف تابع دي ددې یعني دموصوف په لسوامورو کې چې موندل کیږي ددې نه په |
| كُلِّ تَرْكِيْبٍ أَرْبَعَةٌ فِي الْإِعْرَابِ رَفْعًا وَنَصْبًا وَجَرًّا وَالتَّعْرِيْفِ وَالتَّنْكِيْرِ وَالْإِفْرَادِ وَالتَّثْنِيَةِ وَالْجَمْعِ التَّذْكِيْرِ وَ |
| هر یو څلور ترکیبو د اعراب کې رفع او نصب او جر او تعریف او تنکیر او مفرد او تثنیه او جمع تذکیر او |
| التَّأْنِيْثِ إِلَّا إِذَا كَانَ صِفَةً يَسْتَوِيْ فِيْهَا الْمُذَكَّرُ وَالْمُؤَنَّثُ كَفَعُوْلٍ بِمَعْنَى فَاعِلٍ نَحْوُ رَجُلٍ صَبُوْرٍ وَامْرَءَةٍ |
| تانیث مګرچې کله وي صفت اوبرابروي په دې کې مذکراومؤنث لکه فعول په معنی د فاعل لکه رجل صبوروامرءة |
| صَبُوْرٍ أَوْ فَعِيْلٍ بِمَعْنَى مَفْعُوْلٍ كَرَجُلٍ جَرِيْحٍ وَامْرَءَةٍ جَرِيْحٍ أَوْ كَانَ صِفَةً مُؤَنَّثَةً تَجْرِيْ عَلَى الْمُذَكَّرِ |
| صبوراویافعیل په معنی دمفعول لکه رجل جریح وامرءة جریح اویاوي صفت مؤنثه چې جاري کیږي په مذکر |

كَـعَـلَّامَـةٍ.

باندې لکه علامة

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافیې وایي چې په دې کې یعنې دنعت په اقسامو کې اول قسم صفت بحال الموصوف په لسو (۱۰) امورو کې د خپل متبوع تابع وي چې هغه لس (۱۰) امور دادي (۱) رفع (۲) نصب (۳) جر (۴) تعریف (۵) تنکیر (۶) تذکیر (۷) تانیث (۸) افراد (۹) تثنیه (۱۰) جمع

**اغراض دجامي** : **اى نعت بحال**: په دې عبارت کې شارح د **فالاول** مصدق متعین کړو چې اول قسم هغه صفت بحال الموصوف دي.

**اى الموصوف**: په دې عبارت کې شارح په **يتبعه** کې د ه ضمیر مرجع بیان یې کړه چې په يتبعه کې ه ضمیر موصوف طرف ته راجع دي.

**في عشرة امور**: په دې عبارت کې شارح د **يتبعه** دصلې بیان کوي د **يتبعه** صله **عشرة امور** دي.

**يوجد منها**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : په رفع ،نصب ، جر ، تعریف ،تنکیر ، تذکیر ، تانیث ، افراد ، تثنیه ، جمع کې تناقض او تضاد دي. رفع ، نصب او جر سره نه جمع کیږي، ددې امورو نه به په یو وخت کې یو وي ، همدارنګې د تذکیر او تانیث نه یو، د تعریف او تنکیر نه یو، مفرد ، تثنیه او جمع نه یو به وي ، نو **صفت بحال الموصوف** په یو وخت کې د لسو سره به څنګه موافق وي ؟ او ستاسو دا وینا چې **صفت بحال الموصوف** په لسو امورو کې به د خپل متبوع تابع وي دا خبره څنګه صحیح شوه؟

**جواب** : ددې مطلب دادې چې په هر ترکیب کې بالفعل ددې نه به څلور (۴) وي. د رفع ،نصب او جر نه یو ، دتعریف او تنکیر نه یو، دتذکیر او تانیث نه یو ، دافرد ،تثنیه اوجمع نه یو. نو لهذا اشکال دفع شو

**رفعاً، نصباً و جراً**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : اعراب قسم واحد دي. سو نول امور اته (۸) جوړیږي. لس (۱۰) نه جوړیږي نو تاسو ولې امور عشرة وویل ؟

**جواب**: داعراب نه مراد درې (۳) قسمونه دي، لهذا ټول چې يو ځای کړې، نو لس (۱۰) امور ترې جوړيږي.

الا اذا کان: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: ذکر شوي قاعده منقوض اوماته ده په **امراة صبور**، **امراة جريح** او **رجل علامة** وغيره سره، ځکه چې په دې کې، **صبور**، **جريح** او **علامة** صفت بحال الموصوف دي حالانکه د تذکير او تانيث په اعتبار سره دخپل موصوف مطابق نه دي؟

**جواب**: مذکوره صورتونه د ضابطې نه مستثنی دي، وجه داستثناء داده چې قاعده ده چې کله صيغه د صفت داسې اسم وي چې په هغې کې مذکر او مؤنث برابر وي، نو په دې صورت کې صفت د خپل موصوف سره صرف په درې (۳) شيانو کې مطابقت ضروري دي:

(۱) رفع نصب جر، (۲) تعريف تنکير، (۳) افراد تثنيه جمع، په تذکير او تانيث کې مطابقت ضروري نه دی، او په کلام دعربو کې دوه وزنونه داسې دي، چې هغه په تذکير او تانيث کې برابر دي: (۱) فعول لکه **رجل صبور** په معنی د **رجل صابر**، و **امراة صبور** په معنی د **امراة صابرة**،

(۲) فعيل لکه **رجل جريح** په معنی د **رجل مجروح امراة جريح** په معنی د **امراة مجروحة**، همدارنګې که صفت داسې مؤنث وي چې هغه په مذکر باندې هم جاري کيږي، نو په دې صورت کې هم صفت د خپل موصوف سره (په تذکير او تانيث کې) موافق کيدل ضروري نه دي، لکه **رجل علامة**.

## په پنځو امورو کې صفت بحال متعلقه کې د متبوع تابع کيدل:

| |
|---|
| وَ الثَّانِيْ اَيِ النَّعْتُ بِحَالِ مُتَعَلِّقِ الْمَوْصُوْفِ يَتْبَعُهُ فِي الْخَمْسَةِ الْاَوَّلِ وَهِيَ الرَّفْعُ وَالنَّصْبُ وَ الْجَرُّ وَ |
| اودويم يعني صفت بحال متعلق الموصوف تابع وي ددې سره په پنځوکې اول اوهغه رفع اونصب اوجراو |
| التَّعْرِيْفُ وَ التَّنْكِيْرُ وَيُوْجَدُ مِنْهَا فِيْ كُلِّ تَرْكِيْبٍ اِثْنَانِ وَ فِي الْبَوَاقِيْ مِنْ تِلْكَ الْاُمُوْرِ الْعَشْرَةِ وَ هِيَ |
| معرفه اونکره ده اوموندل کيږي ددې نه په هر يو ترکيب کې دوه اوپه باقي کې ددې لسوامورو کې اوهغه |
| اَيْضاً خَمْسَةُ الْاِفْرَادُ وَ التَّثْنِيَةُ وَ الْجَمْعُ وَ التَّذْكِيْرُ وَ التَّاْنِيْثُ كَالْفِعْلِ لِشِبْهِهٖ بِهٖ يَعْنِيْ يُنْظَرُ |
| همدارنګې پنځه دي مفردتثنيه جمع مذکرمؤنث لکه فعل دوجې دمشابهت نه دفعل سره يعني کتلې به شي |
| اِلٰى فَاعِلِهٖ فَاِنْ كَانَ مُفْرَدًا اَوْ مُثَنًّى اَوْ مَجْمُوْعًا اُفْرِدَ كَمَا يُفْرَدُ الْفِعْلُ وَ اِنْ |
| فاعل طرف ته که چيرته ومفرداوياتثنيه اوياجمع نومفردبه راوړې شي لکه ځنګه چې مفردوي فعل اوکه |

كَانَ مُذَكَّرًا اَوْ مُؤَنَّثًا حَقِيْقِيًّا بِلَا فَصْلٍ طَابَقَهُ وُجُوْبًا كَمَا يُطَابِقُ الْفِعْلُ

جبرته مذکر او يا مؤنث حقيقي بې د فصل نه نومطابق به وي د فاعل سره وجوبا لکه څنګه چې مطابق وي فعل

فَاعِلَهُ فِي التَّذْكِيْرِ وَ التَّانِيْثِ وَ اِنْ كَانَ فَاعِلُهُ مُؤَنَّثًا غَيْرَ حَقِيْقِيٍّ اَوْ حَقِيْقِيًّا مَفْصُوْلًا

د خپل فاعل سره په تذکير او تانيث کې او که چيرته فاعل دد ې مؤنث غير حقيقي وي او يا حقيقي مفصول

يُذَكَّرُ اَوْ يُؤَنَّثُ جَوَازًا تَقُوْلُ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ قَاعِدٍ غُلَامُهُ مِثْلُ يَقْعُدُ غُلَامُهُ وَ بِرَجُلَيْنِ

وي نو مذکر او مؤنث به وي جوازاً . ته به وايې مررت برجل قاعد غلامه په شان د يقعد غلامه او لکه مررت برجلين

قَاعِدٍ غُلَامَاهُمَا مِثْلُ يَقْعُدُ غُلَامَاهُمَا وَبِرِجَالٍ قَاعِدٍ غِلْمَانُهُمْ مِثْلُ يَقْعُدُ غِلْمَانُهُمْ وَمَرَرْتُ بِامْرَءَةٍ قَائِمٍ اَبُوْهَا مِثْلُ

قاعد غلاماهما لکه يقعد غلاماهما او مررت برجال قاعد غلمانهم لکه يقعد غلمانهم او مررت بامرءة قائم ابوها لکه

يَقُوْمُ اَبُوْهَا وَبِرَجُلٍ قَائِمَةٍ جَارِيَتُهُ مِثْلُ تَقُوْمُ جَارِيَتُهُ وَبِرَجُلٍ مَعْمُوْرٍ اَوْ مَعْمُوْرَةٍ دَارُهُ مِثْلُ يُعْمَرُ اَوْ تُعْمَرُ دَارُهُ وَبِرَجُلٍ

يقوم ابوها او مررت برجل قائمة جاريته لکه تقوم جاريته او مررت برجل معمور او معمورة لکه يعمر او يا تعمر داره برجل

قَائِمٍ اَوْ قَائِمَةٍ فِي الدَّارِ جَارِيَتُهُ مِثْلُ يَقُوْمُ اَوْ تَقُوْمُ فِي الدَّارِ جَارِيَتُهُ .

قائم او قائمة في الدار جاريته لکه يقوم او يا تقوم في الدار جاريته

**خلاصه دمتن** : د صاحب د کافيې د عبارت حاصل دا دې چې د نعت دوهم قسم يعنې صفت بحال متعلق الموصوف په پنځو (۵) امورو کې د خپل موصوف تابع وي : (۱) رفع (۲) نصب (۳) جر (۴) تعريف (۵) تنکير او باقي پنځو (۵) امورو کې يعنې (۱) افراد . (۲) تثنيه . (۳) جمع، (۴) تذکير . (۵) تانيث کې د فعل په شان وي.

**اغراض دجامي** : اى النعت: په دې عبارت کې شارح د الثاني د مصداق تعين وکړو چې د الثاني مصداق النعت دي.

وهى الرفع: په دې عبارت سره شارح د الخمسة الاول مصداق تعين کوي، چې د دې مصداق رفع، نصب، جر، تعريف و تنکير دي.

ويوجد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په رفع، نصب، جر او همدارنګې په تعريف او تنکير کې منافات او تناقض دي، نو دا وينا چې د نعت دويم قسم په پنځو (۵) امورو کې د خپل متبوع تابع وي څنګه صحيح شو، حالانکه رفع نصب جر درې واړه په يو وخت کې په يوه کلمه کې نه وي، همدارنګې تعريف او تنکير په يوه کلمه کې نه جمع کيږي

**جواب** : ددې مطلب دادې چې په هر ترکیب کې بالفعل او په یو وخت کې ددې پېنځو نه دوه موندل شي . البته علی سبیل البدل په پنځو (۵) کې مطابقت ضروري دی

وهي ایضاً: په دې عبارت کې دبواقي دمصداق تعین کوي، چې باقي امور هم پنځه (۵) دي (۱) افراد . (۲) تثنیه (۳) جمع (۴) تذکیر (۵) تانیث

لشبهه به : په دې عبارت کې شارح په باقي پنځو (۵) کې د صفت بحال متعلق الموصوف د فعل په شان کیدو وجه بیانوي. چې په باقي امورو کې نعت بحال متعلق الموصوف د فعل مشابه دي . او وجه دمشابهت یې داده چې لکه څنګه چې فعل د خپل ما بعد فاعل طرف ته مسند وي، همدارنګې صفت هم د خپل ما بعد فاعل طرف ته مسند وي ما قبل موصوف طرف ته مسند نه وي

یعني ینظر الی فاعله : په دې عبارت کې شارح ددې خبرې وضاحت کوي چې صفت بحال متعلق الموصوف په باقي پنځو (۵) امورو کې د فعل سره څنګه مشابه دي چې ددې حاصل دادې چې د صفت فاعل ته به کتلې شي که فاعل اسم ظاهر وي، نو صفت به مفرد وي، برابره خبره ده که فاعل واحد وي اویا تثنیه وي اویا جمع وي لکه **مررت برجل قاعد غلامه** ، **مررت برجلین قاعد غلاماهما** ، **مررت برجال قاعد غلمانهم** ، که چیرته د فعل فاعل اسم ظاهر وي، نو فعل به همیشه مفرد راوړلې شي برابره خبره ده که فاعل واحد وي اویا تثنیه وي اویا جمع وي لکه **مررت برجل یقعد غلامه** ، **مررت برجلین یقعد غلاماهما** ، **مررت برجال یقعد غلمانهم** ، او که چیرته فاعل اسم ظاهر مذکر وي، نو صفت به یې هم مذکر راوړلې شي برابره خبره ده که موصوف مؤنث ولې نه وي، لکه **مررت بامراة قائم ابوها**.

که چیرته د فعل فاعل مذکر وي، نو فعل به مذکر راوړې شي لکه **مررت بامراة یقوم ابوها**، او که فاعل مؤنث حقیقي وي او د صفت او فاعل په مینځ کې فاصله نه وي، نو دصفت مؤنث راوړل واجب دي لکه **مررت برجل قائمة جاریته** ، که چیرته د فعل فاعل مؤنث حقیقي وي او دصفت اودفاعل په مینځ کې فاصل نه وي نوصفت مؤنث راوړل واجب دي، لکه **مررت برجل تقوم جاریته**.

اوکه چیرته فاعل مؤنث غیرحقیقي وي ، اویا مؤنث حقیقي وي لیکن د صفت او فاعل په مینځ کې فاصل وي، نوفعل مؤنث راوړل هم جائز اومذکر راوړل هم جائز دي د مؤنث

غير حقيقي مثال لكه مررت برجل معمور او معمورة دارها ، مررت برجل يعمر او تعمر داره ، او كه چيرته مؤنث حقيقي وي او د صفت او فاعل په مينځ كې فاصل وي، د دې مثال لكه مررت برجل قائم يا قائمة في الدار جاريته ، مررت برجل يقوم في الدار او تقوم في الدار جاريته .

## يو اعتراض او د هغې جواب :

| |
|---|
| فَإِنْ قُلْتَ إِذَا نَظَرْتَ حَقَّ النَّظَرِ وَجَدْتَ الْأَوَّلَ وَ هُوَ الْوَصْفُ بِحَالِ الْمَوْصُوْفِ أَيْضاً |
| كه چيرته ته ووايې چې كله ته نظر وكړې حق نظر نو بيا به موزې اول او هغه وصف بحال الموصوف دې همدا رنګې |
| فِي الْخَمْسَةِ الْبَوَاقِيْ كَالْفِعْلِ لِأَنَّ فَاعِلَهُ كَالضَّمِيْرِ الْمُسْتَكِنِّ فِيْهِ الرَّاجِعِ إِلَى مَوْصُوْفِهِ |
| په پنځه باقي كې لكه فعل ځكه فاعل د دې په شان د ضمير مستتر دې په فعل كې چې راجع كيږي موصوف |
| وَ الْفِعْلِ إِذَا أُسْنِدَ إِلَى الضَّمِيْرِ يَلْحَقُهُ الْأَلِفُ فِي التَّثْنِيَةِ وَ الْوَاوُ فِيْ جَمْعِ الْمُذَكَّرِ الْعَاقِلِ وَ النُّوْنِ فِيْ |
| د دې ته او فعل چې كله اسناد وشي ضمير ته نو پيوسته كيږي الف په تثنيه او واو په جمع مذكر عاقل كې او نون په |
| جَمْعِ الْمُؤَنَّثِ وَ يُؤَنَّثُ فِي الْوَاحِدِ الْمُؤَنَّثِ وَ لِذٰلِكَ قُلْتَ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ ضَارِبٍ وَ |
| جمع مؤنث كې او مؤنث به راوړې شي په مفرد كې مؤنث او د دې وجې نه تاوويل چې مررت برجل ضارب او مررت |
| بِرَجُلَيْنِ ضَارِبَيْنِ وَ بِرِجَالٍ ضَارِبِيْنَ وَ بِإِمْرَأَةٍ ضَارِبَةٍ وَ بِإِمْرَأَتَيْنِ ضَارِبَتَيْنِ وَ بِنِسْوَةٍ ضَارِبَاتٍ كَمَا |
| برجلين ضاربين او مررت برجال ضاربين او مررت بامرأة ضاربة ومررت بامرأتين ضاربتين او مررت بنسوة ضاربات لكه |
| تَقُوْلُ فِي الْفِعْلِ يَضْرِبُ وَ يَضْرِبَانِ وَ يَضْرِبُوْنَ وَ تَضْرِبُ وَ تَضْرِبَانِ وَ يَضْرِبْنَ فَلِمَ خَصَّصْتَ |
| ځنګه چې تاسو وايې په فعل كې يضرب او يضربان او يضربون او تضرب او تضربان او يضربن نو ولې يې خاص |
| الثَّانِيْ بِهٰذَا الْحُكْمِ قُلْنَا الْمَقْصُوْدُ الْأَصْلِيُّ فِيْ هٰذَا الْمَقَامِ بَيَانُ نِسْبَةِ الْوَصْفَيْنِ إِلَى الْمَوْصُوْفِ |
| كړو دويم د دې حكم پورې مونږ وايو چې مقصود اصلي په دې ځاې كې بيان د نسبت د دوه وصفونو دې موصوف |
| بِالتَّبْعِيَّةِ وَ عَدَمِهَا وَ لَمَّا كَانَ الْوَصْفُ الْأَوَّلُ يَتْبَعُهُ فِي الْأُمُوْرِ الْعَشَرَةِ وَ كَانَ لَا |
| ته په تابع كيدو او نه تابع كيدو كې او هر كله چې اول وصف تابع وي په لسو امورو كې او و اول وصف چې نه يې |
| تُخْرِجُهُ مُشَابَهَتُهُ لِلْفِعْلِ فِي الْخَمْسَةِ الْبَوَاقِيْ عَنْ هٰذِهِ التَّبْعِيَّةِ لِمَا عَرَفْتَ اِكْتَفٰى |
| ويستو مشابهت د ده د فعل سره په پنځو باقيو كې د دې تابع كيدو نه د هغه څه نه چې تاو پيژندل نو اكتفاء يې |
| فِيْهِ بِالْحُكْمِ عَلَيْهِ بِالتَّبْعِيَّةِ بِخِلَافِ الْوَصْفِ الثَّانِيْ فَإِنَّهُ لَمَّا حَكَمَ بِالتَّبْعِيَّةِ |
| وكړه په حكم سره په دې باندې په تابع كيدو سره په خلاف د دويم وصف ځكه هر كله چې يې حكم وكړو په تابع |
| فِي الْخَمْسَةِ الْأَوَّلِ لَمْ يَكْتَفِ فِيْهِ بِالْحُكْمِ بِعَدَمِ التَّبْعِيَّةِ فَإِنَّهُ غَيْرُ مَضْبُوْطٍ بَلْ بَيَّنَ |
| كيدو په اول پنځو كې نو اكتفاء يې ونه كړه په حكم سره په نه تابع كيدو ځكه چې دا غير مضبوط دې بلكې بيان |

| ضَابِطَةَ عَدَمِ تَبْعِيَّتِهِ لَهُ بِكَوْنِهِ كَالْفِعْلِ بِالنِّسْبَةِ إِلَى الظَّاهِرِ بَعْدَهُ |
| --- |
| كړي قاعده د عدم تابع كيدو ددې چې دا په شان د فعل دي په نسبت سره ظاهر ته پس ددې نه ددې د پاره |
| لِيَتَبَيَّنَ حَالُهُ عِنْدَ عَدَمِ التَّبْعِيَّةِ. |
| چې بيان كړي حال ددې په وخت دنه تابع كيدو. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره شارح يو سوال مقدر رانقل كوي او دهغې سوال مقدر جواب وركوي

**اغراض دجامي** : فان قلت: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل كوي او په قلنا سره ددې اعتراض جواب وركوي :

**اعتراض** : لكه څنګه چې دصفت دويم قسم په آخري پنځو (۵) شيانو كې د فعل په شان وي، نو همدارنګې دصفت اول قسم هم په آخري پنځو (۵) شيانو كې به دفعل په شان وي، مثلاً چې كله فعل مسند وي ضمير طرف ته نو ددې مرجع ته به كتلې شي كه مرجع واحد مذكر وي، نو فعل به هم واحد مذكر وي ، او كه مرجع تثنيه مذكر وي نو د فعل په آخر كې الف پيوسته كيږي ، او كه د ضمير مرجع جمع مذكر عاقل وي نو د فعل په آخر كې به واؤ راوړلې شي او كه د ضمير مرجع واحد مؤنث وي نو فعل به واحد مؤنث راوړلې شي ، او كه مرجع تثنيه وي نو فعل به مؤنث راوړى شي او كه مرجع جمع مؤنث وي، نو فعل به هم جمع مؤنث راوړلې شي، بعينه هم دغه شان په صفت كې به هم د ضمير مرجع ته كتلې شي كه مرجع واحد مذكر وي، نو صفت به هم واحد مذكر راوړلې شي او كه مرجع تثنيه مذكر وي، نو صفت به هم تثنيه مذكر راوړلې شي او كه مرجع واحد مؤنث وي، نو صفت به هم واحد مؤنث وي، او كه د ضمير مرجع تثنيه مؤنث نو صفت به هم تثنيه مؤنث وي او كه د ضمير مرجع جمع مؤنث وي، نو صفت به هم جمع مؤنث وي، نو د نعت په صورت كې به داسې وايي : مررت برجل ضارب، مررت برجلين ضاربين، مررت برجال ضاربين، مررت بامراة ضاربته، مررت بامراتين ضاربتين، مررت بنسوة ضاربات او په فعل كې به داسې وايي : مررت برجل يضرب، مررت برجلين يضربان، مررت برجال يضربون، مررت بامراة تضرب، مررت بامراتين تضربان، مررت بنسوة يضربن، نو كله چې اول قسم (نعت مجال الموصوف ) هم په باقي پنځو كې د فعل مشابه دي لكه د مثالونو نه چې واضحه شوه نو مصنف رحمه الله دويم قسم نعت بحال متعلق الموصوف كې وفي البواقي كالفعل وويل او تخصيص يې ولې وكړو ؟

**جواب**: په دې مقام کې د مصنف رحمه الله اصلي مقصد د صفت د دواړه قسمونو نعت بحال الموصوف او نعت بحال متعلق الموصوف کې خپل موصوف طرف ته نسبت بيانول دي. د تبعيت او عدم تبعيت په اعتبار سره چونکې د صفت اول قسم په لسو امورو کې د خپل موصوف تابع دي او پنځه باقي امورو کې د دې فعل مثل او مشابه کيدل د دې د تبعيت نه خارج نه دي د دې وجې نه په اول قسم کې د تبعيت په حکم باندې يې اکتفاء وکړه په خلاف د دويم قسم چې هغه په اولو پنځو قسمونو کې د خپل موصوف تابع وي او په باقي پنځو امورو کې د خپل موصوف تابع نه وي نو چې کله په اولو پنځو کې د دې د تبعيت حکم يې ولړولو نو په باقي پنځو کې د عدم تبعيت حکم لړول په کار وو ځکه چې اصلي مقصود تبيعت او عدم تبعيت بيانول وو ليکن مصنف رحمه الله صرف په عدم تبعيت د حکم په لړولو باندې اکتفاء ونه کړه بلکې د دې عدم تبعيت يې په کالفعل سره يې تعبير کړي ځکه عدمت تبعيت منضبطه نه ده کله عدم تبعيت د تذکير او تانيب په اعتبار سره وي او کله عدم تبعيت د افراد او تثنيې په اعتبار سره وي ځکه يې کالفعل وويل نو عدم تبعيت يې ديوې ضابطې او قاعدې په شکل کې يې بيان کړه چې په باقي پنځو امورو کې نعت بحال متعلق الموصوف د خپل مابعد اسم ظاهر طرف ته د نسبت کولو په اعتبار سره په منزله د فعل وي د دې د پاره چې واضحه شي چې په باقي پنځو امورو کې د عدم تبعيت په وخت کې به د دې څه حال وي نو د هغه حالت د بيانولو د پاره يې کالفعل وويل چې د عدم تبعيت په وخت کې به د دې حال د فعل په شان وي.

## په باقي امورو کې صفت بحال متعلقه د فعل په شان کيدل:

| |
|---|
| وَ مِنْ ثُمَّ اَيْ وَ مِنْ اَجْلِ كَوْنِ الْوَصْفِ الثَّانِيْ فِي الْخَمْسَةِ الْبَوَاقِيْ كَالْفِعْلِ حَسُنَ قَامَ رَجُلٌ قَاعِدٌ |
| او د دې وجې نه يعنې دوجې د کيدو د وصف ثاني په پنځو باقي کې په شان د فعل او مستحسن دي قام رجل قاعد |
| غِلْمَانُهُ كَمَا حَسُنَ يَقْعُدُ غِلْمَانُهُ وَ حَسُنَ اَيْضاً قَاعِدَةٌ غِلْمَانُهُ لِاَنَّ الْفَاعِلَ مُؤَنَّثٌ |
| غلمانه لکه څنګه چې مستحسن دي يقعد غلمانه او مستحسن دي هم دارنګې قاعده د غلمانه ځکه فاعل مؤنث |
| غَيْرُ حَقِيْقِيٍّ كَمَا حَسُنَ تَقْعُدُ غِلْمَانُهُ وَ ضَعُفَ قَامَ رَجُلٌ قَاعِدُوْنَ غِلْمَانُهُ لِاَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ |
| غير حقيقي دي لکه څنګه چې مستحسن دي تقعد غلمانه او ضعيف دي قام رجل قاعدون غلمانه ځکه دا په منزله د |
| يَقْعُدُوْنَ غِلْمَانُهُ وَ اِلْحَاقُ عَلَامَتَيِ الْمُثَنّٰي وَ الْمَجْمُوْعِ فِي الْفِعْلِ الْمُسْنَدِ اِلٰي ظَاهِرِهِمَا |
| يقعدون غلمانه دي او الحاق د دوه علامو د تثنيې او د جمع په هغه فعل کې چې مسند وي ظاهر د دې دواړو ته |
| ضَعِيْفٌ وَ يَجُوْزُ مِنْ غَيْرِ حُسْنٍ وَلَا ضُعْفٍ قُعُوْدُ غِلْمَانُهُ وَ اِنْ كَانَ قُعُوْدٌ جَمْعٌ |

| |
|---|
| ضعيف دي او جائز دي چې وي په غير مستحسن نه او نه دي ضعيف قعود غلمانه او که چيرته قعود جمع دی |
| أَيْضاً كَقَاعِدُوْنَ لِاَنَّكَ إِذَا كَسَّرْتَ الْإِسْمَ الْمُشَابَهَةِ لِلْفِعْلِ خَرَجَ لَفْظًا عَنْ مُوَازَنَةِ |
| همدارنګې لکه قاعدون ځکه چې کله مکسور شي اسم چې مشابه وي د فعل سره نو خارج شو لفظا د موازنت د |
| الْفِعْلِ وَ مُنَاسَبَتِهِ لِاَنَّ الْفِعْلَ لَا يُكَسَّرُ فَلَمْ يَكُنْ قُعُوْدُ غِلْمَانُهُ مِثْلَ يَقْعُدُوْنَ غِلْمَانُهُ الَّذِيْ اِجْتَمَعَ |
| فعل او د مناسبت د دې نه ځکه چې فعل نه وي مکسور نو نه به وي قعود غلمانه لکه يقعدون غلمانه هغه چې جمع |
| فِيْهِ فَاعِلَانِ فِي الظَّاهِرِ إِلَّا أَنْ تُخْرِجَ الْوَاوَ مِنَ الْإِسْمِيَّةِ إِلَى الْحَرْفِيَّةِ أَوْ يُجْعَلَ الْمُظْهِرُ بَدَلًا |
| وي په دې کې دوه فاعله په ظاهر کې مګر چې خارج شي واو د اسميت نه حرفيت ته او يا وګرځول شوي مظهر بدل |
| مِنَ الضَّمِيْرِ أَوْ يُجْعَلَ الْفِعْلُ خَبَراً مُقَدَّمًا عَلَى الْمُبْتَدَأِ. |
| د مضمر نه او يا وګرځول شي فعل خبر مقدم په مبتدا باندې |

**خلاصه دمتن** : من ثم دا په ما قبل باندې تفريع ده. چې کله دويم قسم ثاني په آخري پنځو (۵) امورو کې د خپل موصوف تابع نه وي بلکې د فعل په شان وي، نو **قام رجل قاعد غلمانه** دا ترکيب حسن دي همدارنګې **قام رجل يقعد غلمانه** دا ترکيب حسن دي، ځکه چې کله فاعل اسم ظاهر وي نو فعل مفرد راوړل واجب دي، او **قام رجل قاعدة غلمانه** دا ترکيب هم حسن دي، همدارنګې **قام رجل تقعد غلام** ترکيب حسن دي، ځکه چې **غلمانه** جمع ده او **جمع** په تاويل د **جماعة** سره ده او **جماعة** مؤنث غير حقيقي دي، او قاعده داده چې کله فاعل مؤنث غير حقيقي وي، نو فعل مؤنث هم راوړې شي او مذکر هم، همدارنګې صفت هم مذکر او مؤنث ... ې شي او **قام رجل قاعدون غلمانه** دا ترکيب ضعيف دي.

همدارنګې **قام رجل يقعدون غلمانه** ترکيب هم ضعيف دي، ځکه چې کله فاعل اسم ظاهر وي نو د فعل سره علامت د تثنيې او علامت د جمعې راوړل ضعيف وي ( ځکه چې په دې کې تعدد د فاعل بلا عطف لازم راځي، په تثنيه او جمع کې الف او واؤ هم فاعل دي، او د بعد اسم ظاهر هم فاعل دي)، او **قام رجل قعود غلمانه** دا ترکيب جائز دي. يعنې نه ضعيف دي او نه حسن اګر چه دا هم د **يقعدون** په شان جمع ده، نو دا هم ضعيف کيدل په کار دي، ليکن د عدم ضعف وجه داده چې کله اسم مشابه للفعل مکسر جوړ کړې شي، نو دا لفظاً د فعل د موازنت او د فعل د مناسبت نه خارجيږي، ځکه چې د فعل جمع مکسر نه راځي. لهذا **قعود غلمانه** د **يقعدون غلمانه** په شان نه شو، چې په دې کې په ظاهره دوه فعلونه دي، د دې وجې نه دا بې جائز کړل او

نه یې دضعف حکم ولړولو او نه د حسن حکم

**اغراض دجامي** : الا ان تخرج: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : کله چې په یقعدون غلمانه کې دوه فاعله جمع شي نو په دې باندې د امتناع حکم لړول په کار وو، د ضعف حکم یې ولې ولړولو؟

**جواب** : په دې کې د درې طریقو نه په یوې طریقې سره د تاویل ګنجایش شته، د دې وجې نه د ضعف حکم یې پرې ولړولو د امتناع نه دي . هغه طریقې دادې : (۱) په یقعدون کې واؤ حرف دي او حرف فاعل نه شي جوړیدې. ځکه چې فاعل خو اسم وي . لهذا دوه فاعله جمع نه شو (۲) په دې کې واؤ فاعل دي او غلمانه اسم ظاهر فاعل نه دي. بلکې ضمیر د فاعل نه بدل دي لهذا دوه فاعله جمع نه شو (۳) اسم ظاهر مبتداء مؤخر دي او فعل دخپل فاعل سره جمله خبر مقدم دي.

## د ضمیر صفت یا موصوف نه جوړیدل :

| |
|---|
| وَ الْمُضْمَرُ لَا يُوصَفُ لِاَنَّ ضَمِيْرَ الْمُتَكَلِّمِ وَ الْمُخَاطَبِ اَعْرَفُ الْمَعَارِفِ وَ اَوْضَحُهَا |
| او ضمیر نه شي موصوف کیدې ځکه چې ضمیر د متکلم او د مخاطب د ټولونه زیات معارف او واضح دی نو |
| فَلَا حَاجَةَ لَهُمَا اِلَى التَّوْضِيْحِ وَ حُمِلَ عَلَيْهِمَا ضَمِيْرُ الْغَائِبِ وَ عَلَى الْوَصْفِ الْمُوَضِّحِ الْوَصْفُ |
| نشته حاجت د دې دواړو وضاحت ته او حمل یې کړو په دې باندې ضمیر د غائب او په وصف موضح باندې وصف |
| الْمَادِحُ وَ الذَّامُّ وَ غَيْرِهِمَا طَرْداً لِلْبَابِ وَ لَا يُوصَفُ بِهِ لِاَنَّهُ لَيْسَ فِي الْمُضْمَرِ |
| مادح او ذام او غیر د دې دواړو نه د طرد الباب او نه شي موصوف کولې په مضمر سره ځکه چې نه وي په مضمر |
| مَعْنَى الْوَصْفِيَّةِ وَ هُوَ الدَّلَالَةُ عَلَى قِيَامِ مَعْنًى بِالذَّاتِ لِاَنَّهُ يَدُلُّ عَلَى الذَّاتِ |
| کې معنی د وصفیت او هغه دلالت دي په قیام د معنی په ذات سره ځکه چې ضمیر دلالت کوي په ذات باندې نه |
| لَا عَلَى قِيَامِ مَعْنًى بِهَا. |
| په قیام د معنی په دې باندې. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب د کافیې دوه (۲) ضابطې بیانوي : (۱) ضمیر موصوف نه شي جوړیدې (۲) ضمیر صفت هم نه شي جوړیدې.

**اغراض دجامي** : په دې عبارت کې شارح د یو څو ضوابطو بیان کوي : لومړنی ضابطه او

قاعده داده چې ضمیر موصوف نه شي جوړیدې

لان ضمیر المتکلم : په دې عبارت کې شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې کله موصوف معرفه وي. نو د صفت فائده د موصوف وضاحت کول وي او ضمیر دمتکلم اود مخاطب د ډیر مشهوراو واضح کیدو دوجې نه د څه وضاحت او تعریف کولو محتاج نه دي ، ددې وجې نه ضمیر موصوف نه شي جوړیدې

وحمل علیها: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : تقریب تام او پوره نه دې یعنې دلیل ددعوی مطابق نه دي دعوی دمطلق ضمیر په برابره خبره ده که داضمیر دمتکلم وي اویادمخاطب اویادغائب اودلیل په ضمیر دمتکلم اومخاطب کې جاري وي په ضمیر دغائب کې جاري نه وي .

**جواب** :ضمیر دغائب په ضمیر دمتکلم او مخاطب باندې محمول شو طرداًللباب

علی الوصف : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : ستاسو ددلیل نه معلومه شوه چې ضمیر دصفت موضحه محتاج نه دي. ځکه چې دا په خپله واضح دي، لیکن د ضمیر صفت دمادحه او دذامه مؤکده محتاج نه کیدل ددې دلیل نه ثابت نه دي. لهذا د ضمیر صفت مادحه او ذامه سره موصوف کیدل جائز دي؟

**جواب** : صفت مادحه ذامه مؤکده هم په صفت موضحه باندې محمولول طرداًللباب په ټولو باندې دعدم جواز حکم ولږولې شو. چې په دې کې دچا سره هم ضمیر دموصوف نشته.

لا یوصف به : په دې عبارت سره شارح ددویمې ضابطې اوقاعدې بیان کوي، چې ضمیر د چا صفت هم نه شي جوړیدې .

لانه لیس في المضمر: په دې عبارت کې شارح ددې وجه بیانوي چې د صفت وضع ددې په معنی باندې ددلالت کولو د پاره وي کوم چې دموصوف دذات سره قائم وي اوضمیر فقط په ذات باندې دلالت کوي . په یو معنی وضعي باندې دلالت نه کوي کوم چې دذات دموصوف سره قائم وي

## د یو سوال مقدر جواب :

| وَ كَأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ فِي بَعْضِ النُّسَخِ قَوْلُهُ وَلَا يُوْصَفُ بِهِ وَ لِهٰذَا اِعْتَذَرَ الشَّارِحُ |
| --- |
| اوګویاچې نه دې واقع په بعضې نسخوکې داقول دمصنف ولایوصف به اوددې وجې نه معذرت وکړ شارح |

الرَّضِيُّ وَ قَالَ وَ لَمْ يَذْكُرِ الْمُصَنِّفُ اَنَّهُ لَا يُوْصَفُ بِالضَّمِيْرِ لِاَنَّهُ تَبَيَّنَ ذٰلِكَ
رضي اووي ويل چې ذکر نه کړو مصنف چې وصف نه شي کيدي په ضمير سره خکه چې واضح کيږي دا خبره د

بِقَوْلِهِ.
قول د مصنف نه

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره يو سوال مقدر رانقل کوي اودهغې دسوال جواب کوي

**اغراض دجامي:** په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال:** د کافيې په بعضې نسخو کې ولا يوصف به عبارت نشته. او شيخ صاحب په شرح د کافيه کې هم دغه نسخه مخې ته ايخې ده اوليکلي دي اوهغوي په صاحب د کافيې باندې يو اعتراض وکړو چې صاحب د کافيې ته په کار وو چې هغه ولا يوصف به عبارت ذکر کړې وي بيا په خپله دهمدې جواب ورکوي چې چونکه دا قاعده د مصنف دوروستې قاعدې **والموصوف** اخص او مساو نه معلوميږي ، خکه مصنف دا جدا نه ده ذکر کړې. بعض شارحينو په شيخ رضي صاحب باندې اعتراض کړې دي چې په کافيه کې خو ولا يوصف به عبارت موجود دې، او د شيخ رضي اعتراض په مصنف اوبيا د مصنف د طرف نه اعتذار دا ټول لغوه دي .

**جواب:** د کافيې په بعضې نسخو کې ولا يوصف به عبارت نه شته، او شيخ رضي همدا نسخه مخې ته ايخې وه اود کافيې شرح يې وليکله خکه ددهٔ اعتراض اواعتذار صحيح دي .

**سوال:** د شيخ رضي دتقرير مطابق ولا يوصف به والا قاعده د **والموصوف اخص** او مساو نه معلوميږي ، سوال دادې چې دا قاعده اوضابطه څنګه ددې نه معلوميږي؟

**جواب:** ضمير اعرف المعارف او اوضح المعارف دي که چېرته دا صفت جوړ شي نو صفت د موصوف نه اخص کيدل لازم راخي، حالانکه قاعده داده چې **والموصوف اخص** او مساو چې موصوف اخص اويا مساوي بالصفة وي

## د صفت متعلق يوه قاعده :

وَ الْمَوْصُوْفُ اَخَصُّ اَوْ مُسَاوٍ اَيِ الْمَوْصُوْفُ الْمَعْرِفَةُ اَشَدُّ اِخْتِصَاصًا بِالتَّعْرِيْفِ وَ الْمَعْلُوْمِيَّةِ مِنَ الصِّفَةِ
اوموصوف يااخص وي اويامسا وي يعني معرفه زياته خاص وي په اعتبار د تعريف او د معلوميت سره د صفت نه

يَعْنِيْ اَعْرَفُ مِنْهَا لِاَنَّهُ الْمَقْصُوْدُ الْاَصْلِيُّ فَيَجِبُ اَنْ يَكُوْنَ اَكْمَلَ مِنَ الصِّفَةِ فِي التَّعْرِيْفِ اَوْ
يعني [illegible] وي [illegible] که چې دامقصوداصلي دي نوواجب دي چې وي اکمل د صفت نه په تعريف کې اويا

| مُسَاوِيًا لَهَا لِاَنَّهُ لَوْ لَمْ يَكُنْ اَكْمَلَ مِنْهَا فَلَا اَقَلَّ مِنْ اَنْ لَا يَكُوْنَ اَدْوَنَ مِنْهَا . |
|---|
| مساوي ددې سره ځکه که چیرته نه وي اکمل ددې نه نوچې نه وي کم از کم ددې نه |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافیې په دې عبارت کې يوه ضابطه بيانوي. چې موصوف د صفت نه اخص يې د هغې مساوي کېدل ضروري دي. بيا په دې ضابطو باندې تفريع ذکر کوي. چې د معرف باللام صفت صرف معرف باللام کيدې شي يا هغه څيز چې په درجه کې د معرف باللام سره مساوي وي. لکه اسماء مرصوله يا معرف باللام طرف ته مضاف وي، يعنې د معرف باللام دصفت علَم نه شي جوړيدې

**اغراض دجامي** : <u>اى الموصوف المعرفة</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : ستادا قاعده په حيوان ناطق سره ماته شوه. ځکه چې حيوان موصوف او ناطق صفت دي. حالانکه موصوف دحيوان نه . نه اخص دي او نه مساوي، بلکې دصفت نه عام دي په اعتبار دمصداق سره .

**جواب** : د موصوف نه مراد موصوف معرفه دي او حيوان نکره دي ، ځکه دا سوال نه واردېږي

<u>اشد اختصاصا</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : دا قاعده په الحيوان الناطق سره ماته شوه، ځکه چې الحيوان موصوف معرفه ده، حالانکه دا صفت نه. نه اخص ده او نه مساوي بلکې اعم ده په اعتبار دصدق سره .

**جواب** : داخص نه مراد **اخص من حيث الصدق** نه دي، بلکې مراد **اشد اختصاصاً بالتعريف والمعلومية من الصفة** دي، يعنې د موصوف معرفه کيدل او ددې معلوم کيدل د صفت تعريف او معلوميت زيات دي، لکه **زيدن الفاضل** د **زيد** تعريف دعلميت د وجې نه د **الفاضل** نه زيات دي يا ددې مساوي او **الحيوان** او **الناطق** په دې اعتبار سره مساوي دي، ځکه چې ددواړو دالف لام سره تعريف حاصل کړې دي، ځکه دا سوال نه شي واردېدې

<u>لانه المقصود الاصلي</u>: په دې عبارت سره شارح د ذکر شوې قاعدې وجه بيانوي چې دصفت او موصوف نه اصلي مقصود موصوف دي لهذا موصوف دپاره ضروري دي چې دادصفت نه اکمل وي يا د موصوف سره مساوي وي، ځکه که د اکمل په ځای اولی وي، نو د مقصود ه

غير به دمقصود نه كم كيدل لازم شي چې دا ناجائز دي .

## دمعرفې داقسامو مراتب :

وَ الْمَنْقُوْلُ عَنْ سِيْبَوَيْهِ وَ عَلَيْهِ جَمْهُوْرُ النُّحَاةِ اَنَّ اَعْرَفَهَا الْمُضْمَرَاتُ ثُمَّ الْاَعْلَامُ ثُمَّ اَسْمَاءُ

اومنقول دسيبويه نه او په دې باندې جمهورنحويان دي چې اعرف المعارف مضمرات دي بيا اعلام بيااسماء

الْاِشَارَاتَ ثُمَّ الْمُعَرَّفُ بِاللَّامِ وَ الْمَوْصُوْلَاتُ فَبَيْنَهُمَا مُسَاوَاةٌ.

اشارات بيامعرف باللام اواسماى موصولات نوپه مينځ ددې دواړو كې مساوات .

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب دكافيې دمعرفې داقسامو مراتب بيانوي .

**اغراض دجامي** : شارح دجامي په دې عبارت كې د معرفې د اقسامو مراتب بيانوي، دا مرتب دامام سيبويه نه نقل دي او د جمهورو نحويانو هم دا مذهب دي. چې اعرف المعارف ضمائر دي بيا اعلام ځكه چې دعلم مدلول ذات معين او مخصوص وي، په وخت دوضع او په وخت داستعمال كې په خلاف د اسم اشارې . چې ددې مدلول په وخت دوضع كې غير معين وي داسم اشارې، معرف باللام او موصول نه، ځكه اعرف داده چې د اسم اشارې مدلول دمخاطب په نزد معلوم او معين بالقلب والعين وي او معرف باللام مدلول معلوم او معين بالقلب وي، نه بالعين، بيا اسماء اشارات، بيا معرف باللام، او اسم موصول او دا دواړه په تعريف كې مساوي دي.

## په ذكر شوې قاعده باندې تفريع :

وَ مِنْ ثَمَّ اَيْ وَ مِنْ اَجَلِ الْمَوْصُوْفَ اَخَصَّ اَوْ مُسَاوٍ لَمْ يُوْصَفْ ذُو اللَّامِ اِلَّا بِمِثْلِهِ

اوددې وجې نه يعنې ددې وجې نه چې موصوف اخص اويامساوي وي نوموصوف به نه وي ذواللام مگرپه مثل

اَيْ ذِي اللَّامِ الْاٰخَرِ وَ الْمَوْصُوْلِ فَاِنَّهُ اَيْضاً مُمَاثِلٌ لِذِي اللَّامِ لِمَا

ددې سره يعنې په بل ذي اللام اويا موصول سره ځكه موصول همدارنگې مماثل دي دذي اللام دهغه څه نه چې

عَرَفْتَ بَيْنَهُمَا الْمُسَاوَاةَ فِي التَّعْرِيْفِ نَحْوُ جَاءَنِي الرَّجُلُ الْفَاضِلُ اَوِ الرَّجُلُ الَّذِيْ كَانَ عِنْدَكَ اَمْسِ

تا پېژندلي او په مينځ د دواړو كې مساوات دي په تعريف كې جاءني الرجل الفاضل اويا الرجل الذي كان عندك امس اويا

اَوْ بِالْمُضَافِ اِلٰى مِثْلِهِ اَيْ مِثْلُ الْمُعَرَّفِ بِاللَّامِ بِلَا وَاسِطَةٍ نَحْوُ جَاءَنِي الرَّجُلُ صَاحِبُ الْفَرَسِ اَوْ

دمضاف دځپل مثل سره يعنې په شان دمعرف باللام بې [illegible] يعني نه لكه جاءني الرجل صاحب الفرس اويا

بِوَاسِطَةٍ نَحْوُ جَاءَنِي الرَّجُلُ صَاحِبُ لِجَامِ الْفَرَسِ لِاَنَّ تَعْرِيْفَ الْمُضَافِ مُسَاوٍ لِتَعْرِيْفِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ اَوْ

بالواسطه لكه جاءني الرجل صاحب لجام الفرس ځكه تعريف دمضاف مساوي دي د [illegible] [illegible]اف اليه سره اويا

| |
|---|
| اَنْقَصُ مِنْهُ عَلَى الْخِلَافِ الْوَاقِعِ بَيْنَ سِيْبَوَيْهِ وَ غَيْرِهٖ بِخِلَافِ سَائِرِ الْمَعَارِفِ فَاِنَّهَا |
| کم دي ددې نه بنا په هغه اختلاف چې واقع وي په مینځ دسیبویه وغیره کې په خلاف دټولو معارفو کې ځکه دا |
| اَخَصُّ مِنْ ذِي اللَّامِ فَلَوْ وَقَعَ اَخَصُّ نَعْتًا لِغَيْرِ اَخَصَّ فَهُوَ مَحْمُوْلٌ عَلَى الْبَدَلِ عِنْدَ |
| اخص دي ددی اللام نو که چیرته واقع شي اخص نعت دغیر اخص دپاره نو دا محمول دي په بدل باندې په نزدد |
| صَاحِبِ هٰذَا الْمَذْهَبِ . |
| صاحب ددې مذهب |

**خلاصه دمتن** : صاحب دکافیې په دې عبارت کې په ذکر شوي قاعده **والموصوف اخص اومساوٍ** باندې تفریع کوي. چې موصوف دصفت نه اخص او یا مساوي بالصفة وي، ځکه دمعرف باللام صفت معرف باللام یا اسم موصول راوړې شي، ځکه چې موصول هم په تعریف کې د معرف باللام سره مماثل وي. نو په دې صورت کې موصوف صفت په مینځ کې مساوات شته.
شارح په موصوف معرف باللام کې د صفت معرف باللام مثال ورکړی دي، لکه **جاء ني الرجل الفاضل** او د معرف باللام صفت اسم موصول مثال ورکړی دي لکه **جاء ني الرجل الذي كان عندك امس**.

**اغراض دجامي** : **او بالمضاف الى مثله** صاحب دکافیې وایي، چې معرف باللام مضاف الی معرف باللام وي برابره خبره ده که دمضاف او معرف باللام په مینځ کې واسطه وي او یا نه وي. دواسطې نه کیدو مثال **جاء ني الرجل صاحب الفرس** چې په دې کې د مضاف صاحب او معرف باللام الفرس په مینځ کې واسطه نشته او د فاصلې او واسطې مثال **جاء ني الرجل صاحب لجام الفرس** په دې کې دمضاف صاحب او دمعرف باللام په مینځ کې **لجام** فاصله او واسطه ده.

**لان تعریف** : په دې عبارت کې شارح د معرف باللام صفت مضاف الی معرف باللام د صحیح کیدو وجه بیان کړې ده. دامام سیبویه په نزد د مضاف تعریف د مضاف الیه دتعریف سره مساوي دي او دامام مبرد په نزد د مضاف تعریف د مضاف الیه نه انقص او کم دي. لهذا که د معرف باللام صفت مضاف الی معرف باللام راوړې شي. نو دامام سیبویه په نزد به موصوف د صفت سره مساوي وي. او دامام مبرد په نزد به صفت دموصوف نه انقص او کم وي. لهذا قاعده به برقرار وي.

**بخلاف سائر** : دشارح ددې عبارت تعلق د **ولم يوصف ذواللام الا بمثله** سره دي که معرف باللام او د موصول نه غیر باقي معارف یعني ضمائر اعلام اسماء اشارات ددې دواړو نه اخص دي

خکه چې هغه معرف باللام او د موصول صفت نه شي جوړيدې خکه چې په دې صورت کې
صفت د موصوف نه اخص شي

**فلو وقع:** د شارح د دې عبارت مقصد دا دې چې که چېرته داسې وي چې اخص د غير اخص نعت
واقع وي. مثلاً موصوف معرف باللام وي او صفت مضاف الى العلم وي، نو په دې صورت
کې صفت نه جوړېږي، بلکې دا به په بدل باندې محمول وي مثلاً جاءني الرجل صاحب زيد

## په ذکر شوي قاعدې باندې ديو سوال جواب:

وَ إِنَّمَا الْتَزَمَ وَصْفُ بَابِ هٰذَا أَيْ بَابِ إِسْمِ الْإِشَارَةِ بِذِي اللَّامِ مِثْلُ مَرَرْتُ بِهٰذَا الرَّجُلِ مَعَ أَنَّ
او التزام يې کړې دوصف د دې باب يعني د باب د اسم اشارې په ذي اللام سره لکه مررت بهذا الرجل سره د دې

الْقِيَاسَ يَقْتَضِيْ جَوَازَ وَصْفِهِ بِذِي اللَّامِ وَ الْمَوْصُوْلِ وَ الْمُضَافِ إِلَى أَحَدِهِمَا
چې قياس تقاضا کوي د جواز د دې وصف په ذي اللام او موصول سره او په مضاف کې يو د دې دواړو نه د پاره د

لِلْإِبْهَامِ الْوَاقِعِ فِيْ هٰذَا الْبَابِ بِحَسْبِ أَصْلِ الْوَضْعِ الْمُقْتَضِيْ لِبَيَانِ الْجِنْسِ فَإِذَا
هغه ابهام چې واقع وي په دې باب کې په اعتبار د اصل وضع سره چې تقاضا کوي د بيان د جنس نو هر کله چې

أُرِيْدَ رَفْعُهُ لَا يُتَصَوَّرُ بِمِثْلِهِ لِإِبْهَامِهِ وَ لَا يَلِيْقُ بِالْمُضَافِ
اراده وکړې شي د رفعې نو نه متصور کيږي په مثل د دې باندې دوجې د ابهام نه او نه دې مناسب د هغه مضاف

الْمُكْتَسِبِ التَّعْرِيْفِ مِنَ الْمُضَافِ إِلَيْهِ لِأَنَّهُ كَالْإِسْتِعَارَةِ مِنَ الْمُسْتَعِيْرِ وَ السُّؤَالِ عَنِ الْمُحْتَاجِ
سره چې حاصليږي تعريف د مضاف اليه نه خکه دا په شان د سوال کولو دې د غريب نه او سوال دې د محتاج او

الْفَقِيْرِ فَتَعَيَّنَ ذُو اللَّامِ لِتَعَيُّنِهِ فِيْ نَفْسِهِ وَ حُمِلَ الْمَوْصُوْلُ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ
فقير نه نو متعين يې کړو ذو اللام د متعين کيدو نه في نفسه او حمل يې کړو موصول په دې باندې خکه چې

مَعَ صِلَتِهِ مِثْلُ ذِي اللَّامِ مِثْلُ مَرَرْتُ بِهٰذَا الَّذِيْ كَرُمَ أَيِ الْكَرِيْمِ وَ مِنْ ثَمَّ أَيْ وَ مِنْ أَجَلِ أَنَّ
دا سره د صلې نه په شان د ذي اللام دې لکه مررت بهذا الذي کرم يعني الکريم او د دې وجې نه يعني د دې وجې

الْتِزَامَ وَصْفِ بَابِ هٰذَا بِذِي اللَّامِ لِرَفْعِ الْإِبْهَامِ بِبَيَانِ الْجِنْسِ ضَعُفَ مَرَرْتُ بِهٰذَا
چې التزام د وصف د باب د هذا په ذي اللام سره د پاره د رفع د ابهام په بيان د جنس سره ضعيف دې مررت بهذا

الْأَبْيَضِ لِأَنَّهُ لَا يَتَبَيَّنُ بِهِ جِنْسُ الْمُبْهَمِ لِأَنَّ الْأَبْيَضَ عَامٌّ لَا يَخْتَصُّ بِجِنْسٍ دُوْنَ جِنْسٍ وَ حَسُنَ
الابيض خکه نه واضح کيږي په دې سره جنس مبهم خکه ابيض عام چې نه دې خاص په يو جنس سره او ښه دې

مَرَرْتُ بِهٰذَا الْعَالِمِ لِأَنَّهُ يَتَبَيَّنُ بِهِ أَنَّ الْمُشَارَ بِهِ أَنَّ الْمُشَارَ إِلَيْهِ إِنْسَانٌ بَلْ رَجُلٌ.
مررت بهذا العالم خکه چې واضح کيږي په دې سره چې مشار اليه انسان دې بلکه سړی دې

**خلاصه دمتن** : دلته صاحب د کافیې په مخکې بیان کړې قاعدې باندې دیو سوال جواب ورکوي او بیا یه دې باندې یو تفریع ذکر کوي. چې ددې پوره تفصیل لاندې په شرحه کې ذکر دي

**اغراض دجامي** : وانما التزم: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د ذکر شوي قاعده **والموصوف اخص اومساوٍ** تقاضا داده چې د اسم اشارې صفت اسم اشاره . اودمعرف باللام .او دموصول او مضاف الی معرف باللام. او مضاف الی الموصول واقع کیدل صحیح کیدل په کار دي خکه چې داسم اشارې دصفت کېدو په صورت کې په موصوف اوصفت کې مساواة دي لکه دا مساوات چې ظاهر دي ،که چیرته صفت معرف باللام یا موصول وي، نو موصوف دصفت نه اخص وي. خکه چې ددې تعریف داسم اشارې نه انقص او کم وي لهذا ددې صفت جوړول هم جائز دي، که صفت مضاف وي معرف باللام طرف ته یا مضاف وي موصول طرف ته . نو چونکې د مضاف تعریف دمضاف الیه د تعریف نه انقص وي اوکم وي لکه دادامام مبرد مذهب دي . اویا مساوي وي. لکه داد امام سیبویه مذهب دي . نو لهذا موصوف به دصفت نه اخص وي ، اوس سوال دادې چې کله دا ټول صورتونه جائز دي او د قاعدې مطابق دي. نو بیا نحوي حضرات اسم اشاره دصفت دپاره معرف باللام ولې لازم او خاص کوي. باقي صورتونه ولې ناجائز کوي؟

**جواب** : په اسم شاره کې په اعتبر داصل وضع سره ابهام وي کوم چې تقاضا کوي دجنس دبیانولو اودابهام درفع کولو اوس که چیرته ابهام رفع کړي شي ددې مثال یعني داسم شارې سره نودا داسې نه شي متصور کیدې خکه چې داخو په خپله مبهم دي نو دبل ابهام به څنګه لرې کړې ددې وجې نه داسم اشارې صفت اسم اشاره نه شي جوړیدې او په مضاف الی معرف باللام او په مضاف الی الموصول سره ابهام رفع کول هم غیر مناسب دي، ددې وجې نه په خپله مضاف کې ابهام وي. چې خپل ابهام په مضاف الیه سره لرې کوي نو د اسم اشارې ابهام به څنګه لرې کړي؟ نو دا **استعارة من المستعير** د سوال کوونکي نه سوال کول . او د فقیر اود محتاج سرې نه د سوال کولو په شان وي . کله چې ددې ټولو د اسم اشارې صفت جوړیدل صحیح نه وي. نو اوس به صرف معرف باللام متعین وي چې همدا به د اسم اشارې صفت جوړیږي

**لتعينه في نفسه**: يعني لام داد تعريف دپاره وضع شوې دي نولهذا دا به په خپله داسم اشارې د صفت جوړيدو دپاره متعين شي او دا په جنس باندې دلالت کوي

**وحمل الموصول عليه**: په دې عبارت سره شارح بيان دفائدې کوي ، چې اسم موصول هم د اسم اشارې صفت جوړيدې شي ځکه چې دا په معرف باللام باندې محمول دي، ځکه چې اسم موصول سره دخپلې صلې ددې ابهام په رفع کولو کې دمعرف باللام په شان دي لهذا داهم صفت واقع کيدې شي لکه مررت بهذا الذي کرم ، نو موصول اوصله سره يوځاې شو داصفت واقع کيږي داپه منزله دالکريم معرف باللام دي

**من ثم ضعف ...انه لا يتبين به**: په دې عبارت سره شارح په ما قبل دتفريع بيان کوي ، چې د معرف باللام سره داسم اشارې دصفت التزام دبيان جنس په ذريعې سره دابهام دلرې کولو دپاره دي ددې وجې نه مررت بهذا الابيض والاترکيب ضعيف دي، ځکه چې په دې سره جنس مبهم نه واضح کيږي ځکه چې ابيض عام دي داد جنس پورې خاص نه دي ليکن څه نه څه ابهام لرې شو او معلومه شوه چې دا ابيض دي اسود نه دي، ددې وجې نه دا ممتنع نه دي خو ليکن ضعيف دي او مررت بهذا العام دا ترکيب حسن دي، ځکه چې په دې سره دا خبره واضحه شوه چې مشار اليه انسان نه بلکې رجل دي، نو ابهام من کل الوجوه ختم شو.

## د عطف د دويم قسم تعريف :

| |
|---|
| اَلعَطفُ يَعنِيْ اَلمَعطُوفُ بِالحَرفِ تَابِعٌ مَقصُودٌ اَيْ قُصِدَ نِسبَتُهُ اِلٰى شَيْءٍ اَوْ نِسبَةُ شَيْءٍ |
| عطف يعني معطوف بالحرف چې تابع وي دمقصودېعني مقصودوي نسبت ددې يوڅيزته اويانسبت ديوڅيز |
| اِلَيهِ بِالنِّسبَةِ الوَاقِعَةِ فِي الكَلَامِ فَقَولُهُ بِالنِّسبَةِ مُتَعَلِّقٌ بِالقَصدِ |
| دې طرف ته په داسې نسبت سره چې واقع وي په کلام کې نوداقول دمصنف بالنسبة متعلق دي په هغه قصد |
| المَفهُومِ مِنَ المَقصُودِ مَعَ مَتبُوعِهِ اَيْ كَمَا يَكُونُ هُوَ مَقصُودًا بِتِلكَ النِّسبَةِ يَكُونُ |
| سره چې فهميږي دمقصودنه سره دمتبوع ددې نه يعني لکه څنګه چې وي دامقصودپه دې نسبت سره نووي به |
| مَتبُوعُهُ اَيضاً مَقصُوداً بِهَا نَحوُ جَاءَنِيْ زَيدٌ وَ عَمرٌو فَعَمرٌو تَابِعٌ لِاَنَّهُ مَعطُوفٌ عَلٰى زَيدٍ |
| متبوع ددې همدارنګې مقصودپه دې سره لکه جاءني زيدوعمرونوعمروتابع دي ځکه چې دامعطوف دي په زيد |
| قُصِدَ نِسبَةُ المَجِيْءِ اِلَيهِ بِنِسبَةِ المَجِيْءِ الوَاقِعَةِ فِي الكَلَامِ وَ كَمَا |
| نوقصدکولې شي نسبت د مجيئت دې طرف ته په نسبت دهغه مجيئت سره چې واقع وي په کلام کې اولکه |

| أَنَّ نِسْبَةَ الْمَجِيْ إِلَيْهِ مَقْصُوْدَةٌ كَذٰلِكَ نِسْبَتُهُ إِلٰى زَيْدٍ نِ الَّذِيْ هُوَ مَتْبُوْعُهُ |
|---|
| ځکه چې نسبت د مجيئت دې طرف ته مقصود دوي همدا رنګې نسبت د دې هغه زيد ته چې هغه متبوع وي د دې |
| أَيْضاً مَقْصُوْدَةٌ. |
| همدا رنګې مقصود هم دي |

**خلاصه دمتن** : صاحب د كافيې د بل تابع عطف بالحرف بيان كوي : عطف په لغت كې الامالة ده ، ويلې شي : عطفت النخلة الى الارض، كجهوره زمكې طرف ته تيټه شوه ،د دې قسم تابع نوم عطف ځكه كيخودل شو ځكه چې حرف عطف خپل ما بعد والاحكم ماقبل طرف ته تيټوي د دې دويم نوم عطف نسق هم دي دا او د دې متبوع دواړه په يو نسق يعني په يو ترتيب باندې دي ، ځكه چې دواړو طرف ته د يو فعل نسبت كيږي او دواړه مقصود بالنسبة وي . د عطف بالحرف اصطلاحي معنى داده، عطف بحرف هغه تابع دي چې د نسبت نه مقصود وي سره د خپل متبوع .

**اغراض دجامي** : يعني المعطوف: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي .

**سوال** : العطف مبتدا او تابع خبر دي او خبر په مبتدا باندې حمل دي او دلته حمل صحيح نه دي، ځكه چې العطف مصدر دي، چې په وصف باندې دلالت كوي او تابع اسم فاعل دي چې دا په ذات مع الوصف باندې دلالت كوي او د ذات مع الوصف حمل په يواځې وصف باندې صحيح نه دي ؟

**جواب** : دلته العطف مبني للمفعول دي، يعني د المعطوف په معنى سره دي او المعطوف هم په ذات مع الوصف معنى سره دي لهذا د دې حمل صحيح شو .

بالحرف: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي .

**سوال** :كله چې العطف د المعطوف په تاويل سره شو، نو تعريف د دخول د غير نه مانع نه شو دا تعريف په عطف بيان باندې هم صادقيږي ځكه چې هغه هم معطوف دي، مثلاً په اقسم بالله ابوحفص عمر كې عمر معطوف دي په ابوحفص باندې. حالانكه هغه مقصود بالنسبة نه دي بلكې بيان دي؟

**جواب** : په المعطوف کې الف لام عهدي دي ددې نه مراد **معطوف بالحرف** دي، مطلق معطوف نه دي مراد

ای قصد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : تابع به **مقصودٌ** کې ضمير مقصود طرف ته راجع دي تابع طرف ته نو اوس يې معنی داسې شوه چې عطف بحرف هغه تابع دي چې مقصود وي د هغه تابع ، نو ددې نه معلومه شوه چې نفس تابع او ذات تابع مقصود وي، حالانکه داسې نه ده ځکه چې مقصود نسبت وي او ذات دتابع مقصود نه وي

**جواب** : دلته ضمير دتابع لره مقصود دنائب فاعل جوړول مجازاً دي، په حقيقت کې د **مقصودٌ** نائب فاعل نسبت دي، يعنې دا نعت بحال الموصوف نه دي، بلکې نعت بحال متعلق الموصوف دي اصل عبارت داسې دې : **تابع مقصودٌ** نسبته، معطوف هغه تابع دي چې دهغې نسبت مقصود وي اوپه نسبت کې تعميم دي برابره خبره ده که دتابع نسبت يو ځيز طرف ته وي لکه **زيد قائم و نائم** ، په دې کې د **نوم** نسبت **زيد** ته دي يا د بل ځيز دتابع طرف ته نسبت وي لکه **جاءني زيد وعمرو** په دې کې مجيئت نسبت **عمرو** تابع طرف ته دي .

الواقعة في الكلام: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي .

**سوال** : د مصنف په عبارت کې بالنسبة لفظ لغو دی، ځکه چې په دې صورت کې به دوه نسبتونه شي او تکرار به لازم شي. يو هغه نسبت چې شارح د **مقصودٌ** نه پس مقدر منې، چې هغه شارح په **ای قصد نسبته** سره بيان کړې دي او دويم هغه نسبت چې هغه مصنف په **بالنسبة** سره ذکر کړې دي، نو حاصل دعبارت به داسې شي چې : **العطف بالحرف تابع قُصد نسبته بالنسبة**، نو په دې صورت کې **قصد النسبة بالنسبة** لازم راځي، او دا باطل دي؟

**جواب** : په دواړه نسبتونو کې فرق دي، هغه نسبت چې شارح مقدرمنلې په قصد نسبته کې ددې نه مراد نسبت اصلي واقعي دي کوم چې دفاعل نه صادريږي کوم چې په درجه دمحکي عنه کې دي اوهغه نسبت کوم چې مصنف رحمه الله په بالنسة کې ذکر کړي دي ددې نه مراد هغه نسبت دي کوم چې په کلام کې واقع کيږي کوم چې په درجه دحکايت کې نه وي تعبير اوترجمه وي په نسبت سره اصليه واقعيه نه اوس به حاصل دعبارت داسې شي چې

العطف بالحرف تابع قصد نسبته الاصلي الواقع الصادر من الفاعل بالنسبة التي ذكر في الكلام بطريق الحكاية عن النسبة الاصلية . يعنې عطف بالحرف دا تابع دي چې قصد کړې شوي دي نسبت اصلي ددې چې واقع او صادر وي دفاعل نه په هغه نسبت سره چې ذکر وي په کلام کې په طريقې دحکايت سره دنسبت اصلي نه . نو لهذا دتکرار والاشکال ختم شو

فقوله متعلق بالنسبة متعلق بالقصد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : متبادر الى الذهن اوپه ذهن کې واقع کيدونکي خبره داده چې بالنسبة جار مجرور دا متعلق شو تر متلبس پورې خکه چې په عام طور باندې نحويان دجار مجرور متعلق هم دغه مقدر مني. نو په دې صورت کې دا خرابي لازم راخي چې د بالنسبة قيد احترازي نه جوړيږي. خکه چې تلبس بالنسبة په ټولو توابعو کې موجود دي. حالانکه دا قيد احترازي ذي په دې کې د بدل نه غير د ټولو توابعو نه په کې احتراز دي؟

**جواب** : دا جار مجرور د قصد پورې متعلق دي نه د متلبس پورې

اى كما يكون: په دې عبارت سره شارح دمتن سره دمتبوع وضاحت کوي ، چې لکه څنګه تابع مقصود وي، نو همدارنګې متبوع هم مقصود وي

نحو جاءني: په دې عبارت سره بيان د مثال کوي په جاءني زيد وعمرو کې عمرو معطوف بحرف دي او د مجيئت نسبت عمرو طرف ته مقصود دي او لکه څنګه چې عمرو طرف ته نسبت د مجيئت مقصود دي. همدارنګې زيد متبوع طرف ته هم نسبت د مجيئت مقصود دي .

## د تعريف د قيودو فوائد :

| فَقَوْلُهُ مَقْصُوْدٌ بِالنِّسْبَةِ اِحْتِرَازٌ عَنْ غَيْرِ الْبَدَلِ مِنَ التَّوَابِعِ لِاَنَّهَا غَيْرُ مَقْصُوْدَةٍ بَلِ الْمَقْصُوْدُ |
|---|
| نو دا قول دمصنف چې مقصود بالنسبة احترازدي دبدل دغير د توابع نه خکه چې دا غير مقصود دي بلکې مقصود |
| مَتْبُوْعَاتِهَا وَ قَوْلُهُ مَعَ مَتْبُوْعِهِ اِحْتِرَازٌ عَنِ الْبَدَلِ لِاَنَّهُ الْمَقْصُوْدُ دُوْنَ مَتْبُوْعِهِ قِيْلَ |
| متبوعات ددې دي او دا قول چې مع متبوعه احترازدي دبدل نه خکه مقصود متبوع نه دي چاويلي دي چې |
| يَخْرُجُ بِقَوْلِهٖ مَعَ مَتْبُوْعِهِ الْمَعْطُوْفُ بِلَا وَ بَلْ وَ لٰكِنْ وَ اَمْ وَ اِمَّا وَ اَوْ لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ |
| خارجيږي په دې قول مع متبوعه سره المعطوف په لا اوپه بل اولكن اوام اواما او او سره خکه ددې سره مقصود په |

بِالنِّسْبَةِ مَعَهَا أَحَدُ الْأَمْرَيْنِ مِنَ التَّابِعِ وَ الْمَتْبُوْعِ لَا كِلَاهُمَا وَ أُجِيْبَ بِأَنَّ الْمُرَادَ بِكَوْنِ الْمَتْبُوْعِ
نسبت سره يو ددوه امرونو د تابع او د متبوع دي نه دواړه او جواب ورکړي شوي دي چې مراد په کيدو د متبوع سره

مَقْصُوْداً بِالنِّسْبَةِ اَنْ لَّا يُذْكَرُ لِتَوْطِيَةِ ذِكْرِ التَّابِعِ وَ بِكَوْنِ التَّابِعِ مَقْصُوْداً بِالنِّسْبَةِ اَنْ
مقصود دي په نسبت سره چې ذکر نه شي د پاره د تمهيد د ذکر د تابع او په کيدو د تابع مقصود په نسبت سره چې نه

لَا يَكُوْنُ كَالْفَرْعِ عَلَى الْمَتْبُوْعِ مِنْ غَيْرِ اِسْتِقْلَالٍ بِهِ وَلَا شَكَّ اَنَّ الْمَعْطُوْفَ وَ الْمَعْطُوْفَ عَلَيْهِ
وي په شان د فرع په متبوع باندې په غير د استقلال نه په دې سره او نشته شک چې معطوف او معطوف عليه په

بِتِلْكَ الْحُرُوْفِ السِّتَّةِ مَقْصُوْدَانِ بِالنِّسْبَةِ مَعًا بِهٰذَا الْمَعْنٰى.
دې شپږو حروفو سره مقصود دي په نسبت سره يو ځاې په دې معنی سره

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره صاحب د کافيې په تعريف کې د قيودو فوائد بيانوي.

**اغراض دجامي** : **فقوله**: په دې عبارت سره شارح د قيودو فوائد بيانوي چې په معطوف بحرف کې تابع جنس وي چې ټولو توابعو ته شامل وي **مقصود بالنسبة** دا اول فصل دي په دې سره د بدل نه غير ټول توابع خارج شو ځکه چې دا په خپله مقصود بالنسبة نه وي بلکې د دې متبوعات مقصود وي. **مع متبوعه** دا دويم فصل دي په دې سره بدل خارج شو ځکه چې بدل سره د متبوع نه مقصود نه وي، بلکې صرف هغه مقصود وي چې د متبوع د پاره توطيه او تمهيد وي

**قيل يخرج بقوله**: په دې عبارت سره شارح يو اعتراض نقل کوي او په **اجيب** سره د دې اعتراض جواب ورکوي.

**اعتراض** : د **معطوف بحرف** تعريف جامع نه دي ځکه چې دا معطوف په لاَ، په بَلْ، په لٰكِنْ، په امَّا او معطوف په اَمْ او معطوف په اَوْ باندې صادق نه راځي. ځکه چې په دې حروف عاطفو سره چې کله عطف وشي نو مقصود او مراد تابع او متبوع دواړه نه وي، بلکې په دواړو کې مقصود او مراد يو وي

د معطوف په لاَ مثال لکه جاءني زيد لا عمرو. او د معطوف به بَلْ مثال لکه جاءني زيد بل عمرو، د معطوف په اما مثال لکه جاءني زيد بل عمرو. او د معطوف په لکن مثال لکه جاءني زيد لکن عمرو لم يجئ. يا ما جاءني زيد لکن عمرا جاء. او د معطوف په اَمْ مثال لکه أزيد في الدار ام عمرو، او د معطوف په امّا مثال لکه العدد اما زوج و امّا فرد او د معطوف په اَوْ مثال لکه جاءني زيد أو

عمرو؟

**جواب**: په تعريف كې د متبوع د مقصود بالنسبة كيدو مقصد دادې چې ددې ذكر د تابع د ذكر لپاره په طور دتمهيد او توطيه نه وي. او د تابع دمقصود بالنسبة كيدو مقصد دادې چې دادمتبوع دپاره دفرعې په شان نه وي او غير مستقل نه وي او كوم عطف چې په دې شبږو حروفو كې په يو حرف سره وي. هغه هم په همدې معنى سره وي، يعني د متبوع ذكر دتابع دپاره په طور دتوطيه اوتمهيد نه وي او د تابع ذكر دمتبوع دپاره دفرعې په شان يعني غير مستقل نه وي. دې ته مقصود بالنسبة وايي لهذا تعريف جامع شو

## د عطف د تعريف نور تفصيل:

| |
|---|
| وَ لَمَّا تَمَّ الحَدُّ بِمَا ذَكَرَهُ جَمْعًا وَ مَنْعًا اَرْدَفَهُ لِزِيَادَةِ التَّوْضِيْحِ بِقَوْلِهِ |
| اوهركله چې پوره شوتعريف جمعا اومنعا نو ددې نه پس يې ذكر كړو دپاره دزيات وضاحت په دې قول سره چې په |
| يَتَوَسَّطُ بَيْنَهُ اَيْ بَيْنَ ذٰلِكَ التَّابِعِ وَ بَيْنَ مَتْبُوْعِهِ اَحَدُ الحُرُوْفِ العَشَرَةِ وَ سَيَأْتِيْ تَفْصِيْلُهَا |
| مينځ ددې كې يعني په مينځ ددې تابع اوپه مينځ دمتبوع كې يودلسو حروفونه اوزردې چې رابه شي تفصيل |
| فِيْ قِسْمِ الحُرُوْفِ اِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى مِثْلُ قَامَ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو وَ لَمْ يَكْتَفِ بِقَوْلِهِ |
| ددې په قسم دحروفو كې كه دالله تعالى خوښه شوه لكه قام زيدوعمرو او اكتفا يې ونه كړه په دې قول سره چې |
| تَابِعٌ يَتَوَسَّطُ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ مَتْبُوْعِهِ اَحَدُ الحُرُوْفِ العَشَرَةِ لِاَنَّ الحُرُوْفَ قَدْ تَتَوَسَّطُ بَيْنَ الصِّفَاتِ مِثْلُ |
| مينځ ددې كې اوپه مينځ دمتبوع كې يودلسوحروفونه خكه حروف كله واقع كيږي په مينځ دصفاتو كې لكه |
| جَاءَنِيْ زَيْدُنِ العَالِمُ وَ الشَّاعِرُ وَ الدَّبِيْرُ فَالصِّفَةُ الدَّاخِلُ عَلَيْهَا حَرْفُ العَطْفِ كَالشَّاعِرِ وَ الدَّبِيْرِ لَهَا |
| جاءني زيدن العالم والشاعر والدبير نوهغه صفت چې داخل وي په دې باندې حرف عطف لكه شاعر او دبير نو ددې د |
| جِهَتَانِ اِحْدٰهُمَا كَوْنُهَا صِفَةً لِزَيْدٍ تَابِعَةٍ لَهُ بِتَبْعِيَّةِ المَعْطُوْفِ عَلَيْهِ وَ |
| پاره دوه وجهې دي يو ددې نه كيدل ددې صفت دپاره د زيدچې تابع وي ددې په تابع كيدو دمعطوف عليه اوبل |
| اُخْرٰهُمَا كَوْنُهَا مَعْطُوْفًا عَلَى الصِّفَةِ المُتَقَدِّمَةِ تَابِعَةً لَهَا وَ يَصْدُقُ عَلٰى هٰذِهِ الصِّفَةِ مِنْ جِهَتِهَا الاُوْلٰى |
| كيدل ددې نه معطوف په مخكې صفت باندې چې تابع وي ددې دپاره اوصادقيږي په دې صفت داول جهت نه |
| اَنَّهَا تَابِعَةٌ لِاَنَّهَا صِفَةٌ لِزَيْدٍ يَتَوَسَّطُ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ زَيْدٍ حَرْفُ العَطْفِ لِاَنَّ |
| چې داتابع دي خكه صفت دي دپاره د زيدچې په مينځ ددې كې اوپه مينځ د زيدكې حرف عطف دي خكه په |
| تَوَسُّطَ حَرْفِ العَطْفِ بَيْنَ شَيْئَيْنِ لَا يَلْزَمُ اَنْ يَكُوْنَ لِعَطْفِ الثَّانِيْ عَلَى الاَوَّلِ فَلَوْ |
| مينځ كې راتلل دحرف عطف په مينځ ددوه شيانو كې نه دي لازم چې وي دپاره دعطف ددويم په اول باندې نو كه |

لَمْ يَكُنْ قَوْلُهُ مَقْصُوْدًا بِالنِّسْبَةِ مَعَ مَتْبُوْعِهِ لَدَخَلَ هٰذِهِ الصِّفَةِ مِنْ جِهَتِهَا الْأُوْلٰي فِيْ حَدِّ الْمَعْطُوْفِ

چيرته نه وو قول دده مقصود بالنسبة مع متبوعه نو داخل شوي به وي دا صفت داول جهت نه په تعريف دمعطوف کي

وَ هِيَ مِنْ هٰذِهِ الْجِهَةِ لَيْسَتْ مَعْطُوْفَةً فَلَمْ يَبْقَ مَانِعًا وَ قِيْلَ قَدْ جَوَّزَ الزَّمَخْشَرِيُّ وُقُوْعَ

حالانکه دا صفت دديٰ جهت نه .نه دي معطوف نو في نه شو مانع او چاويلي دي چې جائز کړي زمخشري وقوع

الْوَاوِ بَيْنَ الْمَوْصُوْفِ وَ الصِّفَةِ لِتَاکِيْدِ اللُّصُوْقِ فِيْ مَوَاضِعَ عَدِيْدَةٍ مِنَ الْکَشَّافِ وَ حَکَمَ الْمُص

دواو په مينځ دموصوف او صفت کي دپاره دتاکيد داتصال په ډيرو ځايونو کي په کشاف کي او حکم کړي مصنف

فِيْ شَرْحِ الْمُفَصَّلِ فِيْ مَبَاحِثِ الْاِسْتِثْنَاءِ اَنَّ قَوْلَهُ تَعَالٰي وَ لَهَا مُنْذِرُوْنَ فِيْ قَوْلِهِ

په شرح مفصل کي په مباحثو داستثناء کي چې داقول دالله تعالى ولها منذرون په دي قول دالله تعالى

وَ مَا اَهْلَکْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا وَ لَهَا مُنْذِرُوْنَ صِفَةٌ لِقَرْيَةٍ فَلَوْ اِکْتَفٰي بِقَوْلِهِ تَابِعٌ

وما اهلکنا من قرية الا ولها منذورن کي صفت دپاره دقرية نو که چيرته اکتفاء کړي وي مصنف په دي قول تابع

يَتَوَسَّطُ لَدَخَلَ فِيْهِ مِثْلُ هٰذِهِ الصِّفَةِ وَ نُقِلَ عَنِ الْمُصَنِّفِ اَنَّهُ قَالَ فِيْ

يتوسط سره نو داخل شوي به وي په دي کي په شان ددي صفت اونقل شوي دي دمصنف نه چې ده ويلي دي په

اَمَالِي الْکَافِيَةِ اَنَّ الْعَاقِلَ فِيْ مِثْلِ جَاءَنِيْ زَيْدٌ نِ الْعَالِمُ وَ الْعَاقِلُ تَابِعٌ يَتَوَسَّطُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ

امالي دکافيه کي چې عاقل په دي جاءني زيد العالم والعاقل مثال کي تابع دي او په مينځ ددي او په مينځ د

مَتْبُوْعِهِ اَحَدُ الْحُرُوْفِ الْعَشَرَةِ وَ لَيْسَ بِعَطْفٍ عَلَي التَّحْقِيْقِ وَاِنَّمَا هُوَ بَاقٍ عَلٰي مَا کَانَ عَلَيْهِ فِي الْوَصْفِيَّةِ

متبوع کي يو لسو حروفو نه دي عطف په تحقيق باندي او داباقي دي په هغه څه باندي چې وو په وصفيت

وَ اِنَّمَا حَسُنَ دُخُوْلُ الْعَاطِفِ لِنَوْعٍ مِنَ الشِّبْهِ بِالْمَعْطُوْفِ لِمَا بَيْنَهُمَا مِنَ التَّغَايُرِ

کي او ښه دي دخول دعاطف دپاره ديوقسم مشابه دمعطوف سره څکه چې په مينځ ددي دواړو کي تغاير دي نو

فَلَوْ حُدَّ الْعَطْفُ کَکَ لَدَخَلَ فِيْهِ بَعْضُ الصِّفَاتِ مَعَ اَنَّهُ لَيْسَ

که چيرته تعريف د عطف داسي شوي وي نو داخل شوي به وي په دي کي بعضي صفات سره ددي نه چې نه دي

بِمَعْطُوْفٍ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ فِيْهِ نَظَرٌ لِاَنَّهُ الْحُرُوْفَ الْمُتَوَسِّطَةِ بَيْنَهُمَا عَاطِفَةٌ لِدَلَالَتِهَا فِيْهَا

معطوف او بعضو ويلي دي چې په دي کي نظر دي څکه حروف په مينځ ددي عاطفه دي دوجې ددلالت نه په دي

عَلٰي مَا تَدُلُّ عَلَيْهِ فِيْ غَيْرِهَا مِنَ الْجَمْعِ وَ التَّرْتِيْبِ وَ غَيْرِ ذٰلِکَ فَفِيْ جَعْلِهَا غَيْرَ عَاطِفَةٍ

باندي په هغه څه چې دلالت کوي په غيرددي نه په جمع اوترتيب او په غيرددي نه نو په ګرځولو ددي غيرعاطفه

فِي الصِّفَاتِ وَ عَاطِفَةً فِيْ غَيْرِهَا اِرْتِکَابُ اَمْرٍ بَعِيْدٍ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ دَاعِيَةٍ اِلَيْهِ .

په صفاتو کي او عاطفه په غيرصفاتو کي ارتکاب ديو امر بعيد دي په غيردضرورت داعيه نه دي طرف ته .

**خلاصه دمتن**: دعطف دتعریف نه پس دنور وضاحت اوتفصیل دپاره صاحب دکافیه وایي چې په عطف کې تابع یعني معطوف او ددې د متبوع په مینځ کې دلسو (۱۰) حروفو نه یو حرف راځي او ددې لسو (۱۰) حروفو بحث به ان شاءالله د حروفو په بحث کې راځي. لکه قام زیدٌ وعمرو

**اغراض دجامي**: ولماتم: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: دتعریف نه مقصود جامعیت او مانعیت او دنورو شیانو نه احتراز وي، او دا مقصد په العطف تابع مقصود بالنسبة باندې حاصل شو او مصنف ایجاز او اختصار غوره کوي لهٰذا وروستني عبارت یتوسط بینه الخ. په تعریف کې ذکر کول بې فائدې او په بې فائدې څیز باندې ځان مشغولول دي اودا باطل دي.

**جواب**: مونږ منو چې په یتوسط الخ سره جمعاً و منعاً تعریف تردغه ځاې پورې مکمل شو. لیکن دا ضروري ده چې په تعریف کې تمام قیودات احترازي وي، په بعضې وخت کې بعضې قیودات صرف د مُعَرَّف دوضاحت دپاره وي، نو دا قید هم دزیات تفصیل اودمزید وضاحت دپاره دي

قوله یتوسط بینه ای بین ذلك التابع: په دې عبارت سره شارح په بینه کې د ه ضمیر دمرجع بیان کوي.

ولم یکتف: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: په عبارت کې اصل ایجاز او اختصار وي اوصاحب دکافیه خو اختصار ډېر خوښوي نو مصنف رحمه الله ته په کار وو چې د معطوف بحرف تعریف یې داسې کړې وي چې. وهو تابع یتوسط بینه و بین متبوعه احد الحروف العشرة مقصود بالنسبة یې حذف کړې وې. چې په دې سره به تعریف جامع شوي هم وي او مانع شوې هم وي او په دې سره به وضاحت هم شوې وي او اختصار به هم شوې وي؟

**جواب**: مصنف رحمه الله داسې ځکه ونه کړه. ځکه چې حروف عاطفه کله صفاتو په منځ کې واقع وي لکه جاءني زید العالم والشاعر والدبیر. په دې کې شاعر او دبیر دواړه صفتونه دي او

ددې په مینځ کې حرف عطف داخل دي او هغه صفت چې په هغې باندې حرف عطف داخل وي په دې کې دوه (۲) جهته او دوه (۲) حیثیته دي (۱) یا خو د زید صفت دي او د معطوف علیه په واسطې سره دا ددې تابع دي (۲) یادا په اول صفت یعنې په العالم باندې معطوف دي او ددې تابع دي ، اوپه دې صفتونوباندې دجهت اولی په اعتبار سره داخبره صادقه راځي چې داتابع ده ځکه چې دادزید صفتونه دي اوصفت تابع وي او ددې او د زید په مینځ کې حرف عطف واقع دي پس که مقصود بالنسبة مع متبوعه والاعبارت نه وي، نو دا صفات دجهت اولی په اعتبار سره معطوف بحرف تعریف کې داخلیدو حالانکه داددې جهت نه معطوف نه دي بلکه صفات دي نومعطوف بحرف تعریف دخول دغیر نه مانع نه پاتې کیدو ځکه په تعریف کې د مقصود بالنسبة قید اضافه کول ضروري وو.

**لان توسط:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : کله چې ددې صفاتو په مینځ کې حرف عطف واقع شي نو بیا دویم په اول باندې معطوف کول په کار وو، ځکه چې ددوه شیانو په مینځ کې حرف عطف دویم په اول باندې د عطف کولو دپاره وي

**جواب** : د دوه شیانو په مینځ کې دحرف عطف کیدو دوجې نه دا نه لازمیږي چې هغه دویم په اول باندې دعطف کولو دپاره وي، بلکې کله کله حرف عطف دنورو مقاصدو دپاره هم وي لکه دموصوف اوصفت په مینځ کې داتصال دتاکید دپاره ، لکه څنګه چې امام زمخشري رحمه الله وروسته ذکر کړي دي

**وقیل:** په دې عبارت سره شارح ددې خبرې تائید کوي چې په صفاتو باندې دحرف عطف داخلول جائز دي، چې حاصل یې دادې چې علامه زمخشري رحمه الله په خپل کتاب کشاف کې په ډېرو ځایونو کې دموصوف صفت په مینځ کې داتصال دتاکید دپاره دموصوف صفت په مینځ کې حرف عطف واقع کیدل جائز کړي دي ، نو ددې نه معلومه شوه چې په صفاتو باندې حرف عطف داخلول جائز دي لکه په قرآن مجید کې ذکر دي چې : **ويقولون سبعة و ثامنهم كلبهم**.
په دې کې **ثامنهم** د **سبعة** صفت دي او په دې کې واو دتاکید داتصال دپاره دي.

**و حكم المصنف** : په دې عبارت سره شارح مزید وضاحت کوي چې دصفاتو په مینځ کې حرف عذف واقع کیدل جائزدي . ځکه چې مصنف په شرح مفصل کې د استثناء په بحث کې ویلي

دي چې د الله تعالی په دې قول ﴿ وما اهلکنا من قرية الاولها منذرون﴾ کې ولها منذرون د قرية صفت دي، واو حاليه او لها منذرون حال نه شي جوړيدي ځکه چې قريه نکره ده .ذوالحال دنکره کيدو په صورت کې دحال تقديم واجب دي حالانکه په مينځ کې واو عاطفه موجود دي لهذا که چيرته مصنف خپل قول يتوسط بينه وبين متبوعه احد الحروف العشرة باندې اکتفاء کړې وي او مقصود بالنسبة يې نه وي ذکر کړي نوددې په شان صفات به دمعطوف بحرف په تعريف کې داخل شوي وي

**تنبيه** : دجامي شارح چې کوم آيت پيش کړې دی دا د سورة شعراء په آخري رکوع کې دي په دې کې واو نشته دي الا لها منذرون دي او نه مصنف رحمه الله په شرح مفصل کې دا ذکر کړي دي بلکې مصنف رحمه الله د سورة نحل دلومړنې رکوع آيت ﴿ وما اهلکنا من قرية الا ولها کتاب معلوم﴾ ذکر کړي اوپه دې کې واو موجود دي شايد چې دجامي دشارح نه سهوه شوي وي ځکه چې : الانسان مرکب من الخطاء والنسيان . انسان مرکب دي دخطا اودنسيان اوهيرې نه ، او نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي ﴿ رفع عن أمتي الخطاء والنسيان﴾ . پورته شوې ده زما دامت نه خطا او نسيان ﴿ هيره ﴾ .

**ونقل**: په دې عبارت کې شارح دتائيد مزيد بيان کوي. يعنې تائيد در تائيد دي، چې د صفاتو په مينځ کې حرف عطف ذکر کول صحيح دي. ځکه چې په آمالي کافيه کې دمصنف نه نقل شوي ده چې په جاءني زيد العالم والعاقل کې عاقل تابع دي، ددې او د متبوع په مينځ کې دلسو ﴿۱۰﴾ حروفو نه يو حرف واقع دي حالانکه حقيقت دادې چې دامعطوف بحرف نه دي بلکه داپه دې حالت باندې دي په کوم باندې چې دا وو يعنې صفت وو ددې نه معلومه شوه چې په صفاتو باندې دحرف عطف واقع کيدل جائز دي .

**وانما حسن**: په دې عبارت سره شارح په صفاتو باندې دحرف عطف دداخليدو دصحيح کيدو وجه بيانوي چې حاصل يې دادې چې په صفاتو باندې حرف عطف داخلول ددې وجې نه مستحسن او ښه دي چې صفاتو ته دمعطوفاتو سره مشابهت ډير حاصل دي. او وجه د مشابهت يې داده چې لکه څنګه چې دمعطوف او دمعطوف عليه په مينځ کې تغاير وي نو همدارنګې دموصوف اوصفت په مينځ کې هم تغاير وي. دمعطوف اومعطوف عليه په مينځ کې تغائر بالذات وي . او دموصوف اوصفت په مينځ کې تغاير په اعتبار دمفهوم سره وي نه

په اعتبار د مصداق سره

**وقال بعضهم**: بعضې نحويانو ويلي دي چې په تابع يتوسط بينه و بين متبوعه احد الحروف العشرة باندې د اکتفاء نه کولو چې کومه وجه بې بيان کړې ده په هغې کې اشکال دي. هغه اشکال دا دي چې هغه حروف چې کوم د صفت په مينځ کې واقع دي هغه هم حروف عاطفه دي. ځکه چې دالکه څنګه په غير صفت کې په جمع اوترتيب باندې دلالت کوي همدا رنګې په صفاتو کې هم په جمع اوترتيب باندې دلالت کوي نو په غير صفاتو کې دا عاطفه جوړول اوپه صفاتو کې دا غير عاطفه جوړول په غير د کوم ضرورت داعيه نه ديو اسر بعيد ارتکاب کول دي کوم چې صحيح نه دي

**جواب**: بعضې نحويانو ددې اشکال جواب دا ورکړي دي چې دلته ضرورت داعيه موجود دي هغه ضرورت داعيه دادې چې په دې معنى ترتيب او جمع باندې دلالت کول دا حروف عاطفه جوړولو دپاره کافي نه دي بلکې ددې سره داهم ضروري ده چې معطوف اومعطوف عليه دواړه مقصود بالنسبة وي او په دواړو کې د مصداق په اعتبار سره تغائر وي اتحاد نه وي اوپه ذکر شوو مثالونو کې اګر چې په موصوف اوصفت کې ترتيب او جمع موجود ده ليکن دواړه مقصود بالنسبة نه دي اوپه مصداق کې هم تغائر نشته دي بلکې اتحاد دي ځکه چې دلته حروف عاطفه نه دي جوړ شوي

## په ضمير مرفوع متصل باندې د عطف کولو طريقه:

وَ إِذَا عُطِفَ عَلَى الضَّمِيْرِ الْمَرْفُوْعِ لَا الْمَنْصُوْبِ وَ الْمَجْرُوْرِ الْمُتَّصِلِ بَارِزًا كَانَ اَوْ مُسْتَتِرًا لَا الْمُنْفَصِلِ

اوکله چې عطف کړې شي ضمير مرفوع نه منصوب اومجرور متصل که بارز وي اوکه مستتر نه منفصل نو

أُكِّدَ بِمُنْفَصِلٍ اَوَّلًا ثُمَّ عُطِفَ عَلَيْهِ وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ الْمَرْفُوْعَ كَالْجُزْءِ مِمَّا

مؤکد کولې به شي اولاً بيا به عطف کولې شي اوداځکه چې متصل مرفوع په شان د جزء دي د هغه څه سره چې د

اتَّصَلَ بِهٖ لَفْظًا مِنْ حَيْثُ اَنَّهٗ مُتَّصِلٌ لَا يَجُوْزُ اِنْفِصَالُهٗ وَ مَعْنًى مِنْ حَيْثُ

هغې سره متصل وي لفظاً دې حيثيت نه چې دامتصل وي اوبه وي جائز انفصال ددې اومعناً دې حيثيت نه

اَنَّهٗ فَاعِلٌ وَ الْفَاعِلُ كَالْجُزْءِ مِنَ الْفِعْلِ فَلَوْ عُطِفَ عَلَيْهِ بِلَا تَاكِيْدٍ كَانَ كَمَا

چې دافاعل وي اوفاعل په شان دجزء دې دفعل نوکه چېرته عطف کړې شي په دې باندې به غير د تاکيد نه نوکه

لَوْ عُطِفَ عَلٰى بَعْضِ حُرُوْفِ الْكَلِمَةِ فَاُكِّدَ اَوَّلًا بِمُنْفَصِلٍ لِاَنَّهٗ بِذٰلِكَ

څنګه چې عطف کړې شي په بعضې حروفو د کلمو باندې نو مؤکد کولې به شي اولاً په منفصل سره ځکه په دې سره

يَظْهَرُ اَنَّ ذٰلِکَ الْمُتَّصِلَ وَ اِنْ کَانَ کَالْجُزْءِ مُنْفَصِلٌ مِنْ حَيْثُ الْحَقِيْقَةِ بِدَلِيْلِ جَوَازِ اِفْرَادِهٖ مِمَّا
ظاهريږي چې دا متصل اګر که په شان د جزء وي منفصل د حيثيت د حقيقت نه په دليل د جواز د جدا کولو د هغه څه
اتَّصَلَ بِهٖ بِتَاکِيْدِهٖ فَيَحْصُلُ لَهٗ نَوْعُ اِسْتِقْلَالٍ وَلَا يَجُوْزُ اَنْ يَّکُوْنَ الْعَطْفُ عَلٰی هٰذَا التَّاکِيْدِ لِاَنَّ
نه چې متصل وي د دې سره نو حاصليږي يو قسم استقلال او نه دي جائز چې وي عطف په دې تاکيد باندې ځکه
الْمَعْطُوْفَ فِيْ حُکْمِ الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ فَکَانَ يَلْزَمُ اَنْ يَّکُوْنَ هٰذَا الْمَعْطُوْفُ اَيْضاً تَاکِيْداً وَ هُوَ بَاطِلٌ.
معطوف په حکم د معطوف عليه کې دی نو لازم شو چې وي دا معطوف هم دا رنګې تاکيد حالانکه دا باطل دی

**خلاصه د متن**: صاحب د کافيه يوه قاعده بيانوي. چې کله په ضمير مرفوع متصل باندې د يو لفظ عطف وشي. نو اول به ضمير مرفوع متصل سره د دې تاکيد وکړې شي. بيا به عطف کړې شي لکه ضربت انا و زيد په دې کې د زيد عطف په تاء ضمير متکلم باندې دی. د دې وجې نه ضمير مرفوع منفصل سره يعني انا سره د دې تاکيد راوړل شي او بيا عطف کړې شي

**اغراض د جامي**: الضمير: په دې عبارت کې شارح اشاره کړې ده چې المرفوع صفت دی د موصوف محذوف چې الضمير دی

لا المنصوب: په دې عبارت کې شارح دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چې د المرفوع قيد احترازي دی. په دې سره د ضمير منصوب او مجرور نه احتراز دی.

بارزاً: په دې عبارت کې شارح يو وهم لرې کوي.

**وهم**: وهم دا دی چې شايد د ضمير متصل نه مراد ضمير بارز وي، ځکه چې مصنف يو مثال د دې ورکړې دی. نو شارح بارزاً سره دا وهم لرې کړو. چې په ضمير متصل کې تعميم دی برابره خبره ده که بارز وي او که مستتر وي

لا المنفصل: په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې د متصل قيد احترازي دی په دې سره د منفصل نه احتراز دی

و ذلك لان: په دې عبارت سره شارح د ضمير منفصل د تاکيد وجه بيان کړې ده چې ضمير متصل چې د کوم فعل سره متصل وي. نو هغه به د دې د پاره د جُزء په شان وي لفظاً هم او معناً هم. لفظاً په داسې شان سره چې دا د فعل سره په داسې طريقې سره متصل وي چې د ضمير متصل د دې فعل نه انفصال جائز نه وي . او معنا په داسې شان سره چې دا ضمير متصل فاعل دی او فاعل د فعل د پاره په منزله د جُزء وي او س که چيرته د تاکيد نه غير په دې باندې د کوم

لفظ عطف وکړې شي نو دا به داسې وي لکه د کلمې په بعضې حروفو باندې عطف وکړې شي او دا جائز نه دي ځکه چې اولا د ضمير منصل سره د دې تاکيد وکړې شي بيا په دې باندې عطف وکړې شي ځکه چې د دې تاکيد سره دا واضحه شي چې دغه ضمير اګرچې د جُزء په شان دي ليکن په حقيقت کې دا منفصل دي او د دې انفصال دليل دا دي چې په وخت تاکيد کې دا د خپل فعل نه جدا راوړل جائز دي نو لهذا ضمير متصل ته به يو قسم استقلال حاصل شي او نه د دې باندې به عطف جائز شي

ولا يجوز: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: داسې هم کيدې شي چې په ضمير متصل باندې د عطف کولو ضمير منفصل کوم چې د تاکيد د پاره راوړل شوي دي په دې باندې عطف کړې شي د دې د پاره چې په جزء د کلمه باندې د عطف کولو نه بالکليه خلاصي وشي مثلاً په ضربت انا وزيد کې په دې د زيد عطف په انا ضمير منفصل باندې کيږي

**جواب**: په ضمير منفصل تاکيد باندې عطف جائز نه دي. ځکه چې قاعده دا ده چې معطوف د معطوف عليه په حکم کې وي، که په ضمير منفصل تاکيد باندې عطف وشي نو لازم له به شي چې معطوف هم د تاکيد د پاره دي حالانکه دا باطل دي. ځکه چې مؤکد او تاکيد د يو بل عين وي او په ذکر شوي مثال کې زيد انا د متکلم عين نه دي

## په ضمير مرفوع منفصل باندې عطف کول

| فَإِنْ كَانَ الضَّمِيْرُ مُنْفَصِلاً نَحْوُ مَا ضَرَبَ إِلَّا أَنْتَ وَ زَيْدٌ لَمْ يَكُنْ كَالْجُزْءِ لَفْظاً وَكَذَا إِنْ كَانَ مُتَّصِلاً |
|---|
| که چيرته وو ضمير منفصل لکه ماضرب الا انت وزيد نه به وي په شان د جُزء لفظاً او همدا رنګې که چيرته وو متصل |
| مَنْصُوْباً نَحْوُ ضَرَبْتُكَ وَ زَيْدًا لَمْ يَكُنْ كَالْجُزْءِ مَعْنًى فَلَا حَاجَةَ فِيْهِمَا إِلَى التَّاكِيْدِ بِمُنْفَصِلٍ |
| منصوب لکه ضربتک وزيداً نه به وي په شان د جزء معناً نو نشته دي حاجت په دې کې تاکيد ته په منفصل سره |
| مِثْلُ ضَرَبْتُ أَنَا وَزَيْدٌ وَزَيْدٌ ضَرَبَ هُوَ وَغُلَامُهُ إِلَّا أَنْ يَقَعَ فَصْلٌ بَيْنَ الضَّمِيْرِ الْمَرْفُوْعِ الْمُتَّصِلِ وَ بَيْنَ |
| لکه ضربت انا وزيد وزيد ضرب هو وغلامه مګر چې کله واقع شي فصل په مينځ د ضمير مرفوع متصل او په مينځ د |
| مَا عُطِفَ عَلَيْهِ فَيَجُوْزُ تَرْكُهُ أَيْ تَرْكُ التَّاكِيْدِ لِأَنَّهُ قَدْ طَالَ |
| هغه څه چې عطف شوې وي په دې باندې نو جائز دي پريخودل د دې يعني پريخودل د تاکيد ځکه چې اوږد شوې |
| الْكَلَامُ بِوُجُوْدِ الْفَصْلِ فَحَسُنَ الْإِخْتِصَارُ بِتَرْكِ التَّاكِيْدِ سَوَاءٌ كَانَ الْفَصْلُ قَبْلَ |
| دې کلام په وجود د فصل سره نو ښه دي اختصار په پريخودو د تاکيد سره برابره خبره ده که وي فصل مخکې د |

| |
|---|
| حَرْفِ الْعَطْفِ نَحْوُ ضَرَبْتُ الْيَوْمَ وَ زَيْدٌ اَوْ بَعْدَهُ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى مَا اَشْرَكْنَا وَلَا اٰبَاءُنَا فَاِنَّ |
| حرف عطف نه وي لکه ضربت اليوم وزيداويا پس دحرف عطف نه لکه داقول دالله تعالى ماأشركناولاآباءنا ځکه |
| الْمَعْطُوْفَ هُوَ اٰبَاءُنَا وَلَا زَائِدَةٌ بَعْدَ حَرْفِ الْعَطْفِ لِتَاكِيْدِ النَّفْيِ وَ اِنَّمَا قَالَ |
| معطوف هغه آباءنادي اولا زائده دي پس دحرف عطف نه دپاره دتاكيد دنفي اوپه تحقيق سره ويلي دي مصنف |
| يَجُوْزُ تَرْكُهُ فَاِنَّهُ قَدْ يُؤَكَّدُ بِالْمُنْفَصِلِ مَعَ الْفَصْلِ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى |
| چې جائزدي پريخودل ددې ځکه چې کله مؤکد کيږي په منفصل سره.سره دفصل نه لکه داقول دالله تعالى |
| فَكُبْكِبُوْا فِيْهَا هُمْ وَالْغَاوُوْنَ وَقَدْ لَا يُؤَكَّدُ وَالْاَمْرَانِ مُتَسَاوِيَانِ هٰذَا وَاعْلَمْ اَنَّ مَذْهَبَ الْبَصْرِيِّيْنَ |
| فكبكبوافيهاهم والغاوون اوكله نه شي مؤكد كولي اودواړه امرد برابردي داخبره زده كړه چې مذهب د بصرينو |
| اَنَّ التَّاكِيْدَ بِالْمُنْفَصِلِ هُوَ الْاَوْلٰى وَ يُجَوِّزُوْنَ الْعَطْفَ بِلَا تَاكِيْدٍ وَلَا فَصْلٍ لٰكِنْ عَلٰى قُبْحٍ وَ |
| دادي چې تاكيد په منفصل سره اولى دي اوجائزكوي عطف بې دتاكيداوبې دفصل نه لكن په قبحې باندې او |
| الْكُوْفِيُّوْنَ يُجَوِّزُوْنَهُ بِلَا قُبْحٍ. |
| كوفيان يې جائزكوي په غيردقبحې نه |

**خلاصه دمتن**: مخکې په ضمير مرفوع متصل باندې دعطف کولو طريقه بيان شوه ، اوس په دې عبارت کې په ضمير مرفوع منصل باندې دعطف کولو طريقه بيانوي.

**اغراض دجامي**: فان كان الضمير: په دې عبارت کې شارح د قيودونو فائدې بيانوي چې دمتصل قيد يې ددې وجې نه ولږولو. چې ضمير مرفوع متصل نه وي بلکې منفصل وي. لکه ماضرب الا وانا وزيد نو دا لفظاً د فعل د جزء په شان دي. لهذا په منفصل سره ددې تاکيد راوړلو ضرورت نشته او د مرفوع قيد يې ځکه ولږولو که چيرته ضمير مرفوع متصل نه وي. بلکې منصوب متصل وي لکه ضربتك وزيداً نو په دې باندې دعطف کولو دپاره تاکيد ته ضرورت نشته. ځکه چې هغه معناً د فعل د جزء په شان نه دي. ځکه چې فعل په فاعل باندې تماميږي اومفعول فضله وي.

ضربت انا و زيد: شارح په دې عبارت سره په ضمير مرفوع متصل بارز باندې د عطف کولو مثال بيانوي

زيد ضرب هو و غلامه: شارح په دې عبارت سره په ضمير مرفوع متصل مستتر باندې دعطف کولو مثال بيانوي

**الا ان يقع**: په دې عبارت سره شارح د مخكښې قاعدې نه استثناء كوي چې كله د ضمير مرفوع متصل او ددې د معطوف په مينځ كې فاصله وي نو د تاكيد پريخودل د منفصل سره جائز دي برابره خبره ده كه دا فاصله د حرف عطف نه مخكې وي او يا د حرف عطف نه پس وي

**لانه قد طال**: په دې عبارت كې شارح د ذكر شوي استثناء وجه بيانوي . چې د فصل د وجې نه په كلام كې اوږدوالي راغې او س كه تاكيد بالمنفصل راسي . نو داوږدوالي نه پس اوږدوالي به راشي حالانكه په كلام كې اختصار مطلوب دي لهذا د تاكيد په پريخودو سره اختصار مستحسن او ښه دي

**سواء**: په دې عبارت سره شارح يو وهم لرې كوي

**وهم**: وهم دا دې چې شايد د فصل نه مراد هغه فصل وي . چې كوم د حرف عطف نه مخكې وي ځكه چې مصنف رحمه الله ددې مثال وركړې دي . نو په سواء سره شارح دا وهم لرې كړو . چې په فصل كې تعميم دي برابره خبره ده كه د حرف عطف نه مخكې وي او كه د حرف عطف نه وروستو وي . د حرف عطف نه د مخكې مثال ضرب اليوم و زيد . په دې كې د زيد عطف په تاء ضمير متصل باندې او اليوم فاصله ده . او د حرف عطف نه وروستو ددې مثال د الله تعالى د قول چې ما اشركنا ولا اباءنا په دې كې آباء عطف دي د اشركنا په نا ضمير باندې او واو حرف عطف نه وروستو د نفي د تاكيد د پاره لا زائد شوي دي او هم دا فاصل دي . كوم چې د حرف عطف نه وروستو دي ددې وجې نه ضمير فصل راوړلو ته ضرورت پاتې نه شو

**وانما قال**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي

**سوال**: مصنف رحمه الله يجوز تركه وويل نو يجب تركه يې ولې ونه ويل؟

**جواب**: كله د فصل باوجود د ضمير منفصل سره تاكيد راوړې شي . مثال د الله تعالى دا قول چې فكبكوا فيها هم والغاوون . په دې كې الغاوون عطف دي د كبكوا په واو ضمير متصل باندې او په دې فيها فاصل موجود دي . ددې سره سره په ضمير منفصل سره يې تاكيد شوي دي . او كله كله تاكيد هم نه شي راوړې مثال لكه ضربت اليوم و زيد لهذا دواړه امره مساوي دي ددې وجې نه مصنف يجوز تركه وويل يجب تركه يې ونه ويل

**واعلم**: په دې عبارت كې شارح د ذكر شوي قاعدې په باره كې د نحوي د اماماتو اختلاف سره

دمذاهبو بیانونه . دلته ټول دري (۳) مذاهب دي (۱) دبصري دنحویانو مذهب . (۲) دکوفي دنحویانو مذهب . (۳) او دمصنف رحمه الله مذهب

**(۱) دبصري دنحویانو مذهب** : ددوي مذهب دادي چې چې تاکید بالمنفصل اولی او اعلی دي او دتاکید نه په غیر عطف خو جائز دي لیکن سره د قبحې نه

**(۲) دکوفي دنحویانو مذهب** : ددوي مذهب دادې چې تاکید بالمنفصل اولی دي او د تاکید او فصل نه په غیر عطف بې دقباحت نه جائز دي

**(۳) دمصنف رحمه الله مذهب** : دده مذهب دادې چې تاکید بالمنفصل واجب دي . نو په دې باندې یو سوال واردیږي

**سوال** : تاسو ته څنګه معلومه شوه . چې د مصنف په نزد د تاکید بالمنفصل واجب دي ؟

**جواب** : دا خبره مونږ ته دمفعول معه دبحث نه معلومه شوه

## په ضمیر مجرور باندې عطف کول :

**وَ اِذَا عُطِفَ عَلَى الضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ أُعِيْدَ الْخَافِضُ حَرْفًا كَانَ اَوْ اِسْمًا لِاَنَّ اِتِّصَالَ**

اوچې کله عطف کړې شي په ضمیرمجرورباندې نوراواپس کولې به شي جرکه حرف وي اوکه اسم څکه اتصال د

**الضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ بِجَارِهٖ اَشَدُّ مِنْ اِتِّصَالِ الْفَاعِلِ الْمُتَّصِلِ بِالْفِعْلِ لِاَنَّ الْفَاعِلَ اِنْ لَّمْ يَكُنْ**

ضمیرمجروریه جارسره دااشددي داتصال دفاعل نه چې متصل وي دفعل پورې څکه فاعل که چېرته نه وي

**ضَمِيْرًا مُتَّصِلاً جَازَ اِنْفِصَالُهٗ وَ الْمَجْرُوْرُ لَا يَنْفَصِلُ مِنْ جَارِهٖ فَكَرِهَ الْعَطْفُ عَلَيْهِ**

ضمیرمتصل نوجائزدي انفصال ددې اومجرورنه جداکیږي دخپل مجرورنه نومکروه دي عطف په دې باندې

**اِذْ يَكُوْنُ كَالْعَطْفِ عَلٰى بَعْضِ حُرُوْفِ الْكَلِمَةِ وَ لَيْسَ لِلْمَجْرُوْرِ ضَمِيْرٌ مُنْفَصِلٌ كَمَا يَجِيْءُ**

څکه چې داپه شان دعطف دي په بعضې حروفو دکلمې باندې اونه دي دمجرورد پاره د ضمیر منفصل لکه راځي

**فِي الْمُضْمَرَاتِ حَتّٰى يُؤَكَّدُ بِهٖ اَوَّلاً ثُمَّ يُعْطَفُ عَلَيْهِ كَمَا عُمِلَ**

په مضمراتوکې تردې چې مؤکد به وي اولابیابه عطف کولې شي په دې باندې لکه څنګه چې یې عمل کړې

**فِي الْمَرْفُوْعِ الْمُتَّصِلِ وَ فِيْ اِسْتِعَارَةِ الْمَرْفُوْعِ لَهٗ مَذِلَّةٌ وَلَا يَكْتَفٰى بِالْفَصْلِ**

په مرفوع متصل کې اوپه استعاره اخستو دمرفوع کې ذلت دي د مرفوع دپاره او اکتفاء به نه شي کولې په فصل

**لِاَنَّ الْفَصْلَ لَا تَاْثِيْرَ لَهٗ اِلَّا فِيْ جَوَازِ تَرْكِ التَّاْكِيْدِ بِالْمُنْفَصِلِ لِلْاِخْتِصَارِ فَحَيْثُ**

باندې څکه فصل نشته تاثیردي ته مګرپه جواز دپرېښودودتاکید کې په منفصل سره دپاره داختصار نوڅنګه به

| |
|---|
| لَا يُمْكِنُ التَّاكِيْدُ بِالْمُنْفَصِلِ لِعَدَمِهِ لَا يُتَصَوَّرُ لَهُ أَثَرٌ فَكَيْفَ يُكْتَفٰى |
| نه وي ممکن تاکید په منفصل سره دوجې د معدوم کیدو نه چې نه دي متصور دې دپاره څه اثر نو څنګه به اکتفاء |
| بِهٖ فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا إِعَادَةُ الْعَامِلِ الْاَوَّلِ نَحْوُ مَرَرْتُ بِكَ وَبِزَيْدٍ وَ الْمَالُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ زَيْدٍ فَالْمَعْطُوْفُ |
| وشي په دې باندې نو باقي پاتې نه شو مګر اعاده داول عامل لکه مررت بک وبزید او المال بیني وبین زید نو معطوف |
| هُوَ الْمَجْرُوْرُ وَ الْعَامِلُ مُكَرَّرٌ وَ جَرُّهٗ بِالْاَوَّلِ وَ الثَّانِيْ كَالْعَدَمِ مَعْنًى بِدَلِيْلِ |
| هغه مجرور دي او عامل مکرر دي او جر د معطوف د اول وجې نه دي او دويم په شان د عدم دي معنا په دليل ددې |
| قَوْلِهِمْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكَ إِذْ بَيْنَ لَا يُضَافُ إِلَّا إِلَى الْمُتَعَدِّدِ وَ قِيْلَ جَرُّهٗ بِالثَّانِيْ كَمَا |
| قول د عربو بيني و بينک څکه بين نه مضاف کيږي مګر متعدد ته او چاويلي دي چې جر ددې په دويم سره دي لکه |
| فِي الْحَرْفِ الزَّائِدِ فِيْ كَفٰى بِاللّٰهِ وَ هٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ أَعْنِيْ لُزُوْمَ إِعَادَةِ الْجَارِ فِيْ حَالِ السَّعَةِ |
| په حرف زائد کې په کفی بالله او دا چې کوم مونږ ذکر کړل يعني لزوم د اعادې د جار په حال د وسعت کې او غوره |
| وَ الْاِخْتِيَارِ مَذْهَبُ الْبَصْرِيِّيْنَ وَ يَجُوْزُ عِنْدَهُمْ تَرْكُهَا اِضْطِرَارًا وَ أَجَازَ الْكُوْفِيُّوْنَ تَرْكَ الْاِعَادَةِ فِيْ |
| مذهب د بصرينو دي او جائز دي د دوي په نزد پريخودل د جار مجبوراً او جائز کړي کوفيانو پريخودل د اعادې په |
| حَالِ السَّعَةِ مُسْتَدِلِّيْنَ بِالْاَشْعَارِ. |
| حال د وسعت کې او دوي استدلال کوي په شعرونو سره. |

**خلاصه دمتن** : صاحب د کافیه یوه بله قاعده بیانوي، چې کله په ضمیر مجرور باندې د یو لفظ عطف وشي. نو په معطوف مجرور باندې د حرف جر اعاده ضروري ده. لکه مررت بك و بزید په دې کې د زید عطف په کاف د ضمیر باندې دي. ددې وجې نه معطوف یعني په زید باندې حرف جار ب اعاده شوې ده.

**اغراض دجامي** : حرفاً کان او اسماً: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: په ضمیر مجرد متصل باندې په عطف کولو باندې لکه څنګه چې په معطوف باندې خافض او جار اعاده ضروري ده همدارنګې د مضاف اعاده هم ضروري ده. مثال لکه المال بيني و بين زيد . نو مصنف رحمه الله صرف خافض ولې ذکر کړې دي او دا نور يې ولې پريخودي دي؟

**جواب**: په خافض کې تعمیم دي برابره خبره ده که حرف وي او که اسم . لهذا دا مضاف ته هم شامل دي . همدارنګې غرض او مقصد د شارح جامي په علامه رضي باندې رد کول دي هغه

وايي که چيرته عامل اسم وي نو اعاده ضروري نه ده

لان اتصال الضمير: په دې عبارت سره شارح د ذکر شوي قاعدې وجه بيانوي چې کله په ضمير مجرور باندې د اسم عطف کول مقصود وي، نو په معطوف باندې د جار داعادې وجه داده چې د ضمير مجرور اتصال د خپل جار سره د دې فاعل د اتصال نه زيات قوي دي، کوم چې د فعل سره دي خکه چې فاعل که ضمير نه وي، نو د ده د فعل نه انفصال جائز دي، او ضمير مجرور د خپل جار نه کله هم نه جدا کيږي، لهذا په ضمير مجرور باندې عطف کول مکروه دي، خکه چې دا کلمه په بعضې حروفو باندې د عطف په شان وي، خکه په معطوف باندې د جار اعاده ضروري ده.

وليس: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: داولې جائز نه ده چې دضمير منفصل سره د ضمير مجرور تاکيد راوړل شي بيا په ضمير مجرور باندې يو اسم عطف کړې شي لکه په مرفوع متصل کې چې کولې شي؟

**جواب**: دضمير مجرور دپاره کوم ضمير منفصل د سره نه شته چې مخکې دضمير منفصل سره د دې تاکيد راوړل شي بيا په دې باندې ديو لفظ عطف وکړې شي.

وفي استعارة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: داسې ولې نه شي کيدې چې د ضمير مجرور متصل دتاکيد دپاره ضمير مرفوع منفصل عاريةً اوپه سوال واخستل شي چې اولاً دضمير مجرور متصل تاکيد وشي ضمير منفصل سره د دې نه پس د يو لفظ په ضمير مجرور باندې عطف وشي؟

**جواب**: دضمير مجرور دپاره ضمير مرفوع منفصل عارية اوپه سوال اخستل د مرفوع ذلت دي، خکه چې مرفوع عمده دي او مجرور فضله دي او د فضله په ځاې عمده ذکر کول د دې دپاره ذلت دي، لان استعمال العمدة في الفضله ذلة العمدة . خکه چې استعمال د عمده په فضله کې داد عمده دپاره ذلت دي.

ولا يكتفي: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: لکه څنګه چې په ضمير مرفوع متصل کې دفصل په صورت کې د طوالت دويرې نه د تاکيد بالمنفصل پريښودل جائز وو. همدارنګې په ضمير مجرور متصل کې هم دفاصلې په صورت کې په معطوف باندې دجار اعاده واجب نه ده په کار. بلکې په همدې فصل باندې اکتفاء کول په کار وو؟

**جواب**: په اصل کې فعل خو دضمير مرفوع منفصل قائم مقام او خلفيه وو په اصل کې خو د ضمير مرفوع منفصل سره تـ کيد ضروري وو. البته په فصل نه هم داختصار کار اخستلې شي او دلته په ضمير مجرور متصل کې چې کله اصل ضمير منفصل سره تاکيد ممکن نه دي ځکه چې ضمير مجرور منفصل معدوم دي نو ددې قائم مقام اوخليفه کوم چې فصل دي ددې به هم څه اثر ظاهر نه وي اوپه دې باندې اکتفاء کول به جائز نه وي لهذا يو صورت باقي پاتې کيږي هغه داچې اول عامل يعني دحرف جار اعاده همدې ته اختيارول به راشي

**مررت بك وزيد**: شارح په دې عبارت سره په معطوف باندې د جار د اعادې مثال بيانوي

**المال بيني و بين زيد**: شارح په دې عبارت سره په معطوف باندې د اسم مضاف د اعادې مثال بيانوي په دې دواړه مثالونو کې اسم معطوف مجرور دي او عامل مکرر دي

**وجره بالاول**: په دې عبارت سره شارح د نحويانو اختلاف بيانوي بعضې نحويان وايي چې د معطوف جر داول عامل د وجې نه دي او دويم عامل معناً کالعدم دي. ددې دليل دعربو داقول دي چې **بيني و بينك** ، ځکه چې بين مضاف دي متعدد طرف ته که چيرته د معطوف جر ددويم عامل د وجې نه وي او هغه معناً کالعدم نه وي. نو لازم به شي چې بين غير متعدد طرف ته مضاف دي او دا جائز نه دي

**وقيل جره**: او بعضې نحويان وايي چې د معطوف جر ددويم عامل د وجې نه دي. مثال لکه په **كفى بالله** کې با زائده ده ليکن ددې باوجود دلفظ د الله جر دباء دوجې نه دي

**وهذا**: په دې عبارت کې هم شارح بيان داختلاف کوي کله چې په ضمير مجرور باندې د يو اسم عطف کول مقصود وي، نو په معطوف باندې د جار د اعادې دلزوم په باره کې د نحويانو اختلاف دي.دلته دوه مذهبه دي: (۱) دبصري دنحويانو مذهب (۲) دکوفي دنحويانو مذهب

**(۱) دبصري دنحويانو مذهب**: ددوي مذهب دادې چې په کلام منثور يعني ګډوډ کلام کې په معطوف باندې د جار اعاده لازمه ده او په کلام منظوم يعني په منظم کلام کې اعاده لازم نه ده.

**(۲) دکوفي دبصريانو مذهب**: ددوي مذهب دادې چې په کلام منثور کې هم معطوف باندې د جار اعاده لازم نه ده. دوي داشعارو نه استدلال کوي او وايي. چې کله په اشعارو کې په معطوف باندې د جار اعاده لازمه نه ده. نو په نثر کلام کې هم لازم نه ده

## يو سوال او د هغې جواب:

فَإِنْ قِيْلَ كَيْفَ جَازَ تَاكِيْدُ الْمَرْفُوْعَ الْمُتَّصِلِ فِيْ نَحْوِ جَاءُوْنِيْ كُلُّهُمْ وَ الْإِبْدَالُ مِنْهُ نَحْوُ أَعْجَبْتَنِيْ

که چیرته چا وویل چې څنګه جائز دي تاکید د مرفوع متصل په جاءوني کلهم کې او ابدال ددې نه لکه اعجبتني

جَمَالُكَ مِنْ غَيْرِ شَرْطِ تَقَدُّمِ التَّاكِيْدِ بِالْمُنْفَصِلِ وَ جَازَ أَيْضاً تَاكِيْدِ الضَّمِيْرِ الْمَجْرُوْرِ فِيْ نَحْوُ مَرَرْتُ بِكَ

جمالک په غیر د شرط د تقدیم د تاکید په منفصل باندې او جائز دي همدارنګې تاکید د ضمیر مجرور په مررت بک

نَفْسِكَ وَالْإِبْدَالُ مِنْهُ نَحْوُ عَجِبْتُ بِكَ جَمَالِكَ مِنْ غَيْرِ إِعَادَةِ الْجَارِ وَلَمْ يَجُزِ الْعَطْفُ فِي الْأَوَّلِ إِلَّا بَعْدَ

نفسک او ابدال ددې نه لکه عجبت بک جمالک په غیر د اعادې د جار نه او نه دي جائز عطف په اول باندې مګر پس

التَّاكِيْدِ بِالْمُنْفَصِلِ وَ فِي الثَّانِيْ إِلَّا مَعَ إِعَادَةِ الْجَارِ قُلْنَا التَّاكِيْدُ عَيْنُ الْمُؤَكَّدِ وَ الْبَدَلُ فِيْ

د تاکید نه په منفصل سره او نه په دويم کې مګر سره د اعادې د جار نه مونږ وايو چې تاکید عین مؤکد دي .وبدل په

الْأَغْلَبِ إِمَّا كُلُّ الْمَتْبُوْعِ أَوْ بَعْضُهُ أَوْ مُتَعَلِّقُهُ وَ الْغَلَطُ قَلِيْلٌ نَادِرٌ فَهُمَا لَيْسَا

اغلب کې یا کل دي د متبوع او یا بعض دي ددې نه او یا متعلق دي ددې او بدل غلط کم او نادر دي نو دا دواړه نه

بِأَجْنَبِيَيْنِ لِمَتْبُوْعِهِمَا وَ لَا مُنْفَصِلَيْنِ عَنْهُ لِعَدَمِ تَخَلُّلِ فَاصِلٍ بَيْنَهُمَا وَ

دي اجنبي د خپل متبوع د پاره او نه جدا د خپل متبوع نه دوجې د عدم فاصلې نه په مینځ ددې دواړو کې او په

بَيْنَ مَتْبُوْعِهِمَا فَلَا حَاجَةَ فِيْ رَبْطِهِمَا إِلَى مَتْبُوْعِهِمَا إِلَى تَحْصِيْلِ مُنَاسَبَةٍ زَائِدَةٍ

مینځ د متبوع ددې دواړو کې نو نشته دي حاجت په ربط ددې دواړو کې متبوع ته په تحصیل د مناسبت زائده په

بِخِلَافِ الْعَطْفِ فَإِنَّ الْمَعْطُوْفَ يُغَايِرُ الْمَعْطُوْفَ عَلَيْهِ وَ يَتَخَلَّلُ بَيْنَهُمَا الْعَاطِفُ فَلَا بُدَّ

خلاف د عطف څکه د معطوف مغاير معطوف علیه دي او واقع دي په مینځ ددې دواړو کې عاطف نو نشته دي

فِيْهِ مِنْ تَحْصِيْلِ مُنَاسَبَةٍ بَيْنَهُمَا بِتَاكِيْدِ الْمُتَّصِلِ بِالْمُنْفَصِلِ فِيْ

خلاصي په دې کې د تحصیل د مناسبت نه په مینځ ددې دواړو کې په تاکید د متصل سره په منفصل باندې په

الْمَرْفُوْعِ وَ بِإِعَادَةِ الْجَارِ فِي الْمَجْرُوْرِ لِيَخْرُجَ الْمُتَّصِلُ الْمَرْفُوْعُ عَنْ صَرَافَةِ الْإِتِّصَالِ وَ

مرفوع کې او په اعادې د جار سره په مجرور کې ددې د پاره چې خارج شي متصل مرفوع صرف د اتصال نه او

يُنَاسِبُ الْمَعْطُوْفَ عَلَيْهِ بِتَاكِيْدِهِ بِالْمُنْفَصِلِ وَ قَوِيَ مُنَاسَبَةُ الْمَجْرُوْرِ بِانْضِمَامِ الْجَارِ

مناسب شي معطوف علیه په تاکید ددې سره په منفصل سره .وقوي شي په مناسبت د مجرور سره په یو ځای

إِلَيْهِ كَمَا فِي الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ.

کولو د جار ددې سره لکه څنګه چې په معطوف علیه کې دي

**خلاصه د متن:** په دې عبارت کې یو اعتراض مقدر نقل کوي او د هغې جواب ورکوي

**اغراض دجامي** : فان قيل سره دې عبارت سره شارح يو اعتراض رانقل کوي اوپه قلنا سره ددې اعتراض جواب ورکوي

**اعتراض** : څه وجه ده چې کله په ضمير مرفوع متصل باندې يو اسم عطف شي، نو اول ددې تاکيد په ضمير منفصل سره ضروري دي، ليکن که دضمير مرفوع متصل په يو اسم سره تاکيد وشي نو هلته اول په ضمير منفصل سره تاکيد ضروري نه دي، حالانکه هلته هم تاکيد بالمنفصل ضروري دي، لکه په جاءوني کلهم کې واؤ ضمير مرفوع متصل بارز مؤکد دي او کلهم ددې تاکيد دي، نو د کلهم دتاکيد نه مخکې هم په ضمير منفصل سره تاکيد کيدې شي داسې کيدل په کار وو چې جاءوني هم کلهم، همدارنګې که چيرته دضمير مرفوع متصل نه ديو اسم نه بدل جوړ شي، نو دبدل نه مخکې ضمير منفصل سره تاکيد په کار دي، لکه اعجبتني جمالك په دې مثال کې جمالك د اعجبتني دتاء ضمير مرفوع متصل مخاطب نه بدل دي، نو اولنې دضمير منفصل سره تاکيد وشو، بيا بدل راوړې شوې وي او داسې ويلې شوې وي چې اعجبتني انت جمالك، حالانکه داسې ونه شوه.

همدارنګې چې کله په ضمير مجرور متصل باندې عطف وشي، نو په معطوف باندې د جار اعاده ضروري ده ليکن که ضمير مجرور متصل په يو اسم سره تاکيد وشي، نو په تاکيد باندې دحرف جار اعاده ضروري نه ده، حالانکه په کار وه لکه مررت بك نفسك نفسك تاکيد دي، په دې باندې دحرف جار اعاده نه ده حالانکه بنفسك په کار وو.

همدارنګې که دضمير مجرور متصل نه بدل جوړ کړې شي نو په بدل باندې دحرف جار اعاده کيدل په کار ده ، حالانکه داسې نه کيږي مثال لکه عجبت بك جمالك جمالك دکاف ضمير نه بدل دي په دې باندې دحرف جار اعاده کيدل په کار وه بجمالك په کار وو دعطف په صورت کې تاکيد بالمنفصل ضروري کيدل اود تاکيد او دبدل په صورت کې تاکيد بالمنفصل نه ضروري کيدل ترجيح بلا مرجح ده، ځکه چې لکه څنګه چې عطف د توابعو نه دي همدارنګې تاکيد اوبدل هم دقبيلې دتوابعو نه دي نو آخر په فرق کې څه وجه ده ؟

**جواب** : په دې کې د فرق وجه داده چې تاکيد د مؤکد عين وي او بدل عام طور سره د متبوع کُل اويا ددې بعض يا ددې متعلق وي، او بدل الغلط د خپل متبوع نه مغائر کيدل مضر نه دي ځکه چې دا د ناشنا کيدو د وجې نه ـ اعتبار د درجې نه ساقط دي والنادر ساقط عين مرتبة

الاعتبار اذ لا حکم للنادر، او نادر دا ساقط دي د عين مرتبې دا اعتبار نه ځکه چې نه دي حکم د نادر دپاره لهذا تاکيد او بدل دخپل متبوع دپاره اجنبي نه وي او نه ددې نه جدا وي . ځکه چې ددې او ددې د متبوع په مينځ کې فاصله نه وي لهذا داد متبوع سره دربط ورکولو دپاره د څه زياتي مناسبت ضرورت نشته، په خلاف د عطف چې معطوف ، دمعطوف عليه نه مغائر وي، او ددې په مينځ کې په عاطف سره فاصله وي.

لهذا معطوف ته دمعطوف عليه سره د ربط ورکولو دپاره دزيات مناسبت حاصلولو ضرورت دي او هغه دادې چې ضمير مرفوع منفصل سره د ضمير متصل تاکيد راوړې شي ددې دپاره چې ضمير مرفوع متصل د اتصال محض نه ووځي او ضمير منفصل سره مؤکد شي او دمعطوف سره مناسب شي او همدارنګې په ضمير مجرور کې د جار اعاده کولې شي ددې دپاره چې د جار اعادې سره د مجرور مناسبت قوي دي په مجرور اول يعني په معطوف عليه سره.

## معطوف د معطوف عليه په حکم کې کيدل :

| |
|---|
| وَ الْمَعْطُوْفُ فِيْ حُكْمِ الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ فِيْمَا يَجُوْزُ لَهُ وَ يَمْتَنِعُ |
| اومعطوف په حکم دمعطوف عليه کې وي په هغه امورو کې چې جائزوي دمعطوف عليه د پاره اومنع دي په |
| مِنَ الْاَحْوَالِ الْعَارِضَةِ لَهُ نَظْرًا اِلٰى مَا قَبْلَهُ بِشَرْطِ اَنْ لَّا يَكُوْنُ مَا |
| هغه احوالو کې چې عارض وي معطوف عليه ته په نظر کولو سره ماقبل ددې ته په دې شرط چې نه وي هغه چې |
| يَقْتَضِيْهَا مُنْتَفِيًا فِي الْمَعْطُوْفِ وَ اِنَّمَا قُلْنَا مِنَ الْاَحْوَالِ الْعَارِضَةِ لَهُ نَظْرًا اِلٰى مَاقَبْلَهُ اِحْتِرَازًا |
| تقاضاکوي منتفي اومونږوويل چې هغه احوال چې عارض وي دې ته په نظر کولو سره ماقبل ددې ته نو دا احتراز |
| عَنِ الْاَحْوَالِ الْعَارِضَةِ لَهُ مِنْ حَيْثُ نَفْسِهٖ كَالْاِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ وَالتَّعْرِيْفِ وَالتَّنْكِيْرِ وَالْاِفْرَادِ وَالتَّثْنِيَةِ وَالْجَمْعِ فَاِنَّ |
| دي داحوال عارضه نه په اعتبار دذات سره لکه اعراب اوبناء اوتعريف او تنکير اوافراد اوتثنيه اوجمع ځکه |
| الْمَعْطُوْفَ فِيْهَا لَيْسَ فِيْ حُكْمِ الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ وَ اِنَّمَا قُلْنَا بِشَرْطِ اَنْ لَّا يَكُوْنَ مَا |
| معطوف په دې کې نه دي په حکم دمعطوف عليه کې اومونږوويل چې په دې شرط چې نه وي هغه څه چې |
| يَقْتَضِيْهَا مُنْتَفِيًا فِي الْمَعْطُوْفِ اِحْتِرَازًا عَنْ مِثْلِ قَوْلِنَا يَا زَيْدُ وَ الْحَارِثُ فَاِنَّ الْحَارِثَ |
| تقاضايې کوي منتفي په معطوف کې دا احتراز دي په مثل دقول زمونږ کې چې يازيد والحارث ځکه الحارث |
| مَعْطُوْفٌ عَلَى الرَّجُلِ وَ لَيْسَ فِيْ حُكْمِهٖ مِنْ حَيْثُ تَجَرُّدِهٖ عَنِ اللَّامِ فَاِنَّ مَا يَقْتَضِيْ تَجَرُّدَهٗ |
| عطف دي په الرجل اونه دي په حکم ددې کې دحيثيت دخالي والي د لام نه ځکه هغه څه چې تقاضاکوي دخالي |

عَنِ اللَّامِ هُوَ اِجْتِمَاعُ اللَّامِ وَ حَرْفِ النِّدَاءِ وَ هُوَ مَفْقُوْدٌ فِي الْمَعْطُوْفِ وَ أَمَّا نَحْوُ رُبَّ شَاةٍ وَ سَخْلَتِهَا

والي دلام نه هغه اجتماع دلام اوحرف نداء ده او دا مفقود دي په معطوف کې او هرچې رب شاة وسخلتها دي نو دا په

فَبِتَقْدِيْرِ التَّنْكِيْرِ لِقَصْدِ عَدَمِ التَّعْيِيْنِ أَيْ رُبَّ شَاةٍ وَسَخْلَةٍ لَهَا أَوْ مَحْمُوْلٌ عَلَى نَكَارَةِ الضَّمِيْرِ

تقدير د تنکير سره د قصد د عدم تعيين دوجې نه يعني رب شاة وسخلة لها او يا محمول وي په نکارت د ضمير باندې

كَرُبَّهُ رَجُلًا عَلَى الشُّذُوْذِ أَيْ رُبَّ شَاةٍ وَ سَخْلَةِ شَاةٍ وَ كَذَا الْمَعْطُوْفُ فِي حُكْمِ الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ فِي أَحْوَالٍ

لکه ربه رجلا بنابر شذوذ يعني رب شاة وسخلة شاة او همدا رنګې معطوف په حکم د معطوف عليه کې په احوال

عَارِضَةٍ لَهُ بِالنَّظَرِ إِلَى نَفْسِهِ وَ غَيْرِهِ اِنْ كَانَ الْمَعْطُوْفُ مِثْلَ الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ فَلِذَا

عارضه کې د دې دپاره په نظر کولو سره ذات او غير ذات ته که چيرته وي معطوف په شان د معطوف عليه نو د دې

وَجَبَ بِنَاءُ الْمَعْطُوْفِ فِي نَحْوِ يَازَيْدُ وَ عَمْرُو لِاَنَّ ضَمَّ زَيْدٍ بِالنَّظَرِ إِلَى حَرْفِ النِّدَاءِ وَ إِلَى

وجې نه واجب دي بناء د معطوف په يازيد وعمرو مثال کې خکه ضمه د زيد په نظر کولو سره حرف نداء ته او په

كَوْنِهِ مُفْرَدًا مَعْرِفَةً فِي نَفْسِهِ وَ عَمْرٌو مِثْلُ زَيْدٍ فِي كَوْنِهِ مُفْرَدًا مَعْرِفَةً وَامْتَنَعَ

کيدو د دې کې مفرد معرفه په خپل ذات کې او عمرو په شان د زيد دي په کيدو د دې کې مفرد معرفه او ممتنع دي

بِنَاؤُهُ فِي يَا زَيْدُ و عَبْدَاللهِ فَإِنَّ عَبْدَاللهِ لَيْسَ مِثْلَ زَيْدٍ فَإِنَّ زَيْداً مُفْرَدٌ مَعْرِفَةٌ وَعَبْدَاللهِ مُضَافٌ

بناء د دې په يازيد وعبدالله کې خکه عبدالله نه دي په شان د زيد خکه زيداً مفرد او معرفه دی او عبدالله مضاف دي

**خلاصه دمتن**: صاحب د کافيې د عبارت حاصل دا دې چې د معطوف عليه هغه احوال چې هغه ده ته د ما قبل په اعتبار سره عارض وي. په دې احوالو کې معطوف د معطوف عليه په حکم کې وي، يعني هغه امور چې د معطوف عليه دپاره جائز وي. نو هغه به د معطوف دپاره هم جائز دي او کوم امور چې د معطوف عليه دپاره متمنع وي. نو هغه به د معطوف دپاره هم ممتنع وي، په دې شرط سره چې په معطوف کې هغه څيز منتفي نه وي کوم چې په معطوف عليه کې د هغه احوالو تقاضا کوله.

**اغراض دجامي**: فيما يجوز له ويمتنع: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: ستاسو قاعده منقوضه او ماته ده په جاءني موسی وزيد سره خکه چې په دې کې معطوف د معطوف عليه په حکم کې نه دي په معطوف عليه کې اعراب تقديري او په معطوف کې لفظي دي لکه په جاءني هذا وزيد کې د معطوف عليه حکم مبني او د معطوف حکم معرب دي؟

**جواب** : معطوف د معطوف عليه په حکم کې د کيدو مطلب دادې چې کوم امور په معطوف عليه کې جائز وي هغه به په معطوف کې هم جائز وي او کوم امور چې په معطوف عليه کې ممتنع وي نو هغه به په معطوف کې هم ممتنع وي مثلاً لکه په جاءني زيدو عمرو کې په نظر کولو سره ما قبل جاءني ته رفع جائز او نصب ممتنع دي. نو په عمرو معطوف کې به هم رفع جائز او نصب ممتنع وي

من الاحوال العارضة له : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : ذکر شوي قاعده منقوضه اوماته ده په جاءني انسان و بقر سره دلته معطوف د معطوف عليه په حکم کې نه دي. په فيما يجوز له و يمتنع کې ځکه چې نطق دانسان دپاره جائز دي ليکن د بقر او غوا دپاره ممتنع دي نو معطوف دمعطوف عليه په حکم کې نه شو؟

**جواب** : د مايجوز له و يمتنع له نه مراد هغه احوال دي چې کوم معطوف عليه ته عارض دي په نظر کولو سره ما قبل ته او نطق دا معطوف عليه د انسان په عوارضو کې نه دي. بلکې د انسان په ذاتياتو کې دي. لهذا په دې کې به معطوف دمعطوف عليه په حکم کې نه وي.

وانما قلنا : په دې عبارت کې شارح د من الاحوال دقيد فائده بيانوي. چې مونږ دا قيد د يو سوال مقدر جواب دي

**سوال** : ستاسو قاعده ماته شوه په اعراب بناء تعريف و تنکير سره. ځکه چې دا د معطوف عليه د احوالو د عوارضو نه دي ليکن په دې عوارضو کې معطوف دمعطوف عليه په حکم کې نه وي. لکه په جاءني هذا و عمرو کې هذا مبني او عمرو معرب دي؟

**جواب** : مونږ د من الاحوال العارضة له نظر الى ماقبله قيد ونړولو او په دې سره مو ددې سوال جواب ورکړو. چې دا قيد احترازي دي په دې سره د هغه احوالو نه احتراز دي چې کوم معطوف عليه ته دخپل ذات د وجې نه عارض وي. لکه اعراب. بناء. تعريف او تنکير وغيره. ځکه چې په دې احوالو کې معطوف دمعطوف عليه په حکم کې نه وي

وانما قلنا بشرط : په دې عبارت سره شارح د بشرط ان لا يکون دقيد فائده بيانوي. چې دا قيد هم د يو سوال مقدر جواب دي

**سوال** : ستاسو قاعده ماته شوه په يا رجل اوپه والحارث کې په الحارث سره ځکه چې دمعطوف

علیه حکم تجرد عن اللام دي په نظر کولو سره ماقبل ته ددې وجې نه چې الحارث معرف باللام دي؟

**جواب**: مونږ دا قید ځکه ولږولو چې د هغه الحارث نه احتراز وشي کوم چې په یا رجل والحارث کې واقع دي، ځکه چې الحارث په رجل باندې معطوف دي او د لام نه دخالي کیدو د وجې نه ددې په حکم کې نه دي، ځکه چې د لام نه خالي کیدو چې کومه تقاضا په رجل کې ده هغه په الحارث کې منتفي او منفقود ده او هغه مقتضی الف لام د یاء سره جمع کیدل دي.

واما نحو: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: ستاسو قاعده په رب شاة و سخلتها (سخلة د سین په فتحې اودخاء معجمې په سکون سره، دګډې هغه بچي چې دڅلورو (۴) میاشتو وي) سره ماته شو ځکه چې په دې کې معطوف علیه یعنې شاة حال ددې نکره کیدل دي او په مقتضی دحال یعنې په رُب سره ددې مجرور کیدل دي، ځکه چې د رُب مدخول نکره کیدل دي او دمقتضی دحال په رب سره ددې مجرور کیدل دي، ځکه چې د رب مدخول نکره وي او دا مقتضی په معطوف سخلتها کې موجود دي، لیکن ددې باوجود د سخلتها نکره نه ده، بلکې ضمیر طرف ته دمضاف کیدو د وجې نه معرفه ده.

**جواب**: شارح د جامي ددې سوال دوه (۲) جوابه ورکړي دي:

**جواب (۱)**: فبتقدیر: په دې سره شارح اول جواب ذکر کوي. سخلتها په اضافت عهد ذهني باندې محمول دي او اضافت عهد ذهني دتعریف فائده نه ورکوي، یعنې اګر چې ضمیر معرفه وي او کوم څیز چې دې طرف ته مضاف دي هغه معرفه شي، لیکن دلته سخلة دمعینې قصد نه دي شوې ځکه چې اضافت عهد ذهني دتعریف فائده نه ورکوي لهذا لکه څنګه چې معطوف علیه یعنې شاة نکره ده همدارنګې معطوف یعنې سخلتها هم نکره ده. معنی یې داده چې رب شاة و سخلتها لها.

**جواب (۲)**: او محمول: په دې عبارت سره شارح دویم جواب ذکر کوي سخلتها دا په ربه رجلاً په شان نکاره په ضمیر باندې محمول دي چې ددې مقصد دادې چې د سخلتها ضمیر شاة مذکوره طرف ته راجع نه دي، بلکې مطلق شاة طرف ته راجع دي، نو لکه څنګه چې معطوف

عليه نکره ده همدارنګې معطوف هم نکره ده . نوتقدير د عبارت داسې شو چې : رب شاة و سخلة شاة، ليکن دا حمل په شذوذ دي ځکه چې عام طور سره ضمير بعينه سابق طرف ته راجع کيږي .

**وکذا المعطوف** : په دې عبارت کې شارح يو ضابطه اوقاعده بيانوي چې د معطوف عليه هغه احوال چې هغه ده دته خپل ذات په لحاظ سره عارض دي او هغه احوال چې هغه ته د غير يعنې دما قبل په لحاظ سره عارض وي، نو په دې احوالو کې هم معطوف دمعطوف عليه په حکم کې وي، په دې شرط چې په افراد اوتعريف کې معطوف دمعطوف معطوف عليه په شان وي لکه يازيدو عمرو . په دې کې زيد مبنى برضمه دي او ددې ضمه دحرف نداء په اعتبار سره ده کوم چې ددې ما قبل دي او په خپله د مفرد معرفه کيدو د وجې نه هم او عمرو مفرد معرفه کيدو کې د زيد په شان دي لهذا دا هم مبنى برضمه دي او يازيدو عبدالله کې عبدالله مبنى بر ضمه ويل ممتنع دي، ځکه چې عبدالله اګر چه معرفه ده ليکن په مفرد کې د زيد په شان نه دي ځکه چې زيد هم مفرد دي او هم معرفه او عبدالله مضاف دي .

## په ذکر شوې قاعده باندې تفريع :

وَ مِنْ ثَمَّ أَيْ وَ مِنْ اَجَلِ اَنَّ الْمَعْطُوْفَ فِيْ حُكْمِ الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ فِيْمَا يَجُوْزُ وَ يَمْتَنِعُ لَمْ
او ددې وجې نه يعنې ددې وجې نه چې معطوف په حکم دمعطوف عليه کې په هغه صورت کې چې جائزاو
يَجُزْ فِيْ تَرْكِيْبِ مَا زَيْدٌ بِقَائِمٍ اَوْ قَائِماً وَلَا ذَاهِبٌ عَمْرٌو اِلَّا الرَّفْعُ فِيْ ذَاهِبٍ اِذْ لَوْ نُصِبَ اَوْ
ممتنع وي نونه دي جائزپه مازيدبقائم او قائماولا ذاهب عمروترکيب مګر رفع په ذاهب کې ځکه که چيرته منصوب
خُفِضَ لَكَانَ مَعْطُوْفاً عَلٰى قَائِمٍ اَوْ قَائِماً فَيَكُوْنُ خَبَراً عَنْ زَيْدٍ وَ هُوَ مُمْتَنِعٌ لِخُلُوِّهِ عَنِ
کړې شي اويامجرورنووي به معطوف په قائم اوقائماًباندې نووي به خبرد زيدنه اوهغه ممتنع دخالي والي د
الضَّمِيْرِ الْوَاقِعِ فِي الْمَعْطُوْفِ عَلَيْهِ الْعَائِدِ اِلٰى اِسْمِ مَا فَتَعَيَّنَ الرَّفْعُ عَلٰى اَنْ يَكُوْنَ خَبَراً
ضميرنه چې واقع وي په معطوف عليه کې چې راجع وي اسم دما طرف ته نومتعين شوه رفع په دې بناء چې وي
مُقَدَّمًا عَلَى الْمُبْتَدَاِ وَ هُوَ عَمْرٌو وَ يَكُوْنُ مِنْ قَبِيْلِ عَطْفِ الْجُمْلَةِ عَلَى الْجُمْلَةِ وَلَا مَانِعَ
به خبرمقدم په مبتداء باندې اوهغه عمرودي اووي به دقبيلې د عطف دجملې په جملې باندې اونشته څه مانع
مِنْهُ.
نه دي نه

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې په ذکر شوې قاعدې باندې تفریع ذکر کوي

**اغراض دجامي** : په دې عبارت کې شارح په ما قبل باندې د تفریع بیان کوي ځکه چې معطوف د معطوف علیه په حکم کې دي. ځکه چې **مازید بقائم ولا ذاهب عمرو** او **مازید قائما ولا ذاهب عمرو** کې په ذاهب باندې رفع متعین ده په دې باندې نصب او جر جائز نه دي ځکه چې که چیرته دا منصوب ووېلې شي، نو ددې عطف به په **قائماً** باندې وي. او که چیرته مجرور ووېلې شي نو ددې عطف به په **قائماً** باندې وي او دا په واسطه دعطف سره به د **زید** خبر جوړ شي حالانکه دا ممتنع دي ځکه چې معطوف علیه په **قائم** یا **قائماً** کې خو ضمیر دي چې کوم د ما اسم زید طرف ته راجع دي او معطوف د ذاهب دضمیر نه خالي دي ځکه چې ددې عطف په **قائماً** باندې ممکن نه دي. لهذا په **ذاهب** باندې د خبر مقدم په بناء سره رفع متعین ده. **ذاهب خبر مقدم** او عمرو مبتداء مؤخر ده او دا عطف دجملې په جملې باندې دي او ددې نه هیڅ څیز مانع نشته

## د یو سوال مقدر جواب :

وَ لَمَّا كَانَ لِقَائِلٍ اَنْ يَّقُوْلَ هٰذِهِ الْقَاعِدَةُ مُنْتَقِضَةٌ بِقَوْلِهِمْ اَلَّذِيْ يَطِيْرُ فَيَغْضَبُ زَيْدُنِ

او کله چې جائز وي د قائل دپاره چې ووايي دا قاعده ماته ده په دې قول د عربو چې الوزي نو غصه کوي زید دغه

الذُّبَابُ فَاِنَّ يَطِيْرُ فِيْهِ ضَمِيْرٌ يَعُوْدُ اِلَى الْمَوْصُوْلِ وَيَغْضَبُ الْمَعْطُوْفُ عَلَيْهِ لَيْسَ

مچې ده ځکه یطیر په دې کې ضمیر دي چې راجع دي موصول ته او یغضب معطوف علیه دي په یطیر باندې نه دي

فِيْهِ ذٰلِكَ الضَّمِيْرُ فَاَجَابَ عَنْهُ بِقَوْلِهِ وَ اِنَّمَا جَازَ الَّذِيْ يَطِيْرُ فَيَغْضَبُ زَيْدُنِ الذُّبَابُ لِاَنَّهَا اَيْ

په دې کې ضمیر نو جواب ورکړو مصنف ددې نه په دې قول سره چې جائز دي الذي یطیر فیغضب زیدن الذباب ځکه

الْفَاءُ فِيْ هٰذَا التَّرْكِيْبِ فَاءُ السَّبَبِيَّةِ اَيْ فَاءٌ لَهَا نِسْبَةٌ اِلَى السَّبَبِيَّةِ بِاَنْ يَّكُوْنَ مَعْنَاهَا السَّبَبِيَّةَ لَا

چې فاء په دې ترکیب کې فاء سببیه ده یعني دفاء دپاره یو نسبت دي سببیت ته چې وي معنی د دې سببیت نه

الْعَطْفَ فَلَا يَرِدُ نَقْضاً عَلٰى تِلْكَ الْقَاعِدَةِ اَوْ يَكُوْنَ مَعْنَاهَا السَّبَبِيَّةَ مَعَ الْعَطْفِ لٰكِنَّهَا تَجْعَلُ

عطف نو نه وارد یږي اعتراض په دې قاعده باندې او یا وي معنی ددې سببیت سره دعطف لکن دا ګرځوي دوه

الْجُمْلَتَيْنِ كَجُمْلَةٍ وَاحِدَةٍ فَيُكْتَفٰى بِالرَّبْطِ فِي الْاَوَّلِ وَ الْمَعْنَى الَّذِيْ اِذَا يَطِيْرُ فَيَغْضَبُ

جملې په شان دیوې جملې نو اکتفا به یې وکړه به ربط سره په اول کې او معنی به یې داوي چې الذي اذا یطیر فیغضب

زَيْدُ الذُّبَابُ اَوْ يُفْهَمُ مِنْهَا سَبَبِيَّةُ الْاُوْلٰى لِلثَّانِيَةِ فَالْمَعْنَى الَّذِيْ يَطِيْرُ فَيَغْضَبُ زَيْدٌ بِسَبَبِهِ

زید الذباب او یا فهمیږي ددې نه سببیت داول د دویم دپاره نو معنی به یې وي الذي یطیر فیغضب زید بسببه

الذُّبَابُ وَ يُمْكِنُ اَنْ يُقَدَّرَ فِيْهِ ضَمِيْرٌ أَيِ الَّذِيْ يَطِيْرُ فَيَغْضَبُ زَيْدٌ بِطَيْرَانِهِ الذُّبَابُ.

الذباب او ممکن دي چې مقدر کړی په دې کې ضمیر یعني الذي یطیر فیغضب زید بطیرانه الذباب

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب کافیه د یو سوال مقدر جواب ورکوي. چې د هغې تفصیل په شرح کې ذکر دي

**اغراض دجامي** : __ولماكان:__ په دې عبارت سره غرض د شارح د سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : ستا ذکر شوي قاعده چې معطوف د معطوف علیه په حکم کې دي په **فیما یجوز له و یمتنع** سره ماته شوه. د عربو په دې قول سره چې **الذي یطیر فیغضب زید الذباب**، ځکه چې په **یطیر** کې ضمیر دي چې هغه موصول طرف ته راجع کیږي او **یغضب** په **یطیر** باندې معطوف دي لیکن دا د ضمیر نه خالي نه دي ځکه چې د دې فاعل اسم ظاهر **زید** دي.

**جواب** : نو شارح د دې سوال څلور (۴) جوابات ورکړي دي

اولني جواب صاحب د کافیې ورکوي اونور باقي دري (۳) جوابونه شارح ورکوي.

**جواب (۱)** : __وانما جاز:__ په دې عبارت سره صاحب د کافیې جواب ورکړې دي چې په **فیغضب** باندې فاء عاطفه نه ده بلکې دا صرف د سببیت د پاره ده نو لهذا سوال وارد نه شو ځکه چې زمونږ بحث په عطف کې دي په سبب کې نه دي

**جواب (۲)** : __اویکون:__ په دې عبارت سره د دویم سوال جواب ورکوي چې **فاء** د سببیت او عطف دواړو د پاره ده.

__لکنها:__ په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : سوال دا دې چې کله **فاء** د سببیت او د عطف دواړو د پاره شي نو معنی د عطف د وجې نه په معطوف کې د ضمیر کیدل ضروري دي حالانکه دلته ضمیر نشته؟

**جواب** : په سبب او مسبب کې اتصال وي لهذا دا دواړه جملې په منزله د یوې جملې دي ځکه چې په اوله جمله کې چې کوم عائد دي همدا د رابطې د پاره کافي دي په معطوف کې دویم رابط ته ضرورت نشته دي. نو د دواړو جوابونو مطابق معنی دا شوه هغه څیز چې کله الوځي نو هغه د زید د غصه کیدو سبب جوړیږي چې هغه مچ دي

**جواب (۳)** : __اویفهم:__ په دې عبارت سره د دریم سوال جواب ورکوي چې **فاء** په حقیقت کې د

سببیت دپاره خو نه ده بلکه دعطف دپاره ده لیکن ددې فاء نه دا خبره معلومیږي چې اوله جمله د دوهمې جملې د پاره سبب دي، په دې معنی د سببیت باندې اکتفاء وشوه او د رابطې ضرورت پاتې شو هغه څیز چې کوم الوځي پس غصه شي ددې وجې نه زید چې هغه مچ دي

**جواب (۴)**: ویمکن: په دې عبارت سره دځلورم سوال جواب ورکوي چې فاء یواځې د عطف دپاره ده او په معطوف کې ضمیر مقدر دي کوم چې موصول طرف ته راجع دي په اصل کې تقد - دعبارت داسې وو چې الذي یطیر فیغضب زید بطیرانه الذباب، نو دمعطوف علیه په شان په معطوف کې هم عائد موجود دي.

قوله لانها ای الفاء: په دې عبارت سره شارح دجامي په لانها کې د هاء دضمیر مرجع بیانوي چې : هاء دضمیر مرجع الفاء ده

ای فاء لها نسبة الی السببیة: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې په السببیة کې یاء د نسبت دپاره ده او دفاء اضافت سببیت ته دادنی ملابست او مناسبت دوجې نه دي.

بان یکون معناها: په دې عبارت سره شارح دنسبت الی السببیة صورت بیانوي.

## په یو عاطف باندې دوه معمولین عطف کول :

وَ إِذَا عُطِفَ أَيْ إِذَا أُوْقِعَ الْعَطْفُ بِنَاءً عَلَى وُجُوْدِ عَامِلَيْنِ بِأَنْ عُطِفَ اِسْمَانِ عَلَى

اوچې کله عطف شي یعني چې کله واقع شي عطف بناء په وجود ددوه عاملو چې عطف کړې شي دوه اسمه په

مَعْمُوْلَيْهِمَا بِعَاطِفٍ وَاحِدٍ قَالَ بَعْضُ شَارِحِي اللُّبَابِ اَلْاَظْهَرُ عِنْدِيْ اَنَّ الْعَطْفَ هٰهُنَا

دوه معمولینو په یو عاطف سره ویلي دي بعضې شارحینو دلباب چې ظاهر زمونږ په نزد داده چې وي عطف دلته

مَحْمُوْلٌ عَلَى مَعْنَاهُ اللُّغَوِيِّ أَيْ اِمَالَةُ الْاِسْمَيْنِ .نَحْوُ الْعَامِلَيْنِ بِأَنْ يُجْعَلَا

محمول په لغوي معنی باندې یعني مائل کول ددوه اسمونو طرف دعاملینو ته چې وګرځوي عامل دواړه

مَعْمُوْلَيْهِمَا وَ اَكْثَرُ الشَّارِحِيْنَ عَلَى اَنَّ الْمَعْنٰى عَلَى مَعْمُوْلَيْ عَامِلَيْنِ وَ اِنَّمَا قَالَ

اسمونه خپل معمول او اکثر شارحین په دې مذهب دي چې معنی دواړه معمولینو عاملین دي او ویلي دي

عَلَى مَعْمُوْلَيْ عَامِلَيْنِ لَا عَلَى مَعْمُوْلَيْ عَامِلٍ وَاحِدٍ فَاِنَّهُ جَائِزٌ اِتِّفَاقًا نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا وَ عَمْرٌو

مصنف علی معمولي عاملین او علی معمولي عامل واحد نه دی ویلي حکه داجائز دي بالاتفاق لکه ضرب زید عمراً وعمرو

خَالِدًا وَلَا عَلَى اَكْثَرَ مِنْ اِثْنَيْنِ فَاِنَّهُ لَا خِلَافَ فِيْ اِمْتِنَاعِهِ مُخْتَلِفَيْنِ أَيْ غَيْرَ مُتَّحِدَيْنِ بِأَنْ

خالداً او نه زیات ددوو نه ځکه نشته اختلاف په امتناع ددې کې دواړه مختلف وي یعني غیر متحدوي په داسې

لَايَكُوْنَ الثَّانِيْ عَيْنَ الْاَوَّلِ وَ ذٰلِكَ لِدَفْعِ وَهْمِ مَنْ يَّتَوَهَّمُ اَنَّ مِثْلَ ضَرَبَ ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا وَ بَكْرًا وَ

شان چې نه وي دويم عين داول او دا دپاره د دفعې د هغه جاجې وهم کړي چې ضرب ضرب زيد عمرا وبكرا و

خَالِدًا مِنْ هٰذَا الْبَابِ مَعَ اَنَّهُ لَيْسَ مِنْهُ لِعَدَمِ تَعَدُّدِ الْعَامِلِ فِيْهِ اِذَا الْعَامِلُ هُوَ الْاَوَّلُ

خالدا ددې باب نه دي سره ددې چې نه دي ددې نه دوجې دعدم تعدد دعامل په دې کې خکه عامل هغه اول دي

وَ الثَّانِيْ تَاكِيْدٌ لَهُ وَ ذٰلِكَ الْعَطْفُ كَمَا وَقَعَ فِيْ قَوْلِهِمْ مَا كُلُّ سَوْدَاءَ تَمْرَةٌ وَ بَيْضَاءَ

او دويم تاكيد دي ددې دپاره او دا عطف لکه څنګه چې واقع شوي په قول دعربو کې چې ماكل سوداء تمرة وبيضاء

شَحْمَةً وَفِيْ قَوْلِ الشَّاعِرِ شِعْرًا اَكُلُّ اِمْرِئٍ تَحْسَبِيْنَ اِمْرَأً وَنَارٍ تَوَقَّدُ بِاللَّيْلِ نَارًا فَهٰذَا وَاِنْ كَانَ بِحَسْبِ الظَّاهِرِ جَائِزًا

شحمة او په قول د شاعر کې شعر اكل امرئ تحسبين امرأ ونار توقد بالليل نارا نو دا اګر که په اعتبار د ظاهر سره جائز

لٰكِنَّهُ لَمْ يَجُزْ عِنْدَ الْجَمْهُوْرِ بِحَسْبِ الْحَقِيْقَةِ لِاَنَّ الْحَرْفَ الْوَاحِدَ لَمْ يَقْوَ اَنْ يَّقُوْمَ مَقَامَ عَامِلَيْنِ

دي ليکن نه دي جائز په نزد د جمهورو په اعتبار د حقيقيت سره خکه يو حرف نه قائميږي په خاې د دوه عاملينو

مُخْتَلِفَيْنِ .

مختلفو

**خلاصه د متن** : په دې عبارت کې صاحب کافيه يو ضابطه او قاعده بيانوي. چې حاصل يې دا دې چې د جمهورو په نزد د يو حرف عطف په ذريعه دوه مختلف عاملين په دوو معمولينو باندې ددوه اسمونو عطف کول ناجائز دي. مګر دا چې کله معمول مجرور معمول مرفوع او معمول منصوب باندې مقدم وي. نو په دې صورت کې عطف جائز دي ، او د امام فراء رحمه الله په نزد باندې دا عطف مطلقاً جائز او د امام سيبويه رحمه الله په نزد باندې دا عطف مطلقاً ناجائز

**اغراض د جامي** : الا اذا وقع: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : په عُطف کې ضمير مصدر العطف طرف ته راجع دي. نو حاصل د عبارت دا شو چې و اذ عطف العطف . نو معنى به يې داوي چې کله عطف عطف شي نو دا معنى خو باطله او بې فائدې شوه ؟

**جواب** : دلته عُطف د اوقع العطف په معنى دي. يعني چې کله العطف واقع کړې شي نو اوس به يې معنى صحيح شي نو بيا په ټول عبارت سره د تقدير سره دغه جواب دي

**سوال** : چې کله اذا عطف على عاملين شرط او لم يجز جزاء وي نو په شرط او جزاء کې تضاد او تناقض دي ځکه چې د شرط معنی ده کله چې په دوه عاملينو مختلفينو باندې عطف وشي نو ددې نه حصول د عطف او ثبوت او جواز د عطف معلوميږي. او د لم يجز جزا نه عدم جواز ثابتيږي نو دا نه دي مګر تناقض ؟

**جواب** : په اوقع سره شارح ددې سوال جواب ورکړو. چې عُطف د وقوع او د حصول او د جواز په معنی کې نه دي بلکه د باب افعال نه د اوقع معنی ته متضمن دي نو معنی به يې داسې وي چې کله واقع کړې شي او د عطف وقوع دا د حدوث عطف په معنی کې دي نه د ثبوت او د حصول او جواز د عطف په معنی باندې . نو اعتراض دفع شو

بناء په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : عطف په عاملين باندې نه وي. بلکې په معمول باندې وي. نو على د عُطف صله جوړول ځکه صحيح دي ؟

**جواب** : شارح ددې سوال درې ۳ جوابه ورکړي دي

**جواب (۱)** : اول جواب دادې چې على د عُطف صله نه ده بلکې د بناءً محذوف صله ده او د عاملين نه مخکې مضاف (وجود) محذوف دي. بيا دا مفعول له دي د **اذا عطف** و نو حاصل د عبارت به داسې وي چې **واذا عطف على معمولين بناءً على وجود العاملين** . دې على ته بنائيه على وايي

<u>بان عُطف اسمان</u> : په دې عبارت کې شارح د هغه عطف د صورت بيان کوي چې دده اسمونو عطف وکړې شي. د دوه عاملينو په دوه معمولينو باندې په يو عطف سره

**جواب (۲)** : <u>وقال بعض شارح اللباب</u> : په دې عبارت سره شارح د دويم سوال جواب ورکوي چې د لباب په شارحينو کې يو شارح دا جواب ورکړې دي چې زما په نزد باندې ظاهره دا ده چې د لته د عطف اصطلاحي معنى مراد نه ده بلکې لغوي معنى مراد ده . چې د عطف لغوي معنى ده **امالة** يعنې مائل کول او کلمه د على نحو په معنی سره ده . نو معنی به يې دا شي چې کله مائله شي دوه اسمونه عاملينو طرف ته

<u>بان يجعل</u> : په دې عبارت کې شارح د دوو اسمونو عاملين طرف ته د مائل کولو صورت بيانوي

چې ددې صورت دا دې چې دوه اسمونه د دوه عاملینو معمول جوړ شي؟

**جواب (۳)**: **واکثر شارحین**: په دې عبارت سره شارح ددریم سوال جواب ورکوي چې دعاملین نه مخکې مضاف محذوف دې چې هغه معمولین دي . نوحاصل دعبارت به داسې شي چې **واذ عطف علی معمولی عاملین** . نو په دې صورت کې به هم اشکال ختم شي

**وانما قال**: په دې عبارت سره شارح دعلی عاملین دقید فائده بیانوي چې دعلی عاملین قید یې خکه ولږولو چې که چیرته عامل واحد وي. نو ددې دوه مختلف معمولینو باندې د دوو اسمونو عطف بالاتفاق جائز دي لکه **ضرب زید عمراً وعمرو خالداً** په دې کې په **زید** او **عمر** باندې د دوو اسمونو یعنې **عمرو** او **خالد** عطف شوې دي دا جائز دي همدارنګې **دعاملین** قید یې ولږولو نو په دې سره یې احتراز وکړو د دوو نه زیاتو عواملو نه. خکه چې هغه بالاتفاق اوبې داختلاف نه ممتنع دي

**ای غیر متحدین**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې د **مختلفین** نه **اختلاف في الوصف** مراد نه دی. بلکې **اختلاف في الذات** مراد دي خکه چې د اتحاد لفظ په ذواتو کې استعمالیږي

**بان لا یکون**: په دې عبارت کې دذات دنه متحد کیدو صورت بیانوي چې دویم داول عین او ذات نه وي .

**وذلك لدفع وهم**: په دې عبارت کې شارح د مختلفین دقید فائده بیانوي چې ددې قید لږولو مقصد اومراد د یو وهم لرې کول دي

**وهم**: وهم دادې چې شاید **ضرب ضرب زید عمروٌ وبکراً وخالداً**. ددې باب نه وي خکه چې په دې کې ددوه عاملینو د دوو معمولینو باندې د دوو اسمونو عطف شوې دي . دیو عطف په ذریعه باندې خو داناجائز کیدل په کار وو حالانکه داجائز دي نو مصنف رحمه الله د**مختلفین** قید ولږولو ددې وهم ازاله یې وکړه چې دا ددې باب نه . نه دي خکه چې په دې کې عامل متعدد نه دي بلکې عامل صرف اول دي او دوهم ددې تاکید دي. نو دوه عاملین په عمل کې مختلف نه دي

**وذلك العطف**: په دې عبارت سره شارح دیوحرف په واسطه ددوه مختلف عاملینو په دوه معمولینو باندې ددوه اسمونو دعطف کولو مثال بیانوي . دعربو وینا ده چې **ماکل سوداء تمرة وبیضاء شحمة** . په دې کې **ما** مشابه دې د لیس سره . **کل سوداء** مضاف مضاف الیه چې یو خای

شي. نو اسم **ما** او **ثمرة** خبر دي . په دې کې دوه (۲) مختلف عامل موندل کیږي (۱) **ما** (۲) **د کل** معمول سوداء مجرور دي او دما معمول تمرة منصوب دي. ددې نه پس د **بیضاء عطف** شوې دي په سوداء باندې چې ددې عامل **کل** دي او د **شحمة عطف** په تمرة باندې دي چې ددې عامل **ما** دي نو په دې کې د دوه عاملینو مختلفینو په دوو معمولینو مختلفین باندې د یوعاطف په ذریعې سره د دوو اسمونو عطف شوې دي او **معمول مجرور** مقدم دي. ځکه دا **عطف جائز** دي او په دویم مثال کې دشاعر داشعر پیش کوي:

**اکل امرئٍ تحسبین امرأً ونارٍ توقدُ باللیلِ ناراً**

په دې کې همزه داستفهام ده . **کل امرأ** مضاف مضاف الیه سره د **تحسبین مفعول به** مقدم دي او **تحسبین** فعل سره دفاعل او **امرأة** دویم مفعول به دي. په دې کې دوه (۲) **مختلف عامل** موندل کیږي (۱) **کل**، (۲) **تحسبین** . د **کل** معمول **امرأة** دي چې هغه مجرور دي او د**تحسبین** معمول **امرءً** دي چې منصوب دي بیا **نارٍ** عطف دي په امرأ مجرور باندې چې ددې **عامل کل** دي او**ناراً** عطف دي په **امرأة** منصوب باندې چې ددې عامل **تحسبین** دي **لهذا** په دې کې ددوو مختلفو عاملینو په دوو معمولینو باندې دیو عطف په ذریعې سره په دوه اسمونو باندې عطف دي او **معمول** مجرور مقدم دي ځکه دا عطف جائز دي .

**فهذا و ان کان:** ددې ځای نه تر **واذا عطف علی العاملین** پورې چې په دې باندې کوم سوال وارد شوې دي چې په شرط اوجزاء کې تناقض اواختلاف دي ددې یوجواب شارح په **اوقع** سره ورکړې وو دلته یې دویم جواب ورکوي چې **واذا عطف** دشرط نه چې کوم جواز معلومیږي ددې نه مراد جواز په اعتبار دصورة سره دي اود **لم یجز** نه مراد عدم جواز په اعتبار دحقیقت سره دي په نزد د جمهورو .

**لان الحرف:** په دې عبارت سره شارح دذکر شوي عطف عدم جواز وجه دجمهورو په نزد بیانوي . حرف عطف دعامل قائم مقام وي او یو حرف ددوه مختلف عاملینو قائم مقام نه شي کیدې ددې وجې نه دا عطف ناجائز دي

## د امام فراء رحمه الله د اختلاف بیان :

خِلَافًا لِلْفَرَّاءِ فَإِنَّهُ يَجُوْزُ هٰذَا الْعَطْفُ بِحَسْبِ الْحَقِيْقَةِ كَمَا جَازَ بِحَسْبِ
خلاف ثابت دي فراء لره خکه چې دا جائز کوي دا عطف په اعتبار د حقیقت سره لکه څنګه چې جائز دي په اعتبار

الصُّوْرَةِ وَلَا يُؤَوِّلُ الْاَمْثِلَةَ الْوَارِدَةَ عَلَيْهَا وَلَا يَقْتَصِرُ عَلٰى صُوْرَةِ السَّمَاعِ
دصورت سره او نه کوي تاویل دهغه مثالونو چې وارد وي په دې باندې او نه کوي اکتفاء په صورت د سماع

بَلْ يَعُمُّهَا وَ غَيْرَهَا وَ عَدَمُ جَوَازِ ذٰلِكَ الْعَطْفِ مَعَ خِلَافِ الْفَرَّاءِ جَارٍ فِيْ جَمِيْعِ
باندې بلکې عام کوي سماع او غیر سماع او عدم جواز د دې عطف سره د اختلاف د فراء جاري دي په ټولو

الْمَوَادِ عِنْدَ الْجُمْهُوْرِ اِلَّا فِيْ نَحْوِ فِي الدَّارِ زَيْدٌ وَ الْحُجْرَةِ عَمْرٌو وَاِنَّ فِي الدَّارِ زَيْدًا وَالْحُجْرَةِ عَمْرًا أَعْنِيْ اِلَّا فِيْ
مثالونو کې په نزد د جمهورو مګر په في الدار زيد او والحجرة عمرو مثال کې او ان في الدار زيدا والحجرة عمرا يعني په

صُوْرَةِ تَقْدِيْمِ الْمَجْرُوْرِ وَ تَأْخِيْرِ الْمَرْفُوْعِ اَوِ الْمَنْصُوْبِ لِمَجِيْئِهِ فِيْ كَلَامِهِمْ وَ اقْتَصَرَ
صورت د تقدیم د مجرور او تاخیر د مرفوع او یا منصوب دوجې د مجیئت د کلام د دوي نه او اکتفاء یې وکړه په

الْجَوَازُ عَلٰى صُوْرَةِ السِّمَاعِ لِاَنَّ مَا خَالَفَ الْقِيَاسَ يَقْتَصِرُ عَلٰى مَوْرِدِ السِّمَاعِ.
جواز باندې په صورت د سماع کې خکه هغه چې مخالف وي د قیاس نو اکتفاء کوي په مورد د سماع باندې.

**خلاصه دمتن :** د دې ځای نه د امام فراء اختلاف سره د جمهورو وضاحت کوي. امام فراء وايي چې لکه څنګه چې دا عطف په اعتبار د صورت سره جائز دي نو همدارنګې په اعتبار د حقیقت سره هم جائز دي او کوم مثالونه چې دداسې عطف په صورت کې وارد دي په دې کې امام فراء کوم تاویل هم نه کوي او صرف په سماع والا صورتونو باندې اکتفاء هم نه کوي بلکې په سماع او غیر سماع کې تعمیم کوي او غیر سماع والا صورتونه په سماع والا صورتونو باندې قیاس کوي او هغه هم جائز کوي.

**اغراض دجامي :** وعدم جواز: په دې عبارت سره شارح دا بیانوي چې د جمهورو په نزد د ذکر شوي عطف عدم جواز او د فراء سره د جمهورو اختلاف په ټولو موادو کې جاري کیږي مګر په یو صورت کې اختلاف نشته هغه دا دې چې معمول مجرور معمول منصوب او مرفوع نه مقدم وي. په دې صورت کې دامام فراء سره اختلاف نشته . معمول مجرور د مرفوع نه د مقدم کیدو مثال لکه في الدار زيد والحجرة عمرو. او معمول د منصوب نه د مقدم کیدو مثال لکه ان في الدار زيدا والحجرة عمروا

لمجيئه في كلامهم: په دې عبارت کې شارح د دې صورت د جواز بیان کوي چې دا صورت څکه

جائز دي چې دا صورت په کلام دعربو کې موجود دي . لیکن دا د جواز صورت په سماع باندې محمول دي. ځکه چې دا خلاف قیاس مسموع دي او کوم څیز چې خلاف قیاس مسموع وي هغه په مورد دسماع پورې خاص وي

## دامام سیبویه رحمه الله د اختلاف بیان :

خِلَافًا لِسِيْبَوَيْهِ فَإِنَّهُ لَا يُجَوِّزُ هٰذَا الْعَطْفَ بِحَسْبِ الْحَقِيْقَةِ فِيْ هٰذِهِ الصُّوْرَةِ أَيْضاً

خلاف ثابت دي سیبویه لره ځکه دا جائز کوي داعطف په اعتبار دحقیقت سره په دې صورت کې همدارنګې

بَلْ يَحْمِلُهَا عَلٰى حَذْفِ الْمُضَافِ وَ إِبْقَاءِ الْمُضَافِ إِلَيْهِ عَلٰى إِعْرَابِهٖ نَحْوُ تُرِيْدُوْنَ

بلکې حمل کوي يې په حذف دمضاف اوپه باقي والي دمضاف الیه کې په اعراب ددې باندې لکه تریدون

عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ اللّٰهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةِ بِجَرِّ الْاٰخِرَةِ كَمَا جَاءَ فِيْ بَعْضِ الْقِرَاءَةِ أَيْ عَرَضَ

عرض الحیوة الدنیاوالله یرید الاخرة . په جر دالآخرة سره دي لکه راغلي دي په بعضې قرآتونو کې یعنې عرض

الْاٰخِرَةِ.

الآخرة

**خلاصه دمتن :** ددې عبارت نه غرض اومقصد د امام سیبویه رحمه الله دجمهورو سره اختلاف بیانول دي . امام سیبویه رحمه الله په دې صورت کې هم په اعتبار دحقیقت سره عطف نه جائز کوي. بلکې هغه په دې کې تاویل کوي او وایي چې په دې صورت کې مضاف حذف کول او مضاف الیه ددې اعراب په اول باندې باقي ساتلې شوې دي. لکه په ان في الدار زیداً والحجرة عمرواً کې د والحجرة نه مخکې في محذوف دي. چې دا دمضاف الیه په حکم کې دي لکه څنګه چې مضاف خپل ما بعد ته جر ورکوي همدارنګې في هم خپل ما بعد ته جر ورکوي. لهذا دلته عطف دجملې په جملې باندې راغي اودا جائز نه دي همدارنګې په بیضاء شحمة کې د بیضاء نه مخکې لفظ د کلّ مضاف محذوف دي په اصل کې دا داسې وو چې ماکل سودا ثمرة وکل بیضاء شحمة همدارنګې د نار نه مخکې کُل مضاف محذوف دي په اصل کې اکل امرء تحسبین امرءً وکل نار توقد باللیل ناراً وو

**اغراض دجامي :** نحو تریدون: په دې عبارت کې شارح مضاف حذف کول او مضاف الیه ددې په اول اعراب باندې دباقي ساتلو مثال بیانوي چې مثال يې دا قول دالله تعالی فرمان دی چې تریدون عرض الحیوة الدنیاً والله یرید الآخرة . داپه اصل کې داسې وو چې والله یرید عرض

الآخرة . مضاف يې حذف کړو او مضاف اليه يې ددې په اول اعراب باندې باقي وساتلو .
ليکن مضاف اليه بې په اول اعراب باندې باقي ساتل دا د بعضې قاريانو د قرائت د وجې نه
دي. چې په کې الآخرة مجرور دي ورنه اکثر قاريان دا منصوب وايي

## دريم قسم : دتاکيد تعريف :

اَلتَّاكِيْدُ تَابِعٌ يُقَرِّرُ اَمْرَ الْمَتْبُوْعِ اَيْ حَالِهِ وَ شَانِهِ عِنْدَ السَّامِعِ يَعْنِيْ يَجْعَلُ حَالَهُ
تاکيد هغه تابع دې چې مضبوطوي امر د متبوع يعنې حال او شان د متبوع په نزد د سامع يعنې ګرځوي حال :
ثَابِتًا مُقَرَّرًا عِنْدَهُ فِي النِّسْبَةِ اَيْ فِيْ كَوْنِهِ مَنْسُوْبًا اَوْ مَنْسُوْبًا اِلَيْهِ فَيَثْبُتَ
متبوع ثابت او مضبوط په نزد د سامع په نسبت کې يعنې په کيدو ددې کې منسوب او يا منسوب اليه نو ثابتيږي
عِنْدَهُ وَ يَتَحَقَّقُ اَنَّ الْمَنْسُوْبَ اَوِ الْمَنْسُوْبَ اِلَيْهِ فِيْ هٰذِهِ النِّسْبَةِ هُوَ الْمَتْبُوْعُ لَا غَيْرُ
د سامع په نزد او متحقق کيږي دا خبره چې منسوب او منسوب اليه په دې نسبت کې هغه متبوع دی نه غير د
وَ ذٰلِكَ اِمَّا لِدَفْعِ ضَرَرِ الْغَفْلَةِ عَنِ السَّامِعِ اَوْ لِدَفْعِ ظَنِّهِ بِالْمُتَكَلِّمِ الْغَلَطَ وَ ذٰلِكَ الدَّفْعُ يَكُوْنُ
متبوع نه او دا يا د پاره د دفع د ضرر د غفلت د سامع نه او يا د دفع د ګمان غلط د سامع په متکلم باندې او دغه دفع
بِتَكْرِيْرِ اللَّفْظِ نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ زَيْدٌ اَوْ ضَرَبَ ضَرَبَ زَيْدٌ اَوْ لِدَفْعِ ظَنِّ السَّامِعِ بِهِ تَجَوُّزًا اِمَّا فِي
وي په تکرير د لفظ سره لکه ضرب زيد زيد او يا ضرب ضرب زيد او يا د پاره د دفعې د ګمان د سامع په متکلم مجاز ايا په
الْمَنْسُوْبِ نَحْوُ قَوْلِكَ زَيْدٌ قَتِيْلٌ قَتِيْلٌ دَفْعًا لِتَوَهُّمِ السَّامِعِ اَنْ يُرِيْدَ بِالْقَتْلِ الضَّرْبَ الشَّدِيْدَ
منسوب کې لکه دا قول ستا زيد قتيل قتيل د پاره د دفعې د توهم د سامع چې اراده کوي په قتل سره سخت وهل
فَيَجِبُ حِيْنَئِذٍ اَيْضاً تَكْرِيْرُ اللَّفْظِ حَتّٰى لَا يَبْقٰى شَكٌّ فِيْ اِرَادَةِ الْمَعْنَى الْحَقِيْقِيِّ اَوْ فِي
نو واجب دي په دې وخت کې همدا رنګې تکرير د لفظ تر دې چې باقي نه شي شک په راوړو د معنی حقيقي او يا په
الْمَنْسُوْبِ اِلَيْهِ فَاِنَّهُ رُبَمَا نُسِبَ الْفِعْلُ اِلٰى شَيْءٍ وَ الْمُرَادُ نِسْبَتُهُ اِلٰى بَعْضِ مُتَعَلِّقَاتِهِ
منسوب اليه کې ځکه چې ډيروخت نسبت د يو فعل کيږي يو شيز ته او مراد يې نسبت د شيز وي بعضې متلعقاتو د
كَمَا فِيْ قَطَعَ الْاَمِيْرُ اللِّصَّ اَيْ قَطَعَ غُلَامُهُ فَيَجِبُ حِيْنَئِذٍ تَكْرِيْرُ الْمَنْسُوْبِ
فعل ته لکه په قطع الامير اللص مثال کې يعنې کټ کړو غلام دده نو واجب دی په دې وخت کې تکرير د منسوب
اِلَيْهِ لَفْظًا نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ زَيْدٌ اَيْ ضَرَبَ هٰؤُلَاءِ مَنْ يَقُوْمُ مَقَامَهُ اَوْ تَكْرِيْرِهِ مَعْنًى نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ نَفْسُهُ اَوْ عَيْنُهُ اَوْ فِي
اليه لفظا لکه ضرب زيد زيد يعنې ضرب هؤلاء من يقوم مقامه او يا تکرير معنا لکه ضرب زيد نفسه او عينه او يا په
الشُّمُوْلِ اَيِ التَّاكِيْدُ مَا يُقَرِّرُ اَمْرَ الْمَتْبُوْعِ فِي النِّسْبَةِ بِالتَّفْصِيْلِ الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ
شمول کې يعنې تاکيد هغه دي چې مضبوطوي امر د متبوع په نسبت کې په هغه تفصيل سره چې مونږ ذکر کړو

اَوْ فِيْ شُمُوْلِ الْمَتْبُوْعِ اَفْرَادَه دَفْعًا لِظَنِّ السَّامِعِ تَجَوُّزًا لَا فِيْ نَفْسِ الْمَنْسُوْبِ اِلَيْهِ بَلْ فِيْ

اوپه شمول دمتبوع کې حسر ،و .ونه دپاره د دفعي دګمان دسامع مجازانه په نفس دمنسوب اليه کې بل په

شُمُوْلِهٖ لِاَفْرَادِهٖ فَاِنَّهٗ كَثِيْرًا مَايَنْسِبُ الْفِعْلَ اِلٰى جَمِيْعِ اَفْرَادِ الْمَنْسُوْبِ اِلَيْهِ مَعَ اَنَّهٗ يُرِيْدُ

شمو ل دې کې خپلوافرادونه حکه چې اکثرنسبت دفعل کيږي ټولوافرادودمنسوب اليه ته سره ددې چې اراده

النِّسْبَةَ اِلٰى بَعْضِهَا فَيَنْدَفِعُ هٰذَا الْوَهْمُ بِذِكْرِ كُلٍّ وَ اَجْمَعَ وَ اَخَوَاتِهٖ وَ كِلَاهُمَا وَ

کوي متکلم نسبت دبعضوافرادونودفع کيږي داوهم په ذکرکولودکل اوداجمع اوداخواتوددې اودکلاهمااود

ثَلٰثَتِهِمْ وَاَرْبَعَتِهِمْ وَنَحْوِهَا فَهٰذَا هُوَ الْغَرَضُ مِنْ جَمِيْعِ اَلْفَاظِ التَّاكِيْدِ.

ثلاثتهم اودار بعتهم اوپه مثل ددې نوداهغه غرض دي دټولوالفاظودتاکيدنه

**خلاصه دمتن** : صاحب کافيه د دريم تابع تعريف کوي تاکيد هغه تابع دي چې هغه د خپل متبوع حال په نسبت کې يا په شمول کې ددې دمنسوب يا دمنسوب اليه کيدو کې دسامع په نزد ثابت کړي. يعنې دسامع په نزد دا ثابته کړي چې په دې کې منسوب يا منسوب اليه هم متبوع دي. بل څيز نه دي او په سمول کې د متبوع حال دمضبوطولو مطلب دادي چې متبوع خپل ټول افراد په دې حکم کې شامل کړي چې کوم حکم دمتبوع دپاره ثابت دي .

**اغراض دجامي** : اى حالـه: پـه دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د امر لغوي معنى حکم کول او اصطلاحي معنى يې **هي صيغة يطلب بها الفعل من الفاعل المخاطب** ، چې دايوه صيغه دي چې طلب کوي په دې سره فعل دفاعل دمخاطب نه ، ده او دا دواړه معناګانې دلته صحيح نه دي ؟

**جواب** : دلته د امر عرفي معنى مراد ده، چې هغه حال او شان ده لکه چې وويلې شي چې **ما امرك اى ما حالك** .

عند السامع: په دې عبارت کې شارح دمتن وضاحت کوي ، دايې ددې وجې نه وويل چې متکلم دتقرير اودتفسير محتاج نه دي بلکه دتقرير اودتفسير محتاج هغه سامع دي .

يعني يجعل : په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : يقرر دتقرير نه دي دتقرير معنى ده **مايستقر في القلب ويظهر باللسان** . يعني په زړه سره تصور وکړې شي اوپه ژبې سره ظاهر کړې شي ، دا معنى په تاکيد کې نه شي متصور کيدې

همدا رنګې تابع په یقرر سره موصوف کول هم صحیح نه دي ځکه چې تابع دلفظ صفت دي او تقرر دمتکلم صفت دي.

**جواب**: دلته تقریر دتثبیت په معنی کې دي یعنې تاکید هغه دي چې دمتبوع حال ثابت او مقرر کړي

ای في کونه منسوبا: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: د تاکید تعریف په هغه دویم زید باندې صادق نه راځي کوم چې په جاءني زید زید کې واقع دي ځکه چې نسبت په جاءني کې دي نه چې په زید کې دي ځکه چې زید خو منسوب الیه دي حالانکه دویم زید تاکید دي.

**جواب**: دلته دنسبت نه مراد دمتبوع منسوب یامنسوب الیه کیدل دي اوپه ذکر شوې مثال کې اګرچې منسوب نه دي لیکن منسوب الیه دي

وذلک: په دې عبارت سره شارح دتاکید فائده بیانوي چې تاکید دسامع نه دغفلت دلرې کولو دپاره راوړلې شي یادسامع په متکلم کې دغلطي ګمان ددفع کولو دپاره راوړې شي.

وذلک الدفع یکون بتکریر اللفظ: په دې عبارت سره شارح ددې ددفع کولو طریقه بیانوي چې یابه منسوب الیه مکرر راوړې شي لکه ضرب زید زید یا به منسوب مکرر راوړې شي لکه ضرب ضرب زید ددې تکرار دوجې نه دسامع نه ضرر دغفلت هم لرې کولې شي اور دسامع دمتکلم په باره کې ګمان کول چې هغه په نسبت کې غلطي کوي دابه هم دفعه شي.

او لدفع ظن السامع به تجوزاً: په دې عبارت سره شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې یا به تاکید دسامع په متکلم کې دمجاز دنسبت دګمان ددفع کولو دپاره راوړې شي چې چیرته متکلم حقیقي معنی پریږدي او دمعنی مجازي اراده نه لري اودمجاز ګمان یا په منسوب کې وي اویا په منسوب الیه کې ، دمنسوب مثال لکه زید قتیل قتیل . په دې کې قتیل منسوب دي دایې مکرر راوړو دسامع ګمان یې دفع کړو چې شاید متکلم دقتل نه مراد ضرب شدید یعنې سخت وهل مراد اخستي وي نو قتیل یې مکرر راوړو اودا وهم یې دفع کړو چې دقتل نه مراد همدا قتل دي نه ضرب شدید اوسخت وهل . لهذا په دې صورت کې دمنسوب تکرار واجب دي

دي دپاره چې دحقيقي معنی په مراد کېدو څه شک پاتې نه شي . يا دمجاز ګمان په منسوب اليه کې وي څکه چې بعضې وخت يو څيز طرف ته دفعل نسبت وکړې شي ليکن ددې نه بعينه هغه څيز مراد نه وي بلکه مراد ددې څيز نه دڅيز بعضې متعلقاتو طرف ته دفعل نسبت کيږي لکه قطع الامير اللص ، په دې کې دقطع ديد نسبت امير طرف ته شوي دي حالانکه دامير نه دده غلام مراد دي څکه چې امير حکم کوي په دې صورت کې دمنسوب اليه تکرار واجب دي ددې دپاره چې په منسوب اليه کې دمجاز وهم باقي پاتې نه شي برابره خبره ده که داتکرار لفظاً وي يا معنا وي . دتکرار لفظي مثال لکه ضرب زيد زيد . او د تکرار معنوي مثال لکه ضرب زيد نفسه يا عينه .

او في الشمول: په دې عبارت کې شارح دابيانوي چې دلته في الشمول عطف دي په في النسبة باندې . يعنې تاکيد هغه تابع دي چې دمتبوع حال مضبوط کړي په نسبت کې اويا په شمول کې . شمول دمتبوع دحال دمضبوطولو مطلب دادې چې دمتبوع خپل ټول افراد په دې حکم کې شامل دي کوم حکم چې دمتبوع دپاره ثابت دي

دفعاً: په دې عبارت کې شارح دتاکيد فائدې بيانوي . چې داتاکيد دسامع دمتکلم دنسبت د مجاز دګمان ددفع کولو دپاره کيږي ليکن دمجاز ګمان يواځې په منسوب اليه کې نه وي بلکه دمتبوع دفرادو ته دشامليدو دپاره وي سامع ته داګمان کيږي چې دمتکلم مراد ټول افراد نه وي بلکه بعضې افراد وي څکه چې ډير وخت دفعل نسبت دمنسوب اليه ټولو افرادو طرف ته کيږي ليکن دمتکلم مراد ددې بعضې افرادو طرف ته نسبت وي پس دا وهم چې لفظ دکل اجمع وغيره دذکر کولو سره به دفع شي اومعلومه به شي چې ټول افراد مراد دي بعضې افراد نه دي مراد .

فهذا هو الغرض: په دې عبرت سره شارح دابيانوي چې دتاکيد دټولو الفاظونه همدا مقصد او غرض دي يعنې دمتبوع مضبوطول يا په نسبت کې اويا په شمول کې .

## دتعريف دقيودو فوائد :

وَ إِذَا عَرَفْتَ هٰذَا فَنَقُوْلُ اَخْرَجَ الْمُصَنِّفُ الصِّفَةَ وَ الْعَطْفَ وَ الْبَدَلُ عَنْ حَدِّ التَّاكِيْدِ بِقَوْلِهِ

وکله چې تاوپيژندل دا نومونږوايوچې خارج کړومصنف صفت اوعطف او بدل دتعريف دتاکيد نه په دې قول

يُقَرِّرُ اَمْرَ الْمَتْبُوْعِ اَمَّا الْبَدَلُ وَ الْعَطْفُ فَظَاهِرٌ خُرُوْجُهُمَا بِهٖ وَ اَمَّا

چې مضبوطوي امر دمتبوع هرچې بدل اوياعطف دي نوظاهر دي خروج ددې دواړوپه دې سره اوهرچې

الصِّفَةُ فَلِاَنَّ وَضْعَهَا لِلدَّلَالَةِ عَلٰى مَعْنًى فِيْ مَتْبُوْعِهَا وَ اِفَادَتُهَا تَوْضِيْحَ مَتْبُوْعِهَا فِيْ
صفت دي نوځکه وضع ددې دپاره ددلالت ده په معنى په متبوع ددې کې اوفائده ورکوي دوضاحت دمتبوع په

بَعْضِ الْمَوَاضِعِ لَيْسَتْ بِالْوَضْعِ وَ اَمَّا عَطْفُ الْبَيَانِ وَ هُوَ لِتَوْضِيْحِ مَتْبُوْعِهٖ فَهُوَ
بعضې مواضعو کې نه دي په اعتبار دوضع سره اوهرچې عطف بيان دي نودپاره دوضاحت دمتبوع دي نودا

يُقَرِّرُ اَمْرَ مَتْبُوْعِهٖ وَ يُحَقِّقُهٗ لٰكِنْ لَا فِي النِّسْبَةِ وَ الشُّمُوْلِ هٰذَا حَاصِلُ مَا ذَكَرَهُ
مضبوطوي امر دمتبوع ددې اومحقق کوي لکن نه په نسبت اوشمول سره داحاصل دهغه څه دي چې ذکرکړي

الْمُصَنِّفُ فِيْ شَرْحِهٖ.
مصنف په خپله شرحه کې

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره دتعريف دقيودو فوائد بيانوي چې دقيودو فوائد الندې په شرحه کې ذکر دي

**اغراض دجامي** : واذا عرفت هذا: دادشرحې عبارت دي په دې عبارت کې شارح دجامي دتاکيد په تعريف کې دقيودو فوائد بيانوي دتاکيد په تعريف کې **يقرر امرالمتبوع** دا اول فصل دي. ددې نه صفت بدل او معطوف بحرف خارج شو. بدل او معطوف بحرف ترې خارج کيدل ظاهر دي. خکه دا دواړه د متبوع تقرير نه کوي. بلکې بدل په خپله مقصود وي، ددې متبوع مقصود نه وي. او معطوف بحرف سره د خپل متبوع نه مقصود وي او صفت ترې ځکه خارج شو چې ددې وضع په دې معنى باندې د دلالت کولو دپاره وي. کومه چې ددې په متبوع کې موندل کيږي نه دامر متبوع دتقرير دپاره

**وافادتها**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د تاکيد په تعريف کې **يقرر امر المتبوع** دي او د تقرير متبوع مطلب دمتبوع وضاحت وي او صفت موضحه هم د متبوع د توضيح فائده ورکوي لکه **زيدالظريف** نو د **يقرر امر المتبوع** نه صفت څنګه خارج شو؟

**جواب** : په بعضې ځايونو کې صفت دخپل متبوع دوضاحت فائده ورکول په اعتباردوضعې نه وي. بلکې دعارضي استعمال د وجې نه وي. او په تاکيد کې تقرير او توضيح دمتبوع باعتبار دوضعې سره وي نو لهذا صفت ترې خارج شو

في النسبة او في الشمول: دا دويم فصل دي په دې سره عطف بيان خارج شو. خکه چې داد خپل

متبوع وضاحت ، تقریر او تحقیق خو کوي. لیکن د نسبت او . شمول په اعتبار سره نه وي. بلکې په اعتبار د ذات سره وي

## د تاکید اقسام :

وَ هُوَ أَيِ التَّاكِيْدُ لَفظِيٌّ أَيْ مَنْسُوْبٌ إِلَى اللَّفْظِ لِحُصُوْلِه مِنْ تَكْرِيْرِ اللَّفْظِ وَ مَعْنَوِيٌّ

او دا یعنې تاکید لفظي دی یعنې منسوب وي لفظ ته دوجې د حصول ددې نه د تکریر د لفظ نه او معنوی دی

أَيْ مَنْسُوْبٌ إِلَى الْمَعْنَى لِحُصُوْلِهِ مِنْ مُلَاحِظَةِ الْمَعْنَى فَاللَّفْظِيُّ تَكْرِيْرُ اللَّفْظِ الْأَوَّلِ أَيْ مُكَرَّرُ

یعنې منسوب وي معنی ته دوجې د حصول د لحاظ د معنی نه نو لفظي تکریر د اول لفظ دی یعنې مکرر کول

اللَّفْظِ الْأَوَّلِ وَ مُعَادُهٗ حَقِيْقَةً نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ زَيْدٌ أَوْ حُكْماً نَحْوُ ضَرَبْتَ أَنْتَ وَ ضَرَبْتُ أَنَا فَإِنَّ ذٰلِكَ فِيْ حُكْمِ

د اول لفظ او ددې را واپس کول دي حقیقتا لکه جاءني زيد زيد او یا حکما لکه ضربت انت وضربت انا ځکه دا په حکم

تَكْرِيْرِ اللَّفْظِ وَ إِنْ كَانَ مُخَالِفاً لِلْأَوَّلِ لَفظاً إِذِ الضَّرُوْرَةُ دَاعِيَةٌ إِلَى الْمُخَالِفَةِ لِأَنَّهٗ لَا يَجُوْزُ تَكْرِيْرُهٗ

د تکریر د لفظ کې دی اګر که مخالف وي د اول لفظا ځکه ضرورت داعي دی مخالفت ته ځکه نه دی جائز تکریر

مُتَّصِلاً وَيَجْرِيْ أَيِ التَّكْرِيْرُ مُطْلَقًا لَا التَّكْرِيْرُ الَّذِيْ هُوَ التَّاكِيْدُ الْإِصْطِلَاحِيُّ فِي الْأَلْفَاظِ كُلِّهَا

ددې متصل او جاري کیږي یعنې تکریر مطلق نه هغه تکریر چې هغه تاکید اصطلاحي وي په ټولو الفاظو کې که

أَسْمَاءً وَ أَفْعَالاً أَوْ حُرُوْفاً أَوْ جُمَلاً أَوْ مُرَكَّبَاتٍ تَقْيِيْدِيَّةً أَوْ غَيْرَ ذٰلِكَ وَلَا يَبْعُدُ إِرْجَاعُ

اسماء وي او که افعال او که حروف او یا جملې او یا مرکبات تقیدي او یا غیر ددې نه او بعید نه دي راجع کول د

الضَّمِيْرِ إِلَى التَّاكِيْدِ اللَّفْظِيِّ الْإِصْطِلَاحِيِّ وَتَخْصِيْصُ الْأَلْفَاظِ بِالْأَسْمَاءِ وَيَكُوْنُ الْمَقْصُوْدُ مِنْ هٰذَا التَّعْمِيْمِ عَدَمَ

ضمیر تاکید لفظي اصطلاحي ته او خاص کول د الفاظو په اسماو سره او وي به مقصود ددې تعمیم نه عدم

إِخْتِصَاصِهٖ بِأَلْفَاظٍ مَحْصُوْرَةٍ كَالتَّاكِيْدِ الْمَعْنَوِيِّ.

اختصاص ددې دې په الفاظ محصوره لکه تاکید معنوي

**خلاصه د متن :** ددې ځاې نه صاحب د کافیه د تاکید تقسیم کوي چې تاکید په دوه (۲) قسمه دی : (۱) تاکید لفظي (۲) تاکید معنوي ، (۱) تاکید لفظي هغه دی چې په هغې کې اول لفظ مکرر راوړې شي لکه جاءني زيد زيد ، (۲) تاکید معنوي هغه دی چې په مخصوصو الفاظو سره وي لکه عین کلا کلتا وغیره . اول به د تاکید لفظي بیان کیږي او وروستو به د تاکید معنوي بیان کیږي .

**اغراض د جامي :** اى التاكيد: په دې عبارت سره د هُوَ ضمیر مرجع بیانوي چې د هُوَ ضمیر مرجع تاکید دی

ای منسوب: په دې عبارت کې شارح اشاره کوي چې دلفظ په آخر کې یاء د نسبت دپاره ده

لحصول: په دې عبارت کې شارح د لفظي وجه دتسمیې بیانوي چې لفظي ته لفظي ځکه وایي چې دا حاصلیږي دتکرار د لفظ نه

ای منسوب: په دې عبارت کې شارح اشاره کوي چې دلفظ په آخر کې یاء د نسبت دپاره ده

لحصوله: په دې عبارت کې شارح د معنوي وجه دتسمیې بیانوي چې معنوي ته معنوي ځکه وایي. چې دا د معنی په لحاظ سره حاصلیږي

ای مکرر: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: اللفظي مبتدا او تکریر یې خبر دي او خبر په مبتداء باندې حمل کیږي دلته حمل صحیح نه دي ځکه چې اللفظي منسوب دي او اسم منسوب د مشتق په حکم کې وي نولکه څنګه چې مشتق په ذات مع الوصف باندې دلالت کوي همدارنګې دا هم په ذات مع الوصف باندې دلالت کوي. نوهر کله چې تکریر مصدر وصف محض دي نو د وصف محض حمل په ذات مع الوصف باندې صحیح نه دي؟

**جواب**: دلته تکریر مصدر مبني للمفعول دي او د مکرر په معنی باندې دي، نو دا حمل د مشتق په مشتق د قبیلې نه دي لهذا دا جائز دي

معاده: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: په تاکید لفظي باندې د تکرار اطلاق صحیح نه دي ځکه چې د تکرار معنی ده یو څیز دوباره ذکر کول بلا فائده او په تاکید کې خو فائده جلیله وي. لکه څنګه چې شارح تفصیلاً ذکر کړې دي؟

**جواب**: دلته د تکریر نه مراد اعاده ده او اعاده عام ده برابره خبره ده که فائده یې وي او که فائده یې نه وي

حقیقة او حکما: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د تاکید تعریف جامع نه دي دا په ضربت انت کې په انت باندې او په ضربت انا کې په انا باندې صادق نه راځي. ځکه چې په دې کې داول لفظ تکرار نشته. حالانکه دا هم تاکید لفظي دي؟

**جواب** : داول لفظ په تکرار کې تعمیم دي برابره خبره ده که دا تعمیم حقیقتاً وي اوکه حکماً وي . د حقیقتاً مثال لکه جاءني زید زید . او دحکما مثال لکه ضربت انت او په ضربت انا کې انت او انا د تاء ضمیر متصل په حکم کې دي. ځکه چې ضمیر منفصل دضمیر متصل په حکم کې دي

**سوال** : دلته حقیقتاً تکرار ولې نه شي کیدې ؟

**جواب** : ځکه چې دلته مجبوري ده هغه مجبوري داده چې د ضمیر متصل تکرار دضمیر متصل په صورت کې نه شي کیدې

اي للتکریر : په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : په یجری کې دضمیر مرجع تاکید اصطلاحي دی کله چې ددې مرجع تاکید اصطلاحي وي نو ددې مطلب دا شو چې تاکید اصطلاحي په ټولو الفاظو کې جاري کیږي، برابره خبره ده که دا اسم وي اوکه فعل وي اوکه حرف وي اوکه جمله وي اوکه مرکب تقییدي وي اویا غیر تقییدي وي، ځکه چې في الالفاظ کلها ټولو ته شامل دي حالانکه تاکید اصطلاحي خاص دي د اسماو سره؟

/

**جواب** : شارح ددې دوه (۲) جوابه ورکړي دي

**جواب (۱)** : اول جواب دادې چې د ضمیر مرجع تاکید اصطلاحي نه دي بلکې دضمیر مرجع مطلقاً تکریر ده

**جواب (۲)** : د ضمیر مرجع تاکید لفظي اصطلاحي ده لیکن د في الالفاظ کلها نه مراد یواځې اسماء دي .

ویکون: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : کله چې دالفاظو نه مراد فقط اسماء دي، نو بیاد کلها سره دتعمیم څه فائده ده ؟

**جواب** : ددې تعمیم نه مقصود دادې چې تاکید لفظي یو څو الفاظو سره مخصوص نه دي لکه څنګه چې تاکید معنوي دیو څو الفاظو سره محصور او محدود دي. بلکې دا تاکید په ټولو اسماو کې جاري کیږي

## تاکيد معنوي :

وَالتَّاكِيْدُ الْمَعْنَوِيُّ مُخْتَصٌّ بِأَلْفَاظٍ مَحْصُوْرَةٍ أَيْ مَعْدُوْدَةٍ مَحْدُوْدَةٍ وَهِيَ نَفْسُهُ وَعَيْنُهُ وَكِلَاهُمَا وَكُلُّهُ وَأَجْمَعُ وَأَكْتَعُ

او تاکيد معنوي دا خاص په الفاظ محصوره پورې يعني معدود او محدود او دا نفسه . عينه . کلاهما . کله . اجمع . اکتع .

وَ أَبْتَعُ وَ أَبْصَعُ بِالصَّادِ الْمُهْمَلَةِ وَ قِيْلَ بِالضَّادِ الْمُعْجَمَةِ قِيْلَ لَا مَعْنٰى لِهٰذِهِ

ابتع . ابصع په صاد مهمله سره او چاويلي دي چې په ض د معجمه سره دي او چاويلي چې نشته دي معنی ددې

الْكَلِمَاتِ الثَّلٰثِ فِيْ حَالِ الْإِفْرَادِ مِثْلُ حَسَنٍ بَسَنٍ وَ قِيْلَ اِكْتَعُ مُشْتَقٌّ مِنْ حَوْلٍ كَتِيْعٍ أَيْ تَامٍّ وَ

درې کلمو ته په حال د افراد لکه حسن بسن او چاويلي چې اکتع مشتق دي د حول کتيع نه يعني د کامل نه او

اَبْصَعُ بِالْمُهْمَلَةِ مِنْ بَصَعَ الْعَرَقُ أَيْ سَالَ وَ بِالْمُعْجَمَةِ مِنْ بَضَعَ أَيْ رَوِيَ

ابصع په صاد مهمله سره د بصع العرق نه دي يعني سال او ابضع په ضاد معجمه سره د بضع نه دي يعني سیراب شو

وَ اَبْتَعُ مِنَ الْبَتَعِ وَ هُوَ طُوْلُ الْعُنُقِ مَعَ شِدَّةِ مَغْرَزِهٖ وَ يُمْكِنُ اِسْتِنْبَاطُ مُنَاسِبَاتٍ خَفِيَّةٍ بَيْنَ

او ابتع د بتع نه دي او د اوږد څټ والاته وايي سره د شدت مغرز نه او ممکن دي استنباط د مناسبت خفيه په مینځ

هٰذِهِ الْمَعَانِيْ وَ مَعْنَاهَا التَّاكِيْدِيْ بِالتَّأَمُّلِ الصَّادِقِ .

ددې معانيو کې او په معنی تاکيدي کې په تامل صادق سره .

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې صاحب د کافيه د تاکيد معنوي د الفاظو ،معانيو او ددې د استعمال تفصيل ذکر کوي . چې ددې وضاحت په شرح کې را روان دي .

**اغراض دجامي** : **التاکيد**: په دې عبارت کې شارح بيان د ترکيب کوي ، چې **المعنوي** صفت دې د موصوف محذوف چې **التاکيد** دي

**مختص**: په دې عبارت کې شارح بيان د ترکيب کوي . نو په دې سره يې اشاره وکړه چې **بالفاظ المحصورة** دا د **مختص** متعلق شو او د مبتدا خبر دي .

**اى معدودة**: په دې عبارت کې شارح بيان د معنی کوي . د **محصورة** معنی يې بيان کړه . چې د **محصورة** معنی د د دوو شمير . يو څو ، دي .

**وهى** په دې عبارت سره شارح د تاکيد معنوي د الفاظو بيان کوي . چې هغه **نفس.عين.كلا .كلتا. كل .اجمع .اكتع .ابتع .ابصع** دي . بعضې وايي چې **ابضع** په ضاد سره دي

بعضې وايي چې ددې کلماتو په حالت انفراد کې څه معنی نشته . لکه ننده حسن بسن کې حس . بس مهمل دي ددې څه معنی نشته . بعضې وايي چې په حالت د مفرد کې يې معنی

شته چې تفصيل يې دا دی چې

اکتع: دا مشتق دي، د حول کتيع نه په معنی دپوره کال

ابصع: دا په صاد مهمله سره دا مشتق دي. د بصع العرق نه په معنی د خولې بهيدو سره . او که ابضع په ضاد معجمه سره شي نو دا مشتق دي د بضع نه په معنی د خړوب کيدو.

ابتع: دا ماخوذ دي د بتع نه په معنی دختې اوږديدل . دمغرز ، مغرز دسينې هغه سخت ځاې ته وايي چې ختې هلته ايخودل شوې وي وي ، سختتيدو سره

وليکن: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: کله چې داالفاظ داصلي معانيو نه دتاکيد معنی طرف ته منقولې وي ، نو دمعاني تاکيديه او داصليه په مينځ کې مناسبت ضروري دي. نو ددې دواړو په مينځ کې څه مناسبت شته دي ؟

**جواب**: په تامل صادق او په پوره توجه سره ددې معاني اصليه او معاني تاکيديه په مينځ کې د مناسبات مخفيه استنباط ممکن او آسان دي. لکه دا کتع لغوي معنی ده پوره کيدل دي او معنی اصطلاحي يې عام کيدل دي او عموم تمام الافراد والاجزاء ته وايي. نو لهذا دمعنی لغوي او دمعنی اصطلاحي په مينځ کې مناسبت شته دي. او ابصع په صاد سره دي نو ددې لغوي معنی سيلان دي او سيلان مستلزم دي انبساط او شمول ته اود ابصع تاکيدي معنی عموم دي او په عموم کې هم انبساط او شمول وي نو مناسبت موجود دي او ابضع په ضاد سره نو ددې لغوي معنی روې يعنې تمام الشرب دي او په معنی تاکيدي کې يې هم عموم دي او عموم تمام الافراد والاجزاء ته وايي . او دابتع لغوي معنی طول العنق ده او دطول معنی ده امتداد او اوږدوالي او په معنی تاکيدي کې عموم دي او په عموم کې هم امتداء وجودي وي نو په معنی لغوي او په معنی اصطلاحي کې مناسبت ومونډل شو .

## د تاکيد معنوي د الفاظو استعمال :

فَالْاَوَّلَانِ أَيِ النَّفْسُ وَالْعَيْنُ يَعُمَّانِ أَيْ يَقَعَانِ عَلَى الْوَاحِدِ وَالْمُثَنّٰى وَالْمَجْمُوْعِ وَالْمُذَكَّرِ وَالْمُؤَنَّثِ بِاِخْتِلَافِ

[illegible] يعني نفس او عين عام دي يعني واقع کېږي په مفرد، تثنيه، جمع، په مذکر او مونث باندي په اختلاف

صِيغَتِهِمَا اَفْرَاداً وَ تَثْنِيَةً وَ جَمْعاً وَ اِخْتِلَافِ ضَمِيْرِهِمَا الْعَائِدِ إِلَى الْمَتْبُوْعِ الْمُؤَكَّدِ

د صيغو سره د [illegible] تثنيه او جمع کښې په [illegible] جمع وي متبوع مؤکد طرف ته

تَقُوْلُ نَفْسُهُ فِي الْمُذَكَّرِ الْوَاحِدِ نَفْسُهَا فِي الْمُؤَنَّثِ الْوَاحِدَةِ اَنْفُسُهُمَا بِاِيْرَادِ صِيْغَةِ الْجَمْعِ فِي تَثْنِيَةِ مُذَكَّرٍ وَ

نوايې به نفسه په مذكر واحد كې او نفسها په مؤنث مفرد كې انفسهما په راوړو د صيغې د جمع به تثنيه مذكر او

الْمُؤَنَّثِ وَعَنْ بَعْضِ الْعَرَبِ نَفْسَاهُمَا وَعَيْنَاهُمَا اَنْفُسُهُمْ فِي جَمْعِ الْمُذَكَّرِ الْعَاقِلِ اَنْفُسُهُنَّ فِي جَمْعِ الْمُؤَنَّثِ

مؤنث كې او د بعضې عربو نه نقل دي نفساهما او عيناهما انفسهم په جمع مذكر عاقل كې او انفسهن په جمع مؤنث

وَ غَيْرِ عَاقِلٍ مِنَ الْمُذَكَّرِ وَ الثَّانِيْ لَمَّا سَمَّى النَّفْسَ وَ الْعَيْنَ اَوَّلَيْنِ تَغْلِيْباً كَالْقَمَرَيْنِ سَمَّى

كې او غير عاقل د مذكر كې او دويم هر كله چې مسمى كړو نفس او عين اول تغليبا لكه قمرين نو مسمى يې كړو

الثَّالِثَ ثَانِياً لِلْمُثَنَّى كِلَاهُمَا لِلْمُذَكَّرِ وَ كِلْتَاهُمَا لِلْمُؤَنَّثِ وَالْبَاقِيْ بَعْدَ الثَّلٰثَةِ الْمَذْكُوْرَةِ لِغَيْرِ الْمُثَنّٰى

دريم دويم د پاره د تثنيې كلاهما د پاره د مذكر او كلتاهما د پاره د مؤنث او باقي پس د دري مذكورونه د پاره د غير تثنيه

مُفْرَداً كَانَ اَوْ جَمْعاً بِاِخْتِلَافِ الضَّمِيْرِ الْعَائِدِ اِلَى الْمَتْبُوْعِ الْمُؤَكَّدِ فِيْ كُلِّهٖ نَحْوُ قَرَأْتُ الْكِتَابَ كُلَّهٗ وَ

د پاره مفرد وي او كه جمع په اختلاف د ضمير سره چې راجع وي متبوع مؤكد ته په كله كې لكه قرأت الكتاب كله او

كُلِّهَا نَحْوُ قَرَأْتُ الصَّحِيْفَةَ كُلَّهَا وَكُلِّهِمْ نَحْوُ اشْتَرَيْتُ الْعَبِيْدَ كُلَّهُمْ وَكُلِّهِنَّ نَحْوُ طَلَّقْتُ النِّسَاءَ كُلَّهُنَّ وَبِاخْتِلَافِ الصِّيَغِ

كلها لكه قرأت الصحيفة كلها او كلهم لكه اشتريت العبيد كلهم او كلهن لكه طلقت النساء كلهن او په اختلاف د صيغو سره

فِي الْكَلِمَاتِ الْبَوَاقِيْ وَ هِيَ اَجْمَعُ وَ اَكْتَعُ وَ اَبْتَعُ وَ اَبْصَعُ بِالْمُهْمَلَةِ اَوِ الْمُعْجَمَةِ تَقُوْلُ اَجْمَعُ

په باقي كلمو كې او هغه اجمع ، اكتبع ، ابتع ، ابصع دي په صاد د يا په ضاد مهمله او يا معجمه سره نو وايې به اجمع

فِي الْمُذَكَّرِ الْوَاحِدِ وَجَمْعَاءُ فِي الْمُؤَنَّثِ الْوَاحِدَةِ اَوِ الْجَمْعِ بِتَاوِيْلِ الْجَمَاعَةِ وَاَجْمَعُوْنَ فِيْ جَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَجُمَعُ

په مذكر مفرد كې او جمعاء په مؤنث مفرد كې او يا جمع په تاويل د جماعة سره دد او اجمعون په جمع مذكر كې او جُمَعُ

فِيْ جَمْعِ الْمُؤَنَّثِ وَكَذَا اَكْتَعُ كَتْعَاءُ اَكْتَعُوْنَ كُتَعُ وَاَبْتَعُ بَتْعَاءُ اَبْتَعُوْنَ بُتَعُ وَاَبْصَعُ بَصْعَاءُ اَبْصَعُوْنَ بُصَعُ .

په جمع مؤنث كې او همدارنګې اكتع كتعاء اكتعون كتع او ابتع بتعاء ابتعون بتع او ابصع بصعاء ابصعون بصع دي

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت كې كې هم صاحب دكافيه د تاكيد معنوي د الفاظو معاني او ددې د استعمال تفصيل ذكر كوي چې وضاحت يې لاندې په شرحه كې ذكر دي

**اغراض دجامي** : فالاولان: دتاكيد معنوي په الفاظو كې دوه لفظونه نفسٌ عينٌ عام دي. واحد تثنيه مذكر مؤنث دټولو دتاكيد دپاره راځي. البته ددې صيغه او ددې سره ضمير كوم چې متبوع طرف ته راجع كيږي نو داد متبوع په اعتبار سره بدليږي. كه چيرته متبوع مفرد وي نو ددې صيغه به هم مفرد وي او ددې سره ضمير به هم مفرد وي. او كه متبوع تثنيه وي نو ددې ضمير به بې داختلاف نه تثنيه وي او ددې صيغې په باره كې اختلاف دي د جمهورو په نزد باندې دا په صيغې دجمعې سره اود بعضو په نزد په صيغې دتثنيې سره راوړې شي . نو

لهذا دواحد مذکر دپاره نفسه او د واحد مؤنث دپاره نفسها اودتثنیې مذکر اودمؤنث دپاره دجمهورو په نزد انفسهما او اعینهما . اودبعضو په نزد نفساهما اوعیناهما ویلي شي اودجمع مذکر عاقل دپاره انفسهم اودجمع مؤنث او جمع مذکر غیر عاقل دپاره انفسهن استعمالیږي .

والثاني: د تاکید معنوي په الفاظو کې کلا دتثنیې مذکر او کلتا د تثنیې مؤنث دپاره دي .

ای النفس والعین: په دې عبارت سره شارح د الا او د لان د مصداق بیان کوي چې دالا اود لان مصداق نفس اوعین دي .

ای یقعان: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : په نفس او عین باندې د عام اطلاق صحیح نه دي، ځکه چې د عام تعریف دادې چې په یو ځل ټولو افرادو ته شامل وي، او نفس او عین داسې نه دي ؟

**جواب** : دلته یعمان د یقعان په معنی باندې دي ځکه چې عموم ته وقوع لازم ده .

لماسوی النفس: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د تاکید په الفاظو کې په کلا باندې د ثاني اطلاق صحیح نه دي ځکه چې دا ثالث دي لکه دا چې ظاهر دي ؟

**جواب** : کله چې نفس او عین تغلیباً او عین په نوم سره کړی دی، لکه قمر او شمس ته تغلیباً قمرین وایي، نو کلا د دریم په ځای په دویم سره تعبیر وکړې شو، په حقیقت کې دا دریم دي.

والباقي: دتاکید معنوي په الفاظو کې نفس عین کلا کلتا نه غیر باقي ټول الفاظ کل اکتع ابتع ابصع وغیره دا د غیر تثنیه یعنې مفرد او د جمع د تاکید دپاره راځي. بیا په صیغه دلفظ دکل کې اختلاف نشته . البته په دې سره ضمیر دمتبوع په لحاظ سره بدلیږي رابدلیږي ، دواحد مذکر دپاره کله لکه قراءت الکتاب کله او دواحد مؤنث دپاره کلها لکه قراءت الصحیفة کلها او دجمع مذکر دپاره کلهم لکه اشتریت العبد کلهم او دجمع مؤنث دپاره کلهن لکه طلقت النساء کلهن ویلې شي او باقي صیغې دمتبوع په لحاظ سره بدلیږي. لکه اجمع اکتع ابتع ابصع دواحد مذکر دپاره او جمعا اکتعا تبعا بصعاء دواحد مؤنث دپاره . اودجمع مذکر دپاره اجمعون اکتعون ابتعون اصبعون او د جمع مؤنث دپاره جمع کتع تبع بصع

مفرداً کان او جمعاً: په دې عبارت کې شارح یو وهم دفع کوي

وهم: وهم دادې چې شاید دغیر مثنی نه مراد فقط مفرد وي ځکه چې هم دا اصل دې نو مفرداکان او جمعا یې وویل دا وهم یې دفع کړو چې دغیر مثنی نه مراد مفرد اوجمع دواړه دي

وهي أجمعون: په دې عبارت سره شارح د البواقي مصداق بیانوي چې د البواقي مصداق اجمعون دي

## د کل او د اجمع تفصیل:

| |
|---|
| وَلَا يُؤَكَّدُ بِكُلٍّ وَ اَجْمَعَ اِلَّا ذُوْ اَجْزَاءٍ مُفْرَداً كَانَ اَوْ جَمْعاً اِذِ الْكُلِّيَّةُ وَ الْاِجْتِمَاعُ لَا يَتَحَقَّقَانِ |
| او مؤکد نه شي راوړي کل او اجمع مگر ذو اجزاء که مفرد وي او که جمع ځکه کلیت او اجتماعیت نه دي متحقق |
| اِلَّا فِيْهِ وَلَا حَاجَةَ اِلٰى ذِكْرِ الْاَفْرَادِ لِاَنَّ الْكُلِّيَ مَا لَمْ تُلَاحَظْ اَفْرَادُهٗ |
| مگر په ذو اجزاء کې او نشته دې حاجت ذکر کولو د افراد نه ځکه کلي چې ترڅو لحاظ و نه کړي شي د افراد و د |
| مُجْتَمِعَةً وَ لَمْ تَصِرْ اَجْزَاءً لَا يَصِحُّ تَاكِيْدُهٗ بِكُلٍّ وَ اَجْمَعَ وَ يَجِبُ اَنْ تَكُوْنَ تِلْكَ الْاَجْزَاءُ |
| مجتمع کیدو او نه وي اجزء نو نه صحیح کیږي تاکید د دې په کل او اجمع سره او واجب دي چې وي دا اجزاء په |
| بِحَيْثُ يَصِحُّ اِفْتِرَاقُهَا حِسًّا كَاَجْزَاءِ الْقَوْمِ اَوْ حُكْماً كَاَجْزَاءِ الْعَبْدِ لِيَكُوْنَ |
| داسې شان سره چې صحیح وي افتراق د دې حساً لکه اجزاء د قوم او یا حکماً لکه اجزاء د عبد د دې د پاره چې وي |
| فِي التَّاكِيْدِ بِكُلٍّ وَ اَجْمَعَ فَائِدَةٌ مِثْلُ اَكْرَمْتُ الْقَوْمَ كُلَّهُمْ وَاشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ كُلَّهٗ فَاِنَّ الْعَبْدَ قَدْ يَتَجَزَّأُ فِي |
| په تاکید کې په کل او جمع سره فائده لکه اکرمت القوم کلهم او اشتریت العبد کله ځکه چې عبد کله تقسیمیږي په |
| الْاِشْتِرَاءِ فَيَصِحُّ تَاكِيْدُهٗ بِكُلٍّ لِيُفِيْدَ الشُّمُوْلَ بِخِلَافِ جَاءَ زَيْدٌ كُلُّهٗ |
| اشتراء کې نو صحیح کیږي تاکید د دې په کل سره د دې د پاره چې فائده وکړي د شمول په خلاف د جاء زید کله د |
| لِعَدَمِ صِحَّةِ اِفْتِرَاقِ اَجْزَائِهٖ لَا حِسًّا وَ لَا حُكْماً فِيْ حُكْمِ الْمَجِيْءِ. |
| وجې د عدم صحت د افتراق د اجزاو د دې، نه حساً او نه حکماً په حکم د راتلو کې |

**خلاصه د متن**: صاحب د کافیه یوه قاعده بیانوي چې حاصل یې دا دې چې لفظ د کل او اجمع سره د داسې څیز تاکید کولې شي په کوم کې چې دوه (۲) شرطونه موندلې شي (۱) خاوند د اجزاو وي (۲) او اجزاء هم داسې وي چې د چا افتراق حساً یا حکماً صحیح وي د حساً مثال لکه اکرمت القوم کلهم د حکماً مثال لکه و اشتریت العبد کله

**اغراض د جامي**: مفرداً کان او جمعاً: په دې عبارت کې شارح یو وهم دفع کوي

**وهم** : وهم دادي چې شايد د ذواجزاء نه مراد د نرد وي. ځکه چې هغه اصل دي نو دا وهم يې لرې کړو چې په ذواجزاء کې تعميم دي برابره خبره ده که مفرد وي اوکه جمع .

اذالكلية : په دې عبارت کې شارح داول شرط وجه بيان کړې ده چې د **ذوا اجزاء** شرط ځکه ولږولې شو چې د **کل** کليت او د **اجمع** اجتمع دا په ذواجزاء کې متحقق کيدې شي

ولا حاجة: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : مصنف ته په کار وو چې داجزاء سره يې د افرادو ذکر هم کړې وي اودايې ويلي وې ځکه چې لفظ د کل اواجمع سره د انسان اودرجل نه کيد هم کيږي

**جواب** : داجزاء دذکر کولو نه پس د افرادو دکر کولو ته ضرورت نشته ځکه چې ذواجزاء وافراد نه هم شامل دي ځکه چې ترڅوپورې دکلي افراد په حيثيت د **مجموع من حيث المجموع** سره ملحوظ نه وي اوددې افراد داجزاو په صورت کې اختيار نه کړې شي نو ترهغه وخته پورې ددې تاکيد په لفظ دکل اود اجمع سره نه صحيح کيږي .

ويجب ان تكون الخ : په دې عبارت سره شارح ددويم شرط وضاحت اوددې وجه بيانوي چې حاصل يې دادې چې د کل او اجمع سره د ذواجزاء اود ذوابعاضو تاکيد کولې شي ليکن دا واجب اوضروري ده چې هغه اجزاء داسې وي چې ددې افتراق په حسي طور سره اويا په حکمي طور سره صحيح وي .

ليکون : په دې عبارت سره شارح ددويم شرط وضاحت اوددې وجه بيانوي چې دويم شرط يې ددوجې نه ولږول ددې دپاره چې لفظ دکل اواجمع سره دتاکيد څه فائده حاصله شي .

اکرمت القوم کلهم : دا د هغه مؤکد مثال دي چې ددې اجزاو افتراق حسا صحيح دي، ځکه چې د قوم افراد زيد عمرو بکر وغيره دي او ددې افتراق حسا صحيح دي

اشتريت العبد : کله دا دهغه مؤکد مثال دي چې د هغې داجزاو افتراق حکماً صحيح وي. ځکه چې ممکن ده چې د يو سړي د غلام يوه حصه واخستې شي او يوه حصه يې پاتې شي. نو د شراء په اعتبار سره حکما دغلام کې حصې او اجزاء کيدې شي او جاءني زيد کله ويل صحيح نه دي ځکه چې د زيد د اجزاو افتراق نه حساً صحيح دي او نه حکماً

## د ضمير مرفوع متصل تاكيد:

| |
|---|
| وَ إِذَا أُكِّدَ الضَّمِيْرُ الْمَرْفُوْعِ الْمُتَّصِلَ بَارِزاً كَانَ اَوْ مُسْتَكِناً بِالنَّفْسِ وَ الْعَيْنِ أَيْ إِذَا أُرِيْدَ |
| اوكله چې مؤكد كړې شي ضمير مرفوع متصل كه بارز وي اوكه مستتر په نفس او عين سره يعني كله چې اراده |
| تَاكِيْدُهُ بِهِمَا أُكِّدَ ذٰلِكَ الضَّمِيْرُ اَوَّلاً بِمُنْفَصِلٍ ثُمَّ بِالنَّفْسِ وَ الْعَيْنِ مِثْلُ |
| وكړې شي د تاكيد په دې دواړو سره نو مؤكد كولې به شي دا ضمير اول په منفصل سره بيا په نفس او عين سره لكه |
| ضَرَبْتَ اَنْتَ نَفْسُكَ فَنَفْسُكَ تَاكِيْدٌ لِتَاءِ الضَّمِيْرِ بَعْدَ تَاكِيْدِهٖ بِمُنْفَصِلٍ هُوَ اَنْتَ |
| ضربت انت نفسک نو نفسک تاكيد دې د پاره د تاء ضمير پس د تاكيد د دې نه په منفصل سره چې هغه انت دې |
| إِذْ لَوْ لَا ذٰلِكَ لَالْتَبَسَ التَّاكِيْدُ بِالْفَاعِلِ إِذَا وَقَعَ تَاكِيْداً لِلْمُسْتَكِنِ نَحْوُ زَيْدٌ |
| ځكه كه چيرته دا نه وې نو ملتبس به وې تاكيد په فاعل سره چې كله واقع شي تاكيد ضمير مستتر لكه زيد |
| اَكْرَمَنِيْ هُوَ نَفْسُهُ فَلَوْ لَمْ يُؤَكِّدِ الضَّمِيْرُ الْمُسْتَكِنُ فِيْ اَكْرَمَنِيْ بِقَوْلِهٖ هُوَ وَ يُقَالُ زَيْدٌ |
| اكرمني هو نفسه نو كه چيرته مؤكد نه شي په ضمير مستتر سره په اكرمني كې په دې قول هو سره او ويل شي زيد |
| اَكْرَمَنِيْ نَفْسُهُ لَالْتَبَسَ نَفْسَهُ الَّذِيْ هُوَ التَّاكِيْدُ بِالْفَاعِلِ وَ لَمَّا وَقَعَ الْاِلْتِبَاسُ فِيْ |
| اكرمني نفسه نو ملتبس به شي په هغه نفسه سره چې هغه مؤكد وي په فاعل سره نو هر كله چې واقع شو التباس په |
| هٰذِهِ الصُّوْرَةِ أُجْرِىَ بَقِيَّةُ الْبَابِ عَلَيْهَا. |
| دې صورت كې نو جاري شو باقي باب په دې باندې |

**خلاصه د متن**: صاحب كافيه په دې عبارت كې د تاكيد په باره كې يوه قاعده ذكر كوي چې كله چې لفظ د نفس او د عين سره د ضمير مرفوع متصل تاكيد اراده وشي. نو اول د ضمير مرفوع منفصل سره د ضمير مرفوع متصل تاكيد راوړل ضروري دي. بيا لفظ د نفس او د عين سره تاكيد راوړې شي لكه ضربت انت نفسك

**اغراض د جامي**: بارزا كان او مستترا: په دې عبارت سره شارح يو وهم لرې كوي

**وهم**: وهم دا دې چې شايد د مرفوع متصل نه مراد ضمير د مرفوع متصل بارز وي ځكه چې مصنف هم د دې مثال [illegible] كوي [illegible] وهم لرې كړو چې په مرفوع متصل كې تعميم دي برابره خبره ده كه [illegible] ي او كه مستتر وي

اى اذا اريد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي

**سوال**: په متن كې و اذا اكد الضمير بالنفس والعين الخ شرط دي او اكد بمنفصل الخ جزاء د [illegible]

اصل دادي چې شرط مقدم وي په جزاء باندې او دلته جزاء مخکې ده په شرط باندې ځکه چې تاکید بالنفس والعین کوم چې شرط دي مؤخر او وروستو دي او تاکید بالمنفصل کوم چې جزاء ده، هغه مقدم او مخکې دي، نو داد اصل اوقاعدې خلاف دي ؟

**جواب** : په اولنې اذا اکد سره مراد اراده دتاکید ده یعنې کله چې لفظ دنفس او دعین سره د ضمیر مرفوع متصل دتاکید اراده وشي، نو په نفس او عین سره دتاکید اراده یقیناً مقدم وي په ارادې دتاکید بالمنفصل باندې . نو لهذا څه اشکال نشته دي

**فلنفسك** : په دې عبارت سره شارح مثال په ممثل له باندې تطبیق کوي په دې مثال کې نفسك دا تاء ضمیر مرفوع متصل تاکید دي ددې وجې نه اولنې ضمیر مرفوع منفصل یعنې په انت سره ددې تاکید راوړې شو بیا په لفظ د نفس سره

**اذلولا** : په دې عبارت کې شارح د ذکر شوي شرط وجه بیانوي . چې دا شرط یې ددې دپاره ولږولو چې که داولنې ضمیر په مرفوع متصل سره تاکید ونه شي، نو په بعضو صورتونو کې د تاکید دفاعل سره التباس لازمیږي، مثلاً کله په لفظ د نفس او د عین سره دضمیر مرفوع مستتر تاکید وشي لکه زید اکرمني هو نفسه. اوس که ددې هو ضمیر سره تاکید ونه شي او داسې وویلې شي چې زید اکرمني نفسه نو معلوم به نه شي چې نفسه د اکرم فاعل دي یا ضمیر مستتر د فا عل تاکید دي .؛

نو چونکې په دې صورت کې التباس لازم راځي نو په باقي صورتونو کې په کومو کې چې التباس لازم نه راځي په دې باندې قیاس کړی شي، ددې دپاره چې د ټول باب حکم یو شي.

## په ضمیر مرفوع متصل کې دقیوداتو فوائد :

| وَ اِنَّمَا قَيَّدَ الضَّمِيْرَ بِالْمَرْفُوْعِ لِجَوَازِ تَاكِيْدِ الضَّمِيْرِ الْمَنْصُوْبِ وَالْمَجْرُوْرِ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنِ |
|---|
| اوبه تحقیق سره مقید یې کړو ضمیرپه مرفوع سره دپاره دجواز دتاکید دضمیر منصوب او د مجرورپه نفس او عین |
| بِلَا تَاكِيْدِهِمَا بِالْمُنْفَصِلِ نَحْوُ ضَرَبْتُكَ نَفْسَكَ وَ مَرَرْتُ بِكَ نَفْسَكَ لِعَدَمِ اللَّبْسِ وَ |
| سره بې دتاکید ددې دواړو نه په منفصل سره لکه ضربتک نفسک اومررت بک نفسک دوجې دعدم التباس نه اوپه |
| بِالْمُتَّصِلِ لِجَوَازِ تَاكِيْدِ الْمَرْفُوْعِ الْمُنْفَصِلِ بِالنَّفْسِ وَ الْعَيْنِ بِلَا تَاكِيْدِهٖ بِمُنْفَصِلٍ نَحْوُ اَنْتَ |
| متصل سره دوجې دجواز دتاکید دمرفوع منفصل په نفس اوعین سره بې د تاکید ددې نه په منفصل سره لکه انت |

| نَفْسُکَ قَائِمٌ لِعَدَمِ اللَّبْسِ وَ اِنَّمَا قَيَّدَ بِالنَّفْسِ وَ الْعَيْنِ لِجَوَازِ تَاکِيْدِ |
|---|
| نفسک قائم دوجې دعدم التباس نه اوپه تحقيق سره مقيد يې کړويه نفس اوعين سره دوجې دجوازدتاکيدد |
| الْمَرْفُوْعِ الْمُتَّصِلِ بِکُلٍّ وَ اَجْمَعِيْنَ بِلَاتَاکِيْدٍ نَحْوُ الْقَوْمُ جَاءُوْنِيْ کُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ لِعَدَمِ الْتِبَاسِ التَّاکِيْدِ |
| مرفوع متصل په کل او اجمعين سره بې دتاکيدنه لکه القوم جاءوني کلهم اجمعون دوجې دعدم التباس دتاکيد په |
| بِالْفَاعِلِ لِاَنَّ کُلًّا وَ اَجْمَعِيْنَ يَلِيَانِ الْعَوَامِلَ قَلِيْلاً بِخِلَافِ النَّفْسِ وَ الْعَيْنِ فَاِنَّهُمَا يَلِيَانِهَا |
| فاعل سره ځکه دکلا او اجمعين اتصال دعواملو سره کم دي په خلاف دنفس او عين ځکه دا دواړه متصل دي |
| کَثِيْراً. |
| دعواملوسره ډير. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره په ضمير مرفوع متصل کې دقيوداتو فوائد بيانوي ، چې تفصيل يې لاندې په شرحه کې ذکر دي

**اغراض دجامي** : وانما قيد الضمير: په دې عبارت کې شارح د قيودو فوائد بيانوي، د مرفوع قيد يې ځکه ولږولوچې په لفظ د نفس او دعين سره ضمير منصوب متصل او دمجرور متصل تاکيد ، دضمير منفصل سره دتاکيد نه په غير جائز دي لکه ضربتك نفسك او مررت بك نفسك، ځکه چې په دې صورت کې د تاکيد دفاعل سره التباس لازم نه دي او د متصل قيد يې ځکه ولږولو چې دضمير مرفوع منفصل تاکيد په لفظ دنفس او دعين سره تاکيد بالمنفصل نه په غير جائز دي لکه انت نفسك قائم، ځکه چې په دې صورت کې دتاکيد دفاعل سره التباس لازم نه راځي، او د لفظ د نفس او عين قيد يې ځکه ولږولو چې په لفظ د کل او اجمعون سره ضمير مرفوع متصل تاکيد بالمنفصل دتاکيد بالمنفصل نه په غير جائز دي لکه القوم جاءوني کلهم اجمعون ځکه چې په دې صورتونو کې دتاکيد دفاعل سره التباس لازم نه راځي.

لان کلا: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** :کله چې لفظ د کل او د اجمع سره دضمير مرفوع متصل تاکيد راوړې شي. نو بيا هم په بعضې صورتونو کې دفاعل سره التباس راځي لکه العبد اشترى کله په دې کې نه ده معلومه چې کله دانائب فاعل دي، يا دضمير نائب فاعل تاکيد دي، کله چې په دې صورت کې التباس لازم شو ، نو بعضې نور صورتونه په دې قياس کولې شي او لفظ دکل او اجمعون سره دضمير مرفوع متصل تاکيد راوړلو دپاره دتاکيد بالمنفصل شرط کول په کار وو ؟

**جواب**: لفظ د كل او اجمعون دعامل سره اتصال او قرب لرې دي او عدم اتصال ډير دي او التباس داتصال او قرب په صورت کې لازم راځي، په خلاف د نفس اود عين ددې اتصال او قرب دعامل سره ډير دي او عدم اتصال لږ دي . لهذا قليل په كثير باندې قياس كولې نه شي

## اكتع او ددې داخواتو ذكر :

| |
|---|
| وَ اَكْتَعُ وَ اَخَوَاهُ يَعْنِيْ اَبْتَعُ وَ اَبْصَعُ اَتْبَاعٌ بِفَتْحِ الْهَمْزَةِ عَلٰى مَا هُوَ الْمَشْهُوْرُ لِاَجْمَعَ |
| او اكتع او اخوات ددې يعني ابتع او ابصع تابع دي په فتحې دهمزې سره بناپه هغه څه چې مشهور دي د اجمع |
| يَعْنِيْ تُسْتَعْمَلُ هٰذِهِ الْكَلِمَاتُ الثَّلٰثُ بِتَبْعِيَّتِهٖ لَا بِالْاِصَالَةِ لِكَوْنِهٖ اَدَلَّ مِنْهَا عَلَى الْمَقْصُوْدِ |
| يعني مستعمليږي دغه دري كلمات نه بالاصالة دوجې د كيدو ددې نه زيات دلالت كوونكي ددې نه په مقصود |
| وَ هُوَ الْجَمْعِيَّةُ فَلَا يَتَقَدَّمُ يَعْنِيْ اَكْتَعَ وَ اَخَوَيْهِ عَلَيْهِ اَيْ عَلٰى اَجْمَعَ نَوِ |
| باندې او هغه جمعيت دي نو مقدم به نه وي يعني اكتع او اخوات ددې په دي باندې يعني په اجمع باندې كه |
| اجْتَمَعَتْ مَعَهُ وَ ذِكْرُهَا اَيْ ذِكْرُ اَكْتَعَ مَعَ اَخَوَيْهِ دُوْنَهُ اَيْ دُوْنَ ذِكْرِ اَجْمَعَ ضَعِيْفٌ |
| چيرته جمع شي ددې سره او ذكر ددې يعني ذكر د اكتع سره د اخواتو په غير ددې نه په غير د ذكر د اجمع نه ضعيف |
| لِعَدَمِ ظُهُوْرِ دَلَالَتِهَا عَلٰى مَعْنَى الْجَمْعِيَّةِ وَ لِلُزُوْمِ ذِكْرِ مَا مِنْ شَانِهِ التَّبْعِيَّةُ |
| دي دوجې د عدم ظهور د دلالت نه په معنى د جمعيت باندې او دوجې د لزوم د ذكر د هغه څه چې شان ددې تابع |
| بِـــدُوْنِ الْاَصْــلِ. |
| كيدل دي په غير د اصل نه |

**خلاصه دمتن**: صاحب د كافيه وايي چې اكتع ابتع ابصع داد اجمع تابع دي لهذا داد اجمع نه هم نه شي مقدم كيدې او داد اجمع نه په غير ذكر كول هم ضعيف دي

**اغراض دجامي**: يعني ابتع: په دې عبارت کې شارح د اخواه د مصداق تعيين كوي چې ددې مصداق ابتع او ابصع دي.

**بفتح الهمزة**: په دې عبارت سره شارح ديو وهم ازاله كوي.

**وهم**: وهم داوو چې شايد اتباع په كسرې د همزې سره وي نو په دې صورت کې به باب افعال مصدر وي او ددې حمل په اكتع او اخواه باندې صحيح نه دي ځكه چې دا به د مفرد حمل په جمع باندې لازم راشي نو شارح په او بفتح الهمزة ويلو سره دا وهم ختم كړو چې اتباع په فتحې د همزې سره دي او دا جمع ده لهذا حمل د جمع په جمع باندې راغلو او دا صحيح او جائز دي

علی ما هو المشهور: د جامي دشارح په دې عبارت باندې مولانا وسیم کل باسولي اعتراض کړی دي

**اعتراض**: د شارح د عبارت نه معلومېږي چې په غیر متبوع کې به دا په کسرې دهمزې سره ویل جائز وي حالانکه دا خو بالکل جائز نه دي ځکه چې په دې صورت کې دمفرد حمل په جمع باندې لازم راځي اودا جائز نه دي

**جواب**: د علی ما هو المشهور تعلق د بفتح الهمزة سره نه دي بلکې ددې تعلق د اتباع سره دي یعني مشهوره داده چې اکتع ابتع ابصع داد اجمع تابع دي او غیر مشهورقول دادې چې داد جمع نه په غیر هم په دې سره تاکید راوړل جائز دي

یعني تستعمل: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: اجمع په خپله دموکد دپاره تابع وي نو اکتع ابتع وغیره به څنګه ددې تابع جوړېږي دا خو به د تابع تابع کېدل لازم راشي؟

**جواب**: دلته دتابع نه اصطلاحي تابع مراد نه ده بلکې دلته داتباع نه مراد استعمال دي یعني د اکتع وغیره استعمال داجمع تابع وي چې دا کلمات ددې تابع شي او استعمالیږي، بالاصالة نه استعمالیږي

لکونه: په دې عبارت کې شارح د تابع کېدو وجه بیانوي. چې داجمع تابع ځکه دي چې معنی مقصودي په جمعیت باندې داجمع دلالت په نسبت ددغه کلماتو زیات واضح دي، یا ددې وجې نه چې ددې کلماتو په حالت دانفرادي کې هېڅ معنی نشته، کله چې داد اجمع سره استعمال شي نوپه دې صورت کې ددې معنی اجمع والاوي یا ددې وجې نه چې دا کلمات ثلاثه خپل اصلي معاني نه معنی تاکیدي طرف ته منقول وي، ځکه چې اجمع [illegible] باندې موجود دي ځکه چې هغه په مقصود باندې دلالت کوي

فلا یتقدم: په دې عبارت کې شارح په ماقبل باندې دتفریع بیان کوي چې اکتع او ددې نظائر د اجمع تابع ځکه دي چې دا په اجمع باندې نه مقدم کیږي او د اجمع نه په غیر دا ذکر کول هم ضعیف دي

اعني ای [illegible] الخ: په [illegible] کې شارح د فلا یتقدم دضمیر مرجع متعین کړه چې د فلا یتقدم

دضمير مرجع اكتع ده.

على اجمع: په دې عبارت کې شارح د عليه دضمير مرجع متعين كړي ده چې د عليه دضمير مرجع اجمع ده

لواجتمعت: په دې عبارت کې شارح دعدم تقديم دپاره ديو قيد بيان كوي چې اكتع ابتع ابصع داد اجمع نه ، نه شي مقدم كيدې كه چېرته په دې سره جمع وي

اي ذكر اكتع: په دې عبارت کې شارح د هاء دضمير مرجع متعين كړه د هاء دضمير مرجع اكتع دي.

دون ذكر اجمع: په دې عبارت کې شارح د دونه دضمير مرجع متعين كړي ده.

لعدم ظهوره: په دې عبارت کې شارح دضعف وجه بيانوي نوشارح ددې دوه (۲) وجهې ذكر كړې دي.

**اوله وجه**: دا په غير د اجمع نه ذكر كول ځكه ضعيف دي چې ددې دلالت معنى په جمعيت باندې واضحه نه ده.

**دويمه وجه**: په دې صورت کې هغه څيز چې د هغې دشان تابع كيدل دي، دا به د اصل نه په غير ذكر كول لازم راځي كوم چې مناسب نه دي.

## څلورم قسم: د بدل تعريف:

| اَلْبَدَلُ تَابِعٌ مَقْصُوْدٌ بِمَا نُسِبَ اِلَى الْمَتْبُوْعِ أَيْ تُقْصَدُ النِّسْبَةُ إِلَيْهِ |
|---|
| بدل هغه تابع دی چې مقصود هغه څه سره چې نسبت یې شوې وي متبوع طرف ته يعني مقصود وي نسبت دې |
| بِنِسْبَةِ مَا نُسِبَ إِلَى الْمَتْبُوْعِ دُوْنَهُ أَيْ دُوْنَ الْمَتْبُوْعِ أَيْ لَا تَكُوْنُ النِّسْبَةُ إِلَى الْمَتْبُوْعِ |
| طرف ته په هغه نسبت سره چې منسوب متبوع طرف ته نه هغه يعني نه متبوع يعني نه وي نسبت متبوع طرف |
| مَقْصُوْدَةً اِبْتِدَاءً بِنِسْبَةِ مَا نُسِبَ إِلَيْهِ بَلْ تَكُوْنُ النِّسْبَةُ إِلَيْهِ تَوْطِيَةً وَ تَمْهِيْداً |
| ته مقصود ابتداءً په هغه نسبت سره چې منسوب وي دې طرف ته بلکې وي نسبت دې طرف ته تر طيه او تمهيد د |
| لِنِسْبَتِهِ إِلَى التَّابِعِ سَوَاءٌ كَانَ مَا نُسِبَ إِلَيْهِ مُسْنَداً أَوْ غَيْرَهُ |
| پاره دنسبت ددې تابع طرف ته برابره خبره ده كه وي هغه څه چې نسبت شوې وي دې طرف ته دمسند او يا غير |
| مِثْلُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ أَخُوْكَ وَ ضَرَبْتُ زَيْداً أَخَاكَ. |
| مسند لكه جاءني زيد اخوك او ضربت زيدا اخاك |

**خلاصه دمتن** : ددې ځاې نه صاحب دکافيې دنوابعو دڅلورم قسم دبدل تعريف کوي، بدل هغه تابع دي کوم چې ددې نسبت نه مقصود وي کوم چې دې متبوع طرف ته شوې وي ليکن ددې متبوع مقصود نه وي

**اغراض دجامي** : ای تقصد: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د مقصود ضمير راجع وي تابع طرف ته او دتابع ضمير راجع دي بدل طرف ته، نو ددې معنى داشوه چې بدل داسې تابع دي کوم چې هغه بدل مقصود وي، نو معلومه شوه چې نفس بدل مقصود دي، حالانکه نفس بدل مقصود نه دي، بلکې مقصود بدل دي لکه په جاءني زيد اخوك کې نفس اخوك مقصود نه دي بلکې نسبت د مجيئت مقصود دي.

**جواب** : د مقصود اسناد ضمير بدل طرف ته مجازاً دې په حقيقت کې دا مسند دې نسبت طرف ته ، يا په بل عبارت سره مقصودٌ د تابعٌ دپاره نعت بحال الموصوف نه دي، بلکې نعت بحال متعلق الموصوف دي نو مقصودٌ په خپله دتابع ( بدل ) نه حال نه دي، بلکې ددې د متعلق نسبت حال بيانوي نو حاصل دعبارت دا شو چې : مقصودٌ نسبته، بنسبة ما نسب الى المتبوع.

ای دون المتبوع: په دې عبارت کې شارح بيان دمرجع کوي.

لا تکون: په دې عبارت کې شارح دمعنى دحاصل بيان کوي، چې د معنى حاصل دادې چې د ما نسب الى المتبوع نسبت نه نسبت الى المتبوع ابتداء مقصود نه وي بلکې نسبت الى التابع مقصود وي او نسبت الى المتبوع دتمهيد په شان وي.

سواء: په دې عبارت کې شارح په ما نسب الى المتبوع کې د تعميم بيان کوي چې ما نسب الى المتبوع مسند وي اويا غير مسند. د مسند مثال لکه جاءني زيد اخوك په دې کې زيد متبوع دي او جاء دې طرف ته منسوب دي چې هغه مسند دي ، دغير مسند مثال لکه ضربت زيدا اخاك په دې کې زيد متبوع دي چې هغه غير مسند دي.

## د تعريف د قيودو فوائد:

| وَ احْتَرَزَ بِقَوْلِهٖ مَقْصُوْدٌ بِمَا نُسِبَ إِلَى الْمَتْبُوْعِ عَنِ النَّعْتِ وَ التَّاكِيْدِ وَ عَطْفُ الْبَيَانِ لِاَنَّهَا لَيْسَتْ |
|---|
| اواحترازيې وکړو په دې قول دمصنف مقصود بما نسب إلى المتبوع سره د نعت او تاکيد او عطف بيان نه ځکه دا نه |

مَقْصُوْدَةً بِمَا نُسِبَ إِلَيْهِ بَلِ الْمَتْبُوْعُ مَقْصُوْدٌ بِهٖ وَ بِقَوْلِهٖ

دي مقصود هغه طرف ته چې نسبت يې شوې وي دې طرف ته بلکې متبوع مقصود ده په دې سره او په دې قول

دُوْنَهٗ اِحْتِرَازٌ عَنِ الْعَطْفِ بِحَرْفٍ فَاِنَّ الْمَتْبُوْعَ فِيْهِ مَقْصُوْدٌ بِمَا نُسِبَ

دونه سره احترازدي دعطف بحرف نه خکه متبوع په دې کې مقصود دي هغه طرف ته چې نسبت يې شوې وي

إِلَيْهِ مَعَ التَّابِعِ وَلَا يَصْدُقُ الْحَدُّ عَلَى الْمَعْطُوْفِ بِبَلْ لِاَنَّ مَتْبُوْعَهٗ مَقْصُوْدٌ اِبْتِدَاءً

دې طرف ته سره د تابع او نه صادقيږي تعريف په معطوف په بَلْ باندې خکه متبوع د دې مقصود دي ابتداء

ثُمَّ بَدَالَهٗ فَاَعْرَضَ عَنْهُ وَقَصَدَ الْمَعْطُوْفَ فَكِلَاهُمَا مَقْصُوْدَانِ بِهٰذَا الْمَعْنٰى فَاِنْ قِيْلَ هٰذَا

نو بيا ظاهرشو متکلم ته د پاره او قصد يې وکړود معطوف نو دا دواړه مقصود دي په دې معنى سره که چا ووېل چې دا

الْحَدُّ لَا يَتَنَاوَلُ الْبَدَلُ الَّذِيْ بَعْدَ اِلَّا مِثْلُ مَا قَامَ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدٌ فَاِنَّ زَيْداً بَدَلٌ مِنْ اَحَدٍ وَ لَيْسَتْ نِسْبَةُ

تعريف نه شامليږي هغه بدل ته چې پس د الانه وي لکه ماقام احد الازيد خکه زيد ابدل دې د احد نه او نه دې نسبت

مَا نُسِبَ إِلَيْهِ مِنْ عَدَمِ الْقِيَامِ مَقْصُوْدَةً بِالنِّسْبَةِ اِلٰى زَيْدٍ بَلِ النِّسْبَةِ الْمَقْصُوْدَةُ

دهغه چې منسوب شوې وي دې طرف ته دعدم قيام نه مقصود په نسبت سره زيد ته بلکې نسبت مقصود دي په

بِنِسْبَةِ مَا نُسِبَ اِلٰى اَحَدٍ نِسْبَةُ الْقِيَامِ اِلٰى زَيْدٍ قُلْنَا مَا نُسِبَ اِلَى الْمَتْبُوْعِ

هغه نسبت سره چې منسوب وي يو د نسبت د قيام نه زيد ته مونږ وايو چې هغه چې منسوب شوې وي متبوع ته

هٰهُنَا هُوَ الْقِيَامُ فَاِنَّهٗ نُسِبَ إِلَيْهِ نَفْياً وَ نِسْبَةُ الْقِيَامِ بِعَيْنِهٖ اِلَى التَّابِعِ مَقْصُوْدَةٌ وَ لٰكِنْ

دلته هغه قيام دي خکه چې نسبت شوې دې طرف ته نفيا او نسبت د قيام بعينه تابع ته مقصود دي خو ليکن

اِثْبَاتاً فَيَصْدُقُ عَلٰى زَيْدٍ اَنَّهٗ تَابِعٌ مَقْصُوْدٌ نِسْبَتُهٗ بِنِسْبَتِهٖ مَا نُسِبَ

اثباتا نو صادقيږي په زيد باندې چې د تابع دي او مقصود دې نسبت د دې هغه نسبت چې منسوب شوې وي

اِلَى الْمَتْبُوْعِ فَاِنَّ النِّسْبَةَ الْمَأْخُوْذَةَ فِي الْحَدِّ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ بِطَرِيْقِ الْاِثْبَاتِ اَوِ

متبوع طرف ته خکه هغه نسبت چې ماخوذ دي په تعريف کې د اعام دي د دې نه چې وي په طريقې د اثبات او يا

النَّفْيِ وَ يُمْكِنُ اَنْ يُّقْصَدَ بِنِسْبَتِهٖ اِلٰى شَيْءٍ نَفْياً نِسْبَتُهٗ اِلٰى شَيْءٍ آخَرَ اِثْبَاتاً وَ يَكُوْنُ الْاَوَّلُ تَوْطِيَةً

نفي سره او ممکن ده چې وي مقصود نسبت د دې يو خيز طرف ته نفيا او نسبت بل خيز ته اثبات او وي توطيه

لِلثَّانِيْ.

د پاره د دويم.

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره په تعريف کې د قيودا تو فوائد بيانوي چې ب قي تفصيل يې لاندې په شرحه کې ذکر دي.

**اغراض دجامي** : واحترز: په دې عبارت کې شارح د قیودو فوائد بیانوي چې په تعریف کې تابع جنس دی ټولو توابعو ته شامل دی

ما نسب الی المتبوع: دا اول فصل دی ددې نه نعت ، تاکید او عطف بیان خارج شو. ځکه چې دا مقصود بالنسبة نه وي بلکې ددې متبوعات مقصود وي.

دونه: دا دوهم فصل دی په دې سره د عطف بالحرف نه احتراز وشو ځکه چې په دې کې تابع او متبوع دواړه مقصود وي. نه صرف تابع

ولا یصدق الحد . په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د بدل تعریف مانع نه دی ځکه چې دا په معطوف ببل ( دا هغه معطوف دی چې په بل سره وي ) باندې صادق راځي. ځکه چې معطوف ببل په خپله مقصود بالنسبة وي ددې متبوع مقصود نه وي مثال لکه جاءنی زید بل عمرو په دې کې مجیئت دعمرو مقصود دی مجیئت د زید مقصود نه دی. ځکه چې ددې نه متکلم اعراض کړی دی ؟

**جواب** : مونږ نه منو چې معطوف ببل کې متبوع مقصود بالنسبة نه وي، بلکې ابتدأ هم متبوع مقصود بالنسبة وي، بیا د متکلم رای بدله شي او هغه د متبوع نه اعراض کوي او د تابع قصد کوي په معطوف ببل او ددې متبوع دواړه مقصود بالنسبة وي، په خلاف د بدل چې په دې کې متبوع ابتدا ً . مقصود بالنسبة نه وي بلکې د ابتداء نه فقط تابع دبدل مقصود وي او هم دې اشکال جواب طرف ته شارح دجامي دبدل دتعریف په شروع کې په دې عبارت اشاره کړې وه چې ای لا تکون النسبة الی المتبوع مقصودة ابتداء بنسبة ما نسب الیه...الخ.

فان قیل: په دې عبارت کې شارح یو اعتراض رانقل کوي اوپه قلنا سره ددې اعتراض جواب ورکوي :

**اعتراض** : د بدل تعریف جامع نه دی داپه هغه بدل صادق نه راځي کوم چې د الا نه پس واقع وي لکه ما قام احد الازید په دې کې زید داحد نه بدل دی. لیکن په دې باندې تعریف صادق نه راځي ځکه چې په دې کې ما نسب الی المتبوع نسبت نه نسبت الی التابع مقصود نه دی، ځکه چې ما نسب الی المتبوع عدم قیام دی او ما نسب الی التابع قیام دی ځکه چې د الا د وجې نه نفي ماته شوه .

**جواب**: تعریف جامع دي ځکه چې ما نسب الی المتبوع هم قیام دي فرق صرف دومره دي چې متبوع طرف ته د قیام نسبت سلب دي او دتابع دطرف نه د قیام نسبت ایجاباً دي او دا صحیح ده ځکه چې په تعریف کې په نسبت کې تعمیم دي برابره خبره ده که ایجاباً وي او که سلباً وي.

ویمکن: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: کله چې نسبت الی المتبوع سلبیه دي او نسبت الی التابع ایجابیه دي، نو اولنې نسبت سلبیه ددویم نسبت ایجابیه دپاره څنګه توطیه او تمهید جوړیږي په دې کې توطیه د نقیض دپاره دنقیض لازم راځي.

**جواب**: نسبت سلبیه، دنسبت ایجابیه دپاره توطیه او تمهید جوړیدل ممکن دي ځکه چې دتوطيې او تمهید نه مقصود دغافل رابیدارول دي اودامقصد په نسبت سلبیه او نسبت ثبوتیه دواړو سره حاصلیږي نو داسې ممکن ده چې نسبت سلبیه توطیه او تمهید وي دنسبت ثبوتیه ایجابیه دپاره.

## دبدل اقسام:

| |
|---|
| وَ هُوَ أَيِ الْبَدَلُ اَنْوَاعٌ اَرْبَعَةٌ بَدَلُ الْكُلِّ أَيْ بَدَلٌ هُوَ كُلُّ الْمُبْدَلِ مِنْهُ وَ بَدَلُ الْبَعْضِ أَيْ بَدَلٌ هُوَ |
| اوهغه یعنې بدل په څلور قسمه دي بدل الکل یعنې هغه چې کل وي دمبدل منه اوبدل البعض یعنې بدل د |
| بَعْضُ الْمُبْدَلِ مِنْهُ فَالْاِضَافَةُ فِيهِمَا مِثْلُهَا فِيْ خَاتَمِ فِضَّةٍ وَ بَدَلُ الْاِشْتِمَالِ أَيْ بَدَلٌ |
| مبدل منه بعض وي نو اضافت په دې دواړوکې په شان دخاتم فضة دي او بدل الاشتمال یعنې هغه بدل چې |
| مُسَبَّبٌ غَالِباً عَنْ اِشْتِمَالِ اَحَدِ الْمُبْدَلَيْنِ عَلَى الْآخَرِ اِشْتِمَالَ الْبَدَلِ عَلَى الْمُبْدَلِ مِنْهُ نَحْوُ سُلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهٗ اَوْ |
| مسبب وي غالباً داشتمال دیو دمبدل نه په بل باندې اویاداشتمال دبدل په مبدل منه لکه سُلِبَ زید ثوبه اویا |
| بِالْعَكْسِ نَحْوُ يَسْأَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ وَ بَدَلُ الْغَلَطِ أَيْ بَدَلٌ مُسَبَّبٌ عَنِ الْغَلَطِ |
| بالعکس ددې لکه یسألونک عن الشهر الحرام قتال فیه اوبدل الغلط یعنې هغه بدل چې مسبب وي دغلط نه نو |
| فَالْاِضَافَةُ فِيْ الْآخِيْرَيْنِ مِنْ قَبِيْلِ اِضَافَةِ الْمُسَبَّبِ اِلَى الْمُسَبِّبِ لِاَدْنٰى مُلَابِسَةٍ. |
| اضافت په آخرو دوو کې دقبیلې داضافت دمسبب نه سبب طرف ته دادنی مناسبت دوجې نه |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې صاحب دکافیې د بدل تقسیم بیانوي. چې بدل په څلور قسمه دي (۱) بدل الکل (۲) بدل البعض (۳) بدل الاشتمال (۴) بدل الغلط. دهر یو تعریف سره د مثال سره په لاندې ډول دي

(۱) **بدل الكل**: هغه دي چې د دې مدلول بعينه د مبدل منه مدلول وي.

(۲) **بدل البعض**: هغه دي چې د دې مدلول د مبدل منه د مدلول جزء وي. لکه ضربت زيداً رأسه، په دې کې رأسه بدل البعض دي ځکه دا د زيد د مدلول جزء دي.

(۳) **بدل الاشتمال**: هغه دي چې د بدل او مبدل منه په مينځ کې د کليت او جزئيت نه غير نوره علاقه وي. لکه سلب زيد ثوبه، دلته زيد په ثوب باندې مشتمل دي.

(۴) **بدل الغلط**: هغه دي چې د مبدل منه د غلطۍ نه پس د دغه غلطۍ د ختمولو دپاره د بدل او مبدل منه په مينځ کې د څه علاقې ذکر کولو نه په غير ذکر شي لکه جاءني رجل حمارا په دې کې حمار بدل الغلط دي.

**اغراض دجامي**: اى البدل: په دې عبارت کې شارح بيان د مرجع کوي.

انواع اربعة: په دې عبارت کې شارح بيان د ترکيب کوي چې هو مبتداء دي د دې خبر انواع اربعة محذوف دي.

اى بدل: په دې عبارت کې شارح بيان د اضافت کوي چې په بدل الکل کې اضافت بيانيه دي او که اشاره ده، چې په الکل باندې الف لام د مضاف اليه په عوض کې دى کوم چې مبدل منه دي.

و بدل العبض: په دې ځاې کې شارح د بدل اضافه وکړه او دا يې بيان کړه چې البعض معطوف دي په بدل الکل باندې په تقدير د مضاف سره.

اى بدل هو بعض المبدل منه: په دې عبارت کې شارح دې خبرې طرف ته اشاره کوي چې په بدل البعض کې اضافت بيانيه دي يا اشاره ده، چې په بعض باندې الف لام د مضاف اليه په عوض کې دي کوم چې مبدل منه دي، پس په بدل الکل او په بدل البعض کې اضافت داسې دي لکه په خاتم فضة کې چې اضافت دي يعنې اضافت بيانيه دي.

بدل الاشتمال: په دې عبارت شارح کې د بدل اضافه وکړه او وې ويل چې بدل الاشتمال په تقدير د مضاف سره معطوف دي په بدل الکل باندې.

اى بدل مسبب: په دې عبارت کې شارح د بدل الاشتمال وجه د تسميې بيانوي چې بدل الاشتمال ته بدل الاشتمال ځکه وايي چې د دې سبب اکثر د بدل او مبدل منه نه په يو بل باندې

مشتمل کیدل وي

کله خو بدل په مبدل منه باندې مشتمل وي لکه په سلب زید ثوبه کې ثوبه بدل دي او په زید باندې مشتمل دي کوم چې مبدل منه دي او کله مبدل منه په بدل باندې مشتمل وي لکه **یسئلونك عن الشهر الحرام قتال فیه** په دې کې مبدل منه شهرحرام دي چې مشتمل دي په قتال یعني په بدل باندې

**غالباً:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** . شارح دلته غالباً ولې وویلو ؟

**جواب** : غالباً یې ځکه وویل چې په بدل او مبدل منه کې د اشتمال نه غیر نورې علاقې هم وي البته ډیره علاقه اشتمال وي لکه **اعجبني زید علمه**

**بدل:** په دې عبارت کې شارح بیان دترکیب کوي. چې **الغلط** په تقدیر دمضاف سره معطوف دي په بدل الاشتمال باندې

**ای بدل مسبب:** په دې عبارت کې شارح د بدل الغلط وجه دتسمیې بیانوي. چې بدل الغلط ته بدل الغلط ځکه وایي چې ددې راوړلو سبب غلطي وي.

**فالاضافة في الاخرین:** په دې عبارت سره شارح دابیانوي چې بدل الاشتمال او بدل الغلط کې اضافت دقبیلې داضافت دمسبب نه سبب ته دي دادنی ملابست او مناسبت دوجې نه نو بدل مسبب او الاشتمال او الغلط ددې سبب دي .

## د بدل الکل تعریف :

| |
|---|
| **فَالْاَوَّلُ اَيْ بَدَلُ الْكُلِّ مَدْلُوْلُهُ مَدْلُوْلُ الْاَوَّلِ يَعْنِيْ مُتَّحِدَانِ ذَاتاً لَا اَنْ يَتَّحِدَ مَفْهُوْمَاهُمَا** |
| نواول یعني بدل الکل مدلول ددې مدلول داول دي یعني متحدوي ذاتانه داچې متحدوي مفهوم ددې دوارو |
| **لِيَكُوْنَا مُتَرَادِفَيْنِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ اَخُوْكَ فَزَيْدٌ وَ اَخُوْكَ وَ اِنِ اخْتَلَفَا مَفْهُوْمًا فَهُمَا مُتَّحِدَانِ** |
| ددې دپاره چې شي مترادف لکه جاءني زیداخوک نوزیداواخوک اګرکه مختلف دي مفهومانو دادواړه متحددي |
| **ذَاتاً قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيُّ وَ اَنَا اِلَى الْاٰنِ لَمْ يَظْهَرْ لِيْ فَرْقٌ جَلِيٌّ بَيْنَ بَدَلِ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ وَ** |
| ذاتاوېلي دي شارح رضي چې تراوسه پورې ماته نه دي ظاهرشوي واضح فرق په مینځ دبدل الکل من الکل او |
| **بَيْنَ عَطْفِ الْبَيَانِ بَلْ لَا اَرٰى عَطْفَ الْبَيَانِ اِلَّا بَدَلَ الْكُلِّ وَمَا قَالُوْا مِنْ اَنَّ الْفَرْقَ بَيْنَهُمَا** |
| په مینځ دعطف بیان کې بلکې ماته ځکاري عطف بیان بدل الکل اوهغه چاچې ویلي دي چې فرق په مینځ ددې |

أَنَّ الْبَدَلَ هُوَ الْمَقْصُوْدُ بِالنِّسْبَةِ دُوْنَ مَتْبُوْعِهِ بِخِلَافِ عَطْفِ الْبَيَانِ فَإِنَّهُ بَيَانٌ وَ الْبَيَانُ
دوارو کې داده چې بدل هغه مقصود دی بالنسبة نه منبوع ددی په خلاف د عطف بیان حکه دا بیان دی او بیان
فَرْعُ الْمُبَيَّنِ فَيَكُوْنُ الْمَقْصُوْدُ هُوَ الْأَوَّلَ فَالْجَوَابُ أَنَا لَا نُسَلِّمُ أَنَّ الْمَقْصُوْدَ فِيْ بَدَلِ الْكُلِّ هُوَ الثَّانِيْ
دافرع وي د مبين نو وي به مقصود هغه اول نو جواب دادی چې مونږ نه منو چې مقصود په بدل کل کې هغه دویم
فَقَطْ وَلَا فِيْ سَائِرِ الْبَدَلِ إِلَّا الْغَلَطَ وَ قَالَ بَعْضُ الْمُحَقِّقِيْنَ فِيْ جَوَابِهِ الظَّاهِرُ أَنَّهُمْ لَمْ
دی فقط او نه په ټولو بدلونو کې مګر غلط او ویلي دي بعضې محققینو په جواب ددی کې چې ظاهر دادہ چې نه
يُرِيْدُوْا أَنَّهُ لَيْسَ مَقْصُوْداً بِالنِّسْبَةِ أَصْلاً بَلْ أَرَادُوْا أَنَّهُ لَيْسَ مَقْصُوْداً أَصْلِيّاً
دی اراده کړې نحویانو چې دانه دی مقصود بالنسبة بالکل بلکې اراده کړې یې ده چې دانه دی مقصود اصلي
وَ الْحَاصِلُ أَنَّ مِثْلَ قَوْلِكَ جَاءَنِيْ أَخُوْكَ زَيْدٌ إِنْ قَصَدْتَ فِيْهِ الْإِسْنَادَ إِلَى الْأَوَّلِ وَ جِئْتَ
او حاصل دادی چې په شان د قول ستا چې جاءني اخوک زید که چیرته قصد کړې په دې کې اسناد اول ته او راوړې
بِالثَّانِيْ تَتِمَّةً لَهُ تَوْضِيْحاً فَالثَّانِيْ عَطْفُ بَيَانٍ وَإِنْ قَصَدْتَ فِيْهِ الْإِسْنَادَ إِلَى الثَّانِيْ وَ جِئْتَ
دویم تتمه او توضیح ددې دپاره نو دویم عطف بیان دی اګر که قصد وکړو په دې کې اسناد دویم طرف ته او راوړې
بِالْأَوَّلِ تَوْطِيَةً لَهُ مُبَالِغَةً فِي الْإِسْنَادِ فَالثَّانِيْ بَدَلٌ وَ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ التَّوْضِيْحُ الْحَاصِلُ
اول توطیه ددې دپاره د مبالغې في الاسناد په طور نو دویم بدل دی او په دې وخت کې وي به وضاحت حاصله په
بِهِ مَقْصُوْداً تَبَعاً وَ الْمَقْصُوْدُ إِصَالَةً هُوَ الْإِسْنَادُ إِلَيْهِ بَعْدَ التَّوْطِيَةِ فَالْفَرْقُ ظَاهِرٌ.
دې سره مقصود تبعا او مقصود اصالتا هغه اسناد دی دې طرف ته پس د توطیې نه نو فرق ظاهر دی

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت کې صاحب کافیه د بدل څلورو واړو اقسامو تعریفات و وضاحت کوي. تعریفات خو مونږ مخکې ذکر کړي دي او باقي وضاحت یې په شرحه کې ذکر دي.

**اغراض دجامي:** په دې عبارت کې د بدل څلورو واړو قسمونو تعریفات دي. د ټولو نه اول د بدل الکل تعریف دی. بدل الکل هغه دی چې د هغې مدلول بعینه د مبدل منه مدلول وي

**ای بدل الکل:** په دې عبارت کې شارح د الاول مصداق بیانوي

**یعني متحدان:** په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال:** په جاءني زید اخوک کې اخوک بدل الکل دی حالانکه د زید مدلول حیوان ناطق مع هذا التشخص دي او اخوک مدلول ذات من له الاخوة دي. نو د دوېم مدلول خو بعینه د اول مدلول نه شو؟

**جواب**: مراد دادې چې بدل او مبدل منه دذات په اعتبار سره متحد دي دا مراد نه دي چې دا د مفهوم په لحاظ سره متحد دي. ددې دپاره چې دواړه مترادف دي. لکه **جاءني زيد اخوك** په دې کې زيد اګر چه دمفهوم په اعتبار سره متحد نه دي ليکن د ذات په اعتبار سره متحد دي

**قال الشارح الرضي**: په دې عبارت کې شارح بيان داختلاف کوي چې **عطف بيان مستقل تابع** دی اويا په بدل الکل کې داخل دي . دجمهورو نحويانو دا مذهب دي چې **عطف بيان مستقل** تابع دي . دشيخ رضي دا مذهب دې چې **عطف بيان مستقل تابع نه دي بلکې په بدل الکل کې** داخل دي خکه چې دبدل الکل او دعطف بيان په مينځ کې واضح فرق نشته **پس دجمهورو** په نزد توابع پنځه (۵) دي او دشيخ رضي په نزد څلور (۴) دي

**وما قالوا**: په دې عبارت کې شارح دجمهورو مذهب بيانوي چې **جمهورو ويلي دي چې** ددې دواړو په مينځ کې فرق دي، چې بدل الکل مقصود بالنسبة وي او ددې **متبوع مقصود نه وي**، په خلاف دعطف بيان چې هغه مقصود بالنسبة وي. خکه هغه بيانيږي او ددې **متبوع مبين** او ښکاره وي او بيان د مبين فرع ده

شيخ رضي ددې جواب ورکوي، چې مونږ دا نه منو چې په بدل الکل کې **فقط بدل مقصود وي** او مبدل منه مقصود نه وي. بلکې مونږ دا وايو چې د بدل الغلط نه غير باقي درې واړو کې متبوع هم مقصود وي خکه چې دادبدل دپاره توطيه او تمهيد وي، نو په **حيثيت دتمهيد** سره دا مقصود وي

ميرسيد ددې جواب ورکوي کوم چې شارح په **و قال بعض المحققين** سره نقل کوي، چې **جمهورو** ويلي دي چې په **بدل الکل** کې **متبوع مقصود نه وي**، ددې نه د دوي مراد دا نه دي چې په **بدل** **الکل** کې **متبوع بالکل مقصود نه وي**، بلکې مراد دادې چې **متبوع مقصود اصلي نه وي**

**والحاصل**: په دې عبارت کې شارح ديو مثال په ذريعه دعطف بيان اودبدل الکل په مينځ کې دفرق وضاحت کوي کله چې **جاءني اخوك زيدا** وويلي شي نو په دې کې اول يعنې **اخوك** طرف ته که اسناد مقصود اصلي وي او دويم (زيد) ذکر په طور دتتمې او توضيح وي، نو دويم **عطف** بيان شو او که دويم يعنې زيد طرف نه اسناد مقصود اصلي وي او داول يعنې **اخوك** ذکر په طور دتوطيې او تمهيد په اسناد کې دمبالغې کولو دپاره وي نو دويم به بدل وي .

نو ددې حاصل دا شو چې په دې مثال کې چې دويم طرف ته د اسناد قصد وشي اودحکم مدار

هم دا جوړ کړې سي. نو ګويا چې د اخوك نه قطع نظر جاء زيداً ويلې شو او همدارنګې اکرمت زيداً اخاك ويلې شي او په دې کې په مخاطب باندې احسان وکړې شي چې ما د زيد تعظيم خکه وکړو چې هغه ستا ورور دې نو ګويا چې د زيد نه قطع نظر اکرمت اخاك ويلې شو او دا څيز په عطف بيان کې نشته

**وحينئذ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال**: د بدل په صورت کې هم وضاحت حاصليږي. نو بيا خو دبدل الکل او دعطف بيان په مينځ کې فرق ونه شو نو دشيخ رضي خبره صحيح شوه چې په دواړو کې هيڅ فرق نشته؟

**جواب**: اګر چه دبدل په صورت کې ددويم نه توضيح اووضاحت حاصليږي. ليکن دا وضاحت مقصود بالاصالة نه وي. بلکې مقصود بالتبع وي. مقصود بالاصالة د فعل اسناد وي د تابع طرف نه بعد التمهيد لهذا ددواړو په مينځ کې فرق ظاهردي. چې عطف بيان مقصود اصلي نه وي. بلکې مقصود تبعاً وي او بدل مقصود اصلي وي. نو بدل په منزله د صلوة مقصود اصلي او عطف بيان په منزله د اودس غير مقصود اصلي وي.

## دبدل البعض تعريف:

| وَالثَّانِيْ أَيْ بَدَلُ الْبَعْضِ جُزْؤُهُ أَيْ جُزْءُ الْمُبْدَلِ مِنْهُ نَحْوُ ضَرَبْتُ زَيْداً رَأْسَهُ. |
|---|
| او دويم يعني بدل البعض جزء ددې وي يعني جزء دمبدل منه لکه ضربت زيدا رأسه |

**خلاصه دمتن او شرحه**: په دې عبارت کې شارح دبدل البعض تعريف کوي بدل البعض هغه دي. چې ددې مدلول د مبدل منه د مدلول جزء وي. لکه ضربت زيدا رأسه. په دې کې رأسه بدل البعض دي، خکه چې دا د زيد د مدلول جزء دي.

## دبدل الاشتمال تعريف:

| وَ الثَّالِثُ أَيْ بَدَلُ الاِشْتِمَالِ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ الاَوَّلِ أَيِ الْمُبْدَلِ مِنْهُ مُلَابِسَةٌ بِحَيْثُ |
|---|
| اودريم يعني بدل الاشتمال په مينځ ددې او په مينځ د اول کې دي يعني مبدل منه ملابس وي په داسې شان چې |
| تُوْجِبُ النِّسْبَةِ إِلَى الْمَتْبُوْعِ النِّسْبَةَ إِلَى الْمُلَابِسِ إِجْمَالاً نَحْوُ أَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ عِلْمُهُ حَيْثُ يُعْلَمُ اِبْتِدَاءً |
| واجبوي نسبت متبوع ته نسبت ملابس ته اجمالي ته لکه اعجبني زيد علمه په داسې شان چې معلوميږي ابتداً چې |
| أَنَّهُ يَكُوْنُ زَيْدٌ مُعْجَباً بِاِعْتِبَارِ صِفَاتِهِ لَا بِاِعْتِبَارِ ذَاتِهِ وَ تَتَضَمَّنُ نِسْبَةُ الْاَعْجَابِ إِلَى زَيْدٍ نِسْبَتَهُ |
| وي به زيد معجب په اعتبار دصفاتو سره نه په اعتبار دذات سره او متضمن دي نسبت داعجاب زيد ته نسبته ددې |

إِلَىٰ صِفَةٍ مِنْ صِفَاتِهِ إِجْمَالاً وَ كَذَا فِي سَلْبِ زَيْدٌ ثَوْبُهُ بِخِلَافِ ضَرَبْتُ زَيْداً حِمَارَهُ وَ ضَرَبْتُ زَيْداً غُلَامَهُ

يوصفت ته دصفاتونه اجمالا او همدا رنګې په سلب زيد ثوبه کې په خلاف د ضربت زيدا حماره او ضربت زيدا غلامه

لِأَنَّ نِسْبَةَ الضَّرْبِ إِلَىٰ زَيْدٍ تَامَّةٌ وَلَا يَلْزَمُ فِي صِحَّتِهَا اِعْتِبَارُ غَيْرِ زَيْدٍ فَيَكُوْنُ مِنْ بَابِ بَدَلِ الْغَلَطِ

ځکه نسبت د ضرب زيد ته تام دي او نه دي لازم په صحت د دې کې اعتبار غير د زيد نه نو وي به د باب د بدل الغلط

بِغَيْرِهِمَا أَيْ تَكُوْنُ تِلْكَ الْمُلَابَسَةُ بِغَيْرِ كَوْنِ الْبَدَلِ كُلَّ الْمُبْدَلِ مِنْهُ أَوْ جُزْءَهُ

نه په غير د دې دواړو نه يعني وي به دغه ملابست په غير د کيدو د بدل نه کل د مبدل منه او يا جزء د مبدل منه نو

فَيَدْخُلُ فِيْهِ مَا إِذَا كَانَ الْمُبْدَلُ مِنْهُ جُزْءً مِنَ الْبَدَلِ وَ يَكُوْنُ إِبْدَالُهُ مِنْهُ بِنَاءً عَلَىٰ هٰذِهِ الْمُلَابَسَةِ

داخليږي په دې کې هغه چې کله وي مبدل منه جزء د بدل نه او وي بدل جوړول د دې نه بناء په دې ملابست باندې

نَحْوُ نَظَرْتُ إِلَى الْقَمَرِ فَلَكِهِ وَ الْمُنَاقَشَةُ بِأَنَّ الْقَمَرَ لَيْسَ جُزْءً مِنْ فَلَكِهِ بَلْ هُوَ مَرْكُوْزٌ فِيْهِ مُنَاقَشَةٌ

لکه نظرت الى القمر فلکه او مناقشه په دې خبره چې قمر نه دې جز د فلک بلکې قمر مرکوز دې په فلک کې نو دا مناقشه

فِي الْمِثَالِ وَ يُمْكِنُ أَنْ يُوْرَدَ لِمِثَالِهِ مِثْلُ رَأَيْتُ دَرَجَةَ الْأَسَدِ بُرْجَهُ فَإِنَّهُ لَامَجَالَ لِهٰذِهِ الْمُنَاقَشَةِ

ده په مثال کې او ممکن ده راوړل دپاره د مثال لکه رأيت درجة الاسد برجه ځکه نشته مجال د دې مناقشې دپاره

فِيْهِ فَإِنَّ الْبُرْجَ عِبَارَةٌ عَنْ مَجْمُوْعِ الدَّرَجَاتِ وَ إِنَّمَا لَمْ يَجْعَلْ هٰذَا الْبَدَلَ قِسْماً خَامِساً وَ لَمْ يُسَمِّ

په دې مثال کې ځکه برج عبارت دې د مجموعه درج نو نه او وي نه ګرځول دا بدل پنځم قسم او مسمى يې نه کړو

بِبَدَلِ الْكُلِّ عَنِ الْبَعْضِ لِقِلَّتِهِ وَ نُدْرَتِهِ بَلْ قِيْلَ لِعَدَمِ وُقُوْعِهِ فِي كَلَامِ

په بدل الکل عن البعض باندې دوجې د قلت او نادر کيدو د دې نه بلکې ويلې دي دوجې د عدم وقوع د دې په کلام

الْعَرَبِ فَإِنَّ هٰذِهِ الْأَمْثِلَةَ مَصْنُوْعَةٌ.

کلام د عربو کې ځکه دا مثالونه د خپل خان نه جوړ شوي دي

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې د بدل الاشتمال تعريف کوي چې بدل الاشتمال هغه دې چې د بدل او د مبدل منه په مينځ کې د کليت او جزئيت نه غير نوره علاقه وي

**اغراض دجامي** : والثالث: په دې عبارت سره شارح د بدل الاشتمال تعريف کوي چې بدل الاشتمال هغه دي چې د بدل او د مبدل منه په مينځ کې د کليت او جزئيت نه غير نوره علاقه وي

بحيث: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي

**سوال** : د بدل الاشتمال تعريف مانع نه دې ځکه چې دا تعريف په بدل الغلط کې په ضربت زيدا غلامه کې په غلام باندې صادق راځي. او په ضرب زيدا حماره کې په حماره باندې صادق راځي

ځکه چې په دې مثالونو کې دبدل او دمبدل منه په مینځ کې دکلیت او دجزئیت نه غیریوه بله علاقه ده هغه علاقه د مالکیت او مملوکیت ده. حالانکه دا بدل الغلط دي او بدل الاشتمال نه دي؟

**جواب** : په بدل الاشتمال کې دبدل او دمبدل منه په مینځ کې دعلاقې نه مراد داسې علاقه ده چې په هغې کې نسبت الی المتبوع نسبت الی التابع اجمالاً واجب او ثابت کوي لکه اعجبني زيد علمه په دې کې چې کله متکلم اعجبني زيد وويل نو ددې نه معلومه شوه چې زيد دخپل ذات په اعتبار سره معجب نه دي. بلکې په خپلو صفاتو کې دیو صفت په اعتبار سره معجب دي ځکه چې دانسان په افرادو کې دذات په اعتبار سره هیڅ فرق نشته. لهذا زيد د ذات طرف ته داعجاب نسبت اجمالاً ددې په صفاتو کې یو صفت طرف ته داعجاب نسبت ته متضمن دی. همدارنګې په سلب زيد ثوبه کې کله چې سلب زيد وويل نو ددې نه اجمالاً معلومه شوه چې مسلوب ذات د زيد نه دي بلکې ددې متعلقاتو نه یو متعلق دي. ځکه چې دذات دپاره سلب لفظ مستعمل نه دي، بلکې فقدان لفظ مستعمل دي او زيد طرف ته د سلب نسبت دا ددې د متعلقاتو د یو متعلق طرف ته دسلب نسبت اجمالاً متضمن وي، په خلاف د ضربت زيدا غلامه او ضربت زيدا حماره، چې په دې مثالونو کې دتابع او دمتبوع په مینځ کې داسې علاقه نشته چې په هغې کې نسبت الی المتبوع نسبت الی المتعلق ته متضمن وي، ځکه چې د ضرب نسبت زيد طرف ته نسبت تامه دي اوددې نسبت په صحیح کېدو کې غیر زيد طرف ته نسبت معتبر کول لازم نه راځي، لهذا دا دواړه مثالونه د بدل الاشتمال د قبیلې نه، نه دي، بلکې د بدل الغلط د باب نه دي.

<u>اى تكون تلك الملابسة</u>: په دې عبارت سره شارح دمتن وضاحت کوي چې دملابسة بغيرهما نه مراد دادې چې بدل دمبدل منه کُل هم نه وي او جُزء هم نه وي لهذا په دې ملابسة بغيرهما کې به هغه صورت هم داخل شي کوم چې په بدل الکل کې دي او مبدل منه جزء وي لکه نظرت الى القمر فلكه په دې کې قمر مبدل منه جزء دي او فلك (بدل) دا کل دي نو دا صورت په بدل الاشتمال کې داخل شو. نه په بدل البعض کې.

<u>والمناقشة</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د مثال د ممثل له سره مطابق نه دي ځکه چې په نظرت الى القمر فلكه كې قمر د فلك نه جزء نه دي. بلكې قمر مستقل في نفسه دي او په فلك كې مركوز دي ؟

**جواب** : دا مناقشه في المثال ده كوم چې داهل علمو د شان سره لايق نه ده او په يمكن سره شارح وايي. چې د دې دپاره يو دويم مثال هم پيش كولې شي كوم چې د مناقشې نه پاك دي او هغه دي رأيت درجة الاسد برجه په دې كې برج كُل دي د مجموع الدرجات نه عبارت دي او درجة الاسد د دې جزء دي. نو د مبدل منه جزء او بدل الكل دي

و انما لم يجعل: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي

**سوال** : نحويانو دا يو مستقل پنځم قسم ولې جوړ نه كړو او د دې نوم يې بدل الكل عن البعض ولې مقرر نه كړو ؟

**جواب** : دا قسم ډېر لږ او نادر دي تر دې چې بعضې نحويانو ويلي دي چې دا په كلام د عربو كې نشته او دا مثالونه فرضي او دخان نه جوړ شوي دي د دې وجې نه يې داپنځم قسم جوړ نه كړو او د دې نوم يې بدل الكل عن البعض مقرر نه كړو .

## د بدل الغلط تعريف :

| وَ الرَّابِعُ أَيْ بَدْلُ الْغَلَطِ أَنْ تَقْصُدَ أَيْ أَنْ يَكُوْنَ بِأَنْ تَقْصُدَ أَنْتَ إِلَيْهِ |
|---|
| اوڅلورم يعنې بدل الغلط چې قصد كړې تاسو يعنې چې وي په داسې طريقې سره چې قصد كړې تاسو دې طرف |
| أَيْ إِلَى الْبَدْلِ مِنْ غَيْرِ اِعْتِبَارِ مُلَابَسَةٍ بَيْنَهُمَا بَعْدَ أَنْ غَلَطْتَ بِغَيْرِهِ |
| ته يعنې بدل طرف ته په غير د اعتبار د ملابست نه په مينځ د دواړو پس د دې نه چې ته غلطي وكړې په غير د دې نه |
| أَيْ بِغَيْرِ الْبَدْلِ وَ هُوَ الْمُبْدَلُ مِنْهُ. |
| يعنې په غير د بدل نه او هغه غير مبدل منه وي |

**خلاصه دمتن او شرحه** : په دې كې عبارت كې د بدل الغلط تعريف كوي بدل الغلط هغه دي چې د مبدل منه د غلطۍ نه پس ذكر شي. د دې نه پس د دغې غلطۍ د ختمولو دپاره بدل ذكر كړي، د مبدل منه او د بدل په مينځ كې د علاقې او ملابست د اعتبار كولو نه په غير لكه جاءنى رجل حمار په دې كې حمار بدل الغلط دي. ځكه چې متكلم حمار ويل غوښتل په غلطۍ سره يې د ژبې نه اجل ووتو بيا د غلطۍ د ختمولو دپاره د اجل نه پس يې حمار وويل په هغه وخت كې چې كله د اجل او د حمار په مينځ كې هيڅ قسمه مناسبت او علاقه نشته.

## د بدل احکامات:

| |
|---|
| وَ يَكُوْنَانِ أَيِ الْبَدَلُ وَالْمُبْدَلُ مِنْهُ مَعْرِفَتَيْنِ نَحْوُ ضَرَبَ زَيْدٌ أَخُوْكَ وَ نَكِرَتَيْنِ نَحْوُ جَاءَنِيْ رَجُلٌ غُلَامٌ لَكَ وَ |
| اووي دا دواړه يعني بدل او مبدل منه معرفه لکه ضرب زيد اخوک او يا دواړه نکره وي لکه جاءني رجل غلام لک او يا |
| مُخْتَلِفَيْنِ نَحْوُ بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ وَ جَاءَ رَجُلٌ غُلَامُ زَيْدٍ وَ إِذَا كَانَ الْبَدَلُ نَكِرَةً مُبْدَلَةً مِنْ مَعْرِفَةٍ |
| دواړه مختلف وي لکه بالناصية ناصية کاذبة او جاء رجل غلام زيد او چې کله وي بدل نکره او مبدل وي د معرفې نه |
| فَالنَّعْتُ أَيْ نَعْتُ الْبَدَلِ النَّكِرَةِ لِئَلَّا يَكُوْنَ الْمَقْصُوْدُ أَنْقَصَ مِنْ غَيْرِ الْمَقْصُوْدِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ |
| نو نعت يعني نعت د بدل نکره راوړل واجب دي د دې وجې نه چې مقصود انقص نه شي د غير مقصود نه د هرې وجې |
| فَأَتَوْا فِيْهِ بِصِفَةٍ تَكُوْنُ كَالْجَابِرِ لِمَا فِيْهِ مِنْ نَقْصِ النَّكَارَةِ مِثْلُ |
| نه نو را تګ يې وکړو په صفت سره د دې د پاره چې دا ختم کړي هغه څه چې په هغې کې نقص د نکرې وي لکه |
| بِالنَّاصِيَةِ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ وَ يَكُوْنَانِ ظَاهِرَيْنِ نَحْوُ جَاءَنِيْ زَيْدٌ أَخُوْكَ وَمُضْمَرَيْنِ نَحْوُ الزَّيْدُوْنَ لَقِيْتُهُمْ إِيَّاهُمْ وَ |
| بالناصية ناصية کاذبة او وي دواړه ظاهر لکه جاءني زيد اخوک او يا دواړه مضمر لکه الزيدون لقيتهم اياهم او يا دواړه |
| مُخْتَلِفَيْنِ نَحْوُ أَخُوْكَ ضَرَبْتُهُ زَيْداً وَ أَخُوْكَ ضَرَبْتُ زَيْداً إِيَّاهُ. |
| مختلف لکه اخوک ضربته زيدا او اخوک ضربت زيداً اياه. |

**خلاصه د متن**: د تعريف او تنکير په اعتبار سره بدل په څلور (۴) قسمه دي: (۱) دواړه معرفه وي لکه ضرب زيد اخوك (۲) دواړه نکرې وي لکه جاءني رجل غلام لك (۳) مختلف وي دا دې دوه قسمه دي اول دا چې مبدل منه معرفه وي او بدل نکره وي لکه بالناصية ناصية کاذبة (۴) مبدل منه نکره وي او بدل معرفه وي لکه جاءني رجل غلام زيد.

**اغراض د جامي**: ويكون اى البدل والمبدل منه: په دې عبارت سره شارح د ضمير مرجع بيانوي.

**و اذا كان**: په دې عبارت کې شارح ديوې قاعدې بيان کوي چې کله مبدل منه معرفه او بدل نکره وي، نو بدل نعت راوړل واجب دي.

**فالنعت اى نعت البدل نکرة**: په دې عبارت کې شارح اشاره کوي چې په النعت کې الف لام د مضاف اليه په عوض کې دي.

**واجب**: په دې عبارت سره شارح اشاره کوي چې چې فالنعت مبتدا خبر واجب محذوف دي، د دې د پاره چې دا جمله جزاء جوړه شي، ځکه چې جزاء د پاره جمله کيدل شرط دي.

لئلا یکون: په دې عبارت کې شارح د ذکر شوې قاعدې وجه بیانوي، چې نعت راوړل ځکه واجب دي چې د دې دپاره مقصود من کل وجه د غیر مقصود نه انقص او کم نه وي، ځکه چې بدل مقصود وي او نکره د معرفې په نسبت انقص او کم وي، لهذا د دې نعت راوړل واجب دي. د دې دپاره چې د نعت په ذریعه د نکرې والا د نقصان ازاله وشي کوم چې په بدل کې ده لکه بالناصیة ناصیة کاذبة په دې کې الناصیة معرفه مبدل منه دي او ناصیه نکره بدل دي ځکه چې د دې نعت کاذبه راوړلې شوې دي.

## په اعتبار د اظهار او اضمار سره د بدل اقسام:

| |
|---|
| وَلاَ يُبْدَلُ ظَاهِرٌ مِنْ مُضْمَرٍ بَدَلُ الْكُلِّ إِلاَّ مِنَ الْغَائِبِ نَحْوُ ضَرَبْتُهُ زَيْداً لِأَنَّ الْمُضْمَرَ الْمُتَكَلِّمَ |
| او نه شي بدلولې اسم ظاهر د مضمر نه په طور د بدل الکل مګر د غائب ضمیر نه لکه ضربته زیداً ځکه مضمر متکلم |
| وَ الْمُخَاطَبَ أَقْوىٰ وَ أَخَصُّ دَلاَلَةً مِنَ الظَّاهِرِ فَلَوْ أَبْدَلَ الظَّاهِرُ مِنْهُمَا بَدَلَ الْكُلِّ |
| او مخاطب داقوی او خاص دي د دلالت نه په اسم ظاهر که چېرته بدل کړې شي ظاهر د دې دواړو نه په طور د بدل الکل |
| يَلْزِمُ أَنْ يَكُوْنَ الْمَقْصُوْدُ أَنْقَصَ مِنْ غَيْرِ الْمَقْصُوْدِ مَعَ كَوْنِ مَدْلُوْلَيْهِمَا وَاحِداً بِخِلاَفِ بَدَلِ الْبَعْضِ وَ |
| نو لازم به شي کیدل د مقصود انقص د غیر مقصود نه سره د کیدو د مدلول د دواړو متحد په خلاف د بدل بعض او |
| الْإِشْتِمَالِ وَ الْغَلَطِ فَإِنَّ الْمَانِعَ فِيْهَا مَفْقُوْدٌ إِذْ لَيْسَ مَدْلُوْلُ الثَّانِيْ فِيْهَا مَدْلُوْلُ الْأَوَّلِ فَيُقَالُ |
| اشتمال او غلط ځکه مانع په دې کې مفقود دي ځکه نه دي مدلول د دویم په دې کې مدلول د اول نو ویلې به شي |
| إِشْتَرَيْتُكَ نِصْفَكَ وَاشْتَرَيْتَنِيْ نِصْفِيْ أَعْجَبْتَنِيْ عِلْمُكَ وَأَعْجَبْتُكَ عِلْمِيْ وَضَرَبْتُكَ الْحِمَارَ وَضَرَبْتَنِي الْحِمَارَ. |
| اشتریتک نصفک، و اشتریتني نصفي اعجبتني علمک او اعجبتک علمي و ضربتک الحمار و ضربتني الحمار. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت کې د بدل د اظهار او د اضمار په لحاظ سره اقسام بیانوي. او بیا یوه قاعده د دې متعلق هم بیانوي.

**اغراض د جامي**: ویکونان: په دې عبارت سره مصنف د اظهار او اضمار په لحاظ سره د بدل څلور (۴) قسمه بیانوي، شارح د جامي په مثالونو سره د دې وضاحت کوي تفصیل یې دا دی

(۱) بدل مبدل منه دواړه اسم ظاهر وي، لکه جاءني زید اخوك.

(۲) دواړه اسم ضمیر وي. لکه الزیدون لقیتهم ایاهم

(۳) مختلف وي په دې کې لاندې دوه قسمه داخل دي. مبدل نه اسم ظاهر او بدل اسم ضمیر

وي لکه اخوك ضربت زيدا اياه . مبدل منه اسم ضمير او بدل اسم ظاهر وي لکه اخوك ضربته زيداً

**ولا يبدل**: په دې عبارت کې شارح يوه قاعده بيانوي چې اسم ظاهر په غير داسم ضمير غائب نه بل ضمير ، متکلم اومخاطب ، نه بدل الکل نه شي جوړيدې، صرف داسم ضمير غائب نه بدل الکل جوړيدې شي لکه ضربته زيداً

**لان الضمير**: په دې عبارت کې شارح دذکر شوې قاعدې وجه بيانوي ، چې ضمير متکلم او ضمير مخاطب ددلالت على المقصود په اعتبار سره داسم ظاهر نه اقوي او اخص دي او که د ضمير متکلم او ضمير مخاطب نه اسم ظاهر بدل الکل جوړ شي، نو مقصود به د غير مقصود نه کم او انقص لازم شي په بدل الکل کې د بدل او مبدل منه مدلول يو وي او د يو بل عين وي.

**بخلاف بدل البعض**. دې عبارت سره شارح دبدل الکل دقيد فائده بيانوي چې په دې سره احتراز دي دبدل البعض او دبدل الاشتمال او دبدل الغلط نه، ځکه چې اسم ظاهر دضمير متکلم او ضمير مخاطب نه بدل البعض بدل الاشتمال او بدل الغلط جوړولې شي ځکه چې په دې کې مانع موجود نه دي ځکه چې په دې کې په مبدل منه او بدل کې عينيت نه وي، بلکې بدل د مبدل نه غير وي.

**فيقال اشتريتك نصفك**: په دې عبارت سره شارح بيان دمثالونو کوي لکه **اشتريتك نصفك** دا اسم ظاهر دضمير مخاطب نه بدل البعض جوړولو مثال دي ، او **اشتريتني نصفي** دضمير متکلم نه د بدل البعض جوړولو مثال دي، او **اعجبتني علمك** داد اسم ظاهر د ضمير مخاطب نه بدل الاشتمال جوړولو مثال دي او **اعجبتك علمي** داد اسم ظاهر د ضمير متکلم نه بدل الاشتمال جوړولو مثال دي ، او **ضربتك الحمار** داد اسم ظاهر د ضمير مخاطب نه بدل الغلط جوړولو مثال دي او **ضربتني الحمار** داد اسم ظاهر ضمير متکلم نه بدل الغلط جوړولو مثال دي.

## پنځم قسم : د عطف بيان تعريف :

| عَطْفُ الْبَيَانِ تَابِعٌ شَامِلٌ لِجَمِيْعِ التَّوَابِعِ غَيْرُ صِفَةٍ اِحْتَرَزَ بِهٖ عَنِ الصِّفَةِ |
|---|
| عطف بيان هغه تابع دی چې شامل وي ټولوتوابعوته په غير دصفت نه احترازيې وکړوپه دې سره دهغه صفت چې |
| يُوْضِحُ مَتْبُوْعَهٗ اِحْتَرَزَ بِهٖ عَنِ الْبَدَلِ وَالْعَطْفِ بِالْحَرْفِ وَالتَّاكِيْدِ وَلَا يَلْزِمُ مِنْ ذٰلِکَ اَنْ يَّكُوْنَ عَطْفُ |
| وضاحت کوي دمتبوع احترازيې وکړوپه دې سره دبدل او دعطف بالحرف او دتاکيد نه اونه دي لازم چې وي عطف |

الْبَيَانِ اَوْضَحَ مِنْ مَتْبُوْعِهٖ بَلْ يَنْبَغِيْ اَنْ يَحْصُلَ مِنْ اِجْتِمَاعِهِمَا اِيْضَاحٌ لَمْ يَحْصُلْ مِنْ اَحَدِهِمَا

بیان زیات واضح د متبوع نه بلکې مناسب دي چې حاصل دا جتماع د دې نه ایضاح چې نه وي حاصله یو د دې

عَلَى الْاِنْفِرَادِ فَيَصِحُّ اَنْ يَكُوْنَ الْاَوَّلُ اَوْضَحَ مِنَ الثَّانِيْ مِثْلُ اَقْسَمَ بِاللّٰهِ اَبُوْحَفْصٍ عُمَرُ فَاَبُوْ حَفْصٍ

دواړو نه په حالت دانفراد کې نو صحیح ده چې وي اول اوضح د دویم نه لکه اقسم بالله ابوحفص عمر نو ابوحفص

كُنْيَةُ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَ عُمَرُ عَطْفُ بَيَانٍ لَهٗ وَ قِصَّتُهٗ اَنَّهٗ اَتٰى

کنیت دامیرالمؤمنین عمربن الخطاب رضي الله عنه دي او عمر عطف بیان دي د دې دپاره او قصه د دې داده چې راغې

اَعْرَابِيٌّ اِلٰى عُمَرَ ابْنِ الْخَطَّابِ فَقَالَ اِنَّ اَهْلِيْ بَعِيْدٌ وَ اِنِّيْ عَلٰى نَاقَةٍ دَبْرَاءَ

یو اعرابي عمربن الخطاب رضي الله عنه ته نو وې ویل چې کورزما لرې دی او زه په یوه اوښه باندې یم چې ملا یې زخمي

عَجْفَاءَ نَقْبَاءَ وَ اسْتَحْمَلَهٗ فَظَنَّهٗ كَاذِبًا

ده کمزورې. او خپې یې زخمي دي او دده نه یې طلب د سورلې وکړو نو ګمان وکړو عمر رضي الله عنه چې دا دروغجن دي

فَلَمْ يَحْمِلْهُ فَانْطَلَقَ الْاَعْرَابِيُّ فَحَمَلَ بَعِيْرَهٗ ثُمَّ اسْتَقْبَلَ الْبَطْحَاءَ

نو سورلې یې ورنه کړه نو لاړو اعرابي او بار یې کړو سامان په خپله اوښه باندې بیا روان شو بطحاء وادي طرف ته

وَ جَعَلَ يَقُوْلُ وَ هُوَ يَمْشِيْ خَلْفَ بَعِيْرِهٖ شعر: اَقْسَمَ بِاللّٰهِ اَبُوْ حَفْصٍ عُمَرُ مَا

او لګیا شو چې ویل یې او داروان وو وروسته د خپلې اوښې نه شعر. قسم کړې په الله سره ابوحفص عمر، چې نه ده

مَسَّهَا مِنْ نَقَبٍ وَلَا دَبَرٍ اِغْفِرْ لَهٗ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ فَجَرَ وَ عُمَرُ

رسیدلې زما اوښې ته بیمارې او کمزورې بخشش وکړې ده ته ای الله که چیرته ګناه یې کړې وي او عمر رضي الله عنه

مُقْبِلٌ مِنْ اَعْلَى الْوَادِيْ فَجَعَلَ اِذَا قَالَ اِغْفِرْ لَهٗ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ فَجَرَ

اوریدې د اخ ـ ې د وادې اعلى نه نو هر کله یې چې داوویل بخشش وکړې ده ته ای الله که چیرته ګناه یې کړې وي

قَالَ اَللّٰهُمَّ صَدِّقْ حَقِّيْ التَّقَيَا فَاَخَذَ بِيَدِهٖ

نو عمر رضي الله عنه وویل ای الله ته رښتینې کړې خبره داعرابي تردې چې ملاقات وشو د دواړو نو دلاس نه یې ونیول

فَقَالَ ضَعْ عَنْ رَاحِلَتِكَ فَوَضَعَ فَاِذَا هِيَ نَقْبَاءُ عَجْفَاءُ

او ورته یې وویل چې کوز کړه سامان د خپلې اوښې نه نو سامان یې را کوز کړو نو واقعي وه زخمي او کمزورې نو

فَحَمَلَهٗ عَلٰى بَعِيْرِهٖ وَ زَوَّدَهٗ وَ كَسَاهُ.

بار یې کړو سامان په خپلې اوښې باندې او دلارې توښه او کپړې یې ورکړې

**خلاصه د متن**: صاحب د کافیه د عطف بیان تعریف کوي چې عطف بیان هغه تابع دي کوم چې د صفت غیر وي او د فعل متبوع اضافت کوي. لکه اقسم بالله ابوحفص عمرو په دې کې

ابوحفص د امیرالمؤمنین حضرت عمر رضی الله عنه کنیت دي او عمرو علم عطف بیان دي

**اغراض دجامي** : شامل لجميع : په دې عبارت سره شارح دقیودو فوائد بیانوي. په شامل سره شارح اشاره کړې ده چې تابع جنس دې کوم چې ټولو توابعو ته شامل دې

واحترز به عن الصفة : په دې عبارت سره شارح وويل چې غير صفة دا اول فصل دي. ددې نه صفت خارج شو

واحترز په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې يوضح متبوعه دا دويم فصل دی. په دې سره بدل . تاکید او عطف بحرف خارج شو

ولا يلزم په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب ورکول دي :

**سوال** : د عطف بيان تعريف په هغه عمرو باندې صادق نه راځي کوم چې په جاءني سيبويه عمرو کې واقع دي ځکه چې عمرو دخپل متبوع سيبويه وضاحت نه کوي ځکه چې د سيبويه په نسبت د عمرو زيات واضح او مشهور دي. حالانکه عمرو عطف بيان دي ؟

**جواب** : عطف بيان دخپل متبوع دموضح راتللو سره دا لازم نه راځي چې عطف بيان دخپل متبوع نه زيات واضح وي، بلکې مراد دادې چې ددې دواړو مجموعې نه هغه ايضاح حاصل شي کوم چې على الانفراد ددې نه يو حاصل نه وي، لهذا که چيرته متبوع د تابع نه زيات واضح دي نو دا هم صحيح ده.

مثل اقسم بالله ابوحفص عمرو : په دې عبارت سره شارح بيان دمثال کوي ، په دې کې ابوحفص د اميرالمؤمنين حضرت عمر رضی الله عنه کنيت دي عمرو علم دي کوم چې عطف بيان دي که چيرته حفص په ضاد سره وي، نو ددې معنى اسد ، زمري او شير دي نو د ابوالحفص معنى به ابوالاسد وي . في الشجاعة والغيرة ، په شجاعت او غيرت کې ، او که چيرته ابوحفص په صاد سره وي نو داد حضرت عمر رضی الله عنه دلور حضرت حفصه ام لمؤمنين په نوم باندې کنيت دي.

وقصته : په دې عبارت سره شارح ددې مثال پس منظر او واقعه بيانوي :

**واقعه** : يو اعرابي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغې او وې ويل ، زما کور لرې دي او زما د اوښې شاه يعني ملا زخمي ده او بدن يې کمزوري دي او خپې يې هم زخمي دي تاسو ماته يوه سورلۍ راکړئ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا سړی دروغجن وګڼلو ، ده ته يې سورلۍ ورنه کړه

هغه خپل سامان هم دغه کمزوري اوښه باندې کیخود بیا یې دا اشعار وویل

أَقْسَمَ بِاللهِ أَبُوْ حَفْصٍ عُمَرَ
مَا مَسَّهَا مِنْ نَقَبٍ وَلاَ دَبَرْ
اِغْفِرْ لَهُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ فَجَرْ

یعنې قسم کړې په الله تعالی سره ابوحفص عمر. چې نه دې مسه کړې اویانه دې رسیدلې اوښې ته سه بیماري او نه کمزوري، نو بخشش وکړي ده ته ای الله! که چیرته ده دا ګناه کړې وي.

یعنې ګمان دحضرت عمر رضي الله عنه دادې چې ددې اعرابي اوښه صحیح ده او دا دروغ وایي، او حالانکه دا اوښه زخمي هم وه اوکمزورې هم وه، نو دا اعرابي وایي که چیرته حضرت عمر رضي الله عنه دا ګناه یعنې زما اوښه صحیح ګڼړي او ماته دروغجن وایي نو ته ورته دا ګناه معاف کړې.

نو حضرت عمر رضي الله عنه دده دا خبرې اوریدې دپاسه نه. نو هرکله چې دې اعرابي وویل: **اغفر له اللهم ان كان فجر**، بخشش وکړې ده ته ای الله که چیرته ده دا ګناه کړې وي، نو حضرت عمررضی الله عنه زر وویل: **اللهم صدق فصدق**، یعنې ای الله! داعرابي خبره رښتیني کړې، تر دې چې د دواړو ملاقات وشو، نو حضرت عمررضی الله عنه دا اعرابي دلاسه ونیوه او ورته یې وویل، چې خپل سامان کوز کړه نو واقعي دده اوښه زخمي اوکمزورې وه، نو حضرت عمررضی الله عنه خپل ذاتي اوښ دې اعرابي ته ورکړو او یوه جوړه او د سفر خرچه یې هم ورکړه.

**فائده:** حضرت عمررضی الله عنه پخپل ګمان کې اعرابي درغجن کړو، خکه دده قسم **یمین غموس** نه وو، چې دده په ګمان کې قسم دواقعې په خلاف یوڅیز سره متعلق نه شي، ځکه دوي ګنهګار نه شو بلکې دا قسم **یمین لغو** شو، چې په هغې باندې ګناه نشته هم دا وجه ده چې اعرابي **فجر** د **ان كان** سره ذکر کړو، چې هغه د فاروق اعظم د عدالت او شفقت نه خبر وو، ددې وجې نه یې وویل که بالفرض فاروق اعظم نه غلطي شوې وي، نو الله دې وبخښي.

**دبراء:** د دبر نه مشتق دي زخمي شا او یا زخمي مَلا والا.

**عجبناء:** په معنی د کمزوري.

نقباء: زخمي مېږو والا

## په عطف بيان او بدل کې فرق:

وَ فَصْلُهُ أَيْ فَرْقُهُ مِنَ الْبَدَلِ لَفظاً أَيْ مِنْ حَيْثُ الْأَحْكَامِ اللَّفْظِيَّةِ وَاقِعٌ فِيْ مِثْلِ أَنَا ابْنُ التَّارِكِ الْبَكْرِيْ بِشْرٍ

اوفصل ددي يعنې فرق ددې دبدل نه لفظا يعنې په اعتبار داحکامو لفظيو واقع دي په انا ابن التارک البکري بشر

فَإِنَّ قَوْلَهُ بِشْرٍ إِنْ جُعِلَ عَطْفَ بَيَانٍ لِلْبَكْرِيْ جَازَ وَ إِنْ جُعِلَ

مثال کې خکه دا قول دشاعر بشر که چيرته وګرځول شي عطف بيان دپاره د بکري نوجائزدي اوکه چيرته وګرځول

بَدَلاً مِنْهُ لَمْ يَجُزْ لِأَنَّ الْبَدَلَ فِيْ حُكْمِ تَكْرِيْرِ الْعَامِلِ فَيَكُوْنُ التَّقْدِيْرُ أَنَا ابْنُ التَّارِكِ بِشْرٍ وَ

شي بدل ددې نه نونه دي جائزخکه بدل په حکم دتکرير دعامل کې دي نووي به تقديريې اناابن التارک بشر او

هُوَ غَيْرُ جَائِزٍ كَمَا ذَكَرْنَا فِيْمَا سَبَقَ فِي الضَّارِبُ زَيْدٍ وَ آخِرُهُ عَلَيْهِ الطَّيْرُ تَرْقُبُهُ وُقُوْعاً وَ عَلَيْهِ الطَّيْرُ ثَانِيْ

داغيرجائزدي لکه مونږذکرکړل مخکې په الضارب زيدکې اوآخري مصرعه عليه الطير ترقبه وقوعااو عليه الطيردويم

مَفْعُوْلَيِ التَّارِكِ إِنْ جَعَلْنَاهُ بِمَعْنَى الْمُصَيِّرِ وَ إِلاَّ فَهُوَ حَالٌ وَ قَوْلُهُ

مفعول دالتارک دي که چيرته مونږوګرځوو په معنی دمصيرسره اوکه ونه ګرځوونودابه حال وي اودا قول دشاعر

تَرْقُبُهُ حَالٌ مِنَ الطَّيْرِ إِنْ كَانَ فَاعِلاً لِعَلَيْهِ وَ إِنْ كَانَ مُبْتَدَأً فَهُوَ حَالٌ مِنَ الضَّمِيْرِ الْمُسْتَكِنِّ فِيْ

ترقبه داحال دي دطيرنه که چيرته فاعل وودعليه دپاره اوکه چيرته مبتداوي نوداحال دي دضمير مستترنه په

عَلَيْهِ وَ وُقُوْعاً جَمْعُ وَاقِعٍ حَالٌ مِنْ فَاعِلِ تَرْقُبُهُ أَيْ وَاقِعَةً حَوْلَهُ مُتَرَقِّبَةً لِانْزِهَاقِ رُوْحِهِ لِأَنَّ

عليه کې اووقوعا جمع دواقع ده اوحال دي دفاعل نه ترقبه يعنې واقعة حول البکري مترقبة لخروج روحه خکه

الْإِنْسَانَ مَا دَامَ بِهِ رَمَقٌ فَإِنَّ الطَّيْرَ لاَ تَقْرَبُهُ وَ أَمَّا الْفَرْقُ الْمَعْنَوِيُّ بَيْنَهُمَا

انسان ترڅوچې په کې وي ساه خکه مرغان نه رانژدي کيږي ده ته اوهرچې معنوي فرق دي په مينځ ددې دواړو

فَقَدْ تَبَيَّنَ فِيْمَا سَبَقَ.

کې نوهغه بيان شوې دي مخکې

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت کې صاحب کافيه غرض دعطف بيان او دبدل الکل په مينځ کې فرق بيانول دي، بعضې نحويان لکه علامه رضي وغيره ددې د مستقل وجود نه انکار کړې وو او هغوي ويلي وو چې عطف بيان بدل الکل دي، ددې وجې نه ددې په مينځ کې فرق کولو ته ضرورت پيښ شو، دا فرق به په هغه ځاې کې وي په کوم ځاې کې چې عطف بيان په صورت کې يو حکم وي او د بدل په صورت بل حکم وي او دا په داسې ترکيب کې وي په کوم کې چې دعطف بيان متبوع معرف باللام وي کوم چې دصفت معرف باللام مضاف اليه وي

لکه په الضارب الرجل زيد کې چې دې دلته عطف بيان جوړول جائز دي او بدل جوړول جائز نه دي، لکه انا ابن التارك البکری بشر په دې کې بشر عطف بيان دي او البکر ددې متبوع دي کوم چې معرف باللام دي او مضاف اليه دي د التارك کوم چې معرف باللام دي

**اغراض دجامي : ای فرقه**: په دې عبارت کې شارح بيان دمعنی کوي چې فصل په معنی د فرق دي شارح وويل چې دلته دفصل لغوي معنی مراد ده اودفصل منطقي معنی مراد نه ده اونه هغه فصل مراد دي کوم چې د کتاب او دباب په مقابله کې راځي

**ای من حيث**: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي. چې د لفظاً نصب د تميز د وجې نه دي

**واقع**: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي چې فی مثل ظرف مستقر متعلق دي د واقع سره داد فصل خبر دي، نو دعبارت مطلب دادي چې د عطف بيان او دبدل په مينځ کې فرق دجهته احکامو لفظي نه په انا ابن التارك البکر بشر مثال کې واقع دي، په دې قول کې که چيرته بشر عطف بيان جوړ شي نو دا جائز دي اوکه چيرته بدل جوړ شي نو دا جائز نه دي، ځکه چې بدل دعامل دتکرار په حکم کې وي او دلته عامل التارك دي، مطلب دادې چې په بدل کې دا ضروري ده چې داد مبدل منه په ځای کيخودې شي نو هيڅ حرج نشته مگر دلته دبدل جوړولو په صورت کې التارك کوم چې مبدل منه يعنې بکری عامل دي په بدل يعنې بشر باندې مکرر راوړلې شي، نو تقدير دعبارت به دا شي چې التارك بشر دا جائز نه دي، ځکه چې دا به د الضارب زيد په شان شي او الضارب زيد ناجائز کيدل مخکې تير شوي دي

**و آخره**: په دې عبارت کې شارح مکمل شعر بيانوي چې مکمل شعر دادې :

**انا ابن التارك البکری بشر    عليه الطير ترقبه وقوعاً**

**و عليه الطير**: په دې عبارت کې شارح بيان دترکيب کوي، په دې کې دآخري بيت ترکيب بيانوي چې التارك المصير په معنی کې دي اويا نه. که د التارك المصير په معنی کې وي، نو عليه الطير به د التارك مفعول ثاني وي، او که د المصير په معنی کې نه وي، بلکې د وَدَعَ په معنی باندې وي، نو داد عليه الطير البکر نه حال دي

**ترقبه**: په دې عبارت کې شارح د الطير عليه متعلق يعنې که چيرته دثبت اودوقع فاعل وي نو دا

به د ترقبه الطیر نه حال وي او که چیرته الطیر مبتدا وي او علیه خبر مقدم وي نوبیا د ترقبه حال وي د علیه د متعلق ضمیر نه

وقوعاً: دا جمع ده د واقع دا حال دی د ترقبه فاعل نه.

ای واقعة: په دې عبارت کې شاعر د دویم شعر ترجمه کوي چې ددې نه ګیر چاپیره مارغان جمع دي او دده د روح وتلو انتظار کوي، ځکه چې کله انسان کې لږ شان روح وي، نو مارغان ورته نژدې نه ورځي.

واما الفرق المعنوي: په دې عبارت کې شارح د **لفظاً** قید فائده بیانوي د **لفظاً** قید یې ځکه ولږولو چې معنوي فرق خو د مخکې نه معلوم شو، چې بدل مقصود اصلي دي او عطف بیان مقصود اصلي نه دي، بلکې ددې نه مقصود توضیح اووضاحت وي.

## په ذکر شوي شعر کې دماتن دمقصد او مراد وضاحت:

| |
|---|
| وَ الْمُرَادُ بِمِثْلِ أَنَا ابْنُ التَّارِكِ الْبَكْرِيِّ بِشْرٍ كُلُّ مَا كَانَ عَطْفَ بَيَانٍ لِلْمُعَرَّفِ بِاللَّامِ |
| اومراد د مصنف په انا ابن التارك البکري بشر مثال کې هر هغه لفظ دي چې وي عطف بیان د پاره د معرف باللام |
| الَّذِيْ أُضِيْفَ إِلَيْهِ الصِّفَةُ الْمُعَرَّفَةُ بِاللَّامِ نَحْوُ اَلضَّارِبُ الرَّجُلِ زَيْدٍ وَ يُمْكِنُ أَنْ يُرَادَ بِهِ |
| هغه چې اضافت یې شوی وي دې ته د صفت معرف باللام لکه الضارب الرجل زید او ممکن دي چې مراد وي په |
| مَا هُوَ أَعَمُّ مِنْ هٰذَا الْبَابِ أَيْ كُلُّ مَا خَالَفَ حُكْمُهُ إِذَا كَانَ عَطْفَ بَيَانٍ |
| دې سره هغه څه چې عام وي ددې باب نه یعنې هر هغه صورت چې مخالف وي حکم ددې چې کله وي عطف بیان |
| حُكْمُهُ إِذَا كَانَ بَدَلاً فَيَتَنَاوَلُ صُوْرَةَ النِّدَاءِ أَيْضاً فَإِنَّكَ تَقُوْلُ يَا غُلَامُ زَيْدٌ وَ زَيْداً بِالتَّنْوِيْنِ |
| نو حکم ددې چې کله وي بدل نو شامليږي دا صورت نداء ته هم دا رنګې ځکه ته به وایې یاغلام زید وزیداً په تنوین |
| مَرْفُوْعاً حَمْلاً عَلَى اللَّفْظِ وَ مَنْصُوْباً حَمْلاً عَلَى الْمَحَلِّ إِذَا جَعَلْتَهُ |
| سره مرفوع دوجې د حمل نه په لفظ باندې اویامنصوب دوجې د حمل نه په محل باندې چې کله یې ته وګرځوې |
| عَطْفَ بَيَانٍ وَ يَا غُلَامُ زَيْدُ بِالضَّمِّ إِذَا جَعَلْتَهُ بَدَلاً وَ الْمَعْنَى الْأَوَّلُ أَظْهَرُ وَ الثَّانِيْ |
| عطف بیان او یاغلام زید په ضمې سره چې کله یې ته وګرځوې بدل او اوله معنی ډیره ظاهره ده او دویمه معنی |
| أَفْيَدُ. |
| ډیره مفیده ده. |

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره په ذکر شوي شعر کې د ماتن د مراد او د مقصد وضاحت

بيانوي چې تفصيل يې لاندې په شرحه کې موجود دي

**اغراض دجامي** : ددې عبارت نه د شارح غرض د ماتن مراد متعين کول دي، چې د مثال نه مراد هر هغه ترکيب دي په کوم کې چې د عطف بيان متبوع معرف باللام وي. کوم چې د صفت معرف باللام مضاف اليه وي. الضارب لکه الرجل زيد او انا ابن التارك البكر بشر په دې کې بشرعطف بيان دي او البكر ددې متبوع دي کوم چې معرف باللام دي او مضاف اليه دي د التارك کوم چې معرف باللام دي.

ويمكن: په دې عبارت کې شارح د دويم احتمال بيان کوي. د مثال نه مراد هر هغه اسم دي چې د عطف بيان جوړولو په صورت کې چې کوم حکم دي دا مغائر وي. ددغه حکم چې کله دا بدل جوړ شي لکه په ذکر شوي مثال کې چې دي چې بشر د بکر نه عطف بيان جوړ شي. نو ددې حکم د جواز دي، او کله چې دا بدل جوړ شي نو ددې حکم د عدم جواز دي دا دويمه معنی صورت ندا ته هم شامله ده لکه يا غلام زيد په دې کې غلام منادی مفرد معرفه مبني برضمه ده او محلا منصوب دي اوس که زيد عطف بيان جوړ شي، نو دا په لفظ باندې محمول کول مرفوع ويل هم جائز دي، او دا په محل باندې محمول کول منصوب ويل هم جائز دي او که زيد د غلام نه بدل جوړ کړي، نو چونکې بدل د عامل دتکرار په حکم کې وي، نو زيد مبنی على الضم کيدل متعين دي.

المعنى الاول اظهر: په دې عبارت سره شارح وايي چې اوله معنی اظهره اوخکاره ده اودويمه معنی ډيره مفيده ده ، اوله معنی ځکه ظاهره ده چې د مصنف قول التارک بشر نه اوله معنی ظاهريږي ځکه چې د مصنف په مثال کې مضاف معرفه باللام راوړې بيا بشر عطف بيان جوړ کړي لکه چې الضارب زيد دي چې انا ابن التارک البکر بشر نه په ظاهره دا مراد دي اودويمه معنی مفيده ځکه ده چې دا د نداء صورت ته هم شامله ده

وبهذا الموضع تمت المعرب بعون الله تعالى وتوفيقه

اين سعادت بزور بازو نيست تا نه بخشد خداى بخشنده

## ﴿ اَلْمَبْنِيُّ ﴾

# تعريف د مبني :

اَلْمَبْنِيُّ اَیِ الْاِسْمُ الْمَبْنِيُّ وَ هٰذَا الْحَدُّ لَا يَصِحُّ اِلَّا لِمَنْ يَعْرِفُ مَاهِيَةَ الْمَبْنِيِّ عَلَى الْاِطْلَاقِ

مبني يعني هغه اسم مبني دا تعريف نه صحيح كيږي مگر د هغه چا دپاره چې پيژني ماهيت د مبني مطلقا

وَلَا يَعْرِفُ الْاِسْمَ الْمَبْنِيَّ اِذْ لَوْ لَمْ يَعْرِفْهَا لَكَانَ تَعْرِيْفًا لِلْمَبْنِيِّ بِالْمَبْنِيِّ لِاَنَّهُ

او نه پيژني اسم مبني ځکه که چيرته و نه پيژندل شي مبني نو شي به تعريف د مبني په مبني ځکه

ذُكِرَ فِيْ حَدِّ الْمَبْنِيِّ لَفْظُ الْمَبْنِيِّ مَا نَاسَبَ اَیْ اِسْمٌ نَاسَبَ مَبْنِيَّ الْاَصْلِ وَ هُوَ

يې ذكر كړي په تعريف د مبني كې هم لفظ د مبني، مبني هغه اسم دي چې مناسب وي د مبني الاصل سره د هغه

الْحَرْفُ وَالْفِعْلُ الْمَاضِيْ وَالْاَمْرُ بِغَيْرِ اللَّامِ وَالْمُرَادُ بِالْمُشَابَهَةِ الْمَنْفِيَّةِ فِيْ تَعْرِيْفِ الْمُعْرَبِ هُوَ هٰذِهِ الْمُنَاسَبَةُ

حرف او فعل ماضي او امر په غير د لام نه وي او مراد په مناسبت منفيه سره په تعريف د معرب كې د غه مناسبت

وَ لَقَدْ فَصَّلَ صَاحِبُ الْمُفَصَّلِ هٰذِهِ الْمُنَاسَبَةَ بِاَنَّهَا اِمَّا يَتَضَمَّنَ الْاِسْمُ

دي او په تحقيق سره تفصيل بيان كړي صاحب د مفصل د غه مناسبت ځكه چې دا به يا متضمن وي اسم لره

يَعْنِيْ مَعْنَى مَبْنِيِّ الْاَصْلِ مِثْلُ اَيْنَ فَاِنَّهُ يَتَضَمَّنُ مَعْنَى هَمْزَةِ الْاِسْتِفْهَامِ اَوْ

يعني د مبني الاصل لكه اين ځكه چې لفظ د اين متضمن دي معنى د همزې استفهام لره او يا به متضمن وي

بِشِبْهِهٖ لَهٗ كَالْمُبْهَمَاتِ فَاِنَّهَا تُشْبِهُ الْحَرْفَ فِي الْاِحْتِيَاجِ اِلَى الصِّلَةِ اَوِ الصِّفَةِ اَوْ غَيْرِهِمَا

مشابه د اسم سره لكه مبهمات ځكه چې دا متضمن دي حرف لره په احتياج كې صلې يا صفت ته وغيره

اَوْ وُقُوْعُهٗ مَوْقِعَهٗ كَنَزَالِ فَاِنَّهٗ وَاقِعٌ مَوْقِعَ اِنْزِلْ اَوْ مُشَاكَلَتِهٖ لِلْوَاقِعِ

يا واقع كيدل د دې دي په ځاى د هغې لكه نزال چې واقع دي په ځاى د انزل او يا يې مشاكل واقع شي په

مَوْقِعِهٖ كَفُجَارِ اَوْ وُقُوْعُهٗ مَوْقِعَ مَا اَشْبَهَهٗ كَالْمُنَادَى الْمَضْمُوْمِ فَاِنَّهٗ وَاقِعٌ

ځاى د هغه كې لكه فجار يا يې واقعل كيدل په موضع د ما اشبه كې لكه منادى مضمومه چې واقع ده په

مَوْقِعَ كَافِ الْخِطَابِ الْمُشَابَهَةِ لِلْحَرْفِ فِيْ نَحْوِ اَدْعُوْكَ.

ځاى د كاف د خطاب كې كوم چې مشابه دي د حرف سره په مثل د ادعوک كې

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره صاحب د كافيې د اسم مبني تعريف او تفصيل بيانوي

**اغراض د جامي** : المبني: په دې عبارت سره غرض [illegible] سرو بيانول دي: [illegible]

ماقبل سره ربط ۲ د عنوان وضاحت

**ربط**: کله چې فارغ شو مصنف د تفصیل د اسم معرب نه، نو شروع یې وکړه په تفصل د اسم مبني کې نو دلته درې سوالات مخې ته راځي

**اول سوال**: نفس تفصیل ولې کوي؟

**جواب**: نفس تفصیل ځکه کوي چې تفصیل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي

**دوهم سوال**: په دې مقام کې یې ولې کوي. یعنې اسم معرب یې ولې مقدم کړو

**جواب**: اسم معرب یې ځکه مخکې کړو چې هغه کثیر الوقوع او کثیر الاستعمال دی او کوم څیز چې کثیر الوقوع وي نو په طبع کې مقدم وي، نو په وضع کې هم مقدم شو چې وضع د طبع سره موافق شي

**دریم سوال**: تفصیل یې څنګه کوي؟

تفصیل یې داسې کوي چې اول به تعریف د اسم مبني وکړي دوهم به القاب ددې ذکر کړي دریم به حکم ددې ذکر کړي، څلورم به اجمالي اقسام ددې ذکر کړي، او پنځم به تفصیل ددې اقسامو وکړي، په دې پنځه طریقو سره به یې تفصیل وکړي.

دا ربط اجمالي وو ربط تفصیلي خلاصه ددې کتاب ده.

دا کتاب کافیه په دریو برخو مشتمل ده. خطبه، مقدمه او مقصود، په خطبه کې تسمیه صراحتاً ذکر ده او د بعضې شارحینو په نزد حمد او صلوۃ ضمناً ذکر دي

په مقدمه کې پنځه (۵) خبرې دي

۱ تعریف د کلمې ۲. اجمالاً درې اقسام د کلمې ۳. په دې اقسامو کې وجه دحصر ۴ تعریف د کلام ۵. اقسام د کلام مقصود په کې درې مباحث دي بحث الاسم، بحث الفعل. بحث الحرف بحث الاسم په درې برخو مشتمل ده. مقدمه، مقصود او خاتمه په مقدمه کې درې خبرې دي تعریف د اسم. خواص د اسم، تقسیم د اسم قسمینو ته مقصود کښې دوه بابونه دي. باب اول په بیان د اسم معرب کښې او باب ثاني په بیان د اسم مبني کې دي

بیا دا باب اول په پنځه برخو مشتمل دی، مقدمه، مقاصد ثلاثه او خاتمه، په مقدمه کې لس (۱۰) امور ذکر کوي په اول مقصد کې اووه (۷) مرفوعات، په دوهم مقصد کې دولس (۱۲) منصوبات، او په دریم مقصد کې مجرورات ذکر کوي. د اول باب په خاتمه کې پنځه (۵) توابع ذکر کوي، اوس کله چې د باب اول د تفصیل نه فارغ شو، نو شروع یې وکړه په تفصیل د

باب ثاني اسم مبني کې

**د عنوان وضاحت**: دا وضاحت په څو طریقو سره دي ۱. وضاحت د الف لام ۲. صیغه د مبني ۳. معنی لغوي د مبني ۴. اقسام د مبني ۵. معنی اصطلاحي د مبني

**۱: وضاحت د الف لام**: اګر چې قاعده داده چې کوم الف لام په اسم فاعل او اسم مفعول داخل شي، نو هغه الف لام اسمي موصولي وي، لیکن دلته دا الف لام حرفي غیر زائد جنسي دی د جنسي نه علاوه نور درې قسمه څکه نه دي. چې لازمېږي تعریف د افرادو او تعریف دافرادو کیږي نه په افرادو سره کېږي. بلکې تعریف د جنس کیږي او په جنس سره کیږي. زائد څکه نه دی، چې د هغې په سقوط سره هیڅ نقصان نه راځي. او دلته که الف لام ساقط شي نو لازم به شي نکارت د مبتداء او اسمي څکه نه دی. چې دلته دا اسمیت د مبني په وصفیت غالب شوې دی او وصیت مغلوب شوی دی

**۲: صیغه د مبني**: مبني صیغه د اسم مفعول وه. نو دلته یو سوال وارد یږي:

**سوال**: دا صیغه د اسم مفعول د ثلاثه مجرد ده او که د مزید؟ په دواړو اعتراض راځي که د ثلاثي مجرد نه شي، نو د هغې اسم مفعول به په وزن د مفعول راځي نو دا خو هغه وزن نه دی، او که د مزیدو نه شي د مزیدو اسم مفعول د هغه باب د فعل مضارع په شان وي، هو ابتداء کې میم مضمومه او ما قبل آخر کې مفتوح وي او دلته خو میم مفتوح دی او ما قبل آخر مکسور دی؟

**جواب**: کله چې سوال په شقونو وشي، طریقې د جواب دوه وي، په دغه شقونو کې یو شق غوره کول یا اختیار د شق آخر کول. دلته مونږ په اول طریقه سره جواب کوو، مونږ وایو دا صیغه د اسم مفعول د ثلاثي مجرده ده که ته وایې دا په هغه وزن نه ده؟ نو مونږ وایو ددې ظاهر ته مه ګوره بلکې ددې اصل ته ګوره اصل کې دا مبني بر وزن مفعول وو، بیا د مرمّي په قاعده سره تبدیلي راغله. او هغه قاعده داده چې کله واو یا په آخر د اسم کښې جمع شي او اول ساکن وي نو دغه واو یاء سره بدلیږي او یاء په یاء کې مدغم کېږي او ما قبل د یاء ضمه چې کسره سره بدلیږي، نو مبني شو بیا الف لام داخل شو نو هغه تنوین وغورځیدو، نو المبني پاتې شو

**۳: معنی لغوي**: مبني لغت کښې جوړ کړې شوې ته وایي. مصطلح مبني ته هم مبني څکه وایي. چې دا څنګه جوړ کړی شوې وي، نو هم په هغه ترتیب سره وي. لکه هؤلآء

**اقسام د مبني**: مبني په دوه قسمه ده. (۱) مطلق مبني (۲) مبني مقید: (۱) مطلق مبني هغه ده

چې د هغې حرکت او سکون د عامل د وجې نه ،نه وي (۲) او مبني مقید هغه ده چې قید ورسره ولګیږي.

دا په دوه قسمه ده مبني الاصل او اسم مبني، مبني الاصل هغه ده چې هیڅ قسم اعراب پرې نه راځي. نه لفظي نه تقدیري او نه محلي او د اسم مبني تعریف وروستو را روان دی.

بیا د مبني الاصل په اقسامو کې اختلاف دی، جمهور وایي چې دا درې دي فعل ماضي، امر حاضر، جمله حروف. او د صاحب المفصل په نزد څلور دي، هغه ورسره جمله من حیث هي الجملة هم شمار کوي. او د اسم مبني اته اقسام دي، وروستو تفصیل سره بیانیږي.

دلته یوه خبره زده کړئ چې باسولي هم کړې ده هغه دا چې په اسماو کې اصل اعراب او اصل په افعالو او حروفو کې بناء ده، د هغې وجه داده چې اسماء محل د معاني محتوره ده، چې عبارت دی د فاعلیت مفعولیت او اضافت نه او معاني معتوره محتاج دي علاماتو ته د وجې د التباس نه یو بل سره او هغه علامات نه دي، مګر اعراب دي. او اصل په افعالو او حروفو کښې بناء ځکه ده چې دا محل دی معاني معتوره نه دی. نو التباس په کې نه راځي. نو علاماتو ته ضرورت نشته.

دوهمه وجه خاص په فعل کې داده چې فعل ثقیل دی، ځکه دامشتمل دی په نسبت حدث او زمان باندې، نو دا تقاضا د تخفیف کوي او اعراب هم ثقیل دی. ځکه چې چلیدل په ډیرو لارو داثقیل دي د چلیدلو په یو لاره نه.

نو مونږ فعل مبني کړو او اسم خفیف دی، ځکه دې کې صرف نسبت وي، نو دا تقاضا د ثقل کوي او اعراب ثقیل دی. نو دا مونږ معرب کړو.

<u>الاسم المبني</u>: غرض د شارح په دې عبارت سره یو خو د المبني صفت دپاره موصوف راویستل دي او دا یې تفصیل د متن وکړو. دوهم غرض د شارح په دې عبارت سره دفع د یو سوال ده:

**سوال**: ستا دا تعریف صحیح نه دی ځکه چې دا مشتمل دی په دور باندې او کوم تعریف چې په دور مشتمل وي هغه صحیح نه وي دا هم صحیح نه.

**جواب**: شارح ددې سوال د دفع کولودپاره الاسم قید ولږولو، حاصل د جواب دادې چې مراد د مبني نه اسم دي. نو دور لازم نه شو. ځکه اسم مبني په خپل پیژندو کښې مبني الاصل ته محتاج دی. لیکن مبني الاصل په خپل پیژندو کښې اسم مبني ته محتاج نه دی، ځکه دا قسم د اسم مبني نه دی. بلکې د مبني مطلق دی. لهذا تعریف د مجهول په مجهول سره لازم نه شو

قوله وهذا الحد الخ: په دې عبارت سره غرض دشارح ديو سوال جواب ورکول دي:

**سوال**: مبني مطلق دی او تا ورسره قيد د الاسم ولړولونو داخو تقييد د مطلق دی، او تقييد دمطلق خو مجاز دی، او مجاز ته سيرورت په وخت د قرينه کې کېږي، او دلته قرينه نشته.

**جواب**: حاصل د جواب دادې چې که مونږ د مبني نه اسم مبني وانه خلو، نو يو ددوه کارونو نه به لازم شي، او هغه دا چې دا کس به مطلق مبني پېژني يا نه، نو که نه پژني نو لازميږي تعريف د مجهول په مجهول سره او که يې پيژني نو لازميږي تحصيل د حاصل. او دا دواړه ناروا دي، نو مونږ اسم مبني مراد کړو، نو تعريف د مجهول په مجهول سره لازم نه شو، ځکه دغه ک. به مطلق مبني پيژني او تحصيل د حاصل هم نشته، ځکه اسم مبني دې نه پيژني بيا په دې عبارت کښې دوه دعوې دي، د دعوی اولي دپاره دليل ذکر دی او بيا د هغه دليل دپاره دليل ذکر دی و او دعوی ثاني دپاره دليل نشته، ځکه هغه واضح ده.

وهذا الحد لا يصح الالمن الخ: دا اوله دعوی ده حاصل ددې دادې چې دا تعريف د اسم مبني هله صحيح کېږي، چې يو خو دغه کس تعريف د مطلق مبني پيژني.

اذ لولم يعرفها الخ: دا دليل ددې دعوی دی حاصل يې دادې چې که چيرته دغه کس مطلق مبني نه پيژني، نو لازميږي تعريف د مبني په مبني سره يعنې تعريف د مجهول په مجهول سره

لانه ذكر الخ: دا ددې دليل دپاره دليل دی يعنې تعريف د مجهول په مجهول سره لازميږي، چې په دې تعريف کې ده مبني الاصل ذکر کړی دی او ته وايې چې دی مطلق مبني نه پېژني. نو چې مطلق مبني نه پېژني، نو مبني الاصل به چېرته نه وپېژني، ځکه مونږ وايو چې دغه کس به مطلق مبني پېژني، ولا يعرف الاسم المبني دا دوهمه دعوی ده، يعنې دغه کس به اسم مبني نه پېژني، دليل يې دا دی چې که دغه کس اسم مبني پيژني نو دا خو تحصيل د حاصل دی او دا خو باطل دي

مأناسب: په دې عبارت سره غرض دشارح داسم مبني تعريف کول دي، اسم مبني کې دوه څيزونه ضروري دي، يو دا چې دا به: مبني الاصل سره مناسبت ساتي، دوهم دا چې غير مرکب واقع شي. بيا دا دوه څيزونه ځکه ضروري دي چې اصل په اسماوو کې اعراب دی او کوم شی چې د اصل خپل نه اړوي نو هغې دپاره سبب قويه په کار دی او هغه دوه اشياء دي، يو مناسبت د مبني الاصل سره او بل عدم وقوع په ترکيب کې

اي اسمٌ ناسب: غرض د شارح په دې عبارت سره تعيين د لفظ د ما دی، هغه مبهم وونو متعين يې کړو په اسم سره. دوهم غرض د شارح په دې عبارت سره دفع ددوه سوالونو مقدرو ده:

**اول سوال**: دا تعريف ستا د اسم مبني صحيح نه دی. ځکه مانع نه دی د دخول د غير نه ځکه داخل شو په دې کې فعل مضارع هغه هم د فعل ماضي سره په اشتقاق کې مناسبت لري او چونکه لفظ ما عام دی د شئ لفظ ټولو ته شامل دی او فعل مضارع هم يو شی دی. لهذا تعريف دې مانع نه شو؟

**جواب**: دا سوال به تا هله کولې چې مراد د ما نه شئ او لفظ وی، حالانکه د دې نه مراد اسم دی، لهذا فعل مضارع به تعريف نه دی شامل.

**دوهم سوال**: دا تعريف ستا د اسم مبني صحيح نه دی، ځکه متبادر د ما نه ذهن ته دا راځي چې ما موصوله ده او وجه داده چې مقام د تعريفاتو کښې اکثر ما موصوله وي، اوس يو نقصان خو دادې چې مبتداء خبر دواړه معرفي وي، نو هلته ضمير د فصل راوړې شي دپاره د دفع د التباس نه د خبر د صفت سره او دلته هغه نشته او دوهم نقصان دادې چې موصول سره د صلې نه جزء د جملې وي، نو که دا جنس ګرځوو نو فصل نشته او که فصل ګرځوو نو جنس نشته حالانکه په تعريف کې لابدي وي د جنس او فصل دواړو نه.

**جواب**: شارح په اسمٌ سره جواب ورکړو، چې مراد د ما نه اسم دی او اسمٌ نکره دی لهذا دا ما موصوفه ده موصوله نه ده. نو ضمير فصل ته ضرورت نشته، او جنس او فصل هم صحيح کيږي.

**سوال**: ته چې د ما نه موصوفه اخلي نو په دې باندې څه قرينه ده؟

**جواب**: يوه قرينه خو عدم صحت د ما صوله دی د وجې دواقع کيدو د هغه اعتراضونو کوم چې مخکې ذکر شو، او دوهمه قرينه داده چې دا لفظ د ما په مقام د خبر کې واقع دی او اصل په خبر کې نکارت دی.

**سوال**: ستا تعريف صحيح نه شو ځکه چې د لفظ د ما نه ذهن ته دا راځي چې دا په معنی د شئ او لفظ سره وي او دا جنس دی او جنس د شئ مقسم د هغه شي وي حالانکه شي او لفظ مقسم د اسم مبني نه دي، بلکې د دې مقسم اسم دي

**جواب**: شارح جواب وکړو چې مراد د ما نه اسم دی او اسم مقسم د اسم مبني دی لهذا تعريف

صحيح دی.

**سوال**: ذکر د ناسب پس د اسمٔ نه تکرار محضه دی، ځکه مخکې يو ځل ذکر دی؟

**جواب**: که مونږ د اسمٔ سره ناسب ذکر نه کړو، نو لازم به شي ذکر د موصوف په غير د صفت نه. او ذکر د موصوف په غير د صفت نه مستکره دی.

**سوال**: دا اسمٔ به دې د ما نه پس ذکر کړې وي، او بيا به دې ناسب ذکر کړې وو، نو ذکر د موصوف به په غير دصفت نه . نه لازميده اونه به تکرار راتلو

**جواب**: خبره خو دې صحيح ده خو داسې کول صحيح نه دي ځکه چې فصل راځي په مابين د موصوف حقيقي او د صفت د هغې کې په تفسير سره او څنګه چې ذکر د موصوف په غير د صفت نه مستکره دی نو همدارنګې په مينځ د موصوف حقيقي او د صفت ددې کې مستکره دي .

<u>مبني الاصل</u>: په دې عبارت سره غرض دشارح تعريف د اسم مبني کول دي .

<u>و هوالحرف الخ</u>:-غرض د شارح په دې عبارت سره تعريف د مبني الاصل کول دي او په الفاظ ديګر تعيين د مبني الاصل کول دي، اوبل غرض د شارح په دې عبارت سره رد کول دي په صاحب دمفصل باندې، صاحب دمفصل والا وايي چې مبني الاصل څلور دي، درې دامذکور او څلورم ورسره جمله من حيث هي الجملة هم مبني ده، ځکه دا هم فاعليت مفعوليت او اضافت نه قبلوي. ده پرې رد وکړو په داسې شان سره چې مبتداء اوخبر يې معرفه راوړې دی، مبني الاصل يې په دې کې رامنحصرکړو او جمله اګر چې معاني معتوره نه قبلوي ليکن نائب ددې قبلوي، نو دا په حکم د معرب کې ده.

<u>الحرف</u>: دلته يې الحرف مطلق راوړو ټولو حروفو ته شامل دي.

<u>الفعل الماضي</u>: دلته يې الفعل الماضي هم مطلق راوړو. دا هم د بصريانو په نزد ټول مبني الاصل دي او په امر کې صرف امرحاضر مبني الاصل دی نو دې سره يې قيد د بغيراللام ولږولو. دلته يو سوال واردېږي

**سوال**: کله چې په نحو کې د امر ذکر مطلق وشي نو مراد ترې امر حاضر وي، نو ذکر کول د بغير اللام قيد مستدرك او بې فائدې دی؟

**جواب**: دا يې ذکر کړې دي دپاره د شفقت په هغه نوي طالبانو چې د صرفو نه راوتلي وي او د نحوي اصطلاحات يې نه وي پيژندلي د دې دپاره چې چې خطاء نه شي

**سوال**: که دغه وجه وي، نو بيا به يې والامر المخاطب ويلي وي، نو اختصار به راغلي وو سره د حصول د مقصود نه؟

**جواب**: داسې يې ځکه ونه ويل چې امر د مخاطب هم کله د لام سره مستعمليږي لکه فلتفرحوا، او هغه بالاتفاق معرب دی، نو قيد د بغيراللام يې ورسره ولږولو.

والمراد بالمشابهة المنفية الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي

**سوال**: اسم مبني مقابل د اسم معرب دی. او قانون په متقابلينو کې دا دې چې يو شی باحد المتقابلين کنبې وجودي وي، نو په بل کې به عدمي وي، او که په مقابل کې يو شی وجودي وي نو په اول کنبې به عدمي وي، او س په اسم معرب کې دا ذکر وو فالمعرب المركب الخ نو دلته او وقع غير مرکب راغلي دي دا خو صحيح ده ليکن هلته عدمي جزء لم يشبه مبني الاصل ذکر دی، نو په کار دا وه چې دلته ما شابه ذکر وي، ليکن دلته مناسب ذکر دي. نو تعريف دې صحيح نه شو، ځکه چې ددې قانون خلاف دې وکړو؟

**جواب**: شارح جواب ورکړو چې هلته کوم مشابهت منفي دی، دهغې نه مراد هم دغه مناسبت دی، ځکه که هلته مونږ د مشابهت نه مناسبت وانه خلو نو ډير اسماء مبنيات به په اسم معرب کې داخل شي لکه اين چې دا د مبني الاصل سره مشابهت نه ساتي. هو مناسبت ورسره ساتي

**فائده**: په دې مقام کې يو څو الفاظ دي چې قابل د ذکر کولو دي (۱) مجانست (۲) مماثلت (۳) مشابهت (۴) مناسبت (۵) مشاكلت.

**مجانست**: هغه ته وايي چې په جنس کې مشترک وي، لکه انسان او بقر چې په حيوانيت کې سره مشترك دي

**مماثلت**: هغه ته وايي چې په نوعې کې سره مشترک وي لکه اشتراك د رجل او مرأة په انسانيت کې، چې په نوعيت کې سره دواړه مشترک دي.

**مشابهت**: هغه ته وايي چې په وصف کې سره مشترک وي او هغه وصف د احد المذکورين سره لازم هم وي او هغه په کې مشهور هم وي، لکه زيدٌ او اسد، چې په شجاعت کې سره مشترك دي او شجاعت د اسد سره لازم دی او دې په کې مشهور هم دی

**مناسبت**: هغه ته وايي چې چې په وصف کې مشترک وي خو دا وصف يو د دې دواړو سره لازم هم نه وي، او په کې مشهور هم نه وي لکه حمي د زيد او اسد ، دلته حمي يعنې تبه د زيد او اسد سره لازم هم نه ده او مشهور هم نه ده

**مشاكلت**: هغه ته وايي چې په شکل کې سره مشترک وي لکه شکل د فرس چې په ديوال منقوش وي دا مشابهت ساتي په ځمکه ولاړ ژوندي فرس سره.

ولقد فصل الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره تفصيل د هغه مناسبت کول دي کوم چې تعريف د اسم مبني کښې ذکر دي، او بل غرض د شارح په دې عبارت سره دفع د يو سوال ده:

**سوال**: د مناسبت نه ته کوم مناسب اخلې؟ مناسبت مطلقه او که موثره في البناء او که مناسبت قويه ، يو هم نه صحيح کيږي : که مناسبت مطلقه مراد اخلې نو بيا خو ټول اسماء په کار دي چې مبني شي، ځکه ټول اسماء د مبني الاصل سره څه نه څه مناسبت لري که نور هيڅ هم نه وي نو په لفظ کې خو ورسره مناسبت لري، چې اسم هم لفظ دي او مبني الاصل هم الفاظ دي، او که ترې مناسبت موثره في البناء مراد واخلې، نو لازميږي اخذ د مجدود په حد کې، ځکه په محدود کې مبني ذکر ده. او تا په حد کې بيا بناء ذکر کړه او اخذ د محدود په حد کې ناروا دی. او که مناسبت قويه اخلې نو هغه مجهول دي، او په مجهول سره خو تعريف نه صحيح کيږي.

**جواب**: مونږ جواب په دې طريقه سره کوو چې په دغه مناسبتونو کې يو مناسبت غوره کوو، نو مونږ وايو چې مراد د مناسبت نه مناسبت قويه دی، او هغه مجهول نه دی، بلکې صاحب دمفصل د هغې تفصيل کړې دي او خبره د صاحب المفصل په دې باب کې مستنده ده، ځکه چې صاحب دمفصل دا د مصنف استاذ دی.

يا هغه ، [illegible]سبت هغه شپږ قسمه ذکر کړې دي، ليکن دا حصر په دې شپږ اقسامو کې حصر [illegible]ستقرائي [illegible]، حصر عقلي نه دی، دې سره مونږ دفع د يو سوال وکړه :

**[illegible]ال**: دا حصر د مناسبت په شپږ اقسامو کې صحيح نه دی، د وجې د وجود د دې قسم آخر نه [illegible] هغه مناسبت وضعي دی، يعنې يو حرف د مبني الاصل سره په وضع کې مشابه وي، لکه کَمْ د اذ سره په وضع کې مشابه دي په دواړو کې دوه حرفونه دي، نو دا مناسبت هم قوي دی. او صاحب دمفصل نه دی ذکر کړې؟

**جواب**: دا سوال به تا هله کولې، چې مونږ دلته حصرته حصرِ عقلي ويلې، حالانکه مونږ دلته

حصر ته حصر استقرائي وايو

**فرق په مینځ د حصرِ عقلي او حصرِ استقرائي کې**: فرق په مابين د حصرِ عقلي او استقرائي کې دا دی چې حصرِ عقلي هغه ته وايي چې عقل جائز نه ګڼي. اتيان د قسم آخر لره او علامه يې دا ده چې دا دائر بين النفي والاثبات وي

او حصر استقرائي هغه ته وايي چې تلاش سره معلوم شي او عقل جائز ګڼي اتيان د قسم آخر او علامه يې داده چې دا اکثر دائربين النفي والاثبات نه وي.

**بانها اما يتضمن الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د مناسبت قويه اول قسم رانقل کول دي. دې ته مشابهت معنوي وايي چې يو اسم متضمن وي معنی د مبني الاصل لره.

**مثل اين غرض**: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال ذکر کول دي.

**فانه يتضمن الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح تطبيق د مثال کول دي د ممثل سره، يعنې دا اين په معنی د همزه استفهام دی، نو ددې وجې نه مبني دی.

**او يشبهه له**: په دې عبارت سره غرض د شارح د مناسبت قويه دوهم قسم ذکر کول دي، دې ته مشابهت افتقادي وايي، چې يو اسم د مبني الاصل سره په احتياج کې مناسبت مشابهت لري

**لالمبهمات**: په دې عبارت سره غرض د شارح د مثال کلي ذکر کول دي، مراد ددې نه اسم اشارات، موصولات او ضمائر دي، دې ته مبهمات ځکه وايي چې ضمائر مخکې دقرينې د مخاطب، متکلم او غيبوبت نه، او اشارات مخکې د مشارٌ اليه نه، او موصلات مخکې د صله نه مبهم وي، اګر چې پس د قرينې نه په کې ابهام نه وي.

**فانها تشبه الحرف الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح تطبيق د مثال دی د ممثل سره. يعنې دا حرف چې څنګه ضمّ د ضميمې ته محتاج وي، نو همدارنګې ضمائر، اسماء اشارات مشارٌ اليه ته او موصولات صلې ته محتاج دي، نو ددې احتياج وجې نه يې ورسره مناسبت راغلو.

**او وقوعه موقعه**: په دې عبارت سره غرض د شارح دمناسبت قويه دريم قسم نقل کوي، دې ته مشابهت وقوعي وايي، چې يو اسم د مبني الاصل په ځای واقع ويو کنزال غرض د شارح مثال ذکر کول دي،

**فانه واقع الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح تطبيق د مثال دی، د ممثل سره.

**او مشاكلته للواقع موقعه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د مناسبت قويه څلورم قسم ذكر كول دي، دې ته مشابهت شبهې وقوعي وايي، يعنې يو اسم مشابهت لري د يو داسې اسم سره چې هغه په ځاى د مبني الاصل واقع وي.

**كفجار**: په دې عبارت سره غرض د شارح مثال ذكر كول دي، فجار ناكاره او بد كرداري زنانه ته وايي.

**او وقوعه ما اشبهه**: په دې عبارت سره غرض د شارح د مناسبت قويه پنځم قسم ذكر كول دي، دې ته مشابهت وقوعي شبهې وايي، يعنې يو اسم د داسې اسم په ځاى واقع وي، چې د مبني الاصل سره مشابهت ساتي.

**كالمنادى المضموم**: په دې عبارت سره غرض د شارح ذكر كول د مثال دي، لكه يا زيدٌ شو

**فانه واقع الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح تطبيق د مثال كول دي. د ممثل سره دې مثال كې دا زيد واقع دى، په ځاى د كاف اسمي خطابي د ادعوك ځكه يا زيدٌ په معنى د ادعوك سره دى او كاف اسمي خطابي مشابهت لري د كاف حرفي خطابي سره او كاف حرفي خطابي مبني الاصل دى، نو دا زيد هم مبني شو.

| |
|---|
| أَوْ إِضَافَتُهُ إِلَيْهِ كَقَوْلِهِ تَعَالَى مِنْ عَذَابِ يَوْمَئِذٍ فِيمَنْ قَرَأَ بِالْفَتْحِ أَوْ وَقَعَ |
| يايې اضافت شوې وي دې ته لكه په دې قول د الله تعالى كې عن عذاب يومئذ په قرأت دفتحې ياواقع |
| غَيْرَ مُرَكَّبٍ مَعَ غَيْرِهِ عَلَى وَجْهٍ يَتَحَقَّقُ مَعَهُ فَعَلَى هَذَا الْمُضَافُ مِنَ |
| شي غيرمركب سره دبل چاپه داسې شان چې متحقق وي د هغه سره عامل د هغه بناء پر دې مضاف د |
| الْمُرَكَّبَاتِ الْإِضَافِيَّةِ الْمَعْدُودَةِ كَغُلَامِ زَيْدٍ وَغُلَامُ عَمْرٍو وَغُلَامُ بَكْرٍ مَبْنِيٌّ وَ الْمُضَافُ إِلَيْهِ مُعْرَبٌ وَ لَمَّا كَانَ |
| مركبات اضافيومعدودونه لكه غلام زيدوغلام عمروغلام بكرمبني دي اومضاف اليه معرب ده اوكله |
| الْمَبْنِيُّ مُقَابِلًا لِلْمُعْرَبِ وَاعْتُبِرَ فِي الْمُعْرَبِ أَمْرَانِ التَّرْكِيبُ وَ عَدَمُ الْمُشَابَهَةِ لِمَبْنِيِّ |
| چې مبني مقابل دمعرب وو اومعتبروپه معرب كې دوه امور يو تركيب او دوهم عدم مشابهت د مبني |
| الْأَصْلِ كَانَ الْمَبْنِيُّ مَا انْتَفَى فِيهِ مَجْمُوعُ هَذَيْنِ الْأَمْرَيْنِ إِمَّا بِانْتِفَائِهِمَا مَعًا أَوْ |
| الاصل سره نوشو مبني هغه چې منتفي به وي په كې دا دواړه امرونه يابه دواړه يوځاى منتفي وي يابه |
| بِانْتِفَاءِ أَحَدِهِمَا فَقَطْ فَكَلِمَةُ أَوْ هَهُنَا لِمَنْعِ الْخُلُوِّ وَ إِنَّمَا اخْتَلَفَ تَرْتِيبُ ذِكْرِ |
| يومنتفي وي فقط نولفظ داودلته دپاره دمنع كيدلودخالي والې دي اومختلف كړې شوترتيب دذكركولو |

| الْمُشَابَهَةِ وَ التَّرْكِيبُ فِي تَعْرِيفِي الْمُعْرَبِ وَ الْمَبْنِيِّ تَقْدِيمًا وَ تَأْخِيرًا |
|---|
| دمشابهت اوهمدارنګه ترکیب په دواړوتعریفونو دمعرب اومبني کې په اعتباردتقدیم اوتاخیرسره له |
| إِيثَارًا لِتَقَدُّمِ مَا مَفْهُومِهِ وُجُودِيٌّ لِشَرَفِهِ. |
| وجې دتاثیردتقدیم دهغه چې ومفهوم دهغې وجودي دوجې دشرافت نه. |

**اغراض دجامي** : **او اضافته اليه** : په دې عبارت سره غرض د شارح د مناسبت قويه شپږم قسم رانقل کول دي. دې ته مناسبت اضافي وايي، يعنې يو اسم مبني الاصل ته مضاف وي بالواسطه يا بلاواسطه

**کقوله تعالى الخ** : په دې عبارت سره غرض د شارح ذکر کول دمثال دي، دا مثال د هغه دی چې يو اسم مبني الاصل ته بالواسطه مضاف وي، دلته يوم مبني بر فتحه دی، ځکه دا جملې ته په واسطه د از سره مضاف دی. د **فيمن قرأبالفتح** مطلب دادی چې په دې مقام کې په فتحه کې فتحه ويل واجب نه دي، بلکې جائز دي، نو که چا مکسور ويلو نو بيا دا مثال د مناسبت اضافي نه صحيح کيږي، او مثال د هغه چې بلاواسطه مبني الاصل ته مضاف وي لکه يوم ينفع الصادقين، دلته يوم بلاواسطه جملې ته مضاف دی، او جمله د صاحب المفصل په نزد مبني ده. نو دا يوم هم مبني بر فتحه دی.

**او وقع غير مرکب** : په دې عبارت سره غرض د ما تن په دې عبارت سره د تعريف د اسم مبي دوهم جزء ذکر کول دي، دې سره مونږ دفع د سوال وکړه:

**سوال** : داتعريف ستا د اسم مبني صحيح نه دی، ځکه دا مشتمل دی په کلمه د شك باندې، او کوم تعريف چې شان يې دا وي هغه صحيح نه وي، دا هم صحيح نه وي. دليل د صغرى دادې چې لفظ داو راغلې دی او دا دپاره د تشکيك راځي . دليل د کبرى دادې چې تعريف دپاره د وضاحت راځي نه که دپاره د تشکيك؟

**جواب**: مونږ جواب وکړو چې دا سوال به تا هله کولی چې دا او مونږ دپاره د تشکيك ويلې، حالانکه دا مونږ دپاره د تنويع وايو. بيا دلته يوه قاعده ده هغه داچې اسم به مرکب مع الآخر وي يا نه، که نه وو ، نو دا مبني دی لکه زيد، عمرو، بکر او که مرکب مع الآخر وو نو يابه د مبني الاصل سره مناسبت ساتي اويا نه، که مناسبت ساتي نو دا مبني دی لکه جآءني هؤلآء ، او که مناسبت

نه ساتي نو تحقیق د عامل به ورسره شوې وي او یا نه، که نه وو شوی نو دا مبني دی، لکه غلام زیدٍ، او که تحقیق د عامل ورسره شوې وو، نو دا معرب دی، لکه جآءني زیدٌ.
پس د اسم تول څلور حالتونه دي، په درې حالتونو کې مبني او په یو حالت کې معرب دي او هغه داچې په ترکیب کې واقع شي تحقق د عامل ورسره شوی و او مناسبت د مبني الاصل سره نه ساتي.

مع غیره: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: دا تعریف ستا د اسم مبني صحیح نه دی، ځکه دا مانع نه دی د دخول د غیر نه، داخل شو په کې جآءني زیدٌ، او کوم تعریف چې مانع د دخول د غیر نه، نه وي هغه صحیح نه وي، دا هم صحیح نه شو، دلیل د صغری دادی چې زیدٌ په جاءني زیدٌ کې غیر مرکب دی، ځکه مرکب اصطلاحي خو هغه وي چې جزء د لفظ په جزء د معنی دلالت کوي او زید خو داسې نه دی، نو دا غیر مرکب شو، او دلیل د کبری دا دی چې په تعریف کې مانعیت اوجامعیت ضروري وي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو چې مراد زمونږ په تعریف د اسم مبني کې د مرکب منفیه نه هغه مرکب لغوي مراد دی، او دا تا چې کوم ذکر کړی دی، نو دا مرکب اصطلاحي دی. بناء په دې خبره زیدٌ په تعریف د اسم مبني کې نه داخلیږي.

**سوال**: دا لفظ د مرکب خو مطلق ذکر دی، نو څه قرینه ده چې ته ترې مرکب لغوي اخلې؟

**جواب**: دا اسم قسم د کلمه دی او ماخوذ په تعریف د کلمې کې هغه مفرد دی، چې مقابل د مرکب اصطلاحي دی، نو د قسم په تعریف کې به هم مراد د مرکب نه مرکب لغوي وي چې مقابل د مرکب اصطلاحي دی.

على وجه تحقيق معه عامله: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي.

**سوال**: دا تعریف ستا د اسم مبني هم صحیح نه دی، ځکه دا جامع نه دی خارج شو ترې مرکبات اضافیه او کوم تعریف جامع نه وي نو هغه صحیح نه وي، نو لهذا ستا دا تعریف هم صحیح نه شو

**جواب**: مونږ دې سره یو قید لګوو او هغه دا چې تحقیق د عامل به ورسره شوی وي، بناء په دې قید باندې تعریف جامع دی، ځکه ټول مرکبات اضافیه کې عامل په مضاف کې نښتنه نو دا مبني شو

**فعلی هذا**: اوس تفریع په ما قبل کوي. په دې قید سره د مرکبات اضافیه هغه د مضاف جزء مبني دی، ځکه د عامل ورسره نه دی شوی او هغه مضاف الیه جزء یې معرب دی، ځکه تحقق د عامل ورسره شوی دی. مضاف الیه کې ستا عامل وي.

**لکلمة او ههنا لمنع الخلو**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : دا تعریف ستا صحیح نه دی، ځکه خارج شو ترې هؤلاء، چې یوائې واقع وي، نو تعریف جامع نه شو او کوم تعریف چې جامع نه وي هغه صحیح نه وي، نو لهذا دا هم صحیح نه شو؟

**جواب**: مونږ وایو دا سوال به تا هله کولې، چې او دپاره د انفصال حقیقي یا مانعة الجمع وی، حالانکه دا مونږ ... د ... خلو وایو. یعنې ددې دواړو نه خالي والی صحیح نه دی، اوس که دواړه جمع ... ترې هیڅ نقصان نشته.

**فائده**: انفصال په درې قسمه دی. انفصالِ حقیقي، مانعة الجمع، مانعة الخلو.

**انفصالِ حقیقي**: چې د دوه څیزونو په مینځ کې داسې منافات وي چې د دواړو ارتفاع هم ناجائز وي او اجتماع یې هم ناجائز وي.

**مانعة الجمع**: د دوه څیزونو په مینځ کې داسې منافات وي، چې اجتماع د دواړو منع وي او ارتفاع یې جائز وي.

**مانعة الخلو**: د دوه څیزونو په مینځ کې داسې منافات وي، چې ارتفاع د دواړو ناجائز وي، خو اجتماع یې جائز وي، او په تعریف کې او په دغه معنی دی.

**ولما کان المبني الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د یو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال** : دا او مشترک دي په مینځ د مانعة الجمع او په مینځ د مانعة الخلو کې او ته ترې صرف مانعة الخلو اخلې په دې دتاسره څه قرینه ده؟

**جواب**: اسم مبني مقابل د اسم معرب دی او په اسم ... کې دوه خبرې وي، یو ترکیب او ... د مبني الاصل سره ... اسم مبني به هغه وي چې ... دوه څیزونه به کې

منتفي وي اوس كه دغه دواړه منتفي وو نو هم اسم مبني دى، او كه يو په كې منتفي وو نو هم اسم مبني دى.

وانما اختلف الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال مقدر جواب وركول دي:

**سوال**: مصنف عمده او قوي شخص دى او د عمده شخص په كلام كې تبديلي د نكتې نه خالي نه وي، نو څه نكته ده چې ماتن د معرب په تعريف كې تركيب مقدم كړو او دمبني په تعريف كې مناسبت؟

**جواب**: چونكه د معرب تعريف كې تركيب وجودي امر وو نو هلته يې هغه مقدم كړو او د مبني هغې كې مناسبت وجودي وو نو دلته يې هغه مقدم كړو او وجودي شى اشرف وي، مقدم كول يې په كار وي.

## القاب د مبني:

| |
|---|
| وَ اَلْقَابُهُ اَیْ اَلْقَابُ الْمَبْنِیِّ مِنْ حَیْثُ حَرَكَاتِ اَوَاخِرِهٖ وَ سُكُوْنِهَا عِنْدَ الْبِصْرِیَّةِ ضَمٌّ وَ فَتْحٌ وَ كَسْرٌ لِلْحَرَكَاتِ الثَّلٰثِ |
| او القاب د مبني د حيثيت د حركات اخيريو او د سكون نه په نزد د بصريانو ضمه فتحه كسره دي د دري حركاتو |
| وَ وَقْفٌ لِلسُّكُوْنِ وَ اَمَّا الْكُوْفِيُّوْنَ فَیَذْكُرُوْنَ اَلْقَابَ الْمَبْنِیِّ فِی الْمُعْرَبِ وَ بِالْعَكْسِ |
| د پاره او وقف دي د سكون د پاره نو كوفيين ذكر كوي القاب د مبني په معرب كې او د معرب په مبني كې |
| وَ الْمُرَادُ اَنَّ الْحَرَكَاتِ وَ السَّكَنَاتِ الْبِنَائِیَّةِ لَا یُعَبِّرُ عَنْهَا الْبِصْرِیُّوْنَ |
| مراد داچې د حركاتو او سكناتو بنائيه نه تعبير نه كوي تعبير نه كوي بصريين مگر په دغه القابو، نه داچې |
| اِلَّا بِهٰذِهِ الْاَلْقَابِ لَا اَنَّ هٰذِهِ الْاَلْقَابَ لَا یُعَبِّرُ بِهَا اِلَّا عَنْهَا فَاِنَّهُمْ كَثِیْرًا مَا یُطْلِقُوْنَهَا عَلٰی |
| د دې القابو نه تعبير نه شي كيدې په دې سره مگر د دې نه په دې سره او ډير ځلې اطلاق كوي دوي په |
| الْحَرَكَاتِ الْاِعْرَابِیَّةِ اَیْضًا كَمَا مَرَّ فِیْ صَدْرِ الْكِتَابِ حَیْثُ قَالَ بِالضَّمَّةِ رَفْعًا وَ الْفَتْحَةِ نَصْبًا |
| حركات اعرابيو هم لكه څنگه چې په سر د كتاب كې په داسې شان چې ويلي دي بالضمة رفعا والفتحة نصباً |
| الْكَسْرَةِ جَرًّا وَ عَلٰی غَیْرِهَا كَمَا یُقَالُ الرَّاءُ فِیْ رَجُلٍ مَثَلًا مَفْتُوْحَةٌ وَ الْجِیْمُ مَضْمُوْمَةٌ |
| والكسرة جراً او په غير د دې باندې لكه څنگه چې ويل كيږي راء په مثل د رجل مفتوحه ده او جيم مضموم |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره صاحب د كافيې د مبني القاب بيانوي.

**اغراض د جامي**: والقابه: په دې عبارت سره شارح دوه خبرو ته اشاره كوي: چې يو ربط او بل تشريح د عبارت

ربط معنوي دا دی. چې کله ماتن فارغ شو دتعریف د اسم مبني نه. نو په القابو داسم مبني يې شروع وکړه . ربط لفظي دادې چې دا واو عاطفه دي يا استئنافيه دي القابه مضاف اليه مقدر ده او ضمّ الخ ورلره خبر دی، مبتداء سره د خبر نه جمله اسميه معطوفه يا مستانفه ده.

ای القاب المبني: په دې عبارت سره شارح په القابه کې د ۂضمير مرجع متعين کړه چې د ضمير مرجع مبني ده .

دلته دوه سوالات واردیږي .

**اول سوال**: دا ذکر د القاب يې دوباره ولې وکړو دا خو تکرار دی صرف ای المبني به يې ويلې وي؟

**جواب**: که المبني يې په غير د القاب نه ذکر کړې وې نو بيا لازميدو ذکر د مضاف اليه په غير د مضاف نه او دا مستکره دي په نزد د عربو باندې.

**دوهم سوال** : دا ضمير به يامبني ته راجع کوې اويا حرکاتو د بناء ته ، که مبني ته يې راجع کړې نو حمل د ضمّ وفتح وكسرالخ پرې نه صحيح کېږي ځکه القاب د مبني خو مضموم کيدل دي . او که حرکاتو د بناء ته ضمير راجع کوې نو اضمار قبل الذکر لازميږي، او بل داچې مطابقت نه راځي په مينځ د ضمير او مرجع کې.

**جواب** :ضمير مبني ته راجع دی. او چې ته وايې چې حمل نه صحيح کېږي نو د هغې جواب شارح کوي په من حيث حرکات او اخره سره چې حاصل د جواب دادې چې دا ضمير مونږ مبني ته من حيث المبني نه راجع کوو بلکې د من حيث حرکات اواخره نه ورته راجع کوو، او علاقه ددې په مينځ کې داده چې دا مبني مشتمِل دی او دا القاب مشتمَل دي. او کتابونو والاترې په ادنی ملابست سره تعبير کوي.

عندالبصرية: په دې عبارت سره شارح اول دفع د يو سوال کوي او دوهم اختلاف طرف ته اشاره کوي .

**سوال** : د عبارت د ماتن نه معلوميږي چې دا مذکور القاب به صرف ترمبني پورې خاص وي، حالانکه ددې استعمال خو په غير د مبني کې هم کېږي

**جواب**: دا سوال به ته هله کولې چې زما دا قول بناء وی په مذهب د مطلق نحاتو، حالانکه

دلته زما دا قول په مذهب د بصریینو بناء دی . فائدفع الاشکال
او تفصیل د اختلاف دادې چې په عربي ژبه کې په حرکاتو چې کوم اطلاقات کیږي په هغ
کې درې قسمه اقوال دي
۱- **کوفیان** وايي چې په حرکاتو د معرب د مبني اطلاق هم کولې شې او په حرکاتو د مبني
معرب د حرکاتو اطلاق هم کولی شې. ماته اختیار دی
۲- **بصریان** وايې چې حرکات د معرب د اسم معرب پورې خاص دي په غیر د معرب ي
اطلاق نه شي کیدای او اسم مبني د القابو پورې خاص دی. یعنې ددې د حرکاتو نه تعبیر
هم کسر فتح سره کولې شي په بل څه سره نه شي کولې خو دا القاب په غیر د اسم مبني ک
استعمالیږي
۳- بعضې نحاة وايي چې دحرکاتو د معرب نه به په رفع،نصب ،جر او جزم سره تعبیر کو
شې او دحرکاتو د مبني نه به په ضمٌ فتحٌ کسرٌ سره تعبیر کولی شي او ضمةٌ فتحةٌ کسرةٌ بالتاء ع
دی په دې دواړو کې مستعملیږي، او دا مذهب غوره دی.
ضمٌ: ضمه ورته ځکه وايي چې دا په انضمام د شفتینو سره ادا کیږي.
فتحٌ: فتحه ورته ځکه وايي چې دا په انفتاح د فم سره ادا کیږي .
کسرٌ: کسره ورته ځکه وايي چې دا په انکسار د صورت سره ادا کیږي، یا په انکسار د شف
سفلی سره ادا کیږي
للحرکات الثلث: په دې عبارت سره غرض د شارح دفع دیو وهم ده
**وهم** :وهم دا راتلو چې دا سکون د حرکاتو کوم قسم دی ، یا چا به ویل چې دا ضمه فتح
کسره هم په سکون کې داخله ده، نو ده ورسره دا عبارت ولګولو چې مونږ دلته تجزیه کو
ضمٌ فتحٌ کسره حرکات ثلاثه دپاره راځي او سکون د وقف دپاره راځي.
و اما الکوفیون: په دې عبارت سره غرض د شارح د عندالبصریة قید فائده ذکر کول دي
مخکې مونږ تفصیل کړې دی بیا دې مقام کې یو خارجي سوال دی. هغه د چې متن حرک
د معرب کې انواعه ویلې دی. او دلته یې الثلثه وویلو دا ولې؟ حرکات د معرب
جدا جدا نوع دلالت کې. هغې نه اعراب وايې. یعنې رفع په فاعلیت. نصب نه مفعولیت
حکم په اضافت. نو دولو نه ور لره مونږ شره انواع کښېنودل. او حرکات د مبني په جه جه

نوع دلالت نه کوي بلکې محض نومونه دي. نو دې ته مونږ القاب ويلو ځکه لقب د شي نوم د هغه شي وي

والمراد ان الحرکات والسکنات البنائية: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: د ماتن د عبارت نه معلومېږي، چې دا القاب به خاص وي د اسم مبني پورې حالانکه ددې استعمال په غير د مبني کې هم کيږي؟

**جواب**: تا به دا سوال هله کولې چې اختصاص نه زمونږ اختصاص خاص مراد وی. بلکې مونږ اختصاص عام مراد اخلو. اختصاص دوه قسمه دی اختصاص خاص او اختصاص عام، اختصاص خاص هغه ته وايي چې د جانبينو نه اختصاص وي او اختصاص عام هغه ته وايي چې د جانب واحد نه اختصاص وي دلته دا اختصاص د جانب د مبني نه دی. يعني د اسم مبني نه تعبير د القابو نه علاوه بل څه سره نه کېږي. هر چه القاب دي. نو دې سره د نورو اسماوو د حرکاتو نه تعبير کېدای شي. ځکه ابتداء د کتاب کې مونږ ويلې دي بالضمة رفعا الخ د اسند دپاره د ما قبل دعوې پيش کوي.

## حکم دمبني :

| |
|---|
| وَحُكْمُهُ أَىْ حُكْمُ الْمَبْنِيِّ وَاَثَرِهِ الْمُتَرَتِّبُ عَلٰى بِنَائِهِ اَنْ لَا يَخْتَلِفَ اٰخِرُهُ اَىْ آخِرَ الْمَبْنِيِّ لٰكِنْ لَا مُطْلَقًا بَلْ |
| اوحکم يعنې حکم د مبني اواثرمرتبه د مبني دادې چې نه به مختلف کيږي آخر دهغې،نه مطلقاً مګر |
| لِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ اِذْ قَدْ يَخْتَلِفُ آخِرُهُ لَا لِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ نَحْوُ |
| په اختلاف د عواملوسره ځکه چې کله مختلف کيږي آخر د مبني نه دوجې د اختلاف د عواملو نو په مثل |
| مَنِ الرَّجُلُ وَ مَنِ امْرِءٌ وَ مَنْ زَيْدٌ . |
| د من الرجل ومن امرء ومن زيد . |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره حکم دمبني ذکر کوي .

**اغراض دجامي** : وحکمه: په دې عبارت سره شارح څلورو خبرو طرف ته اشاره کوي. ۱ ربط. ۲ معاني د حکم ۳ تعيين د ماهو المراد ۴ تشريح د عبارت.

ربط معنوي دا دی چې کله فارغ شو ماتن د اسم مبني دتعريف او القابو نه . نو شروع يې وکړه په دريمه خبره د اسم مبني کې چې حکم د اسم مبني دی. ربط لفظي دا دی، چې حکمه مبتداء دهاو ما بعد کلام په تاويل د مصدر سره خبر دی. مبتداء سره د خبر نه جمله اسميه شوه. هر

چې معاني د حکم دی نو حکم په لغت کې فرمودنِ کارِي ته وايي، او په اصطلاح د نحاتو کې الاثر المترتب على الشيء ته وايي، اوپه اصطلاح د اصوليانو کې خطاب الله تعالى المتعلق بافعال المكلفين ته وايي دا هغه کیفیت دی چې لاحق کیږي نفس ته بعد الادراك. بیا په دې مقام کې د حکم نه مراد اثر مرتبه دی، کوم چې د نحاتو اصطلاح ده.

اي حكم المبني: په دې عبارت سره غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

واثره المترتب الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: اثر د شيء خو صادر من الشئ وي، او دلته خو عدم اختلاف دا اثر د بناء دی. د مبني خو نه دی نو مبني ته یې نسبت څنګه کوي؟

**جواب**: دا نسبت چې د حکم مبني ته شوې دی د وجې د ادنی ملابست نه، هغه ملابست دا چې مبني مشتقي دی او بنآء ورلره مبدا ده. نو نسبت د مشتقي په اعتبار د مبدا سره دی

اي آخر المبني: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

لكن لا مطلقا الخ: غرض د شارح د ما بعد قید مقام ذکر کوي، چې دا قید احترازي دی.

اذ قد يختلف اخره الخ: غرض د شارح د ما قبل قید فایده ذکر کول دي. یعنې دا اختلاف د عواملو څکه وایو چې کله په غیر د اختلاف د عامل نه آخر بدل شوی وي، لکه په من الرجال کې کسره د التقآء ساکنین د وجې راغلې ده او مِنْ امرءٌ کې ضمه د ما بعد د وجې راغلې ده اوس دا تبدیلي د عامل د وجې نه ، نه ده لهذا دا به مبني وي

## اقسام داسم مبني :

وَهِيَ اَيِ الْمَبْنِيُّ اَلتَّانِيْثُ بِاِعْتِبَارِ الْخَبَرِ الْمُضْمَرَاتُ وَ اَسْمَاءُ الْاِشَارَةِ وَ الْمَوْصُوْلَاتُ وَ

اودامبني یعنې مبني تانیث دضمیرپه اعتباردخبرسره ده مضمرات اواسماء اشارات اوموصولات او

الْمُرَكَّبَاتُ وَ الْكِنَايَاتُ وَ اَسْمَاءُ الْاَفْعَالِ وَ الْاَصْوَاتِ بِالرَّفْعِ عَطْفٌ عَلٰى اَسْمَاءِ الْاَفْعَالِ لَا عَنِ

مرکبات اوکنایات اواسماء افعال اواصوات دي اصوات په رفع سره عطف دي په اسماء افعالو نه په

الْاَفْعَالِ لِتَصْدِيْرِهِ بَحْثَ الْاَصْوَاتِ فِيْمَا بَعْدَ الْاَصْوَاتِ لَا بِاَسْمَاءِ الْاَصْوَاتِ.

افعالو دوجې دراوړو دبحث داصواتو په مابعدکې فقط په اصواتو نه په اسماء اصواتو

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره د اقسام د اسم مبني ذکر کوي.

**اغراض د جامي** : وهي الخ: په دې عبارت کې هم يو څو خبرې پيژندل ضروري دي ۱ ربط ۲. مقدار د مبنيات مذکورو. ۳: وجه د حصر. ۴: تشريح د عبارت.

ربط معنوي دادې چې کله ماتن فارغ شو د درې خبرو د باب د اسم مبني نه نو په اجمالي اقسامو د اسمِ مبني يې شروع وکړه، بيا دا اقسام او حکم يې وروستو کړو، حکم يې خکه وروستو کړو، چې حکم د څيز اثر د هغه څيز وي، او اثر وروستو وي د ذات نه، او اقسام يې خکه وروستو کړو، چې په تعريف سره وجود ذهني او اقسامو سره وجود خارجي راځي. او وجودِ خارجي د وجودِ ذهني نه وروستو وي ، ربطِ لفظي دا دی. چې **هي** مبتداء او ما بعد ورله خبر دی، مبتداء سره د خبر نه جمله اسميه شوه، دوهمه خبره مقدار د مبنياتو دی نو دا ټول چې دلته ذکر دي نو اته (۸) دي. وجه دحصر په کې داده چې دا اسم مبني به خالي نه وي، دا بناء به يې د عدم وقوع في الترکيب د وجې نه وي يا د مناسبت نه د مبني الاصل سره که اول وو نو اصوات دی او که ثاني وو نو بيا به خالي نه وي، مناسبت به د حرف سره ساتي يا د فعل ماضي او امر حاضر سره که ثاني وو نو اسمآء افعال او که اول وو بيا به خالي نه وي، مناسبت به په صورت کې ساتي يا معنی کې. که اول وو نو کنايات او که ثاني وو بيا به خالي نه وي دا مناسبت به په اعتبار د تضمن سره وي يا به په اعتبار د احتياج سره. که اول وو نو مرکبات او که ثاني وو بيا به خالي نه وي، دا محتاج اليه به مذکور وي يا نه، که مذکور نه وو، نو بعضِ ظروف او که مذکور وي، نو بيا به خالي نه وي جمله به وي يا غير جمله که اول وو، نو موصولات او که ثاني وو بيا به خالي نه وي، محسوس به وي يا نه که اول وو، نو اسمآء اشارات او که ثاني وو، نو ضمائر دي

وهی ای المبني :غرض د شارح په دې عبارت سره د ضمير مرجع متعين کول دي.

والتانيث به اعتبار الخبر: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دا ضمير مؤنث ته راجع دی او مبني مذکر دی نو په مينځ د راجع او مرجع کې مناسبت نشته ؟

**جواب**: دلته دا ضمير د مبتداء دائر دی په مينځ د مرجع او خبر کې، او کله چې ضمير په مينځ د مرجع او خبر کې دائر شي، نو په هغې کې ډير صورتونه دي، يو صورت دادی چې دا مرجع او خبر دواړه يو شان وي. هلته خو اشکال نشته. يو قسم ضمير به راجع شي دوهم

صورت دادی چې دا مرجع او خبر مختلف وي، يعني مرجع مذکر او خبر مؤنث وي لکه په مذکور مقام کې يا د دې عکس وي، اوس په دې صورت کې به رعايت د خبر ساتلی شي ځکه خبر داخل دی او مرجع خارج د کلام نه وي او د داخل لحاظ ساتلې شي، ځکه دا داخل په منزله د شطر دی او خارج په منزله د شرط وي، او شطر اولی وي د شرط نه. ځکه شطر د ځيز جز. د هغه ځيز وي په مذکوره مقام کې لحاظ د خبر ساتلې شوې دی. او ضمير د مونث راوړې شوې دی

**واسماء الاشارة والموصولات**: دې ته مبهمات هم وايي. په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب هم وړکوي

**سوال**: تا چې کوم اسمآء مبنيات ذکر کړي دي دا صحيح نه دي، ځکه تا اته قسمه ذکر کړې دي او عام کتابونه خو اووه قسمه ذکر کوي؟

**جواب**: دا فرق د تفصيل او اجمال دی. بيا دې ته مبهمات ځکه وايي. چې په اسماء اشاراتو کې د مشاڑاليه نه او په اسمآء موصولاتو کې په غير د صلې نه ابهام وي

**والکنايات الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وړکوي

**سوال**: څه وجه ده چې مصنف په تفصيل کې کنايات اسمآء افعال او اصوات مقدم کړې دي؟

**جواب**: دا فرق د تفصيل او اجمال دی

**سوال**: که دا تفصيل اجمال موافق وي نو اولی به وه؟

**جواب**: کله کله مصنفين خلاف د اولی باندې عمل کوي، چې دا حکم څوك وجوب ته ونه رسوي، بيا مراد د کناياتو نه بعضې کنايات دي، ځکه بعضې کنايات معرب دي. په دې سره د يو سوال دفع وشوه

**سوال**: تاکنايات مطلق ذکر کړې دي حالانکه فلانٌ فلانةٌ خو معرب دي؟

**جواب**: هغه نور حمل دي په دې باندې

**سوال**: دا کنايات په معنی د بعض الکنايات سره اخيستل مجاز دي و چې کله په لفظ د بعض الکنايات سره ذکر وی نو بيا به حقيقت وي او عمل په حقيقت اولی دی د مجاز نه؟

**جواب** : کله مصنفين په خلاف الاولی باندې عمل کوي ځکه چې دا حکم وجوب ته ونه رسيږي.

والاصوات بالرفع الخ : غرض د شارح رد دی په فاضل هندي، هغه وايي دا مجرور دی په الافعال عطف دی، شارح پرې رد وکړو، چې دا مرفوع دی، ځکه وروستو مصنف د تفصيل شروع په الاصوات سره کړې ده.

**سوال** : دغه اشکال خو په الموصولات کې هم راتلو، نو هلته به دې تصريح هم کړې وه کنه؟

**جواب**: هلته چې اسمآء الموصولات وويلې شي، نو څه نقصان نشته، نو تصريح ته پرې ضرورت نشته، ليکن که الاصوات کې اسمآءالاصوات وويلی شي، نو بيا نقصان راځي، ځکه اصوات اسمآء نه دي.

**سوال** :کله چې دا اسمآء نه دي، نو په بحث د اسم مبني کې ولې ذکر کوي؟

**جواب**: ځکه چې دا قائمقام د اسم دي.

## د بعض د قيد بيان :

| |
|---|
| وَ بَعْضُ الظُّرُوْفِ وَ اِنَّمَا قَالَ بَعْضُ الظُّرُوْفِ لِاَنَّ جَمِيْعَهَا لَيْسَتْ بِمَبْنِيَّةٍ بَلْ بَعْضُهَا فَهٰذِهٖ ثَمَانِيَةُ اَبْوَابٍ فِيْ |
| اوبعض ظروف دي مصنف رحمه الله بعض ظرف وويل ځکه چې ټول مبني نه دي دااته بابونه شول په |
| اَسْمَاءِ الْمَبْنِيَّةِ وَلَا بُدَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهَا مِنْ عِلَّةِ الْبِنَاءِ لِاَنَّ الْاَصْلَ فِي الْاَسْمَاءِ الْاِعْرَابُ وَ اِذَا كَانَ |
| اسماءمبنيوکې اولابدي ده هرواحد دپاره دعلت بنائي نه ځکه چې اصل په اسماوکې اعراب دي اوکله |
| مَبْنِيًّا عَلَى الْحَرَكَةِ فَلَا بُدَّ عِنْدَ ذٰلِكَ مِنْ عِلَّتَيْنِ اُخْرَيَيْنِ اَحَدُهُمَا عِلَّةُ الْبِنَاءِ عَلَى الْحَرَكَةِ |
| چې مبني بالحرکت وي نوبيالابدي ده په دې وخت کې ددوه علتونورونه چې يوعلت دبناءپه حرکت دي |
| فَاِنَّ اَصْلَ الْبِنَاءِ السُّكُوْنُ وَ الْاُخْرٰى لِلْحَرَكَةِ الْمُعَيَّنَةِ اَنَّهَا لِمَا اُخْتِيْرَتْ دُوْنَ الْبَاقِيَيْنِ. |
| ځکه چې اصل دبناءسکون دي اوبل علت دپاره دحرکت معينه چې داحرکت ولې غوره کړې شونه نور. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره د بعض د قيد فائده بيانوي ځکه چې ټول ظروف خو مبني نه دي بلکې بعضې مبني دي.

**اغراض د جامي** : وبعض الظروف وانما قال الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : څه وجه ده چې مصنف نورو اقسامو سره لفظ د **بعض** نه دی ذکر کړی. او دې سره يې ذکر کړو؟

**جواب**: ځينې ظروف معرب دي، ټول مبني نه دي، ځکه يې ورسره لفظ د بعض ذکر کړو بيا يې دلته لفظ د بعض صراحت سره ذکر کړو، ځکه ظروف دمعرب داسمآء مبنياتو نه ډېر دي او ددې وجې نه يې تغليباً حمل ونه کړو.

<u>**فهذا ثمانية الخ**</u>: غرض د شارع اجمال بعدالتفصيل ذکر کول دي، او دا هم د فصيح کلام برخه ده. دوهم غرض د شارح دفع د سوال ده

**سوال** :دا حصر د اسم مبني په اته اقسامو کې صحيح نه دی د وجې د وجود د نورو اقسام لکه **مَنْ مَا** استفهامي وغيره ؟

**جواب**: مونږ وايو دا سوال به تا هله کولې ، چې اسم مبني مونږ دې اته اقسامو کې منحصر کړې وي . حالانکه مونږ دا اته اقسام په اسم مبني کې منحصرو و . نو دا اته اقسام مظروف او اسم مبني ورلره ظرف شو او قانون دادی چې ظرف د مظروف نه زيات وي نو اسم مبني نور هم موجوديدای شي

<u>**ولا بدلکل واحدٍ الخ**</u>: کله چې خبره داده چې دا اته اقسام د مشابهت د وجې مبني دي، نو په هر واحد کې علت هغه د بنآء پېژندل دي، ځکه اصل په اسماوو کې اعراب دي او بنآء خلاف الاصل دی او څيز چې خپل اصل نه اوړي دهغې دپاره څه وجه په کار ده

## تعريف د مضمر :

| |
|---|
| **اَلْمُضْمَرِ مَا وُضِعَ لِمُتَكَلِّمٍ مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مُتَكَلِّمٌ يُحْكِيْ عَنْ نَفْسِهِ اَوْ مُخَاطَبٌ** |
| مضمر هغه چې وضع شوې وي دپاره دمتکلم ددې حيثيت نه چې حکايت کوي دخپل نفس نه يا د مخاطب |
| **مِنْ حَيْثُ اَنَّهُ مُخَاطَبٌ يَتَوَجَّهَ اِلَيْهِ الْخِطَابُ وَ قِيْلَ الْمُرَادُ بِالتَّكَلُّمِ مَنْ** |
| دپاره ددې حيثيت نه چې دامخاطب دي متوجه کيږي ده ته خطاب اوچاويلي چې مراد په تکلم سره هغه |
| **يَتَكَلَّمُ بِهِ وَ بِالْمُخَاطِبِ مَنْ يُخَاطِبُ بِهِ** |
| څوک دي چې کلام کيدې شي په هغه سره اودمخاطب نه هغه څوک چې خطاب کيدې شي په هغې سره |
| **فَاِنَّ اَنَا مَوْضُوْعٌ لِمَنْ يَتَكَلَّمُ بِهِ وَ اَنْتَ لِمَنْ** |
| ځکه چې اناوضع شوې دهغه چادپاره چې کلام کيدې شي په هغه اوانت وضع شوې دهغه چادپاره چې |

| |
|---|
| يُخَاطِبُ بِهٖ وَ يُخْرِجُ بِهٰذَا الْقَيْدِ لَفْظَ الْمُتَكَلِّمِ وَ الْمُخَاطَبِ فَاِنَّ الْاَسْمَاءَ الظَّاهِرَةَ كُلَّهَا مَوْضُوْعَةٌ |
| خطاب کيدې شي په هغې او خارجيږي په دې قيد لفظ د متکلم او مخاطب ځکه چې اسماء ظاهره ټول وضع |
| لِلْغَائِبِ مُطْلَقًا اَوْ غَائِبٍ تَقَدَّمَ ذِكْرُهٗ وَ يَخْرُجُ بِهٰذَا الْقَيْدِ الْاَسْمَاءَ الظَّاهِرَةِ وَ اِنْ كَانَتْ |
| شوي دپاره د غائب مطلقاً او يا غائب چې مخکې وي ذکر د هغې خارجيږي په دې قيد سره اسماء ظاهره اګر |
| مَوْضُوْعَةً لِلْغَائِبِ اِذْ لَيْسَ تَقَدَّمَ ذِكْرُ الْغَائِبِ شَرْطًا فِيْهَا لَفْظًا اَوْ مَعْنًى اَوْ حُكْمًا |
| که وضع شوي وي دپاره د غائب ځکه چې تقدم د ذکر د غائب شرط نه دې په دې کې لفظاً او معنی او حکماً |
| اَرَادَ بِالتَّقَدُّمِ اللَّفْظِيِّ مَا يَكُوْنُ الْمُتَقَدِّمُ مَلْفُوْظًا اِمَّا مُتَقَدِّمًا تَحْقِيْقًا مِثْلُ ضَرَبَ زَيْدٌ غُلَامَهٗ اَوْ تَقْدِيْرًا |
| اراده کړې مصنف په تقدم لفظي سره هغه چې مخکې وي لفظاً او يا حقيقتاً لکه ضرب زيد غلامه او يا تقديراً |
| مِثْلُ ضَرَبَ غُلَامَهٗ زَيْدٌ وَ بِالتَّقَدُّمِ الْمَعْنَوِيِّ اَنْ يَكُوْنَ الْمُتَقَدِّمُ مَذْكُوْرًا مِنْ حَيْثُ الْمَعْنٰى لَا مِنْ حَيْثُ اللَّفْظِ |
| لکه ضرب غلامه زيد او په تقدم معنوي سره چې وي مقدم ذکر شوي د حيثيت د معنی نه، نه د حيثيت د لفظ |
| وَ ذٰلِكَ الْمَعْنٰى اِمَّا مَفْهُوْمٌ مِنَ اللَّفْظِ بِعَيْنِهٖ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى فَاِنَّ |
| نه او دا معنی به يا مفهومه وي د لفظ معينه نه لکه دا قول د الله تعالی اعدلوا هو اقرب للتقوی ځکه چې |
| مَرْجِعَ الضَّمِيْرِ هُوَ الْعَدْلُ الْمَفْهُوْمُ مِنْ قَوْلِهٖ اِعْدِلُوْا فَكَاَنَّهٗ مُتَقَدِّمٌ مِنْ حَيْثُ الْمَعْنٰى اَوْ مِنْ |
| مرجع د ضمير عدل دې کوم چې فهميږي د لفظ د اعدلوا نه ګوياکه دا مقدم من حيث المعنی شو او يا به د |
| سِيَاقِ الْكَلَامِ كَقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ لِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ لِاَنَّهٗ لَمَّا تَقَدَّمَ |
| سياق د کلام نه فهميږي لکه دا قول د الله تعالی و لابويه لکل واحد منهما السدس ځکه چې کله مخکې |
| ذِكْرُ الْمِيْرَاثِ دَلَّ عَلٰى اَنَّ ثَمَّهٗ مُوَرِّثًا فَكَاَنَّهٗ تَقَدَّمَ ذِكْرُهٗ مَعْنًى. |
| ذکر شو بيان د ميراث نو دلالت کوي په دې چې هلته يې مورث هم شته ګوياکه ذکر د مورث معناً وشو. |

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره تعريف د مضمر کوي.

**اغراض د جامي:** المضمر: په دې عبارت سره شارح شپږ شيان ذکر کوي: ۱: ربط. ۲: وجه د بناء. ۳: اصطلاحي تعريف. ۴: اقسام. ۵: امثله. ۶: احکام.

**ربط معنوي** دادی کله چې فارغ شو ماتن د اجمالي بيان د اقسامو د اسم مبني نه نو شروع يې وکړه په تفصيل د دې کې، دلته څو سوالات مخې ته راځي:

**اول سوال:** نفس تفصيل ولې کوي؟

**جواب**: نفس تفصيل څکه کوي، چې تفصيل بعدالاجمال او قع في الذهن وي.

**دوهم سوال**: ضمير يې ولې مقدم کړو؟

**جواب**: په تفصيل کې يې ضمير څکه مقدم کړو، چې په اجمال کې مقدم وو او تفصيل موافق د اجمال سره په کار وي ، اجمال کې څکه مقدم کړې و ، چې ضمائر ټول په اتفاق سره مبني دي، په دې کې څه اختلاف نشته. او بل دا چې دا کثير الوقوع، کثيرالاستعمال. او کثيرالاحکام دي.

**وجه د بناء**: د ضمر : مبني کيدو دوه وجهې دي، يو وجه شبه افتقادي ده يعنې دا ضمير د حرف سره په احتياج کې مناسبت ساتي، لکه څنګه چې حرف په خپله معنی ورکولو کې ضم د ضميمې اخرى ته محتاج وي، دغه شان ضمير هم په معنی ورکولو کې غيبوبة، قرينې د تخاطب او قرينې د تکلم ته محتاج وي، چې ددې قرينې د تخاطب او تکلم نه په حضور سره هم تعبير کولی شي. دوهم وجه شبه صوري ده، يعنې دا ضمير د حرف سره په وضع کې مشابهت ساتي. څکه د حرف وضع کم د درې حروفو نه کېږي، او ضماير هم اکثر او بيشتر کم وي د درې حروفو نه.

**اصطلاحي تعريف**: المضر ما وضع المتكلم او مخاطب او غايب الخ په دې کې المضمر مبتداء او ما بعد ورلره خبر دی.

**سوال**: دا مضمر صيغه د اسم مفعول ده، ددې مبتداء واقع کېدل نه صحيح کېږي، څکه دا شبه جمله ده او مبتداء خو جمله او شبه جمله نه واقع کيږي؟

**جواب**: مونږ وايو صحيح ده دا صيغه د اسم مفعول ده، ليکن وروستو دا د وصفيت نه اسميت ته نقل شوې ده او نوم ګرځېدلې ده د يو نوعې د کلام چې يو قسم د اسم مبني دی.
لهذا ابتدائيت يې صحيح دی .
په دې سره مونږ يو بل سوال هم دفع کړو:

**سوال**: په المضمر کې دا الف لام کوم قسم دی؟ که استغراقي وايې نو تعريف د افرادو لازميږي، حالانکه تعريف خو د جنس کېږي . که عهد خارجي وايې نو همدا سوال دی که عهد ذهني وايې نو نکارت د مبتداء لازمېږي، او که جنسي وايې نو بيا سوال دا دی چې دا الف لام

په اسم مفعول داخل دي. او په اسم مفعول چې کوم الف لام داخل شي هغه حرفي نه وي اسمي وي او جنسي خو قسم د حرفي دی.

**جواب**: مونږ وایو دا الف لام جنسي دي او صیغه د اسم مفعول د وصفیت نه اسمیت ته نقل شوې ده. نو الف لام حرفي پرې راتلی شي

ما: په دې تعریف کې ما عبارت دی د اسمْ نه دې سره د یو سوال جواب دفع شو:

**سوال**: دا تعریف ستا مانع نه شو ددخول د غیر نه داخل شو په کې الف لام عهدي او کاف حرفي او کاف خطابي د کذلك؟

**جواب**: مونږ د یو ما مونږ د اسم نه عبارت اخلو او دغه دواړه حروف دي.

په دې سره نور سوالونه هم دفع شو:

**سوال**: متبادر د ما نه ذهن ته دا راځي، چې دا ما موصوله دي.

**بل سوال** دا چې مبتدا، او خبر کله دواړه معرفي شي نو هلته ضمیر فصل راوړل شي او دلته نشته

**بل سوال** دا چې موصول په اصل کې جزء د جملې وي او په تعریف کې جنس فصل لازمي وي اوس که دا موصول صله جنس کړو نو فصل نشته او که فصل یې کړو نو جنس نشته؟

**جواب**: مونږ ما عبارت د اسم نه اخلو. دا ما موصوفه دی ضمیر فصل ته هم ضرورت نشته، او جنس فصل هم متعین شو.

**سوال**: ما خو په مینځ د موصول او موصوف کې مشترکه ده، ته چې صرف موصوفه اخلې په دې د تاسره څه قرینه ده؟

**جواب**: دا په مقام د خبر کې واقع ده اصل په خبر کې نکارت دی او نکره په هغه صورت کې ګرځي، چې دا موصوفه شي.

**بل جواب** دا دی، چې ما موصوله نه صحیح کېږي، ځکه بیا جنس او فصل دواړه نه حاصلیږي.

من حیث انه متکلم: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** تعریف دې مانع نه شو ددخول د ضمیر نه داخل شو په کې مسمی د زید. حالانکه هغه نه حاکي ضمیر نه وايي؟

**جواب:** مونږ وايو چې متکلم دپاره وضع شوي وي لیکن د حیثیت د متکلم نه او مسمی د زید که متکلم نه وي بیا هم زید دی

**يحكي عن نفسه:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال:** تعریف دې مانع نه شو ددخول د ضمیر نه داخل شو په کې لفظ د متکلم. خکه متکلم نه متکلم هم دحیثیته د تکلم نه وايي او حالانکه لفظ د متکلم نه څوک ضمیر نه وايي؟

**جواب:** مونږ وايو متکلم مراد دی خو چې د ځان نه حکایت کوي او لفظ د متکلم د ځان نه حکایت نه کوي

**او مخاطب من حيث انه مخاطب:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال:** تعریف دې مانع نه شو داخل شو په کې مسمی د مخاطب؟

**جواب:** مونږ ورسره قید لګولو چې د حیثیته د مخاطب نه او مسمی د مخاطب که دې حیثیت د مخاطب سره وانخلې بیا هم په ذات دلالت کوي.

**يتوجه اليه الخطاب:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال:** تعریف دې مانع نه شو. خکه داخل شو په کې لفظ د مخاطب خکه دې لفظ د مخاطب نه مخاطب د حیثیته د تخاطب نه ویلی شي؟

**جواب:** مونږ ورسره دا قید لګولو چې توجه د خطاب ورته کیدې شي. او لفظ د مخاطب نه توجه د خطاب نه شي کیدې

**وقيل:** په دې عبارت کې یو غرض د قیل دی او بل غرض د شارح دی. بل غرض شارح ددې پاره مثال ذکر کوي او دریم غرض تطبیق د مثال دی د ممثل سره غرض د قیل خو یو داسې قید لګول دي چې مسمی د متکلم او مخاطب او ذات د متکلم او مخاطب ترې خارج شي، غرض د شارح دفع د یو سوال ده

**سوال**: دا خبره زمونږ ذهن ته راځي، چې لفظ په یحکي عن نفسه قید سره خارجیږي، لیکن ویستل د لفظ د مخاطب په قید د یتوجه الیه الخطاب سره زمونږ ذهن ته نه راځي ځکه په عرف کې مخاطب هغه چاته ویلې شي چې توجه دخطاب ورته کیدې شي.

**جواب**: شارح جواب کوي چې چا ویلې دي چې مراد په متکلم سره هغه لفظ دي، چې هغه سره تکلم کیدې شي او مراد په مخاطب سره هغه لفظ دي چې هغې سره خطاب کیدې شي.

فان انا: دا مثال دی.

موضوعٌ الخ: تطبیق کوي، چې دا لفظ د انا وضع شوې دهغه چا دپاره چې تکلم پرې کیدې شي او انت د هغه چا د پاره چې خطاب ور ته کیدې شي او لفظ د مخاطب ته خو خطاب نه شي کیدې.

ویخرج الخ: غرض دشارح د قیوداتو فوائد ذکر کول دي، په دې قید د قائل سره لفظ د متکلم او مخاطب خارج شو، ځکه دا دواړه اسم ظاهر دي، او اسمآء ظاهره وضع شوي دي دپاره د عائد مطلقاً.

مطلقاً: دا معنی چې سبقیت د مرجع په کې شرط نه دی.

او غائب تقدم: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: اسمآء ظاهره د قبیلې د غائب نه دي نو په کار ده چې دې ته مونږ مضمر ووایو. حالانکه دې ته خلک مضمر نه وایي؟

**جواب**: مونږ دې سره د تقدم ذکري قید لګولې دی، نو دې سره اسمآء ظاهره خارج شو.

ویخرج الخ: غرض د شارح ددغه قید مذکوره فائده ذکر کول دي.

لفظاً او معنیً او حکماً: غرض د ماتن په دې عبارت سره یو تعمیم کول دي، او دا هم غرض د ماتن دفع د یو سوال ده:

**سوال**: تعریف دی جامع نه شو خارج شو ترې اعدلوا هو اقرب للتقوی او قل هو الله احدٌ، ځکه چې هو ته ضمیر غائب ویلې شي او سره ددې نه ددې مخکې ... ذکر نشته؟

**جواب**: مونږ وایو دا تقدیم عام دی لفظاً وي که معنیً او که حکماً په مثال اول کې معنیً تقدم ذکري شته او په مثال ثاني کې حکماً تقدم ذکري شته

اراد بالتقدم اللفظي الخ: غرض د شارح دفع د سوال ده
**سوال**: تعريف ستا صحيح نه دی. ځکه جامع نه دی. ضرب غلامه زيدٌ تري خارج شو. چې دا خلك د تقدم لفظي په مثال کې پيش کوي او سره ددې نه ددې مرجع مخکې نه ده ذکر. بلکې وروسته ده؟
**جواب**: شارح جواب وکړو اما متقدماً تحقيقاً الخ ذکر د تقدم بې فائدې نه دی صحيح ده چې دا عبارت د ملفوظ نه دی خو دا تقدم د ملفوظ به کله تحقيقي وي يعنې لفظ او سرتبه دواړو کې به مقدم وي لکه ضرب زيدٌ غلامه او کله به تقديري وي يعنې لفظ کې به وروسته وي ليکن په مرتبه کې به مخکې وي لکه ضرب غلامه زيدٌ.
وبالتقدم المعنوي: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي
**سوال**: هغه دا دی چې د حيثيته د معنی نه خو هر شی مذکور وي. نو بيا معنوي مقابل د لفظي څنګه شو؟
**جواب**: مونږ وايو دا من اجليه دی. يعنې لفظاً دغه مرجع ذکر نه وي. خو د معنی د وجې ذکر وي. علت ورله دا معنی ده. بيا په دې سره دفع د وهم هم وشوه. وهم دا راتلو چې متبادر ذهن ته دا راتلو. چې مراد به د تقدم نه تقدم تقديري وي. نو اعدلو هوا قرب للتقوی خارجيږي
وذلك المعنی: غرض د شارح دوه قسمه د تقدم معنوي ذکر کول دي. هر يو دپاره مثال او تطبيق ذکر کوي
اما مفهوم الخ: اول قسم د تقدم معنوي دا دی چې دا معنی بعينه د لفظ نه معلومه شي. لکه اعدلوا هوا قرب للتقوی دا مثال دی. خو ضمير عدل ته راجع دی او هغه د اعدلوا نه معلوميږي. ځکه هر مشتقي په خپله مبتدأ د اشتقاق دلالت کوي نو ګويا که د اعدل د معنی د وجې مخکې ذکر دی.
**سوال**: د هو ضمير دې اعدلوا ته راجع شي کنه؟
**جواب**: فعل د جمع دی او ضمير د مفرد دی او دوهم دا چې فعل ته ضمير نه شي راجع کيدې

او من سياق الكلام: دوهم قسم د تقدم معنوي ذکر کوي، چې بعينه د لفظ نه، نه معلومېږي بلکې د وړاندې وروستو د کلام نه معلومېږي

كقوله تعالى ولابويه الخ: دا مثال ذکر کوي. په دې مثال کې ﴿هِ﴾ ضمير مجرور د غائب راغلی دی. او ميت ته راجع دی. ليکن هغه مخکې لفظاً نه دی ذکر. بلکې د کلام نه معلومېږي ځکه مخکې ذکر د ميراث وشو او ميراث د مړي تقسيمېږي، نو ګويا که د مړي ذکر مخکې معنیً شوی دی

| وَ اَمَّا التَّقَدُّمُ الْحُكْمِيُّ فَاِنَّمَا جَاءَ فِيْ ضَمِيْرِ الشَّانِ وَ الْقِصَّةِ لِاَنَّهُ اِنَّمَا جِئَ بِهِ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَتَقَدَّمَ |
|---|
| او هر چې تقدم حكمي دي هغه راځي په ضمير شان او قصه کې او هغه راوړل کیږي په غير د دې چې مخکې |
| ذِكْرُهُ قَصْدًا لِتَعْظِيْمِ الْقِصَّةِ بِذِكْرِهَا مُبْهَمَةً لِيَعْظُمَ وَقْعُهَا فِي |
| يې ذکر شوي وي دپاره د تعظيم د قصې په ذکر کولو د هغې مبهمه دې دپاره چې تعظيم د ځای راشي په |
| النَّفْسِ ثُمَّ تَفْسِيْرُهَا فَيَكُوْنَ ذٰلِكَ اَبْلَغُ مِنْ ذِكْرِهِ اَوَّلاً مُفَسَّرًا فَصَارَ كَاَنَّهُ فِيْ حُكْمِ |
| نفس کې بيا وشي بيان د هغې نو دا طريقه ډيره ابلغه ده د ذکر کولو د هغې اولاً مفسره نو دا شو په حکم د هغه |
| الْعَائِدِ اِلَى الْحَدِيْثِ الْمُتَقَدِّمِ الْمَعْهُوْدِ بَيْنَكَ وَ بَيْنَ مُخَاطَبِكَ وَ كَذَا الْحَالُ فِيْ |
| ضمير کې چې راجع وي مخکې خبرې ته کومه چې معلومه وي په مينځ ستا او مخاطب کې او همدا حال په |
| ضَمِيْرِ نِعْمَ رَجُلاً زَيْدٌ وَ رُبَّهُ رَجُلاً. |
| ضمير د نعم رجلا او ربه رجلا کې دی. |

**اغراض دجامي:** واما التقدم الحكمي: کله چې د دوه اقسامو د ضمير غائب نه فارغ شو نو په دريم قسم کې يې شروع وکړه چې تشريح د حکمي ده، په بعضې اوقاتو کې متکلم يو کلام په ذهن د مخاطب کې مضبوطوي، نو د هغې دپاره ضمير شان او قصه راوړي، نو دغه په ضمير کې يو ځل مبهم ذکر شي او وروستو يې بيا تفصيل وشي اوس د دې ضمير مرجع لفظاً او معناً نه وي. هو! حکماً د دې مرجع مقدم وي، ځکه د انسان ذهن کې ناسته وي چې څه اهمه خبره را روانه ده.

**سوال:** ستا د کلام انما نه معلوم شوه چې ضمير بلا مرجع به صرف په ضمير شان او قصه کې راځي. بل چيرته به نه راځي حالانکه په نعم ربه کې خو راغلی دی نو اداة د حصر نه صحيح کيږي؟

**جواب**: اداة د حصر په دليل کې مراد دي . نه په دعوی کې

وهو متصلٌ و منفصلٌ : کله چې فارغ شو ماتن د تقسيم اول د ضمير نه، چې په اعتبار د نفس سره وو، نو شروع يې وکړه په تقسيمِ ثاني د ضمير کې په اعتبار د ما قبل سره دی. ربط لفظي دا دی چې هو ضمير مبتداء او ما بعد ورلره خبر دی. مبتداء خبر جمله اسميه شوه، حاصل د تقسيم دا دی، چې ضمير په اعتبار د ما قبل سره په دوه قسمه دی : يو متصل دی، چې مستقل تلفظ پرې نه شي کيدې او دوهم منفصل دی چې مستقل تلفظ پرې کيدې شي

## د ضمير اقسام :

| |
|---|
| وَ هُوَ أَیِ الْمُضْمَرُ بِالنَّظَرِ اِلٰی مَاقَبْلَهٗ قِسْمَانِ مُتَّصِلٌ وَ مُنْفَصِلٌ فَالْمُنْفَصِلُ الْمُسْتَقِلُّ بِنَفْسِهٖ |
| اوضمير په نظرسره مقابل ته په دوه قسمه دي يومتصل اوبل منفصل پس منفصل مستقل بالذات وي |
| غَيْرَ مُحْتَاجٍ اِلٰی كَلِمَةٍ أُخْرٰی قَبْلَهٗ لِيَكُوْنَ كَالْجُزْءِ مِنْهَا. بَلْ هُوَ |
| نه وي محتاج بلې کلمې ته چې ترې مخکې وي دې دپاره چې شي جزء دهغه کلمې نه بلکې دا په شان |
| كَالْاِسْمِ الظَّاهِرِ سَوَاءٌ كَانَ مُجَاوِرَ الْعَامِلَةِ نَحْوُ مَا اَنْتَ مُنْطَلِقًا عِنْدَ الْحِجَازِيَّةِ اَوْ غَيْرَ |
| داسم ظاهروي برابرده خبره ده که ګاونډي دعامل وي لکه ماانت منطلقاپه نزد د اهل حجازو اويانه وي |
| مُجَاوِرٍ لَهٗ نَحْوُ مَا ضَرَبْتُ اِلَّا اِيَّاكَ وَ الْمُتَّصِلُ غَيْرُ الْمُسْتَقِلِّ بِنَفْسِهِ الْمُحْتَاجُ اِلٰی عَامِلِهِ |
| ګاونډي دعامل لکه ماضربت الاإياک اومتصل غيرمستقل وي په خپل نفس کې محتاج وي عامل ته |
| الَّذِيْ قَبْلَهٗ لِيَتَّصِلَ بِهٖ لِيَكُوْنَ كَالْجُزْءِ مِنْهُ. |
| کوم چې له ده نه مخکې وي چې داپيوست شي ددې سره اوجزء وګرځي ددې نه. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره د ضمير اقسام بيانوي .

**اغراض دجامي** : وهواي اي المضمر : په دې عبارت سره غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي، چې مضمر ته ضمير راجع دی.

بالنظر الی ما قبله : غرض د شارح تعيين د مقسم کوي او دوهم غرض دفع دسوال ده.

**سوال**: دا ټول قسمونه به دې يو تقسيم کې داخل کړي وو کنه؟

**جواب**: ددې تقسيماتو جدا جدا اعتبارات دي. دا تقسيم په اعتبار د ما قبل سره دی

قسمان : غرض د شارح د يو سوال جواب ورکول دي

**سوال** : قانون دادی چې خبر په متبداء حمل او دا هم مسلمه خبره ده چې حمل د اخص په اعم ناروا دی. اوس دې عبارت کې هو ضمیر مضمر ته راجع دی او هغه عام دی او متصلٌ خبر دی او دا اخص دی نو حمل د اخص په اعم راغلو؟

**جواب** : مونږ ربط مقدم نه وایو بلکې عطف مقدم وایو ددې مطلب دا دی چې د معطوف معطوف علیه اول په یو لفظ سره تعبیر وکړې او بیا دواړه ذکر کړي او سوال خو په هغه صورت کې راځي، چې ربط مقدم کړي.

**سوال** : دا مقام د حصر دی نو اداة د حصر په کار وو؟

**جواب** : تقدیم د عطف په ربط د اداتو د حصر نه دی. او دا اداة د حصر معنوي دي

**سوال** : تقسیم په دوه قسمه دی، یو تقسیم د کل اجزاو ته لکه تقسیم د زید اعضاوو ته. دوهم تقسیم د کلي دی جزئیاتو ته لکه تقسیم د انسان زید عمرو بکر نه اوس دا کوم قسم تقسیم دی؟

**جواب** : دا تقسیم د کلي دی جزئیاتو ته. **متصلٌ و منفصلٌ** یو متصل او بل منفصل دی

__فالمنفصل__ : په دې ځای کې دوه خبرې پیژندل ضروري دي. یو ربط ،بل اصطلاحي تعریف. ربط معنوي دادی کله چې فارغ شو مصنف د تفصیل د قسم اول د تقسیم ثاني نه، نو شروع یې وکړه په تفصیل د قسم ثاني د تقسیم ثاني کې.

دلته یو څو سوالات مخې ته راځي.

**اول سوال** : نفس تفصیل ولې کوي؟

**جواب**: نفس تفصیل ځکه کوي، چې تفصیل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي.

**دوهم سوال** : په تفصیل کې یې منفصل ولې مخکې کړو؟

**جواب** : په تفصیل کې یې منفصل مقدم کړو سره ددې چې په اجمال کې وروستو وو او خلک دا هم وایي چې د اجمال نه خلاف تفصیل کول په قوت د خطا کې وي، لیکن په دې کې وجه داده چې ضمیر متصل اصل وو نو د وجې د اصالت نه یې په اجمال کې مقدم کړو. ځکه اصل په ضمیر کې داده چې حروف کم وي، او د ضمیر متصل حروف کم وي او منفصل کې حروف زیات وي هغه یې وروستو کړو او په تفصیل کې یې منفصل مقدم کړو، ځکه منفصل مستقل

بنفسه ته وايي ددې تعريف وجودي وو او وجودي د عدمي نه اشرف وي او اشرف مقدم کول غواړي، نو ضمير منفصل يې مقدم کړو او تعريف د متصل عدمي وو نو هغه يې وروستو کړو

**سوال**: منفصل صيغه د اسم فاعل ده او اسم فاعل خو مبتداء نه واقع کېږي؟

**جواب**: دې مقام کې دا د وصفيت نه اسميت ته نقل شوی دی او نوم ګرځېدلی دی د يو خاص نوعې د نحاتو د کلام.

اصطلاحي تعريف هغه ماتن کړی دی، المستقل بنفسه، دا هغه ضمير دی چې مستقل بنفسه وي.

<u>غير محتاج الى كلمة اخرى</u>: غرض د شارح په دې عبارت سره دفع د يو سوال ده:

**سوال**: نه منم دا خبره چې ضمير منفصل مستقل بنفسه وي، ځکه دا محتاج دی تلفظ ته؟

**جواب**: مونږ وايو مستقل بنفسه مطلب دا چې بلې کلمې ته به محتاج نه وي. هو تلفظ ته خو به محتاج وي.

<u>قبله</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ستا دا خبره نه منم چې ضمير منفصل به بلې کلمې ته محتاج نه وي. ځکه مونږ اورېدلي دي چې انتما انتم وغيره کې ان ضمير دی او دا ما بعد کلمات د فرق دپاره دي، نو دلته دې ما بعد کلمو ته احتياج راغلی دی؟

**جواب**: مونږ وايو د ځان نه ما قبل کلمې ته به محتاج نه وي او دا مذکور خو ددې لواحق دی

<u>ليكون كالجزء منها</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: نه منم دا خبره چې ضمير منفصل ما قبل کلمې ته محتاج نه وي، ځکه ضمير خو هر يو عامل ته محتاج وي او عامل ددې نه مخکې وي؟

**جواب**: مونږ وايو داسې ما قبل مراد دی، چې ددې جزء وي. نو ما قبل داسې څيز نه دی محتاج نه ګرځي. او هر چې عامل دی نو هغه جزء د ضمير نه. نه وي. لکه ضرب اياك کې ضرب جزء د اياك نه دی

سواءٌ كان مجاوراً: غرض د شارح د ضمير منفصل په اعتبار د معمول سره دو قسمه ذكر كول دي، يو قسم هغه ده چې د خپل عامل سره يوځاى ذكر وي. يعنې د هغې ضمير او عامل مينځ كې فاصل نه وي، لكه ما انت منطلقاً دلته ما په انت كې عمل كړى دى او د ضمير سره ګاونډ كې دى.

**سوال** : ما خو عامل نه دى؟

**جواب**: عندالمجازية زمونږ كلام په مذهب د حجازياتو بناء دى.

او غير مجاورٍ له: دا هغه دوهم قسم ذكر كوي كله ضمير منفصل د خپل عامل نه جدا لرې واقع وي، لكه ما ضربت الا اياك. دلته په اياك كې ضربت عامل دى، ليكن په مينځ كې يې الا فاصل راغلې دى.

والمتصل: په دې ځاى كې دوه خبرې پيژندل په كار دي. يو ربط او بل اصطلاحي تعريف.

ربط معنوي دا دى كله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د قسم اول د تقسيم ثاني نه نو شروع يې وكړه په نفصيل د قسم ثاني كې

**سوال** : نفس تفصيل ولې كوي؟

**جواب**: نفس تفصيل ځكه كوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

اصطلاحي تعريف خو هغه ماتن كړې دى چې غيرالمستقل بنفسه. ضمير متصل هغه ضمير دى چې مستقل بنفسه نه وي.

المحتاج الى عامله الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : كله چې متصل غير مستقل بنفسه شو نو په اسم كې نه دې ذكر كول په كار. ځكه اسم خو مستقل بنفسه وي؟

**جواب**: دلته دغير مستقل بنفسه معنى داده چې ما قبل عامل ته محتاج وي، نو ضمير متصل د ځان نه ما قبل عامل ته دفع د سوال كوي

## په اعتبار د اعراب سره د مضمر اقسام :

| وَ هُوَ أَيِ الْمُضْمَرُ بِاعْتِبَارِ الْإِعْرَابِ أَقْسَامٌ مَرْفُوْعٌ وَ مَنْصُوْبٌ وَ مَجْرُوْرٌ لِقِيَامِهِ مَقَامَ |
|---|
| او مضمر په اعتبار د اعراب سره په درې قسمه .ي مرفوع، منصوب، مجرور د وجې د قيام د هغې په ځاى |

| |
|---|
| الظَّاهِرِ وَ اِنْقِسَامُ الظَّاهِرِ اِلَيْهَا فَالْاَوَّلَانِ اَيِ الْمَرْفُوْعُ وَ الْمَنْصُوْبُ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا قِسْمَانِ |
| دظاهراوظاهرهم دې دربوته تقسيميږي اول دواړه چې مرفوع اومنصوب دي تقسيميږي دوه اقسام وته |
| مُتَّصِلٌ لِاَنَّهُ الْاَصْلُ وَ مُنْفَصِلٌ لِمَانِعٍ مِنَ الْاِتِّصَالِ وَ الثَّالِثُ اَيِ الْمُضْمَرُ الْمَجْرُوْرُ مُتَّصِلٌ فَقَطْ |
| متصل ته ځکه چې دااصل دي اومنفصل چې مانع دي داتصال نه دريم مضمرمجرورمتصل دي فقط |
| لِاَنَّهُ لَا مَانِعَ فِيْهِ مِنَ الْاِتِّصَالِ الَّذِيْ هُوَ الْاَصْلُ وَ سَتَعْرِفُ الْمَانِعَ مِنَ الْاِتِّصَالِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى . |
| ځکه په دې کې مانع داتصال نه نشته کوم چې اصل دي زردي چې ته به مانع اتصال وپيژني ان شاء الله |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره په اعتبار داعراب سره دمضمر اقسام بيانوي .

**اغراض دجامي** : وهو: کله چې فارغ شو ماتن د تقسيم ثاني د ضمير نه، چې په اعتبار د ما قبل سره وو ، نو شروع يې وکړه په تقسيم ثاني کې چې په اعتبار د اعراب سره دی. حاصل دادی چې اسم ضمير په اعتبار د اعراب سره په درې قسمه دی : مرفوع،منصوب، مجرور وجه دحصر په کې داده چې دا ضمير به خالي نه وي يا به په محل د رفع کې وي يا په نصب کې او يا په جر کې اول مرفوع دوهم منصوب او دريم مجرور دی .

په دې کې مونږ د يو سوال دفع هم وکړه :

**سوال**: دا تقسيم د ضمير مرفوع منصوب مجرور ته صحيح نه دی، ځکه دفع نصب جر خو په اسماو معربو کې راځي، او اسم ضمير خو مبني دی؟

**جواب**: مونږ محلي رفع نصب جر مراد کوو، او محلي رفع نصب جر په اسماء مبنياتو کې هم راتلې شي.

اى المضمر: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي .

**سوال** : د هو ضمير مرجع عامه ده او مرفوعٌ خاص دی، نو حمل د اخص په اعم راغلو او دا ناجائز دی؟

**سوال** : دا مقام د حصر دی نو اداة د حصر په کار دي؟

**سوال** : دا تقسيم کوم قسم تقسيم دی؟

**جواب**: په اقسام سره درې واړه سوالات دفع شو. هغه داسې چې مونږ عطف مقدم وايو په ربط باندې نو حمل د اخص په اعم نه راځي، او عطف د اداة د حصر نه دی کوم اداة د حصر چې معنوي دي او دا تقسيم د کلي دی جزئياتو ته.

**مرفوع ومنصوب و مجرور** : ماتن د اقسامو تعیین کوي چې مرفوع منصوب او مجرور دي

**لقیامه مقام الظاهر الخ** : یعنې د اسم ظاهر په ځای باندې اسم ضمیر راځي او اسم ظاهر خو دغه درې اقسامو ته په اعتبار د اعراب سره تقسیمیدو نو قائمقام د اسم ظاهر چې اسم ضمیر دی دا به هم په اعتبار د اعراب محلي سره درې قسمو ته تقسیمېږي. ځکه نائب لره حکم د منوب وي

**فالاولان ای المرفوع الخ** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : که مراد د اولانه متصل او منفصل وي، نو دا خو لازمیږي تقسیم د **شيء الی نفسه**. او دا خو ناجائز دي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو چې مراد ترې مرفوع او منصوب دي. نو دغه سوال نه راځي

**کل واحد منها** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : په کار داوه چې **متصلان و منفصلان** یې راوړی وی نو د مبتداء خبر به په تثنیه کې مطابقت راغلې وي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو چې اولان مؤول دی په تاویل د **کل واحد** سره نو خبر مفرد راوړل صحیح دي.

**قسمان** : غرض د شارح دفع د وهم ده : وهم دا راتلو چې دې مذکوره دواړو کې به یو متصل او بل منفصل وي؟ شارح وهم دفع کړو چې **قسمان** یعنې هرواحد ددې دواړو نه دوه دوه قسمه دی.

**والثالث** : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : په کار دا وه چې **والثاني** یې ویلې وي؟ ځکه چې مخکې مرفوع منصوب قسم اول کې داخل کړو؟

**جواب:** مخکې د اول ثاني نه تعبیر په اولان سره تغلیباً کړې وو او دغه مجاز وو او دلته یې اتیان **بالحقیقة** وکړو او مجاز حقیقت دواړه استعمالول جائز دي.

| فَذٰلِكَ اَيِ الْمُضْمَرُ خَمْسَةُ اَنْوَاعٍ اَلْمَرْفُوْعُ الْمُتَّصِلُ وَالْمُنْفَصِلُ وَالْمَنْصُوْبُ الْمُتَّصِلُ وَالْمُنْفَصِلُ وَالْمَجْرُوْرُ الْمُتَّصِلُ |
|---|
| نو دا یعنې مضمر په پنځه قسمه دي مرفوع متصل، منفصل او منصوب متصل، منفصل او مجرور متصل |
| اَلنَّوْعُ الْاَوَّلُ يَعْنِيْ اَلْمَرْفُوْعُ الْمُتَّصِلُ ضَمِيْرُ ضَرَبْتُ عَلٰى صِيْغَةِ الْمُتَكَلِّمِ الْوَاحِدِ الْمَعْلُوْمِ الْمَاضِيْ وَضُرِبْتُ عَلٰى صِيْغَةِ |

| |
|---|
| نوع اوله چې مرفوع متصل دي ضمير د ضربتُ په صيغه د متكلم واحد ماضي معلوم او ضُربتُ په صيغه د |
| الْمُتَكَلِّمِ الْوَاحِدِ الْمَجْهُوْلِ الْمَاضِي الْمُنْتَهِيَيْنِ اَوَّلُهُمَا اِلٰى ضَرَبْنَ صِيغَةُ جَمْعِ الْغَائِبَةِ الْمَعْلُوْمِ الْمَاضِي |
| متكلم واحد ماضي مجهول چې انتهاء د اول راځي ضربن ته چې صيغه د جمع غائبې ماضي معلوم ده |
| وَ ثَانِيْهِمَا اِلٰى ضُرِبْنَ صِيغَةُ جَمْعِ الْغَائِبَةِ الْمَجْهُوْلِ الْمَاضِيْ وَ اِنَّمَا بَدَأَ بِالْمُتَكَلِّمِ |
| او دوهم تر ضُرِبنَ صيغه د جمع غائبې ماضي مجهول ده او په تحقيق سره شروع وكړه مصنف په متكلم |
| لِاَنَّ ضَمِيْرَ الْمُتَكَلِّمِ اَعْرَفُ الْمَعَارِفِ وَ اٰخر ضَمِيْرُ الْغَائِبِ لِاَنَّهٗ دُوْنَ الْكُلِّ |
| ځكه چې ضمير د متكلم زيات پيژندل شوي اوو روستوېي كړو ضمير د غائب ځكه چې هغه كم دي د ټولو |
| وَ صُوْرَةُ التَّصْرِيْفِ هٰكَذَا ضَرَبْتُ ضَرَبْنَا ضَرَبْتَ ضَرَبْتُمَا ضَرَبْتُمْ ضَرَبْتِ ضَرَبْتُمَا ضَرَبْتُنَّ ضَرَبَ ضَرَبَا ضَرَبُوْا |
| نه بيان د ګردان يې داسې دي ضَرَبْتُ ضَرَبْنَا ضَرَبْتَ ضَرَبْتُمَا ضَرَبْتُمْ ضَرَبْتِ ضَرَبْتُمَا ضَرَبْتُنَّ ضَرَبَ ضَرَبَا ضَرَبُوْا |
| ضَرَبَتْ ضَرَبَتَا ضَرَبْنَ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ الْمَجْهُوْلِ. |
| ضَرَبَتْ ضَرَبَتَا ضَرَبْنَ او په همدې قياس مجهول هم . |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره د مضمر پنځه اقسام بيانوي .

**اغراض دجامي** : فذلك اى المضمر : غرض د شارح د ضمير مرجع متعين كول دي، ځكه ذلك د بعيد دپاره راځي، او مخكې نږدې ددې څه مرجع متعين نه وه، نو شارح وويل چې دا ضمير مضمر ته راجع دى.

خمسة انواع المرفوع الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح د پنځه اقسامو نومونه ذكر كول دي.

الاول: غرض د ماتن ددې مقام نه د هر يو نوعې دپاره مثالونه ذكر كول دي، بيا د هر نوعې د لاندې د ۱۸ افراد دي.

النوع: چونكه الاول صفت وو، نو ماتن ورلره موصوف راوويستو چې النوع دى.

يعني المرفوع المتصل: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : دا اول خو اضافي ته هم شامليږي، نو اطلاق يې په منصوب هم كيدې شي، نو مثال د ممثل سره مطابق نه شو؟

**جواب:** اول حقيقي مراد دی چې هغه مرفوع متصل دی. بيا ضمير لفظ راوړو کې اشاره ده چې عبارت د ماتن په تسامح بناء دی، ځکه ضربت خو مرفوع متصل نه دی، بلکې ضمير د ضربت مرفوع متصل دی.

على صيغة المتكلم الواحد الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** ذهن ته دا راتلو چې صرف د ضَربتُ ضُرِبت باب ضمائرو ته به مرفوع ويلې شي، او د نورو بابونو هغې ته به نه شي ويلې.

**جواب:** مونږ وايو مراد د ضَرَبْت نه صيغه د واحد متکلم د فعل ماضي ده. هغه بيا که د هر يو باب او مادې نه وي ټولو ته شامل دي.

**سوال:** په کار داوه چې ماتن د ضربت او ضُربت سره اضرب او أضرب ويلې وي ؟

**جواب:** ذکر د ضربت او ضُربت دی او مراد صيغه د واحد متکلم ده. هغه بيا که د ماضي وي او که د مضارع وي، ټولو ته شامليږي.

المنتهيين: چونکه الى ضربن جارمجرورمتعلق غواړي نوشارح ورلره محذوف متعلق راويستو.

الى ضربن: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** الى دپاره د انتهاء د غايې په مسافت کې راځي، دا بيا په دوه قسمه ده، غاية المد و غاية الاسقاط. غاية الاسقاط دپاره حکم دا دی، چې دا به د جنس د مغيا نه وي او غايه به په مغيا کې داخله وي، او غاية المد هغه ده چې د جنس د مغيا نه وي او غايه په حکم د مغيا کې داخله نه وي، اوس دلته غاية الاسقاط نه صحيح کيږي، ځکه ضربن د جنس د ضربت نه،نه دی، بلکې خان لره صيغه ده، نو غاية المد شوه کله چې غاية المد شوه، نو دې کې خو غايه په مغيا کې داخله نه وي، نو ضربن په ضمائرو کې داخل نه شو حالانکه دې کې هم ضمير شته؟

**جواب:** مونږ وايو دا غايه د اسقاط ده او دلته حذف د معطوف دی ای الاول ضمير ضربت ومادونهما الى ضربن و ضربن، نو ضمير د ضربن په هغه معطوف کې راغلو.

والما بدأبالمتكلم الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: څه وجه ده چې مصنف شروع د ضمائرو د متکلم نه وکړه او د نورو خلکو خلاف يې وکړو. ځکه صرفيان خو د غائب نه شروع کوي؟

**جواب**: نحاة شروع د متکلم نه کوي، ځکه دا اعرف المعارف ضمير دی. نو ترقي د اعلی نه راځي په طرف د ادنی، او صرفيان ترقي د ادنی نه اعلی ته کوي يا صرفيان هم ترقي د اعلی نه ادنی ته کوي په دې شان سره چې صيغه د غائب د زوائدو نه خالي وي. نو صيغه د غائب اعلی شوه د وجې د خالي والي ددې نه د زوائدو نه.

| |
|---|
| وَ النَّوْعُ الثَّانِيْ اَيِ الْمَرْفُوْعُ الْمُنْفَصِلُ اَنَا اِلٰى هُنَّ اَنَا نَحْنُ اَنْتَ اَنْتُمَا اَنْتُمْ اَنْتِ اَنْتُمَا |
| اوهمدغه نوعه چې مرفوع منفصل دي هغه ضميردانادي ترهن پورې اَنَا نَحْنُ اَنْتَ اَنْتُمَا اَنْتُمْ اَنْتِ اَنْتُمَا |
| اَنْتُنَّ هُوَ هُمَا هُمْ هِيَ هُمَا هُنَّ وَ الضَّمِيْرُ فِيْ اَنْتَ اِلٰى اَنْتُنَّ هُوَ اَنْ اِجْمَاعًا وَ الْحُرُوْفُ الْاَوَاخِرُ لَوَاحِقُ |
| اَنْتُنَّ هُوَهُمَاهُمْ هِيَ هُمَاهُنَّ اوضميرپه انت كې ترانتن پورې ان دي اجماعا اوآخري حروف يې لواحقات دي |
| دَالَّةٌ عَلٰى اَحْوَالِهٖ مِنَ الْاِفْرَادِ وَ التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ وَ التَّذْكِيْرِ وَ التَّاْنِيْثِ وَ النَّوْعُ الثَّالِثُ اَيِ الْمَنْصُوْبُ الْمُتَّصِلُ وَهُوَ |
| چې دلالت كوي په احوالو دهغې افرادتثنيه جمع تذكيراوتانيث نه دريمه نوعه يعني منصوب متصل او |
| قِسْمَانِ اَلْقِسْمُ الْاَوَّلُ الْمُتَّصِلُ بِالْفِعْلِ نَحْو ضَرَبَنِيْ اِلٰى ضَرَبَهُنَّ ضَرَبَنِيْ ضَرَبَنَا ضَرَبَكَ ضَرَبَكُمَا ضَرَبَكُمْ |
| داپه دوه قسمه ده اول قسم متصل بالفعل دي لكه ضَرَبَنِيْ اِلٰى ضَرَبَهُنَّ ضَرَبَنِيْ ضَرَبَنَا ضَرَبَكَ ضَرَبَكُمَا ضَرَبَكُمْ |
| ضَرَبَكِ ضَرَبَكُمَا ضَرَبَكُنَّ ضَرَبَهٗ ضَرَبَهُمَا ضَرَبَهُمْ ضَرَبَهَا ضَرَبَهُمَا ضَرَبَهُنَّ. |
| ضَرَبَكِ ضَرَبَكُمَا ضَرَبَكُنَّ ضَرَبَهٗ ضَرَبَهُمَا ضَرَبَهُمْ ضَرَبَهَا ضَرَبَهُمَا ضَرَبَهُنَّ. |

## اغراض دجامي

**والثاني**: كله چې ماتن فارغ شو د مثال د نوع اول نه نو د دوهم قسم ضمائرو مثال ذكر كوي.

**النوع**: ماتن والثاني ويلي وو او هغه صفت وو، شارح ورلره موصوف راويسته، چې النوع دی.

**ای المرفوع الخ**: چونكه ثاني مجهول وو، نو شارح په المرفوع سره د هغې تعيين وكړو.

**والضمير في انت الخ**: غرض د شارح تعيين د ضمير كول دي په مثال كې او دفع د وهم هم كوي، وهم دا راتلو چې كيدې شي دا مجموعه به ضمير وي، شارح دا وهم دفع كړو، چې مجموعه ضمير نه دی صرف ان ضمير دی.

**اجماعاً**: مراد په دې سره اجماع د بصريانو ده، په دې سره دفع د سوال وكړه چې كوفيان خو ددې خلاف كوي، داځنګه اجماع ده؟

**جواب**: مونږ ووېل چې مراد اجماع د بصريانو ده. خو د كوفيانو په كې اختلاف دی. فرآء وايي مجموعه ضمير دی او باقي كوفيان وايي چې تٌ ضمير دی او ان دپاره د اعتماد دی

والحروف الاواخر الخ: كله چې ضمير ان شو. نو دا ما بعد حروف احوال د فاعل ذكر كوي.

**سوال**: كله چې ضمير صرف ان شو، نو په دې بيا تعريف د ضمير صادق نه شو، ځكه دا مستقل بنفسه نه شو؟

**جواب**: مونږ وايو ما قبل ته به محتاج نه وي او دا زياتي حروف خو ددې ما بعد دي.

والثالث: كله چې فارغ شو د مثال د دوه نوعو د ضمائرو نه، نو مثال د دريمې نوعې د ضمائرو دپاره ذكر كوي.

النوع: غرض د شارح د الثالث صفت دپاره موصوف راويستل دي، چې هغه النوع دی

اى المنصوب الخ: چونكه ثالث مبهم وو، نو شارح د هغې تعيين وكړو چې مراد منصوب متصل دی

وهو قسمان: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: څه وجه ده چې ماتن مخكې دوه نوعو دپاره يو يو مثال ذكر كړو، او ددې نوعې دپاره دوه مثالونه ذكر كوي؟

**جواب**: تعدد د امثلو بنآء دی په تعدد د ممثلاتو باندې چونكه دامنصوبه په دوه قسمه دی، يو هغه چې متصل بالفعل وي، د هغې دپاره اول مثال دی، او دوهم قسم متصل بغير الفعل دی او د هغې دپاره دوهم مثال دی.

ضربنا: په دې صيغه كې ضمير د مرفوع او منصوب متصل يو شان دي، فرق په دې كې په ضمير مرفوع كې جاء ساكنه او په ضمير د منصوب كې متحركه وي، بيا ضمير مرفوع كې بـاء ځكه ساكنه كړه چې ضمير مرفوع د خپل عامل نه جزء وي، نو كه متحرك كړو نو توالى د اربع حركاتو په يوه كلمه كې راتله. او دا صحيح نه ده. او په ضمير منصوب كې كه توالي د اربع حركاتو راشي، نو نقصان نشته ځكه ضمير منصوب ځان لره كلمه وي. دوهمه خبره داده، چې دې ضربنا كې ضمير دا نون دی الف دپاره د دفع د التباس راغلی دی، په صيغې دجمع مؤنث سره.

| وَ الْقِسْمُ الثَّانِيْ اَلْمُتَّصِلُ بِغَيْرِ الْفِعْلِ نَحْو اَنِّيْ اَنَّنَا اَنَّکَ اَنَّكُمَا اَنَّكُمْ اَنَّکِ اَنَّكُمَا اَنَّكُنَّ اَنَّهٗ اِلٰى اَنَّهُنَّ وَ |
|---|
| اودوهم قسم چې متصل بدون دفعل وي لکه اَنِّيْ اَنَّنَا اَنَّکَ اَنَّكُمَا اَنَّكُمْ اَنَّکِ اَنَّكُمَا اَنَّكُنَّ اَنَّهٗ تر اَنَّهُنَّ او |
| النَّوْعُ الرَّابِعُ اَيِ الْمَنْصُوْبُ الْمُنْفَصِلُ اِيَّايَ اِيَّانَا اِيَّاکَ اِيَّاكُمَا اِيَّاكُمْ اِيَّاکِ اِيَّاكُمَا اِيَّاكُنَّ اِيَّاهُ اِلٰى اِيَّاهُنَّ وَفِيْ |
| څلورمه نوعه چې منصوب منفصل دي اِيَّايَ اِيَّانَا اِيَّاکَ اِيَّاكُمَا اِيَّاكُمْ اِيَّاکِ اِيَّاكُمَا اِيَّاكُنَّ اِيَّاهُ اِلٰى اِيَّاهُنَّ او په |
| اِيَّايَ اِخْتِلَافَاتٌ كَثِيْرَةٌ وَ الْمُخْتَارُ اَنَّ الضَّمِيْرَ هُوَ اِيَّا وَ اللَّوَاحِقُ لِلدَّلَالَةِ عَلَى التَّكَلُّمِ وَ |
| اِيَّايَ کې ډير اختلافات دي اوغوره داده چې ضمير ايا دي اوباقي لواحقات دي دپاره ددلالت په تکلم او |
| الْخِطَابِ وَ الْغَيْبَةِ وَ الْاِفْرَادِ وَ التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ وَ التَّذْكِيْرِ وَ التَّاْنِيْثِ. |
| اوخطاب اوپه غيبوبت و اوافراد ،تثنيه اوجمع اوتذکير اوتانيث. |

**اغراض دجامي :** والرابع: کله چې فارغ شو ماتن د مثال د درې انواعو نه. نو شروع يې وکړه په مثال د څلورم قسم کې.

النوع: په دې عبارت سره غرض د شارح د الرابع صفت دپاره موصوف راويستل دي، چې هغه النوع دی.

اي المنصوب المنفصل: چونکه الرابع مجهول وو، نو شارح د هغې تعيين په منصوب منفصل سره وکړو.

اياي الخ: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي، او شارح ورسره اتمام د ګردان کوي.

وفي اياي الخ: په دې کې ډير اختلافات دي، غوره مذهب د سيبويه او اخفش دی او هغه دا چې په دې کې ايا ضمير دی، او دا ما بعد لواحق د سيبويه په نزد حروف دي او د احفش په نزد اسماء دي او دا دپاره د فرق کولو راوړې شوي دي.

| وَ النَّوْعُ الْخَامِسُ غُلَامِيْ مِثَالُ الْمُتَّصِلِ بِالْاِسْمِ وَ لِيْ مِثَالُ الْمُتَّصِلِ بِالْحَرْفِ غُلَامِيْ غُلَامُنَا غُلَامُکَ |
|---|
| پنځمه نوع غلامي ده دا مثال د ضمير متصل بالاسم دي اولي مثال د متصل بالحروف دي غلامي غلامنا غلامک |
| اِلٰى غُلَامِهِنَّ وَ لِيْ لَنَا لَکَ اِلٰى لَهُنَّ وَ كَانَ الْقِيَاسُ اَنْ تَكُوْنَ ضَمَائِرُ كُلٍّ مِنَ الْمُتَكَلِّمِ وَ الْمُخَاطَبِ وَالْغَائِبِ |
| تر غلامهن پورې اولي لنالک تر لهن پورې اوقياس داچې وي ضمائر دهريو دمتکلم اود مخاطب اود غائب |
| سِتَّةً لٰكِنَّهُمْ وَضَعُوْا لِلْمُتَكَلِّمِ لَفْظَيْنِ يَدُلَّانِ عَلٰى سِتَّةِ مَعَانٍ كَضَرَبْتُ وَ ضَرَبْنَا |
| شپږشپږ لکن وضع شود متکلم دپاره دوه الفاظ چې دلالت کوي په شپږو معناګانو لکه ضربت ضربنانو |

| |
|---|
| فَضَمِيْرُ ضَرَبْتُ مُشْتَرِكٌ بَيْنَ الْوَاحِدِ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ ضَمِيْرُ ضَرَبْنَا بَيْنَ |
| ضمير د ضربت مشترک دي په مينځ د واحد او مذکر او مؤنث کې او ضمير د ضربنا مشترک دي په مينځ د |
| الْاَرْبَعَةِ الْمُثَنَّى الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ الْمَجْمُوْعِ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ وَضَعُوْا لِلْمُخَاطِبِ خَمْسَةَ اَلْفَاظٍ |
| څلورو کې چې مثنى مذکر ده او مؤنث ده او مجموع مذکر او مؤنث ده او وضع شود مخاطب د پاره پنځه الفاظ |
| اَرْبَعَةٌ غَيْرُ مُشْتَرِكَةٍ وَ وَاحِدٌ مُشْتَرِكٌ بَيْنَ الْمُثَنَّى الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ اَعْطَوْا لِلْغَائِبِ حُكْمَ |
| څلور غير مشترک دي او يو مشترک دي په مينځ د مثنى مذکرې او مؤنثې کې او ورکړي شو غائب ته حکم |
| الْمُخَاطَبِ فِيْ ذٰلِكَ فَاِنَّ الضَّمِيْرَ فِيْ مِثْلِ ضَرَبَا وَ ضَرَبَتَا هُوَ الْاَلِفُ الْمُشْتَرَكُ بَيْنَهُمَا وَ التَّاءُ حَرْفُ |
| د مخاطب په دې کې ځکه چې ضمير په مثل د ضربا او ضربتا کې الف مشترک دي په دوي کې او تا حرف |
| التَّانِيْثِ وَ بَقِيَّةُ الْاَنْوَاعِ الْخَمْسَةِ جَارِيَةٌ عَلٰى هٰذَا الْمَجْرٰى اَعْنِيْ اَنَّ لِلْمُتَكَلِّمِ لَفْظَيْنِ وَ لِلْمُخَاطِبِ |
| تانيث دي پاتې نورې نوعې هم په همدې طريقه دي يعني چې د متکلم د پاره دوه لفظه دي او د مخاطب د پاره |
| خَمْسَةٌ وَ لِلْغَائِبِ خَمْسَةٌ فَصَارَ الْمَجْمُوْعُ اِثْنَى عَشَرَةَ كَلِمَةً لِثَمَانِيَةَ عَشَرَ مَعْنًى فَاِذَا كَانَ لِكُلٍّ مِنَ الْاَنْوَاعِ الْخَمْسَةِ |
| پنځه او د غائب د پاره پنځه نو ټولس دولس کلمې جوړې شوې د اتلسو معنو د پاره او چې د هر يو د پنځو نوعو |
| اِثْنَتَا عَشَرَةَ كَلِمَةً لِثَمَانِيَةَ عَشَرَ مَعْنًى تَكُوْنُ جُمْلَتُهَا سِتِّيْنَ كَلِمَةً لِتِسْعِيْنَ مَعْنًى وَ بَيَّنُوْا |
| د پاره دولس کلمې جوړې شوې د اتلسو معنو د پاره نو ټولې شپيته کلمې شوې د نوي معنو د پاره او بيان |
| لِتِلْكَ الْاُمُوْرِ عِلَلاً وَ مُنَاسَبَاتٍ لَا نُطَوِّلُ الْكَلَامَ بِذِكْرِهَا. |
| کړي نحويانو د دې کلمو د پاره اعلالات او مناسبات چې مونږ دير اوږد بحث نه شو ذکر کولای. |

**اغراض د جامي : والخامس:** کله چې فارغ شو ماتن د څلورو اقسامو د مثالونو نه، نو شروع يې وکړه په مثال د پنځم قسم کې.

**والنوع:** چونکه الخامس صفت وو، نو شارح ورلره موصوف راويسته چې هغه النوع دی، بيا په دې مقام کې شارح د قسم خامس تعيين ونه کړو، ځکه د ما قبل نه خپله معلوم شو چې پاتې قسم مجرور متصل دی.

**ظلامې:** غرض د ماتن مثال ذکر کول دي.

**مثال المنفصل بالاسم:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال:** څه باعث ده په ماتن چې دوه امثله يې راوړي دي، وضاحت د پاره خو يو مثال کافي وو؟

**جواب:** تعدد د امثلو بناء دی په تعدد د ممثلاتو باندې، يعنې ضمير مجرور منصل په دوه قسمه دی، يو هغه چې د اسم سره متصل وي اول مثال د هغې دی او دوهم هغه دی چې د حرف سره متصل وي، دوهم مثال د هغې دی بيا داضمير صرف دې دوه کلمو کې منحصر نه دی، بلکې ددې په مثل هر مقام کې راتلی شي، لکه کتابي، بي، في، الخ.

وكان القياس الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال:** حاصل د هغې دا دی، چې کوم ضمائر تا ذکر کړې او مونږ په کې سوچ وکړو نو څه ضمائر د متکلم دي، څه د مخاطب او څه د غائب، او دې کې هر يو شپږ قسمه، اخيي. ځکه په هر يو کې به مثلا يو متکلم وي، يا دوه وي يا زيات وي، مذکر به وي يا مؤنث، نو ټول شپږ شو، نو چې هر يو کې شپږ شپږ حساب کړې نو هر نوعې لره اتلس (۱۸) ضمائر په کار دي، نو ټول مثالونه نوي (۹۰) په کار وو. حالانکه دا خو کم دي.

**جواب:** دا چې سائله ته خطاء شوې يې که د تعداد خبره شي، نو بيا خو يوسل او اته (۱۰۸) مثالونه په کار دي، ليکن دا خبره د نقل سره تعلق ساتي، او په نقل کې د مخاطب او غائب د پاره (۵) صيغې او د متکلم د پاره (۲) صيغې راغلې دي او د مجرور منفصل نقل نه دی راغلې.

فضمير ضربت مشترك: وجه داده چې د متکلم پته لګېږي چې دا ښځه ده او که سړی دی.

وضمير ضربنا الخ: وجه داده چې دوه او ددوو نه زيات متکلم وي که ښځه وي او که سړی نو پته لګېږي.

المثنى المذكر الخ: په المثنى کې درې قسمه اعراب جاري کيږي، چې مجرور شي نو د ما قبل نه به بدل شي او چې مرفوع شي نو خبر د مبتداء محذوفه به شي، او که منصوب شي نو مفعول به، به شي د فعل محذوفه، البته په دې مثنى به اعراب تقديري وي او ددې په صفت المذكر باندې به اظهار کيږي.

اربعة غير مشتركة الخ: هغه صيغې د واحد مذکر، جمع مذکر، واحده مؤنث، او جمع مؤنث دي.

واعطوا للغائب الخ: يعنې غائب کې هم دغسې څلور صيغې غير مشترك او صيغه د تثنيه مشترك ده.

فان الضمير الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي
**سوال**: ته وايې غائب كې هم صيغه د تثنيه مشترك ده، حالانكه مونږ چې ګورو نو دې كې فرق دی، ځكه په ضربا كې تاء نشته، او په ضربتا كې تاء شته؟
**جواب**: مونږ جواب وكړو، چې ضمير په دواړو كې الف مشترك دی، او دا تاء ضمير نه دی بلكې حرف د تانيث دی.
وبقية الانواع الخ: يعنې ما خو درته صرف ضمير مرفوع متصل كې اجراء وكړه، دغسې دې باقي څلورو انواعو كې هم اجراء وكړه، يعنې متكلم دپاره دوه الفاظ او مخاطب او غائب دپاره پنځه الفاظ دي، نو مجموعه دولس كلمې د اتلس معانيو دپاره شوي، نو مجموعه (۲۰) كلمات د (۹۰) معانيو دپاره شو.

## حكم دهريوې نوعې دضمائرو:

| |
|---|
| فَالْمَرْفُوْعُ الْمُتَّصِلُ خَاصَّةً يَعْنِي لَا الْمَنْصُوْبُ وَ الْمَجْرُوْرُ الْمُتَّصِلَانِ لِيَسْتَتِرَ لِاَنَّهُمَا |
| پس مرفوع متصل خاصتاً نه منصوب او نه مجرور چې دواړه متصل وي پټ به راوړل كيږي ځكه چې دا |
| فُضْلَتَانِ وَ الْمَرْفُوْعُ الْفَاعِلُ وَ هُوَ كَجُزْءِ الْفِعْلِ فَجَوَّزُوْا فِيْ بَابِ |
| دواړه فضله دي او مرفوع فاعل دي او دا په شان دجزءدي دفعل نه او په مذهب د نحويانو جائز دي په باب د |
| الضَّمَائِرِ الَّتِيْ وَضْعُهَا لِلْاِخْتِصَارِ اِسْتِتَارَ الْفَاعِلِ فَاكْتَفَوْا بِلَفْظِ الْفِعْلِ كَمَا |
| هغه ضمائروكې چې وضع شوې وي دپاره د اختصار پټيدل د فاعل او اكتفاء كول په لفظ د فعل لكه څنګه |
| يَحْذِفُ فِيْ آخِرِ الْكَلِمَةِ الْمُشْتَهِرَةِ شَيْءٌ وَ يَكُوْنُ فِيْمَا اَبْقَى دَلِيْلٌ عَلَى مَا اُلْقِيَ |
| چې حذفيږي په آخر د كلمې مشهورې كې يو څيز او وي به په مابقي باندې دليل په هغه څه كوم چې غورځول |
| عَلَى مَا مَضَى فِي التَّرْخِيْمِ وَ لٰكِنْ هٰذَا الْاِسْتِتَارُ لَيْسَ فِيْ جَمِيْعِ الصِّيَغِ بَلْ فِيْ |
| شوي وي بناء په هغه څه چې تيرشوي په بحث د ترخيم كې او دا استتار په ټولو صيغو كې نه راځي بلكه په |
| الْفِعْلِ الْمَاضِيْ لِلْغَائِبِ الْوَاحِدِ الْمُذَكَّرِ اِذَا لَمْ يَكُنْ مُسْنَدٌ اِلَى الظَّاهِرِ نَحْوُ زَيْدٌ ضَرَبَ وَ |
| فعل ماضي غائبه كې چې صيغه د واحد مذكر وي چې اسنادي ظاهر ته نه وي شوې لكه زيد ضرب او په |
| لِلْوَاحِدَةِ الْمُؤَنَّثِ الْغَائِبَةِ اِذَا لَمْ تَكُنْ مُسْنَدَةً اِلَى الظَّاهِرِ نَحْوُ هِنْدٌ ضَرَبَتْ فَاِنَّ التَّاءَ عَلَامَةُ التَّاْنِيْثِ |
| واحده مؤنثه غائبه كې چې اسنادي ظاهر ته نه وي شوې لكه هند ضربت ځكه چې تاء علامه د تانيث ده |
| لَا الضَّمِيْرُ الْمَرْفُوْعُ وَ اِلَّا لَمْ يَجْتَمِعْ مَعَ الْفَاعِلِ الظَّاهِرِ فِيْ نَحْوِ ضَرَبَتْ هِنْدٌ وَ فِي الْفِعْلِ الْمُضَارِعِ لِلْمُتَكَلِّمِ |

| |
|---|
| نه د ضمیر مرفوع ورنه جمع به نه وي سره د فاعل ظاهر نه په مثل د ضربت هند کې او په فعل مضارع متکلم |
| مُطْلَقًا سَوَاءٌ كَانَ وَاحِدًا اَوْ فَوْقَ الْوَاحِدِ مُذَكَّرًا اَوْ مُؤَنَّثًا نَحْو اَضْرِبُ |
| کې مطلقأبرابره خبره ده که واحدوي اويازت دواحدوي مذکروي اوکه مؤنث وي لکه اضرب نضرب اود |
| وَ نَضْرِبُ وَ لِلْوَاحِدِ الْمُخَاطَبِ الْمُذَكَّرِ نَحْو تَضْرِبُ وَ اَضْرِبُ وَ لِلْوَاحِدِ الْغَائِبِ وَ الْغَائِبَةِ اِذَا |
| پاره دواحد مذکر مخاطب لکه تضرب اضرب اودپاره دواحد غائب مذکر اوواحدې غائبې مؤنثې چې کله |
| لَمْ يَكُوْنَا مُسْنَدَيْنِ اِلَى الظَّاهِرِ نَحْو زَيْدٌ يَضْرِبُ وَ هِنْدٌ تَضْرِبُ. |
| یې اسناد نه وي شوې ظاهر ته لکه زید یضرب وهند تضرب. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې د هر یو حکم بیانوي .

**اغراض دجامي** : <u>فالمرفوع المتصل خاصة</u>: کله چې ماتن د پنځه اقسامو د ضمیر نه سره د ذکر د مثالونو نه فارغ شو ، نو اوس هغه اول قسم د ما قبل اقسامو نه راخلي او هغې کې تقسیم کوي بارز او مستتر ته، بیا دې عبارت کې فاء تفصیلیه ده، په **المرفوع** سره منصوب مجرور نه احتراز دی، وروستو ددې قید فائده ذکر کوي هم په **المتصل** سره د منفصل نه احتراز وشو.

په خاصة کې تآء د مبالغې ده یا تآء د مصدر ده، او دا منصوب دی په فعل محذوفه سره ای **اخص خاصةً**.

<u>یعنی لا المنصوب الخ</u>: غرض د شارح د **المرفوع** قید فایده ذکر کول دي، چې د منصوب مجرور نه په دې قید سره احتراز وشو.

<u>یستتر</u>: دا خبره د مبتداء دی، یعنې مرفوع متصل مستتر کېږي .

<u>لانهما فضلتان</u>: غرض د شارح وجه د احتراز د منصوب او مجرور ده. حاصل د هغې دادی، چې ضمیر منصوب او مجرور زیاتي دی، او ضمیر مرفوع خو فاعل وي نو دا **کالجزء من الفعل** شو، نو نحاتو په باب د ضمائرو کې استتار د فاعل جائز کړو، ځکه د ضمائرو وضع دپاره د اختصار شوې ده.

**كما يحذف الخ**: غرض د شارح مثال پیش کول دي ما قبل خبرې دپاره، حاصل د هغې دادې چې كله كله يو مشهوره كلمه وي نو د هغې د آخر نه څه شی حذف شي او **ما أبقي** دلیل په **ما ألقي** وي. نو دلته یو سوال راځي.

**ولكن هذا الاستتار الخ**: غرض د شارح دفع د توهم ده چې پیدا شوې د مخکني کلام نه، او هغه دا چې په **يستتر** کې چې کوم استتار ذکر شو، نو دا به ټولو افعالو کې راځي؟ نو هغه وهم یې دفع کړو، چې دا ټولو افعالو کې نه راځي، بلکې بعضې افعالو کې راځي.

**في الفعل الماضي الخ**: چونکه **الماضي** صفت وو نو شارح ورلره **الفعل** موصوف راویستو.

**الواحد المذكر**: غرض د شارح دفع د وهم ده، وهم راتلو چې مراد به د غائب او غائبې نه جنس د دواړو وي نو د هغې اطلاق خو په تثنیه او جمع هم کېږي نو هلته به هم ضمیر مستتر وي. حالانکه داسې خو نه ده؟ شارح هغه وهم دفع کړو، چې مراد د غائب او غائبې نه واحد دی،

**سوال**: څه وجه ده چې د ماضي په باقي صیغو کې ضمیر بارز راځي او دې دواړو کې مستتر راځي؟

**جواب**: ضمیر مستتر ضعیف دی او غائب او غائبه په نسبت د متکلم او مخاطب سره ضعیف دي، نو ضعیف مو ضعیف لره ورکړو او ضمیر د بارز قوي دی، او متکلم مخاطب په نسبت د غائب قوي دی. نو قوي مو قوي لره ورکړو.

**اذا لم يكن الخ**: اشاره دې خبرې ته چې استتار د ضمیر دې صیغه کې واجب نه دی.

**نحو زيد ضرب**: غرض د شارح مثال ذکر کول دي،. **ضرب** صیغه د غائب فعل ماضي ده او اسم ظاهر ته یې اسناد نه دې شوې. نو دې کې ضمیر مرفوع متصل مستتر دی، مثال د هغه چې اسم ظاهر ته اسناد شوی وي لکه **ضرب زيدٌ**، دلته به اوس ضمیر مستتر نه وايو، ځکه اسم ظاهر ته اسناد شوې دی او که بالفرض دې کې ضمیر مستتر شي، نو لازم به شي تعدد د فاعلینو دپاره د فعل واحد په یو وخت کې او دا ناجائز ده.

**وللواحدة الخ**: واحده مونثه غایبه کې هم ضمیر مستتر راځي، په فعل ماضي کې.

**اذا لم تكن الخ**: اشاره ده چې دا استتار وجوبي نه دی. بلکې جوازي دی.

**نحو هند ضرب**: په دې عبارت سره شارح اتفاقي مثال ذکر کوي، دلته صیغه د غائبه د فعل

ماضي ده اسم ظاهر ته اسناد د فعل نه دی شوی، نو ضمیر به مستتر وي

فان التاء الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: مثال دې موافق د ممثل سره نه دی، ځکه په ضرب کې خو تآء ضمیر بارز دی؟

**جواب**: دا تآء علامه د تانیث ده. ضمیر مرفوع نه دی، دلیل ذکر کوي چې که دا تـآء ضمیر د مرفوع وي، نو په ضربت هند کې به نه راتلو. ځکه بیا تعدد د فاعلینو لازمېږي

**سوال**: دا هند دې د ضمیر د ضرب نه بدل شي کنه؟

**جواب**: اضمار قبل الذکر راځي.

و في الفعل المضارع: مواضع د استتار وجوبي ذکر کوي. ماتن المضارع ویلي وو، شارح ورلره الفعل موصوف راویستو، او في سره اشاره ده دې ته چې دا په هغه ماضي عطف دی.

مطلقاً: خینې وایي چې زمانا مطلقا یا استتارا مطلقاً لیکن شارح یې خپل یو تفسیر کوي چې تعمیم د متکلم ته اشاره ده.

وللواحد المخاطب المذکر: چونکه مخاطب کې عموم وو، چا به وهم کولو چې د مخاطب ټولو صیغو ته به شامل وي، نو شارح وویل چې د واحد صیغه مراد ده. بیا به چا ویـل چې مونث به هم مراد وي، نو شارح وویل چې صرف د مذکر هغه مراد ده.

نحو تضرب واضرب: یو مثال د فعل مضارع دوهم د فعل امر دی.

وللواحد الغائب الخ: شارح موصوف راوویستو د صفت د صیغو دپاره.

اذا لم یکونا: اشاره ده چې استتار دې په دوه صیغو کې واجب نه دی.

نحو زید ضرب و هند تضرب: اول مثال د غائب او دوهم مثال د غائبې دی.

| |
|---|
| وَ فِي الصِّفَةِ مُطْلَقًا سَوَاءٌ كَانَ اِسْمُ فَاعِلٍ اَوْ مَفْعُوْلٍ اَوْ صِفَةٍ مُشَبِّهَةٍ اَوْ اَفْعَلِ التَّفْضِيْلِ وَ سَوَاءٌ كَانَ مُفْرَدًا |
| او په صفت کې مطلقاً که اسم فاعل وي که مفعول وي که صفت مشبه وي که افعل التفضیل وي که مفرد |
| اَوْ مُثَنًّى اَوْ مَجْمُوْعًا مُذَكَّرًا اَوْ مُؤَنَّثًا اِذَا لَمْ يَكُنْ مُسْنَدًا اِلَى الظَّاهِرِ نَحْوُ اَقَائِمٌ نِ الزَّيْدَانِ |
| وي که مثنی که جمع مذکر وي او که مؤنث چې کله یې اسناد نه وي شوی ظاهر ته لکه اقائم ن الزیدان |
| كَقَوْلِكَ زَيْدٌ ضَارِبٌ وَ هِنْدٌ ضَارِبَةٌ وَ الزَّيْدَانِ ضَارِبَانِ وَ الزَّيْدُوْنَ ضَارِبُوْنَ وَ الْهِنْدَانِ ضَارِبَتَانِ وَ الْهِنْدَاتُ |
| او دا قول ستا زید ضارب هند ضاربة والزیدان ضاربان والزیدون ضاربون والهندان ضاربتان والهندات |

| |
|---|
| ضَارِبَاتٌ وَ لَيْسَتِ الْأَلِفُ فِيْ ضَارِبَانِ وَ الْوَاوُ فِيْ ضَارِبُوْنَ بِضَمِيْرَيْنِ لِأَنَّهُمَا تَنْقَلِبَانِ يَاءً فِي النَّصْبِ |
| ضاربات او نه دي الف په ضاربان کې او واو په ضاربون کې ضمير ځکه چې دا بدليږي په ياء سره په حالت نصبي |
| وَ الْجَرِّ وَ الضَّمَائِرِ لَا تَتَغَيَّرُ عَنْ حَالِهَا إِلَّا أَنْ يَتَغَيَّرَ عَامِلُهَا وَ الْعَامِلُ هٰهُنَا |
| اوجري کې او ضمائر د خپل حال نه تغير نه خوري مګر چې کله تغير وخوري عامل د هغوي او عامل دلته |
| لَيْسَ عَامِلاً فِي الضَّمِيْرِ وَ إِنَّمَا هُوَ عَامِلٌ فِيْ إِسْمِ الْفَاعِلِ وَ الضَّمِيْرُ فَاعِلٌ لَهُ وَ الضَّمِيْرُ بَاقٍ عَلٰى |
| عامل په ضمير کې نه دي بلکه عامل په اسم فاعل کې دي او ضمير يې فاعل دي او ضمير باقي وي په |
| مَا كَانَ عَلَيْهِ فِي الرَّفْعِ فَلَوْ كَانَتْ ضَمَائِرُ لَا تَتَغَيَّرُ أَلَا تَرٰى أَنَّ الْيَاءَ فِيْ تَضْرِبِيْنَ وَ النُّوْنُ |
| خپل حالت رفعي باندې او که چيرته دا ضمائر وو نو تغير به نه کوي ته نه ګورې چې ياء په تضربين او نون |
| فِيْ تَضْرِبْنَ وَ الْوَاوُ فِيْ يَضْرِبُوْنَ وَ الْأَلِفُ فِيْ يَضْرِبَانِ لَا تَتَغَيَّرُ فَهُمَا أَيِ الْأَلِفُ وَ الْوَاوُ فِي الصِّفَةِ |
| په تضربن او واو په يضربون او الف په يضربان کې تغير نه خوري پس معلومه شوه چې الف او واو په صفت |
| حَرْفَا التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ وَ لَيْسَتَا بِضَمِيْرَيْنِ. |
| کې حروف د تثنيې او د جمع دي نه ضمائر |

خلاصه د متن

**اغراض د جامي** : وفي الصفة مطلقا: کله چې فارغ شو ماتن د بيان د استتار نه په فعل کې نو شروع يې وکړه په بيان د استتار په شبه فعل کې او وايي و في الصفة الخ ضمير مرفوع په صفت کې مستتر کېږي.

**مطلقاً**: دا مطلقاً حال دی د صفت نه

**سوال** : حال په ذوالحال محمول وي او دلته حمل نه صحيح کېږي ځکه لفظ د الصفة مونث او حال مذکر دی؟

**جواب**: دا صفت مؤول دی په تاويل د وصف سره او قرينه پرې دا ده. چې وروستو ورته ضمير د مذکر راجع کوي سواء کان الخ مفرداً کانت او مفردةً نه وايي. نو د مطلقاً حال واقع کېدل صحيح شو

**اذا لم يکن الخ** : غرض د شارح اشاره کول دي دې ته چې استتار د ضمير په صفت کې مطلقا واجب نه دي، ځکه که اسناد د صفت اسم ظاهر ته شوي وو. نو بيا ضمير مستتر نه راځي

**نحو اقائم الزيدان** : غرض د شارح اشاره کول دي ، دې ته چې استتار د ضمير صفت کې

مطلقاً واجب نه دی، ځکه که اسناد د صفت اسم ظاهر ته شوی وو، نو بیا ضمیر مستتر نه راځي.

**نحو اقائم الزیدان**: غرض د شارح مثال د هغه صفت پیش کول دي، چې اسناد يې اسم ظاهر ته شوی وي او ضمیر په کې مستتر کېدل نه صحیح کېږي. ځکه دوهم فاعل ته ضرورت نشته بیا تعدد د فاعلینو راځي.

**کقولك الخ**: غرض د شارح امثله پیش کول دي، د استتار د ضمیر په صفت کې. په ضاربٌ کې ضمیر مستتر دی چې تعبیر ترې په هو سره کیږي.

**ولیست الالف الخ**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: نه منم دا خبره چې په صفت کې مطلقاً ضمیر مستتر کېږي او مثالونه دې موافق د ممثل سره نه دي، ځکه په الزیدان ضاربان، او الزیدون ضاربون کې الف واو ضمیر بارز دی؟

**جواب**: هر الف واو ضمیر نه وي، دلته دا دوه ضمائر نه دي

سوال: دعوی بالدلیل منظور وي بلا دلیل نه منظورېږي، نو څه دلیل دی په دغه دعوی؟

**جواب**: لانهما الخ دا دواړه ضمائر ځکه نه دي، چې حالت نصبي او جري کې دا دواړه په یآء سره بدلېږي او قانون خو دا دی، چې ضمائر نه بدلیږي، معلومه شوه چې دا ضمائر نه دي بلکې علامه د تثنیه او جمع ده.

**والعامل ههنا الخ**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

سوال: دې مذکور مثال کې خو هم تغیر د عامل په تغیر سره راغلې دی، ځکه چې جاءني ضاربان که رایت ضاربین شي، نو د عامل بدلیدو سره الف د ضاربان بدل شو؟

**جواب**: په جاءني ضاربان کې درې شیان دي. ۱ عامل چې فعل دی. ۲ اسم فاعل چې دا صیغه ده. ۳ فاعل چې دې صیغه کې مستتر دی، نو دې فعل په اسم فاعل کې عمل کری دی، لیکن فاعل کې عامل نه دی، لهذا ضمیر په خپل حال پاتې دی

**فلو کانت الخ**: حاصل دا شو چې که دا الف واو ضمیر وی، نو دا به نه بدلیدل نه ګوري نه چې به تضربین کې یآء او په تضربون کې واو په هیڅ حالت کې نه بدلېږي. که عامل داخل هم شي. نو هغه نون اعرابي به ساقط شي. لیکن ضمیر په خپل حال پاتې وي

**فيهما اى الواو والياء الخ**: شارح اوس دا په ما قبل تفريع كوي چې دا الف واو علامه د تثنيه او جمع ده، ضمير نه دي.

| |
|---|
| وَلَا يَسُوْغُ اَىْ لَا يَجُوْزُ الضَّمِيْرُ الْمُنْفَصِلُ مَرْفُوْعًا كَانَ اَوْ مَنْصُوْبًا لِاَجْلِ شَيْءٍ اِلَّا |
| او جائز نه دي په ضمير كې منفصل كيدل دهغې كه مرفوع وي او كه منصوب دوجې ديو څيز نه مگر كله چې |
| لِتَعَذُّرِ الْمُتَّصِلِ اَىْ لِاَجْلِ تَعَذُّرِهِ لِاَنَّ وَضْعَ الضَّمَائِرِ لِلْاِخْتِصَارِ وَ الْمُتَّصِلُ اَخْصَرُ فَمَتٰى |
| متعذروي متصل كيدل ځكه چې وضع دضمائرو دپاره داختصار ده او متصل زيات مختصروي ترڅو |
| اَمْكَنَ لَا يَسُوْغُ الْاِنْفِصَالُ وَ ذٰلِكَ اَىْ تَعَذُّرُ الْمُتَّصِلِ بِالتَّقْدِيْمِ اَىْ بِتَقْدِيْمِ |
| چې دا ممكن وي جواز نشته منفصل ته او دا متعذر كيدل د متصل كيږي دوجې د تقديم نه يعنې په تقديم |
| الضَّمِيْرِ عَلٰى عَامِلِهٖ لِاَنَّهٗ اِذَا تَقَدَّمَ عَلٰى عَامِلِهٖ لَا يُمْكِنُ اَنْ يَتَّصِلَ بِهٖ |
| دضمير په خپل عامل ځكه چې كله دا مخكې شي په خپل عامل بيا نه دي ممكن چې متصل شي دهغه |
| اِذِ الْاِتِّصَالُ اِنَّمَا يَكُوْنُ بِاٰخِرِ الْعَامِلِ اَوْ بِالْفَصْلِ الْوَاقِعِ لِغَرَضٍ |
| سره ځكه اتصال د آخر دعامل سره راتلې شي او يا د منفصل سره چې واقع شي دپاره دداسې يو غرض چې |
| لَا يَحْصُلُ اِلَّا بِهٖ اِذِ الْفَصْلُ يُنَافِي الْاِتِّصَالَ وَ بِتَرْكِهٖ يَفُوْتُ |
| هغه نه حاصليږي مگر په انفصال سره ځكه چې فصل منافي دي د اتصال سره او په پريخودو سره يې فوت |
| الْغَرَضُ اَوْ بِالْحَذْفِ اَىْ حَذَفَ عَامِلُهٗ لِاَنَّهٗ اِذَا حَذَفَ عَامِلُهٗ لَا |
| كيږي غرض او په حذف سره يعنې په حذف د عامل ددې سره ځكه چې كله حذف شي عامل نو بيا نه |
| يُوْجَدُ مَا يَتَّصِلُ بِهٖ. |
| موجوديږي هغه څه چې دهغې سره متصل شي |

**اغراض د جامي : ولا يسوغ الخ**: په دې مقام كې يو څو خبرې بيانوو: ۱. ربط. ۲. تفصيل د مواضعو د تعذر د منفصل ۳ امثله. ۴ تطبيق د ممثلاتو سره

**ربط**: كله چې فارغ شو مصنف د تقسيم او تفصيل د ضمير نه. چې بيا تعريف د ضمير دوهم مختلف تقسيمات په ضمير كې او دريم مثالونو د هغې نه. نو شروع يې وكړه په څلورمه خبره كې چې مشترك احكام د ضمير ذكر كول دي نو اول حكم دادې ولا يسوغ الخ. ربط لفظي دادې چې واو استئنافيه

**اى لا يجوز الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح يو خو د لفظ سوغ د معنى تعين دى. ځكه دا

په ډيرو معانيو سره راځي کله په معنی د جواز سره راځي ، اوبه په آسانه تيريدلو ته هم سوغ وايي شارح تعيين وکړو، چې اوله معنی مراد ده دوهم غرض د شارح وضاحت د لفظ غير مشهور دی په لفظ مشهور سره. دريم غرض د شارح دفع د سوال ده

**سوال** :سوغ اوبه په مرۍ کې په آسانه تېرېدلو ته وايي او دغه عمل خو ذوي العقول سره تعلق ساتي او ضمير خو د ذوی العقول نه ، نه دی؟

**جواب**: دلته معنی حقيقي مراد نه ده، بلکې معنی مجازي مراد ده، چې هغه جواز دی

**الضمير**: **المنفصل** صفت وو نو شارح ورله موصوف راويستو چې **الضمير** دی

**سوال** :جواز او عدم جواز صفت د اغراضو راځي او ضمير خو ذات دی؟

**جواب**: عبارت په حذف د مضاف سره دی ای **لا يجوز استعمال الضمير**

**مرفوعاًکان او منصوباً**: غرض د شارح دفع د وهم ده. چا به ويل چې نږدې بحث د متصل وو، نو صرف دغه به مراد وي؟ شارح دا وهم دفع کړو. چې مرفوع او منصوب دواړو ته شامل دی

**سوال** :مجرور يې ولې ذکر نه کړو؟

ځکه چې په هغې کې منفصل نه راځي

**لاجل شيء**: غرض د شارح اشاره کول دي. چې مستثنی مفرغه ده دوهم غرض دفع د سوال ده:

**سوال**: ظاهره خو داده. چې **لتعذر** کې به لام د تعليل وي او **لا يسوغ** دعوی ده، نو لازم شو استثناء د دليل د دعوې نه. او دا جائز نه ده. ځکه چې دمستثنی او مستثنی منه په مينځ کې مطابقت ضروري دی، يعنې يا به مستثنی دمدعی دمدعی نه وي اويا به په مستثنی منه کې مطابقت ضروري وي، يعنې يا به مستثنی د مدعی د مدعی نه وي يا به متثنی د دليل دليل نه وي او دلته مستثنی دليل د مدعی نه ده دوهم دا چې مستثنی منه به اسم وي او دلته **لا يسوغ** فعل دی؟

**جواب**: شارح **لاجل شيء** سره دواړه سوالات دفع کړل، چې مستثنی منه حذف ده او هغه **لاجل شيء** ده. نو بيا خبر استثناء د دليل د دليل نه راغله او دوهم مستثنی منه اسم واقع شو

دريم غرض د شارح رد کول دي په فاضل هندي باندې هغه ددې مذکور سوال نه جواب کړی وو چې لام دپاره د وقت دی نو اصل عبارت داسې دی ای **لا يجوز استعمال الضمير المنفصل في وقت**

**من الاوقات الا وقت تعذر المتصل** نو شارح پرې رد وکړو. چې لام په معنی د تعلیل کې اصل دی. او په معنی د وقت سره فرع ده او اصل چې مراد کیدې شي، نو فرع ته به ضرورت نه وي، دلته اصل مراد کیدې شي. نو فرع ته تلل صحیح نه دي.

**وذلك**: ددې ځای نه تفصیل د مواضعو د تعذر د متصل بیانوي شپږ مواضع مصنف ذکر کړي دي او دهغې دپاره یې مثالونه هم ذکر کړي دي، مونږ به یو یو موضع ذکر کړو او تطبیق د مثال به ورسره کوو.

**وذلك**: سره غرض د ماتن اول مقام ذکر کول دي. د هغه مقاماتو نه چې اتیان په متصل متعذر وي، نو مونږ به منفصل ته صیرورت کوو

**ای تعذر المتصل**: غرض د شارح د اسم اشاره دپاره مشار الیه متعین کول دي

**بالتقدیم**: مراد په دې سره هر هغه مقام دی. چې ضمیر په خپل عامل مقدم شوی وي، نو دغه مقام کې اتیان په متصل متعذر دی، مونږ به منفصل ته صیرورت کوو. شارح ورلره وروستو وجه بیانوي.

**ای بتقدیم الضمیر**: غرض د شارح اشاره کول دي، دې خبرې ته چې الف لام عوض د مضاف الیه ده، چې هغه مضاف الیه ضمیر دی.

**مثل ایاك ضربت**: غرض د ماتن خو مثال ذکر کول دي دپاره د اول موضع د مواضع سته نه.

**مثال لتقدیم الضمیر الخ**: غرض د شارح تطبیقي د مثال دی د ممثل سره، یعنې دا کلام په اصل کې ضربتك وو، خو دې مقام کې هر مقصود وو، نو هغه ضمیر د مفعول به مونږ مخکې کړو، نو تقدیم د ضمیر په خپل عامل راغلو اوس به مونږ ضمیر منفصل راوړو.

**لانه اذا تقدم الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح دې اول مقام کې د ضمیر منفصل راوړو وجه ذکر کوي، وجه داده چې کله دا ضمیر په عامل مقدم شو نو اوس ددې متصل کېدل ناممکن دي، ځکه د اتصال یو معنی ده راتلل، د یو شي په آخر د بل شي پورې او هغه دلته ناممکن ده، ځکه چې دی به متصل کېده وروسته د عامل پورې. اوس چې دا ضمیر مخکې شو نو څنګه به متصل شي

**اوبالفصل**: غرض د ماتن دوهم مقام ذکر کول دي. دهغه مقاماتو نه. چې اتیان په ضمیر متصل متعذر وي. نو منفصل ته به صیرورت کوو. او هغه دا چې فصل واقع شوې وي. په

مينځ د ضمير او عامل کې دپاره د يو غرض چې اختصاص راوستل دي
اوس دغه اختصاص په غير د الا نه . نه احـ نو مونږ يې په مينځ کې دا فصل راوړو او ددې
نه وروستو به ضمير منفصل راوړو

**مثال الفصل**: غرض د شارح تطبيق د مثال دی. د ممثل سره په دې مقام کې مقصود اختصاص د ضرب دی د متکلم پورې او دا په غير د الا نه حاصلېږي. نو دا الا مونږ راوړو، او ضمير د فاعل مو منفصل راوړو. شارح وروستو وجه ذکر کوي

**الواقع**: غرض د شارح د جار مجرور دپاره متعلق راويستل دي

**سوال**: متعلق راويستو ته ضرورت نشته، ځکه الفصل مصدر دی، نو جار مجرور دی سره متعلق کيدې شي. ځکه الفصل شبه فعل دی او متعلق فعل او شبه فعل دواړه واقع کيدې شي. دوهم دا چې جار مجرور ددې مذکور سره متعلق کړې نو ظرف لغوه به شي او چې د محذوف سره متعلق کړې نو ظرف مستقر به شي او ظرف لغو اولی دی د ظرف مستقر نه؟

**جواب**: خبره دې صحيح ده. ليکن چې د الواقع سره متعلق شي. نو په معنی کې غتوالې راځي او چې مذکور سره متعلق کړې نو معنی کې غتوالی نه راځي، او غتوالی راوستل په معنی کې اولی دي د غتوالي راوستو نه.

**سوال**: لغرض چې څنګه د فصل سره تعلق ساتي نو د تقديم سره هم تعلق ساتي. ځکه تقديم هم د يو غرض دپاره وي چې حصر دی او وروستو دحذف سره هم تعلق ساتي. ځکه هغه هم د څه غرض دپاره وي. نو ماتن د دې باقي دوو سره ولې ذکر نه کړو؟

**جواب**: دا لغرض د فصل او تقديم دواړو سره تعلق ساتي او وروستو يې د حذف نه دی ذکر کړی، نو اکتفاء يې کړې ده د لاحق نه په سابق سره او په دې باندې عادت د ماتن جاري دی. چې کله اکتفاء د لاحق نه په سابق سره کوې او کله د سابق نه په لاحق سره کوي

**اذالفصل الخ**: غرض د شارح وجه ذکر کول دي په دوهم مقام کې د تعذر د متصل، او هغه دا چې انفصال د اتصال سره منافي دي او که دا فصل پريږدو، نو بيا هغه غرض فوت کيږي چې هغه اختصاص دی

او بالحذف: غرض د ماتن دریم مقام ذکر کول دي. د هغه مقاماتو نه چې اتیان په متصل سره متعذر وي، نو مونږ به منفصل ته صیرورت کوو او هغه مقام دادی چې په دې مقام کې عامل حذف شوي وي

ای حذف عامله: غرض د شارح اشاره کول دي دې خبرې ته. چې الف لام د مضاف الیه دی

و ایاك والشر: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي دپاره د دریم مقام د مقامات ستة نه.

مثال لحذف العامل الخ: غرض د شارح تطبیق د مثال دی د ممثل سره دې مقام کې اصل عبارت داسې وو اتق نفسك والشر، چونکه دا مقام د تحذیر دی او تحذیر کې تلوار وي. نو هغه عامل حذف شو. نو ورسره نفس هم حذف شو اختصاراً اوس چې عامل حذف شو. نو مونږ ضمیر منفصل ته صیرورت وکړو

لانه اذا حذف الخ: شارح وجه د تعذر د متصل ذکر کوي، وجه داده چې کله عامل حذف شو نو اوس بل څیز خو نشته چې مونږ ورسره دا ضمیر متصل کړو، نو مونږ ضمیر منفصل راوړو.

اَوْ بِكَوْنِ الْعَامِلِ اَیْ عَامِلُهُ مَعْنَوِیًّا لِاِمْتِنَاعِ الْاِتِّصَالِ اللَّفْظِ بِالْمَعْنَی اَوْ بِكَوْنِ عَامِلِهِ
یا په کیدو د عامل یعني عامل د دې معنوي دوجې د امتناع د اتصال د لفظ په معنی او یا په کیدو د عامل د دې
حَرْفًا وَ الضَّمِیْرُ الْمَعْمُوْلُ لَهُ مَرْفُوْعٌ اِذِ الضَّمِیْرُ الْمَرْفُوْعُ لَا یَتَّصِلُ بِالْحَرْفِ لِاَنَّهُ خِلَافُ
حرف او ضمیر د دې مرفوع دي ځکه چې ضمیر مرفوع نه متصل کیږي په حرف پورې ځکه چې دا خلاف د
لُغَتِهِمْ بِخِلَافِ الْمَنْصُوْبِ نَحْوُ اِنَّنِیْ وَ اِنَّكَ اَوْ بِكَوْنِهٖ اَیْ كَوْنُ الضَّمِیْرِ مُسْنَدًا اِلَیْهِ
لغت د دوي دي په خلاف د منصوب لکه انني او انک او یا انفصال راځي دوجې د کیدو د ضمیر مسند الیه
اَیْ اِلٰی ذٰلِكَ الضَّمِیْرُ صِفَةٌ جَرَتْ عَلٰی غَیْرِ مَنْ هِیَ اَیْ تِلْكَ الصِّفَةُ كَائِنَةٌ لَهُ
یعني دې ضمیر ته داسې صفت چې جاري وي په غیر د دې معنی کې یعني دغه صفت چې کائن وي د دې سره
فَاِنَّهُ لَوْ لَمْ یَنْفَصِلِ الضَّمِیْرُ عَنْ هٰذِهِ الصِّفَةِ لَزِمَ الْاِلْتِبَاسُ فِیْ بَعْضِ الصُّوَرِ كَمَا اِذَا
ځکه چې که چیرته جدا نه شي ضمیر د دغه صفت څخه نو لازم به شي التباس په بعضې صورتونو کې لکه چې
قُلْتَ زَیْدٌ عَمْرٌو ضَارِبُهٗ هُوَ فَاِنَّهُ لَوْ قِیْلَ زَیْدٌ عَمْرٌو ضَارِبُهٗ
ته ووایې زید عمرو ضاربه هو نو اوس که ووېل شي زید عمرو ضاربه نو خلط به راشي په اوریدونکي چې ضارب
اِلْتَبَسَ عَلَی السَّامِعِ اَنَّ الضَّارِبَ زَیْدٌ اَوْ عَمْرٌو بَلِ الْمُتَبَادِرُ اَنَّهُ عَمْرٌو لِاَنَّهُ اَقْرَبُ
زید دي او که عمر بلکه متبادر دا ده چې ضارب عمرو دي ځکه چې دا نزدې دي ضمیر مستتر ته په خلاف د هغې

| |
|---|
| إِلَى الضَّمِيْرِ الْمُسْتَتِرِ بِخِلَافِ مَا إِذَا قِيْلَ ضَارِبَهُ هُوَ فَإِنَّهُ لَمَّا انْفَصَلَ الضَّمِيْرُ عَلَى |
| چې وويل شي ضاربه هوځکه چې کله جدا شوضمیرپه خلاف دظاهرنومعلومه شوه چې مرجع دضمیرهم |
| خِلَافِ الظَّاهِرِ يَعْلَمُ أَنَّ مَرْجِعَهُ مَا هُوَ خِلَافُ الظَّاهِرِ وَ هُوَ زَيْدٌ وَ إِلَّا لَا حَاجَةَ إِلَيْهِ. |
| خلاف دظاهرده چې هغه زيد دي اوکه دامعنی مرادنه وه نوبیابه ضرورت نه وودې اظهاردضمیر ته. |

**اغراض دجامي :** او بكون العامل: غرض د ماتن څلورم مقام ذکر کول دي، د هغه مقاماتو نه چې اتيان د متصل په کې متعذر وي، نو منفصل ته به صيرورت کوو او هغه مقام دادی، چې عامل په ضمير کې معنوي وي

اي عامله: غرض د شارح اشاره کول دي، چې الف لام عوض دمضاف اليه نه دی.

وانازيدٌ: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي د څلورو مقاماتو دپاره.

مثال كون العامل الخ: غرض د شارح تطبيق د مثال دی د ممثل سره دې مثال کې انا ضمير مبتدا ده او عامل په کې معنوي دی، چې ابتداء ده، نو دې صورت کې به ضمير منفصل راوړو.

لامتناع الخ: شارح وجه د تعذر د متصل ذکر کوي او هغه دا چې ضمير لفظ دی او عامل معنوي معنی ده او لفظ خو د معنی سره نه متصل کېږي. ځکه که متصل شي، نو هغه خو بيا معنی پاتې نه شوه، بلکې لفظ شو ددې وجې به مونږ ضمير منفصل ته صيرورت کوو

او حرفاً: غرض د ماتن پنځم مقام ذکر کول دي، د هغه مقاماتو نه چې اتيان په متصل متعذر وي، نو منفصل ته به صيرورت کوو او هغه دا چې عامل حرف وي او هغه ضمير چې ددې حرف دپاره معمولي وي نو هغه مرفوع وي.

او بكون عامله: غرض د شارح اشاره ده دې خبرې ته چې دا عطف دی په ما قبل معنوياً باندې. او چونکه ما قبل د معطوف اليه نه معاد وي په ما قبل د معطوف کې نو بكون اى ورسره راونيستو

المعمول له: چونکه والضمير مرفوعٌ، جمله اسميه حال واقع دی، او جمله اسميه چې حال واقع شي، نو عايد ضروري وي. نو شارح اشاره وکړه چې هغه عائد حذف دی

**سوال:** وآو عائد شته کنه؟

**جواب**: چونکه جمله اسميه قوي ده. نو صرف په واو اکتفا صحيح نه ده، بلکې دې سره عائد هم ضروري دی.

**وماانت قائماً**: غرض د ماتن د پنځم مقام دپاره مثال ذکر کول دي

**مثال كون العامل حرفاً**: غرض د شارح تطبيق د مثال دی د ممثل سره. دې مقام کې ما حرف مشابه بليس عامل واقع دی او ددې معمول انت ضمير مرفوع دی. ځکه اسم د ما مشابه بليس مرفوع وي نو دلته هم ضمير متصل متعذر دی نو مونږ ضمير منفصل راوړو

**اذالضمير الخ**: غرض د شارح وجه د تعذر د ضمير متصل ذکر کول دي. وجه داده چې ضمير مرفوع د حرف سره نه متصل کېږي. ځکه دا د عربو د لغت خلاف ده او د هغې وجه داده چې ضمير مرفوع قوي دی او عامل حرف ضعيف دی، نو که مونږ ضمير مرفوع د حرف سره متصل کړو، نو لازم به شي اتصال د قوي د ضعيف پورې او دا صحيح نه ده، په خلاف د منصوب کې چې د هغې اتصال د حرف سره راځي. ځکه منصوب ضمير فضله دی نو دا کمزوری دی او اتصال د ضعيف د ضعيف پورې صحيح دی

**سوال**: مجرور يې ولې ذکر نه کړو حالانکه اتصال د حرف سره د مجرور هم راځي؟

**جواب**: هغه واضح وو، نو ځکه يې ذکر نه کړو.

**اويكونه الخ**: ماتن مواضع د تعذر د ضمير متصله ذکر کول. کله چې د پنځه مواضعو نه فارغ شو نو شپږم موضع کې يې شروع وکړه.

**فانه لو لم ينفصل الخ**: غرض د شارح وجه د تعذر د ضمير متصل ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی چې که مونږ ضمير منفصل نه راوړو ددې صفت نه، نو ځينې صورتونو کې به التباس لازم شي لکه د غه مثال کې ته ضمير منفصل نه راوړې او زيدٌ عمروٌ ضاربه ووايې، نو دا عبارت چې څنګه احتمال ددې لري چې ضمير مستتر د ضارب زيد ته راجع شي. لکه چې مقصود د متکلم دی نو احتمال ددې هم لري، چې ضمير مستتر د ضاربٌ عمرو ته راجع شي، بلکې دا خو ډېر زر ذهن ته راځي. ځکه ضمير مستتر ته قريب مرجع عمرو دی او ارجاع د ضمير قريب ته اولی ده د ارجاع د ضمير نه بعيد ته نو په سامع التباس راغلو. هو چې کله ضمير منفصل راوړو. او زيدٌ عمروٌ ضاربه هو ووېلی شي نو دغه التباس دفع کېږي.

**فانما لما انفصل الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: څنګه چې التباس د متصل په صورت کې دی، نو د منفصل ذکر کولو په صورت کې هم التباس شته. څکه چې به هو کې احتمال ددې هم شته، چې عمرو ته راجع شي. بلکې دا مرجع قريبه ده؟

**جواب**: اصل په ضمير کې ضمير متصل دی او ضمير منفصل خلاف الاصل دی او په مرجع کې قريبه ده او مرجع بعيده خلاف الاصل ده اوس چې کله ده ضمير ه منفصل راوړو. چې خلاف الاصل دی، نو مرجع به ورلره هم خلاف الاصل وي. چې هغه مرجع بعيده ده اوس چې کله مرجع بعيده متعين شوه. نو التباس ختم شو.

وَ اِذَا وَقَعَ الْاِلْتِبَاسُ بِدُوْنِ الْاِنْفِصَالِ فِيْ بَعْضِ الصُّوَرِ حُمِلَ عَلَيْهِ مَا

اوکله چې واقع شي التباس په غير د انفصال نه په بعضې صورتونو کې نو حمل کولې به شي په هغه باندې

لَا اِلْتِبَاسَ فِيْهِ لِاِطِّرَادِ الْبَابِ وَ اِنَّمَا قَالَ مَنْ هِيَ لَهُ لَا مَا هِيَ لَهُ كَمَا هُوَ

هغه څه چې التباس نه وي په هغې کې طرداًللباب او مصنف من هي له وويل نه ماهي لـه لکـه څنګه چې

الظَّاهِرُ لِيَكُوْنَ اَشْمَلُ اِقْتِصَارًا عَلَى مَا هُوَ الْاَصْلُ مِثْلُ اِيَّاكَ ضَرَبْتَ مِثَالٌ

ظاهره ده دې دپاره چې شي شامل دې ته او اقتصار وشي په اصل باندې لکه ايـاک ضربت دامثال د

لِتَقْدِيْمِ الضَّمِيْرِ عَلَى الْعَامِلِ وَ مَا ضَرَبَكَ اِلَّا اَنَا مِثَالُ الْفَصْلِ لِغَرَضٍ وَ هُوَ

تقديم دضمير دې په عامل باندې وماضربک الاانامثال دضمير منفصل دې دپاره ديومقصد چې هغه

التَّخْصِيْصُ هٰهُنَا وَ اِيَّاكَ وَ الشَّرَّ مِثَالٌ لِحَذْفِ الْعَامِلِ اَىْ اِتَّقِ نَفْسَكَ وَالشَّرَّ وَ اَنَا زَيْدٌ مِثَالُ كَوْنِ الْعَامِلِ

تخصيص دې دلته او اياک والشرمثال دعامل محذوفه دې يعنې اتق نفسک والشر وانازيدمثال دعامل

مَعْنَوِيًا وَ مَا اَنْتَ قَائِمًا مِثَالُ كَوْنِ الْعَامِلِ حَرْفًا وَ هِنْدٌ زَيْدٌ ضَارِبَتُهُ هِيَ مِثَالُ الضَّمِيْرِ الَّذِيْ اُسْنِدَ

معنوي دې ومـاانت قائمامثال دعامل حرفي دې وهندزيد ضاربته دامثال دهغه ضمير دې چې اسناد

اِلَيْهِ صِفَةٌ جَرَتْ عَلَى غَيْرِ مَنْ هِيَ لَهُ فَاِنَّهُ اُسْنِدَ اِلَيْهِ الضَّارِبَةُ الْجَارِيَةُ

شوې وي دې ته دداسې صفت چې جاري وي په غير ددې لکه چې اسناد شوې دې ته د ضرب چې جاري دې

عَلَى زَيْدٍ حَيْثُ وَقَعَتْ خَبَرًا لَهُ وَ هِيَ صِفَةٌ لِهِنْدٍ حَيْثُ قَامَ الضَّرْبُ

په زيد باندې په داسې شان چې واقع دې خبر دپاره د زيد او ضرب صفت د هند دې څکه چې قيام د ضرب

| |
|---|
| بِهَا وَ اِنَّمَا يَصِحُّ ذٰلِكَ اِذَا كَانَ هِيَ فَاعِلًا لَا تَاكِيْدًا وَ اِلَّا لَكَانَ دَاخِلًا فِيْ صُوْرَةِ |
| شوې تردې پورې او دا هله صحيح كيږي چې كله دا ضمير فاعل شي نه تاكيد ورنه بيا به داخل شي په صورت |
| الْفَصْلِ لِغَرَضِ التَّاكِيْدِ وَ لٰكِنَّهُ تَاكِيْدٌ لَازِمٌ لَا فَاعِلٌ بِدَلِيْلِ نَحْنُ الزَّيْدُوْنَ ضَارِبُوْهُمْ |
| دفصل كې دپاره دغرض دتاكيد حالانكه دا تاكيد لازمي دي نه فاعل په دليل د نحن الزيدون ضاربوهم |
| نَحْنُ وَ رُوِيَ عَنِ الزَّمَخْشَرِيِّ ضَارِبُهُمْ نَحْنُ وَ عَلٰى هٰذَا يَكُوْنُ فَاعِلًا كَمَا قَالَ وَ اخْتَارَ |
| نحن او نقل دي د زمخشري نه ضاربهم نحن او بناء په دې وي فاعل لكه څنګه چې ده ويلي او غوره كړي |
| بِالتَّمْثِيْلِ صُوْرَةً لَا لُبْسَ فِيْهَا لِيُثْبِتَ الْحُكْمَ فِيْ صُوْرَةِ اللُّبْسِ |
| مصنف په مثال راوړو سره هغه مثال په كوم كې چې التباس نشته خكه چې په صورت د التباس كې |
| بِالطَّرِيْقِ الْاَوْلٰى. |
| حكم بطريق اولى سره ثابت دي. |

خلاصه دمتن:

**اغراض دجامي** : **واذا وقع الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: په كوم خايونو كې چې التباس راځي، نو هلته خو ضمير منفصل راوړل صحيح شو، ليكن چې كوم صورتونو كې التباس نه راځي، لكه وروستو مثال هندٌ زيدٌ ضاربته هي ضو، اوس دلته كه ضمير خو د هنده دپاره متعين دی اوس دلته ضمير منفصل ته څه ضرورت دی؟

**جواب**: حاصل دا صورت د عدم التباس په صورت د التباس طرداً للباب حمل دی.

**وانما قال هی له الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي.

**سوال**: ماتن لره په كار وه، چې **من** يې نه راوړی بلكې **ما** يې راوړی وی، خكه **من** صرف په ذوالعقول دلالت كوي، حالانكه دا قاعده په ذوی العقول او غير ذوی العقول دواړو كې استعماليږي ؟

**جواب**: ذوی العقول اصل دی او دا غير يې تابع دی،نو په اصل يې اتيان وكړو او هغه نور ددې په تبع كې شامل شو

**مثال الضمير الخ**: شارح تطبيق د مثال كوي د ممثل سره.

**ولكنه تاكيد الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال**: چې په دې مثال کې لکه څنګه احتمال د تاکيد دی، نو همدارنګې احتمال د فاعل په کې هم دی او دفاعل دپاره نفس احتمال کافي دی، تعيين ته ضرورت نشته؟

**جواب**: دې مثال کې احتمال د فاعل هم نشته. بلکې دا متعين دی دپاره د تاکيد او دليل ددې دعوې دادې. چې نحن الزيدون ضاربوهم نحن هم ددغه مذکور مثال په شان ترکيب دی او دې کې دا وروستو نحن د تاکيد دپاره متعين دی. ځکه که دا نحن ددې دپاره فاعل شي، نو قاعده داده چې ضمير مرفوع په حکم د اسم ظاهر کې وي او فاعل چې اسم ظاهر وي، نو فعل هميشه مفرد راوړی شي. حالانکه ضاربو جمع راوړی شوې ده، نو متعين شوه دا خبره چې په ضاربوا کې ضمير مستتر فاعل او دا هي ورلره تاکيد راغلې دی.

وروي عن الزمخشري الخ: غرض د شارح د اصل سوال نه جواب کول دي. حاصل دا دی. چې زمحشري نه دغه مثال په صيغه د مفرد سره نقل دی او ستا سوال په دې مثال سره تام کېدو نو هغه سوال دې ختم شو نو دا مثال د شپږم قسم دپاره راوړل صحيح شو.

واختار بالتمثيل الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: په کار وه، چې ماتن هغه مثال ذکر کړی وی، چې په هغې کې التباس راځي، نو دا مثال خو د التباس صورت نه دی، دا يې ولې ذکر کړو؟

**جواب**: دا مثال يې ددې دپاره ذکر کړو، چې په کوم صورت کې التباس نه راځي او هغې کې ضمير منفصل راوړی شي. نو د التباس والاصورت کې خو به په طريقه اولی سره ضمير راوړی شي.

| وَ اِذَا اِجْتَمَعَ ضَمِيْرَانِ وَ لَيْسَ اَحَدُهُمَا مَرْفُوْعًا اِحْتِرَازٌ عَنْ نَحْوِ اَكْرَمْتُكَ اِذِ الْمَرْفُوْعُ |
|---|
| کله چې دوه ضمائر جمع شي او يوترې مرفوع نه وي احترازوشود مثل ذاکرمتک نه ځکه چې مرفوع په |
| كَالْجُزْءِ مِنَ الْفِعْلِ فَكَاَنَّهُ لَمْ يَتَحَقَّقِ الْفَصْلُ بَيْنَ الْفِعْلِ وَ الضَّمِيْرُ الثَّانِيْ اَصْلاً فَيَجِبُ |
| شان دجزء دې دفعل نه نوګوياکه نه راځي فصل په مابين دفعل اودضميرثاني کې بالکل نوواجب دي |
| اِتِّصَالُهُ فَاِنْ كَانَ عَلَى تَقْدِيْرِ اِجْتِمَاعِهِمَا وَ عَدَمِ كَوْنِ اَحَدِهِمَا مَرْفُوْعًا اَحَدُهُمَا اَىْ |
| اتصال دضميراوک چيرته په تقديرد اجتماع ددې اوپه عدم کېدويودوي نه مرفوع وويودوي نه يعني |
| اَحَدُ الضَّمِيْرَيْنِ اَعْرَفُ مِنَ الْآخَرِ اِحْتِرَازٌ عَمَّا اِذَا تَسَاوِيَا نَحْو اَعْطَاهَا اِيَّاهُ |
| يودضمير بنوزيات پيژندل شوې داخرنه احترازوشودهغه نه چې کله دواړه برابروي لکه اعطاهااياه په |

حَيْثُ يَجِبُ الْاِنْفِصَالُ فِي الثَّانِيْ لِلتَّحَرُّزِ عَنْ تَقَدُّمِ اَحَدِ الْمُتَسَاوِيَيْنِ عَلَى الْآخَرِ مِنْ غَيْرِ
داسې شان چې واجب وي انفصال په دوهم کې دوجې داحترازنه په تقدم د يودمتساوييونه بل نه په غير

مُرَجِّحٍ وَ قَدَّمْتُهُ اَیْ اَحَدُ الضَّمِيْرَيْنِ الَّذِيْ هُوَ اَعْرَفُ عَلَى الْآخَرِ اِحْتِرَازٌ عَمَّا
دعلت راجحه نه مخکې وي يعنې يودضميرينوکوم چې زيات اعرف وي په بل باندې احترازوشودهغه

اِذَا كَانَ الْاَعْرَفُ مُؤَخَّرًا نَحْو اَعْطَيْتُهُ اِيَّاکَ فَيَلْزِمُ اِنْفِصَالُهُ لِيُعْذَرِ
صورت نه چې کله اعرف مؤخروي لکه اعطيته اياک نولازم دي انفصال دضمير ددې دپاره چې معذور

الْمُتَكَلِّمَ فِيْ تَاخِيْرِ الْاَعْرَفِ وَ لَا يَلْحَقُهُ طَعْنٌ فِيْ اَوَّلِ الْوَهْلَةِ بِاِيْرَادِهِ
وګڼل شي متکلم په تاخير داعرف کې اونه پيوسته شي له هغه سره ملامتيا په اول وخت کې په راوړودې

عَلٰى خِلَافِ الْاَصْلِ وَ حَكٰى سِيْبَوَيْهِ تَجْوِيْزَ الْاِتِّصَالِ اَيْضًا نَحْو اَعْطَيْتُوکَ فَلَکَ الْخِيَارُ اَيِ الْاِخْتِيَارُ فِيْ
په خلاف داصل نقل دي دسيبويه نه جوازداتصال همدارنګې لکه اعطيتک نوشته تاته دپاره اختيار په

الضَّمِيْرِ الثَّانِيْ اِنْ شِئْتَ اَوْرَدْتَّهُ مُتَّصِلًا نَحْو اَعْطَيْتُكَهُ بِاِعْتِبَارِ عَدَمِ الْاِعْتِدَادِ بِالْفَصْلِ بِمَا
دوهم ضمير کې که ته غواړې نومتصل يې راوړه لکه اعطيتکه چې اعتبار ونه کړل شي انفصال ته په هغه

هُوَ مُتَّصِلٌ وَ اِنْ شِئْتَ اَوْرَدْتَّهُ مُنْفَصِلًا نَحْو اَعْطَيْتُکَ اِيَّاهُ بِاِعْتِبَارِ الْاِعْتِدَادِ بِالْفَصْلِ بِمَا
څه چې متصل وي اوکه غواړې منفصل يې راوړه لکه اعطيتاک اياه چې معتبرکړل شي فصل په هغه څه

يَنْفَصِلُهُ وَ اِنْ كَانَ مُتَّصِلًا وَ نَحْو ضَرَبِيْکَ فَاِنَّهُ اجْتَمَعَ فِيْهِ ضَمِيْرَانِ لَيْسَ اَحَدُهُمَا
چې فصل راولي اګرکه متصل وي لکه ضربيک څکه چې جمع شوې په دې کې دوه ضمائريوندې يو د دې

مَرْفُوْعًا لِجَرِّ الْاَوَّلِ بِالْاِضَافَةِ وَ نَصْبُ الثَّانِيْ بِالْمَفْعُوْلِيَّةِ
مرفوع دوجې دجرداول نه په اضافت سره اونصب ددوهم نه په مفعوليت سره

**اغراض دجامي : واذا اجتمع ضميران الخ:** کله چې فارغ شو ماتن د بعض احکامو د تفصيل نه چې تعلق يې ساتلو د ضمير واحد سره نو شروع يې وکړه په تفصيل د احکامو د اجتماع د ضميرينو کې.

**احترازعن نحوالخ:** غرض د شارح د مرفوع قيد فايده ذکر کول دي. يعني کله چې دوه ضميره راجمع شي، ليکن نه به کې مرفوع وو. لکه اکرمتک په دې مثال کې دوه ضميره راجمع دي. ليکن اول ضمير مرفوع دي. نو ثاني کې انفصال متعين دی. ... واجب دی. څکه اصل ضمير کې اتصال دی او انفصال نه ... ضميرونو د وجې د ... منفصل نه

کیږي، او دلته هغه تعذر نشته. تعذر داسې نشته، چې ضمیر مرفوع په شان د جزء من الفعل وي، نو داسې ده لکه چې د فعل او ضمیر ثاني په مینځ کې فصل نه وي، نو اتصال واجب دی

**فان کان**: غرض د ماتن شرط ثاني ذکر کول دي او هغه دا چې که یو ضمیر د دې دواړو نه اعرف وو.

**علی تقدیر الخ**: غرض د شارح اشاره کول دي، دې خبرې ته چې دا شرط د متعلقاتو د شرط اول نه دی.

**ای احد الضمیرین**: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

**من الآخر**: چونکه اعرف اسم تفصیل وو، مخکې مفضل ذکر شو، دې عبارت سره مفضل علیه ذکر کوي.

**احترازعما الخ**: غرض د شارح د **اعرف** قید فائده ذکر کول دي. **اعرف** په ضمائرو کې اول متکلم دی. دوهم وریسې د مخاطب دی او دریم وریسې د غائب دی اوس که داسې وه، چې یو ضمیر اعرف نه وو، بلکې دواړه مساوي وو هغه بیا دواړه متکلم وي او که دواړه د مخاطب وي او که دواړه د غائب وي لکه **اعطاها ایاها**. نو په دې صورت کې انفصال د ثاني واجب دی دپاره د خان ساتلو د تقدم د یو متساوینو نه په آخر باندې

**وقدمته**: ماتن بل شرط ذکر کوي، هغه دا چې تا مقدم کړی وي اعرف په غیر اعرف باندې.

**ای احد الضمیرین**: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

**الذي هو اعرف**: په دې عبارت سره تعیین د احد الضمیرین کوي.

**احترازٌ عما غرض**: غرض د شارح د **قدمته** قید فائده ذکر کول دي، او هغه دا چې که اعرف مؤخر وو، لکه اعطیته ایاك. دلته خو اعرف ضمیر د مخاطب دادی او دا مؤخر دی نو دې صورت کې انفصال د ثاني واجب دی. وجه داده چې معذور وګڼلی شي متکلم د اعرف په وروسته کولو کې او په لومړي فرصت کې په دد عیب ونه لګېږي، نو حاصل د دې دوه وجې شوې بو دا چې که متکلم اتصال وکړي. سو بدیم د غیر اعرف په اعراف راخي، او په دغه طریقې سر د تقدیم صحیح نه دی. او چې انفصـ یې وکړه نو اوس دې د تقدیم تقاضا نه کوي. حکه چې په شان د اجنبي شو او متصل په شان د جزء وي دوهمه وجه ظاهره ده

**وحکی سیبویه الخ**: غرض د شارح دوهم لغت ذکر کول دي، او هغه دا چې سیبویه لغت د اتصال

هم جائز کړی دی

**فلك الخيار**: د اجزاوو د ما قبل شرطونو ده. يعني چې کله دوه ضمير راجمع شي، يو پکې مرفوع نه وو او يو په دواړو کې اعرف وو او دا اعرف په غير اعراف مقدم وو، نو ستا دپاره اختيار دی، چې که ضمير ثاني متصل راوړې او که منفصل

**اي الاختيار**: د خيار ډيرې معنی راځي، په معنی د خيار شرط سره راځي، په معنی د غور سره راځي په معنی د ختيکي سره راځي او په معنی د اختيار سره هم راځي. نو شارح تعيين د معنی مرادې وکړو

**سوال**: دا لفظ خو مشترك دی او ته ترې يوه معنی اخلې په دې د تاسره څه قرينه ده؟

**جواب**: دلالت د محل الکلام پرې قرينه ده. چې هغه عدم صحت د هغه نورو معانيو دی.

**في الضمير الثاني**: چونکه الثاني صفت وو، موصوف يې غوښتو نو شارح ورلره موصوف راويسته.

**ان شئت الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: دادی چې ضمير ذات دی او خيار خو د اغراضو سره تعلق ساتي او حمل د وصف په ذات صحيح نه دی؟

**جواب**: دا اختيار په اعتبار د ايراد او عدم ايراد سره دی او ايراد او عدم ايراد دواړه اعراض دي، نو حمل د وصف په ذات نه دی راغلې

**نحو اعطيتکه**: که دې ضمير منصوب متصل لره اعتبار ورنه کړې د وجې د اتصال ددې نه د فعل سره نو بيا ضمير ثاني متصل راوړه

**نحو اعطيتك اياه**: که ضمير منصوب متصل لره اعتبار ورکړې. اګر چې متصل د ه ليکن بيا خو هم فاصل دی کنه. نو ضمير ثاني به منفصل راوړې

**ونحو ضربيك**: مخکې ماتن يو مثال پيش کړو دلته نه دوهم مثال پيش کوي

**سوال**: د وضاحت دپاره يو مثال کافي وو ؟

**جواب**: تعدد د امثلو بناء دی په تعدد د ممثلاتو باندې هغه داسې چې اول مثال د فعل وو دا مثال دشبه فعل دی دوهم داچې په اول مثال کې اعرف ضمير د مخاطب وو او دلته اعرف ضمير د متکلم دی دريم دا چې اول مثال د هغې دی چې اعرف منصوب وي. او دلته اعرف

ضمير مجرور دی بیا شارح لفظ د نحو زيات كړو اشاره ده دې ته چې دا په هغه اعطيتكه باندې عطف دی او د نحو د لاندې دی

**فانه اجتمع الخ**: شارح تطبيق د مثال د ممثل سره كوي. په دې مذكور مثال كې دوه ضميره جمع دي او يو په كې هم مرفوع نه دی. ځكه اول مجرور دی بنابر اضافت او دوهم منصوب دی بنا بر مفعوليت، او هغه ضمير د اعرف مقدم دی، چې ضمير د متكلم دی، نو چې دې فصل لره اعتبار ورنه كړې نو ضمير ثاني متصل كړه، لكه مذكور صورت شو.

| |
|---|
| وَ قُدِّمَ الْاَعْرَفُ الَّذِيْ هُوَ ضَمِيْرُ الْمُتَكَلِّمِ فَلَكَ الْوَصْلُ بِاِعْتِبَارِ عَدَمِ الْاِعْتِدَادِ |
| اومخكې كړې شوضميراعرف چې هغه ضمير د متكلم دي نوتاته جائز دي وصل په اعتبار د عدم اعتداد |
| بِالْفَصْلِ بِالْمُتَّصِلِ وَ لَكَ الْفَصْلُ نَحو ضَرْبِيْ اِيَّاكَ لِلْاِعْتِدَادِ بِالْفَصْلِ |
| د فصل په اتصال باندې او جائز دي تاد پاره منفصل كيدل لكه ضربي اياک چې اعتبار وركړل شي انفصال |
| وَ اِلَّا اَیْ وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ اَحَدُهُمَا اَعْرَفَ اَوْ يَكُوْنُ وَ لٰكِنْ مَا قَدَّمْتُهُ فَهُوَ اَيِ الضَّمِيْرُ الثَّانِيْ عَلٰى كُلٍّ |
| ته او كه چيرته يو د ضميرينو اعرف نه وو او يا اعرف وو ليكن اعرف مقدم نه وو نو بيا به دوهم ضمير په هر |
| مِنَ التَّقْدِيْرَيْنِ مُنْفَصِلٌ لَا غَيْرُ اِمَّا عَلَى التَّقْدِيْرِ الْاَوَّلِ فَلِئَلَّا يَلْزِمَ التَّرْجِيْحُ فِيْ تَقْدِيْمِ اَحَدِ الْمِثْلَيْنِ عَلَى الْاٰخَرِ |
| حال منفصل وي نه بل بنابر تقدير اول چې لازم نه شي ترجيح بلامرجح په تقديم د يو د مثالينو په اخر باندې |
| فِيْمَا هُوَ كَالْكَلِمَةِ الْوَاحِدَةِ بِلَا مُرَجِّحٍ وَ اِمَّا عَلَى التَّقْدِيْرِ الثَّانِيْ فَلِكَرَاهَتِهِمْ تَقْدِيْمَ الْاَنْقَصِ عَلَى الْاَقْوٰى فِيْمَا |
| په هغه ځای كې چې په شان د يوې كلمې دي او بنابر تقدير ثاني منع ده تقديم د انقص په اقوی باندې په هغه |
| هُوَ كَالْكَلِمَةِ الْوَاحِدَةِ نَحو اَعْطَيْتُهُ اِيَّاهُ مِثَالٌ لِمَا لَمْ يَكُنْ اَحَدُهُمَا اَعْرَفُ |
| ځای كې چې حكم يې د يوې كلمې دي لكه اعطيته اياه مثال د هغه دي چې يو د ضمائرو اعرف نه وي |
| لِكَوْنِهِمَا ضَمِيْرَيْنِ غَائِبَيْنِ اَوْ اَعْطَيْتُهُ اِيَّاكَ مِثَالٌ لِمَا يَكُوْنُ اَحَدُهُمَا اَعْرَفَ وَ هُوَ ضَمِيْرُ |
| ځكه چې دا دواړه د غائب ضمائر دي او اعطيته اياک مثال د هغه دي چې يو يې اعرف نه وي او دا ضمير |
| الْمُخَاطَبِ وَ لٰكِنْ مَا قَدَّمْتُهُ. |
| د مخاطب دي لكن اعرف مخكې نه دي. |

**اغراض د جامي** : **ولك الفصل**: او كه دې فصل لره اعتبار وركړې، نو بيا ضمير ثاني منفصل كړه لكه ضربي ايك

**و ان لم يكن الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال:** وروستو **فهو** منفصل جزاء ده او جزاء تقاضا د شرط کوي او مخکښې خو شرط نشته صرف الاحرف ذکر دی؟

**جواب:** د الا استثنايي نه دی، بلکې دا په اصل کې ان لم یکن دی هغه فعل شرط حذف شو د وجې د دلالت د ما قبل نه په دې باندې بیا نون په لام سره بدل شو، ځکه دا قریب المخرج دی او لام په لام کې مدغم شو، او میم یې په الف سره بدل شو. نو الا شو

**فهو منفصلٌ:** دا جزاء ده بیا به ضمیر ثاني منفصل راوړی شي وجوباً

**علی کلٍ من التقدیرین:** غرض د شارح دفع د وهم ده

**وهم:** چا به ویل چې دا منفصل به تعلق ساتي د نفي د دواړو سره مجتمعاً اوس که دا دواړه نفي نه وو، نو بیا به منفصل نه شي راوړی؟ شارح دا وهم دفع کړو چې دامنفصل د دواړو سره تعلق ساتي جدا جدا که اعرف ضمیر نه وو، نو هم به منفصل راوړی شي او که اعرف مقدم نه وو، نو هم به منفصل راوړی شي.

**من غیر:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا منفصل خو په خیار کې هم وو، نو ددې تقابل د هغې سره څنګه کوې ؟

**جواب:** هلته انفصال جائز وو، خو اتصال ورسره هم وو او دلته صرف منفصل راوړل جائز دي، نو تقابل صحیح دی.

**اما علی للتقدیر:** غرض د شارح د اول صورت دپاره دلیل ذکر کول دي. اول صورت دا دی چې دواړو ضمائرو کې یو ضمیر اعرف نه وي نو ضمیر ثاني به منفصل ځکه راوړي چې تقدیم د احدالمثلین په مثل آخر رانه شي بلا مرجحه، هو چې مرجح وي، نو بیا تقدیم جائز دی.

**فیما هو کالکلمة:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** اعطیته اعطیناه کې خو تقدیم د احدالمثلین په مثل آخر راغلې دی؟

**جواب:** دا دوه کلمې دي او مونږ وا یو چې دا تقدیم په کلمه واحد کې صحیح نه دی

**و اما علی التقدیر الثاني:** غرض د شارح د دوهم صورت دپاره دلیل ذکر کول دي. دوهم صورت دا وه ضمیرینو کې یو اعرف وي لیکن اعرف مقدم نه وي. دې صورت کې به ضمیر ثاني منفصل ځکه راوړی شي، چې تقدیم د انقص په اقوای رانشي په یوه کلمه کې

**فیما هو کالکلمة الخ**: په دې عبارت سره شارح هم د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: اعطیته اعطیناه کې تقدیم د احد المثلین په مثل آخر راغلی دی؟

**جواب**: مونږ وایو دا دوه کلمې دي او دا تقدیم په کلمه واحده کې صحیح نه دي.

**نحو اعطیته ایاه**: ماتن د اول صورت دپاره مثال ذکر کوي.

**مثال الخ**: شارح تطبیق کوي وایي دا مثال د هغه دی چې په دوه ضمائرو کې یو هم اعرف نه وي، ځکه دواړه ضمائر د غائب دي نو ثاني ضمیر به وجوباً منفصل راوړی شي، لکه چې راوړی شوی دی.

**ایاك**: ماتن د دوهم صورت دپاره مثال ذکر کوي.

**او اعطیته**: شارح ورسره دا لفظ راویسته اشاره ده چې دا په **ایاه** عطف دی، او ما قبل د معطوف علیه نه معاد وي، په ما قبل د معطوف کې.

**مثال الخ**: شارح تعیین او تطبیق کوي. وایي دامثال د هغه دی چې یو ضمیر په کې اعرف وي، چې هغه دلته ضمیر د مخاطب دی، لیکن هغه مقدم نه دی، نو ثاني به وجوباً دا منفصل راوړی شي.

## غوره مذهب په باب دخبر د کان :

| |
|---|
| وَ الْمُخْتَارُ فِيْ خَبَرِ بَابِ كَانَ اَىْ خَبَرِ كَانَ وَ اَخَوَاتِهَا اِذَا كَانَ ضَمِيْرَ الْاِنْفِصَالِ كَمَا تَقُوْلُ |
| اوغوره مذهب په باب دخبردکان اوداخواتو دهغې کې چې کله ضمیروي انفصال دي لکه چې ته وایي |
| كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا وَ كُنْتُ اِيَّاهُ لِاَنَّهُ كَانَ فِي الْاَصْلِ خَبَرَ الْمُبْتَدَاءِ وَ يَجِبُ اَنْ يَكُوْنَ خَبَرُ الْمُبْتَدَاءِ ضَمِيْرًا مُنْفَصِلًا |
| کان زید قائما وکنت ایاه ځکه دا په اصل کې خبر د مبتدا او دا ضروري ده چې خبر د مبتدا دي ضمیر منفصل وي |
| لِاَنَّ عَامِلَهُ مَعْنَوِيٌّ وَ يَجُوْزُ اَنْ يَكُوْنَ ضَمِيْرًا مُتَّصِلًا اَيْضًا نَحْو كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا وَ كُنْتُهُ لِاَنَّهُ |
| ځکه چې عامل یې معنوي دي او دا هم جائز دي چې ضمیر متصل شي لکه کان زید قائما وکنته ځکه چې دا |
| شَبِيْهُ الْمَفْعُوْلِ وَ ضَمِيْرُ الْمَفْعُوْلِ فِيْ مِثْلِ ضَرَبْتُهُ وَاجِبُ الْاِتِّصَالِ فَفِيْ تَشْبِيْهِ الْمَفْعُوْلِ |
| مشابه دي د مفعول سره او ضمیر د مفعول په مثل د ضربته کې واجب الاتصال دي نو په مشابه د مفعول کې |
| اِنْ لَمْ يَكُنْ وَاجِبَ الْاِتِّصَالِ فَلَا اَقَلَّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ جَائِزَ الْاِتِّصَالِ لٰكِنَّ الْاِنْفِصَالَ مُخْتَارٌ لِاَنَّ رِعَايَةَ |
| که چیرته واجب الاتصال نه شي نو اقلاً جائز الاتصال خو کیدی شي لکن انفصال غوره دي ځکه چې رعایت |

| |
|---|
| الْاَصْلِ اَوْلٰى مِنْ رِعَايَةِ الْمُشَابَهَةِ بِالْمَفْعُوْلِ وَ الْاَكْثَرِ فِي الْاِسْتِعْمَالِ اِنْفِصَالُ الضَّمِيْرِ بَعْدَ |
| داصل غوره دي درعايت دمشابه بالمفعول نه زيات په استعمال کې انفصال دضمير دي وروستو د |
| لَوْلَا لِكَوْنِ مَا بَعْدَ لَوْلَا مُبْتَدَاءً مَحْذُوْفَ الْخَبَرِ تَقُوْلُ لَوْلَا اَنْتَ اِلٰى آخِرِهَا يَعْنِي لَوْلَا اَنْتَ لَوْلَا اَنْتُمَا لَوْلَا |
| لولانه خکه چې مابعد دلولا مبتدا محذوف الخبر وي لکه لولاانت تر آخره يعني لولا انت لولا انتما لولا |
| اَنْتُمْ لَوْلَا اَنْتِ لَوْلَا اَنْتُمَا لَوْلَا اَنْتُنَّ لَوْلَا هُوَ لَوْلَا هُمَا لَوْلَا هُمْ لَوْلَا هِيَ لَوْلَا هُمَا لَوْلَا هُنَّ لَوْلَا اَنَا لَوْلَا نَحْنُ وَكَانَ الْاَوْفَقُ |
| انتم لولا انت لولا انتما لولا انتن لولا هو لولا هما لولا هم لولاهي لولا هما لولاهن لولا انالولانحن اووموافق د |
| بِمَا سَبَقَ اَنْ يَّقُوْلَ لَوْلَا اَنَا لَوْلَا نَحْنُ اِلٰى آخِرِهَا لٰكِنْ غَيَّرَ الْاُسْلُوْبَ تَنْبِيْهًا عَلٰى |
| ماسبق سره چې وويل شي لولا انالولا نحن ترآخره لکن مصنف اسلوب بدل کړودپاره دخبرورکولو په |
| اَنَّهُ لَيْسَ بِضَرُوْرِيٍّ وَ كَكَ الْاَكْثَرُ فِي الْاِسْتِعْمَالِ اِتِّصَالُ الضَّمِيْرِ الْمَرْفُوْعِ بَعْدَ |
| دې چې دااسلوب ضروري نه دي اوهمدارنګه زيات په استعمال کې اتصال دضمير مرفوع دي وروستو |
| عَسٰى لِكَوْنِ مَا بَعْدَ عَسٰى فَاعِلًا تَقُوْلُ عَسَيْتُ اِلٰى آخِرِهَا. |
| دعسی نه خکه چې مابعد دعسی فاعل وي لکه عسيت ترآخره. |

**اغراض دجامي : والمختار**: کله چې فارغ شو ماتن د درې احکامو د ضمېرينو نه، نو شروع يې وکړه په څلورم حکم کې چې هغه اختيارالانفصال دی. نو ماتن وايي چې مختار په باب د کان کې انفصال دی.

**ای خبرکان الخ**: غرض د شارح دفع د وهم ده. چا به ويل چې د باب نه به مراد مرضي باب وي حالانکه دا حکم صرف د کان پورې خاص نه دی؟

**جواب**: شارح جواب وکړو چې مراد د باب نه اخوات د کان دی، چې صاد وغيره دی نو هغې کې هم دغه حکم دی.

**اذاکان ضميراً**: دا قيد څکه لګوي چې کله خبر د کان اسم ظاهر وي نو هلته اتصال د سر نه جائز نه دی، بلکې انفصال متعين دی.

**کان زيدٌ قائماً وکنت اياه**: غرض د شارح خو مثال ذکر کول دي. اصل مقصود د کنت اياه دی دا اول جمله دې دپاره ذکر ده، چې د اياه ضمير مرجع معلوم شي. دې مثال کې خبر د کان ضمير راغلی دی. نو اتصال هم جائز دی، چې کنته وويلی شي او انفصال هم جايز دی. چې کنت اياه وويلی شي. البته دا انفصال اولی دی

لانه كان في الاصل الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح دليل د جواز د الانفصال ذکر کول دي، حاصل یې دادی چې خبر د کان په حقیقت کې خبر د مبتداء وي او خبر د مبتداء چې ضمیر وي، نو هلته انفصال واجب دی، ځکه د خبر عامل معنوي دی او اتصال د لفظي د معنوي سره محال دی، اوس چې کله کان داخل شو نو لفظ کې هغه اثر د عامل معنوي منسوخ شو. لیکن معنی کې خو هغه اثر شته. نو مونږ ددې حکم هم د وجوب نه جواز ته رابښکته کړو. نو کم از کم د منفصل راوړل جایز شو.

لانه شبيهٌ بالمفعول الخ: غرض د شارح د جواز الاتصال دليل ذکر کوي، حاصل د هغې دا دی، چې دا خبر د کان مشابه دی د مفعول به سره. لکه څنګه چې مفعول به منصوب وي، نو دا هم منصوب وي او لکه چې مفعول به مرتبه ثالثه کې وي، نو دا هم مرتبه ثالثه کې وي او لکه څنګه چې مفعول به فضله وي نو دا هم فضله وي او قاعده دا ده، چې د ضمیر مرفوع متصل نه وروستو ضمیر د مفعول راشي نو اتصال واجب دی، اوس دلته خو دا ضمیر مشابه د مفعول به سره دی، نو که واجب نه وایو نو کم از کم دا اتصال خو به جائز شي.

لان رعاية الاصل الخ: غرض د شارح دليل د اختيارالانفصال ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی چې ته مونږ خبر د مبتداء په اعتبار د حقیقت سره وایو او مفعول ورته د مشابهت د مقابله راشي، نو اصل لره ترجیح ورکولی شي، نو انفصال مختاره شو.

**سوال**: په کار دا وه، چې شارح د مشابهت په ځای عارض ویلی وی، ځکه د اصل مقابل عارض وي؟

**جواب**: په مشابهت کې دوه خبرې دي، په عروض او دلیل دواړو دلالت کوي او عارض صرف په عروض دلالت کوي، نو که عارض یې ذکر کړی وی، نو بیا دلیل ته نه شاملیده.

والاكثر: کله چې ماتن د دوه ضمایرو د بیان نه فارغ شو اوس ددغه مناسبت سره بعضې کلماتو سره کله ضمیر متصل راځي او کله ضمیر منفصل راځي، نو د هغې بیان کوي، ګنې دلته د اجتماع ضمیرین خبره نشته، صرف د اتصال او انفصال په مناسبت سره دد بیان کوي.

في الاستعمال: غرض د شارح دفع د وهم ده، وهم دا ویل چې د اکثر نه به اکثر مذاهب مراد وي حالانکه دې کې خو مذاهب نشته؟ نو شارح هغه وهم دفع کړو چې مراد د اکثر نه په استعمال کې اکثر دی.

انفصال الضمیر الخ: غرض د شارح په ماتن سوال کول دي:
**سوال**: عبارت د ماتن کې اګر چې په اعتبار د ابتداء سره طوالت نشته، لیکن په اعتبار د انتهاء سره طول دی، ځکه الی آخرها دپاره به ټول امثله پیش کوي، نو که دا عبارت یې داسې راوړی وی، انفصال الضمیر الخ نو دومره طول به نه راتلو؟
**جواب**: کلام د ماتن په نسبت د کلام د شارح سره اخصر دی، ځکه شارح ممثل ذکر کړی دی، او ممثل دپاره مثال ضروري وي، نو دې کې طول دیو او ماتن صرف مثال ذکر کړی دی او انتزاع د ممثل ترې کیدې شي.
لکون ما بعد لولا مبتداء: غرض د شارح د اکثرو دلیل ذکر کول دي، هغه دا چې ما بعد د لولا مبتداء وي، او مبتداء خو ضمیر منفصل وي، نو ځکه به ضمیر منفصل راوړی شي.
مخذوف الخبر: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: مبتداء لره خو خبر په کار وي، نو ددې دپاره خبر څه دی؟
**جواب**: خبر ددې مخذوف دی.
تقول لولا انت الخ: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي، یعني لولا انت الخ شارح مثال تام کوي.
وکان الاوفق: غرض د شارح سوال ته تمهید ایخودل دي.
لکن غیر الاسلوب: په دې عبارت سره سوال طرف ته اشاره کوي او تنبیهاً سره جواب ته اشاره کوي:
سوال: چې نحو کې شروع د ګردان د متکلم نه کېږي لکه مخکې خو ځایه ذکر شو، نو دلته هم داسې په کار وه؟ څه باعث دی، چې ماتن دا اسلوب بدل کړو؟
**جواب**: د اسلوب بدلولو کې تنبیه دې خبرې ته ده، چې دا ترتیب ضروري نه دی. مقصد دا دی چې که هر ځای ابتداء په متکلم وشي، نو ساده ګان به وایي چې دا ترتیب فرض دی.
**سوال**: د مخاطب مذکر نه چې شروع کوې نو د مخاطب مونث نه به دې شروع کړې وه کنه؟
**جواب**: مخاطب مذکر وسط کې دی او خیر الامور اوسطها (الحدیث).
وکله: دا کله مخفف دي د کذلك نه، غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا وروسته لولاك عطف دی په مخکې لولا انت باندې. او ما قبل د معطوف علیه معاد وي په ما قبل د معطوف کې نو

وكك: دا كك مخفف دي د كذلك نه ، غرض د شارح اشاره كول دي، چې دا وروسته لولاك عطف دی په مخكې لولا انت باندې او ما قبل د معطوف عليه معاد وي په ما قبل د معطوف كې نو دلته يې هم الاكثر في الاستعمال عبارت راوړو

لكون ما بعد عسى: د ما قبل خبر دليل ذكر كوي. چې عسى فعل دی. او ما بعد ددې فاعل وي او اصل په فاعل كې اتصال دی، نو ددې نه ما بعد ضمير به مرفوع متصل وي.

تقول عسيت: غرض د ماتن مثال ذكر كول دي.

| |
|---|
| وَ جَاءَ فِيْ بَعْضِ اللُّغَاتِ لَوْلَاكَ وَ عَسَاكَ إِلٰى آخِرِهِمَا فَذَهَبَ الْأَخْفَشُ إِلٰى أَنَّ الْكَافَ بَعْدَ لَوْلَا ضَمِيْرُ |
| اوراغلي په بعضې لغاتو كې لولاك اوعساك ترآخره ذهاب كړي اخفش چې كاف وروستو د لولانه ضمير |
| مَجْرُوْرٍ وَقَعَ مَوْقِعَ الْمَرْفُوْعِ فَإِنَّ الضَّمَائِرَ قَدْ يَقَعُ بَعْضُهَا مَوْقِعَ بَعْضٍ كَمَا تَقُوْلُ مَا أَنَا |
| مجرور دي چې واقع دي په ځاى د مرفوع ځكه چې ضمائر بعضې د نورو بعضو پر ځاى واقع كيږي لكه ما انا |
| كَأَنْتَ فَأَنْتَ فِيْ هٰذَا الْمَقَامِ مَعَ أَنَّهُ ضَمِيْرُ مَرْفُوْعٍ وَقَعَ مَوْقِعَ الْمَجْرُوْرِ وَ ذَهَبَ سِيْبَوَيْهِ |
| كانت نو انت په دې ځاى كې سره د دې چې دا ضمير مرفوع دي واقع دي په ځاى د مجرور او ذهاب كړي سيبويه |
| إِلٰى أَنَّ لَوْلَا فِيْ هٰذَا الْمَقَامِ حَرْفُ جَرٍّ وَ الْكَافُ ضَمِيْرُ مَجْرُوْرٍ وَاقِعٍ مَوْقِعَهُ فَالْأَخْفَشُ تَصَرَّفَ |
| چې لولا په دې ځاى كې حرف جر دي او كاف ضمير مجرور دي چې واقع دي د هغې پر ځاى نو اخفش تصرف |
| فِيْ مَا بَعْدَ لَوْلَا وَ سِيْبَوَيْهِ فِيْ نَفْسِهِ وَ أَمَّا عَسَاكَ فَذَهَبَ الْأَخْفَشُ |
| كړي په مابعد د لولا كې او سيبويه تصرف كړي په نفس د لولا كې او هرچې عساک دي نو ذهاب كړي اخفش |
| إِلٰى أَنَّهُ ضَمِيْرُ مَنْصُوْبٍ وَاقِعٍ مَوْقِعَ الْمَرْفُوْعِ وَ سِيْبَوَيْهِ إِلٰى أَنَّ عَسٰى مَحْمُوْلٌ عَلٰى |
| چې دا ضمير منصوب دي چې واقع دي په ځاى د مرفوع او ذهاب كړي سيبويه چې عسى محمول دي په |
| لَعَلَّ لِتَقَارُبِهِمَا فِي الْمَعْنٰى فَهٰهُنَا أَيْضًا الْأَخْفَشُ تَصَرَّفَ فِي الضَّمِيْرِ وَ سِيْبَوَيْهِ |
| لعل دوجې د نزديكت د هغې دواړو نه په معنى كې نو دلته هم اخفش تصرف كوي په ضمير كې او سيبويه |
| فِي الْعَامِلِ وَ نُوْنُ الْوِقَايَةِ مَعَ الْيَاءِ أَيْ يَاءُ الْمُتَكَلِّمِ لَازِمَةٌ فِي الْمَاضِيْ إِذَا لَحِقَتْهُ تِلْكَ الْيَاءُ |
| په عامل كې او نون دوقايې سره د ياء متكلم نه لازمي ده په ماضي كې چې كله ورسره يو ځاى شي دا ياء دي |
| لِتَقِيَ آخِرَ الْمَاضِيْ عَنِ الْكَسْرَةِ الْمُخْتَصَّةِ بِالْاِسْمِ الَّتِيْ هِيَ أُخْتُ الْجَرِّ وَ لِهٰذَا سُمِّيَتْ |
| دپاره چې وساتي آخر د ماضي د كسرې نه كومه چې خاصه د اسم ده چې هغه خور د جر ده د دې وجې نه مسمى |

نُوْنُ الْوِقَايَةِ نَحْو ضَرَبَنِيْ وَ كَكَ نُوْنُ الْوِقَايَةِ لَازِمَةٌ فِي الْمُضَارِعِ لٰكِنْ لَا مُطْلَقًا بَلْ
شوه دا په نون وقايه سره لکه ضربني همدارنګه نون وقايه لازم دي په مضارع کې لک نه مطلقا بلکه په
حَالَ كَوْنِهِ عَرِيًّا عَنْ نُوْنِ الْإِعْرَابِ أَىْ عَنْ نُوْنٍ هِيَ الْإِعْرَابُ نَحْو
هغه حالت کې چې کله خالي وي دنون اعرابي نه يعني دهغه نون نه کوم چې په خپله اعراب وي لکه
يَضْرِبُنِيْ لِتَقِيَ آخِرَ الْمُضَارِعِ أَيْضًا عَنْ تِلْكَ الْكَسْرَةِ بِخِلَافِ كَسْرَةِ تَضْرِبِيْنَ لِأَنَّهَا فِي
يضربني دي دپاره چې وساتي آخر د مضارع د دغې کسرې نه په خلاف د کسرې د تضربين ځکه چې دا په
الْوَسَطِ حُكْمًا وَ بِخِلَافِ كَسْرَةِ لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَ قُلِ الْحَقُّ لِعُرُوْضِهَا.
وسط کې ده حکماً او په خلاف د کسرې د لم يکن الذين کفروا او د قل الحق ځکه چې دا عارضي ده.

**اغراض دجامي** : وجاء في بعض اللغات: غرض د ماتن د والاكثر قيد فايده ذكر كول دي، وايي بعضې لغات کې لولاك عساك هم راغلي دي. د اعراب بحث د دواړو وروستو راځي

الی آخرها: په دې عبارت سره شارح : يو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: څه وجه ده، چې ماتن اول دوه قسمونه په غايه واحد سره ذكر نه كړه، بلكې غايه يې جدا كړه او دلته يې دواړه په غايه واحد سره ذكر كړو؟

**جواب**: مخکې په لولا انت کې ضمير مرفوع منفصل دی او په عسيت کې ضمير متصل دی، نو هلته په غايه واحده سره نه شو ذکر کولی او دلته دواړه ضماير متصل دي، نو غايه واحده سره يې ذكر كړو. دوهمه وجه داده، چې كه هلته په غايه واحد سره ذكر شوي وو، نو واهم به وهم کوو، چې دا دواړه به يو قسم ضمير وي. نو د هغې د دفع دپاره يې جدا ذکر کړو او دلته خو هغه وهم څوك نه شي كولى، ځكه مخكې په غايه سره دواړه ضماير جدا شوي دي. نو دلته يې په يو غايه سره ذكر كړه

فمذهب الاخفش: غرض د شارح دې دواړو ضمائرو په اعراب کې اختلاف ذکر کول دي. اخفش وايي چې په کار دا وه چې د لولا نه وروستو ضمير مرفوع وي او هغه منفصل وي. ځکه لولا نه وروستو ضمير مبتداء محذوف الخبر وي او مبتداء خو ضمير منفصل وي. ليکن دلته ضمير مجرور په ځای د مرفوع راغلې دی او ضمائر ځينې د ځينو په ځ ی واقع کيږي.

كما تقول الخ: دې سره د ما قبل خبرې دپاره دليل پيش کوي. لکه ما انا کانت ويلی شي، دلته

اوس انت ضمير مرفوع په ځای د مجرور واقع شوی دی، څکه که ضمير مجرور راشي، نو بيا پرې تلفظ بدليږي. لنډه خبره دا چې لولا هم هغه دی، چې ځان نه وروستو مرفوع غواړي خو دا له ضمير مجرور په ځای د مرفوع واقع شوی دی.

**وذهب سيبويه الخ**: سيبويه وايي دا لولا جاره دی او له ضمير مجرور په خپل ځای واقع دی.

**فالاخفش**: شارح تجزيه کوي، چې اخفش په ما بعد د لولا کې تصرف کوي او سيبويه په کلمه د لولا کې تصرف کوي، بيا مولانا عبدالغفور وايي چې مذهب د اخفش غوره دی، څکه چې دده مذهب کې تغيير په خپل مقام کې راځي، او سيبويه تغيير راولي مخکې د حاجت نه تغيير ته او عصام وايي مذهب د سيبويه راجح دی، څکه دده مذهب کې قلت تغيير راځي، او د اخفش مذهب کې کثرتِ تغيير راځي او قلت تغيير اولی دی د کثرت تغيير نه.

**واما عساك الخ**: په دې کې همدارنګې اختلاف دی اخفش وايي دا ضمير منصوب په ځای د مرفوع واقع دی او سيبويه وايي دا عسی محمول دی په لعل باندې. وجه د حمل داده چې دواړه په معنی کې يو بل سره نږدې دی او لعل نه وروستو ضمير منصوب وي، نو د عسی نه وروستو څکه ضمير منصوب دی، په دې صورت کې دا عسی فعل نه دی بيا دې مقام کې هم اخفش په ما بعد د عسی کې تصرف کوي او سيبويه په کلمه د عسی کې تغيير کوي.

**ونون الوقاية**: ماتن احکام د ضمير ذکر کول څه مشترك او څه خاص، بعضې په احکام خاصه کې حکم د هغه ضمير د ياء متکلم دی، چې نون وقايه ورسره راځي.

**تعريف د نون الوقاية**: نون الوقاية هغه نون دی چې راوړی شي په اخر د کلمه کې مخکې د ياء ضمير د متکلم نه چې وساتي آخر ئکی ددې د کسرې نه.

**ای ياء المتکلم**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ستا د کلام نه معلوميږي، چې دا نون د ياء سره په ماضي کې لازم دی، نو نقض دې راغلو په رِمَی رِطِیَ سره، چې دلته آخر د ماضي کې ياء ده او نون وقايه ورسره نشته؟

**جواب**: هره ياء مراد نه ده، بلکې مراد زمونږ ياء متکلم ده او دلته دا ياء د نفس کلمه نه ده.

**لازمةٌ في الماضي**: حکم اول دی، يعنې ماضي کې راوړل لازم دي.

**اذ لحقته تلك الياء**: غرض د شارح دفع د وهم ده.

**وهم:** کیدې شي چې دا لزوم به صرف په تصور کې وي؟

**جواب:** شارح اشاره وکړه، چې په تلفظ کې هم دا، نون وقایة لازم دي.

**سوال:** په لازمة کې نون ضمیر ته راجع دی او اسناد د لزوم هغه څیز ته کېږي، چې مقدور المتکلم وي او د قبیلې د احداثو نه وي، او نون خو ذات دی او ذات خو مقدور المتکلم نه دي؟

**جواب:** دا نسبت لحوق النون ته شوې دی او لحوق د قبیلې د احداثو نه دی، او مقدور لمتکلم دی.

**المختصة:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** د کسرې د ماضي سره څه ورانه ده، چې نونِ وقایه ددې د دفع دپاره راوړی شي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې دا کسره خاصه د اسم ده او خاصه هغه ما یوجد فیه ولا یوجد في غیره ته وایي. اوس که دا فعل کې هم راشي، نو بیا خاصه نه پاتې کېږي.

**التي هي اخت الجر:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** نه منم دا خبره چې کسره اسم سره خاص ده، ځکه علم سمع فعل دی او دې کې کسره راغلې ده؟

**جواب:** مراد د کسرې نه هغه ده چې خور د جرّ ده او کسره د جر هغه وي چې آخر د کلمه کې راځي او علامه د اعراب وي، او دا مذکور کسره خو د نفسِ کلمې نه ده.

**سوال:** کله چې کسره اسم سره خاص شوه او خاصه خو لا یوجد فی غیره وي نو په کار ده چې نون وقایه باندې هم کسره رانه شي، ځکه نونِ وقایه خو هم اسم نه دی بلکې حرف دی؟

**جواب:** دا نون باندې چې کسره ده نو دا د اعراب هغه نه ده، ځکه اعراب خو ابتداء انتهاء غواړي او په یو حرف کې دا ابتداء انتهاء نه شي جمع کیدې لهذا ددې رجع کسره ذاتي ته کیږي نه که اعرابي ته.

**ولهذا سمیت نون الوقایة:** په دې عبارت سره شارح وجه دتسمیې بیانوي.

**وفي المضارع:** کله چې فارغ شو ماتن د اول مقام د لزوم د نون وقایه نه، نو شروع یې وکړه په دوهم مقام د لزوم کې نو وې ویل چې فعل مضارع کې هم نون وقایه راوړل لازم دي، خو مطلقاً

نه بلکې چې خالي وي د اعراب نه

**وكك نون الوقاية لازمة**: غرض د شارح اشاره کول دي. دې خبر ته چې دا عطف دی په فعل ماضي باندې او ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي. په ما قبل د معطوف کې. نو نون الوقاية لازمة عبارت يې راويستو، بيا كذلك سره يې اشاره وکړه چې دا عطف د قبيلې د مشبه نه په مشبه به باندې دی نه د قبيلې د مساوي نه په مساوي باندې. يعنې راتلل د نون وقايه په ماضي کې اعلی دي د راتلو نه په فعل مضارع کې، ځکه مضارع د اسم سره څه نه څه مشابهت ساتي او فعل ماضي هېڅ قسم مشابهت نه ساتي، بلکې دا مبني ده.

**لكن لا مطلقاً**: غرض د شارح دوه خبرې دي، يو دفع د وهم کوي

**وهم**: د راتلو چې دا وروستو قيد به اتفاقي وي؟

**جواب**: نو شارح ويل چې دا قيد احترازي دی. دوهم غرض د شارح علت د نصب ذکر کول، چې دا عريا حال دی.

**سوال**: ماتن دا مضارع په مضي عطف کړو نو اعاده د في عامل يې ولې وکړه؟

**جواب**: دا اعاده د في عامل دپاره د دفع د وهم ده. وهم دا راتلو چې دا نون د ماضي او مضارع به يو شان وي؟ نو ماتن دا وهم دفع کړو چې داخان خان لره طريقې سره دی.

**عريّاً عن الاعراب**: مطلب دا، چې که نون اعرابي وو، نو بيا راتلل د نونِ وقايه لازم نه دي. بلکې دغه نونِ اعرابي د هغې قائمقام کېږي.

**سوال**: څه وجه ده، چې نونِ اعرابي د نون الوقاية قائمقام کيږي او د نون جمع او نون د تثنيه دپاره نه قائمقام کيږي؟

**جواب**: د نونِ اعرابي د نون الوقاية سره مناسبت دی. په دې کې چې دا دواړه لفظي فائده ورکوي. ليکن د دواړو معنی نشته، نو په عدم د معنی کې مناسبت دی.

**اى عن نون الخ**: غرض د شارح په دې عبارت سره بيان د اضافت کوي. چې دا اضافت بياني دی. دوهم غرض دفع د وهم ده، وهم دا راتلو چې مخکې نون الوقاية کې اضافت د سبب وو، مسبب ته نو دلته به هم دغسې وي، حالانکه دلته خو دغه اضافت نه صحيح کيږي؟

**جواب**: دا وهم به هله راتلو، چې دا اضافت لامي وی، حالانکه دا اضافت بياني دی، نو دغه

وهم نشته

نحو يضربني: غرض د شارح مثال د فعل مضارع نه ذكر كول دي. چې نون وقايه ورسره راغلې وي او د فعل مضارع آخر يې د كسره نه بچ كړې دى

به خلاف كسرة الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال:** تضربين فعل مضارع صيغه ده، او آخر ددې كې يآء باندې كسره راغلې ده؟

**جواب:** حاصل دا دى، چې دا كسره آخر د فعل كې نه ده، ځكه دا يآء ضمير د فاعل ده او د وجې د اتصال نه كالجزء من الفعل دى. نو ګويا كه دا كسره په وسط د فعل كې ده، او يآء د متكلم كه يو ځاى شي. نو چونكه هغه ضمير د مفعول دى. نو كالجزء من الفعل نه ګرځي. نو د كسرې ساتلو نه د فعل مضارع آخر لره دغه مقام كې نون وقايه راوړى شي

وبه خلاف كسرة لم يكن الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال:** لم يكن الذين كې خو په فعل مضارع باندې كسره راغلې ده او ضمير د فاعل هم ورسره نه دى متصل؟

**جواب:** دا كسره عارضي ده

## حكم دانت او دلدن او داخواتو ددې:

| وَأَنْتَ مَعَ النُّوْنِ الْإِعْرَابِيَّةِ الْكَائِنَةِ فِيْهِ أَيْ فِي الْمُضَارِعِ وَ مَعَ لَدُنْ وَ إِنَّ وَ أَخَوَاتِهَا يَعْنِيْ إِنَّ وَ كَأَنَّ |
|---|
| او انت دهغه نون أعرابي سره چې كائن وي په مضارع كې اوسره دلدن او دان او داخوات دان چې هغه كان |
| وَ لٰكِنَّ وَ لَيْتَ وَ لَعَلَّ مُخَيَّرٌ بَيْنَ الْإِتْيَانِ بِنُوْنِ الْوِقَايَةِ لِلْمُحَافَظَةِ |
| او لكن او ليت ولعل دي اختيار شته په راتلو د نون وقايه دپاره د حفاظت د حركاتو بنائيه په غير دلدن كې او |
| عَلَى الْحَرَكَاتِ الْبِنَائِيَّةِ فِيْ غَيْرِ لَدُنْ وَ عَلَى السُّكُوْنِ فِيْ لَدُنْ وَ بَيْنَ تَرْكِهَا تَحَرُّزًا عَنِ اجْتِمَاعِ النُّوْنَاتِ |
| دپاره د سكون په لدن كې او اختيار شته په پريخودلو د نون وقايه كې دپاره د ځان ساتلو د اجتماع د نوناتو |
| وَ لَوْ حُكْمًا كَمَا فِيْ لَعَلَّ لِقُرْبِ اللَّامِ مِنَ النُّوْنِ فِي الْمَخْرَجِ وَ حَمْلًا عَلَى أَخَوَاتِهَا |
| او اګر كه حكماً ولې نه وي لكه په لعل كې له وجې د نزديكت د لام نون ته په مخرج كې او يا حمل شي په اخواتو |
| كَمَا فِيْ لَيْتَ وَ يُخْتَارُ لُحُوْقُ نُوْنِ الْوِقَايَةِ فِيْ لَيْتَ مِنْ بَيْنِ أَخَوَاتِ أَنَّ لِعَدَمِ |
| لكه په ليت كې او غوره شوې الحاق د نون وقايه په ليت كې په غير د نورو اخواتو دان نه دوجې د نشتوالي |

| مَانِعٍ فِيْ ذَاتِهَا وَ الْحَمْلُ عَلَى اَخَوَاتِهَا خِلَافُ الْاَصْلِ وَ فِيْ مِنْ وَ عَنْ وَ قَدْ وَ قَطْ وَ هُمَا |
|---|
| د مانع نه په ذات د دي کې او حمل کول یې په اخواتو خلاف الاصل دي او په من او عن او قد او قط او دا آخري |
| بِمَعْنَى حَسْبُ لِلْمُحَافَظَةِ عَلَى السُّكُوْنِ اللَّازِمِ الَّذِيْ هُوَ الْاَصْلُ فِي الْبِنَائِيَّةِ مَعَ |
| دوه په معنی د حسب دي دپاره د حفاظت د هغه سکون چې لازم دي او هم دا اصل هم دي په لنا کې سره د |
| قِلَّةِ الْحُرُوْفِ وَ عَكْسِهَا اَيْ عَكْسُ لَيْتَ لَعَلَّ فِي الْاِخْتِيَارِ فَالْمُخْتَارُ فِيْهَا تَرْكُ النُّوْنِ |
| کموالي د حروفو او عکس د هغې یعني عکس د لیت او لعل په اختیارولو کې نو غوره په دې کې ترک د نون |
| لِثِقَلِ التَّضْعِيْفِ وَ كَثْرَةِ الْحُرُوْفِ وَ يُتَوَسَّطُ بَيْنَ الْمُبْتَدَاءِ وَ |
| دي د وجې د درروندوالي د تضعیف او د کثرت د حروفونه او په مینځ کې راځي ضمیر په مینځ د مبتدا او |
| الْخَبَرِ قَبْلَ الْعَوَامِلِ مِثْلُ زَيْدٌ هُوَ الْقَائِمُ. |
| خبر کې مخکې د عواملونه لکه زيدهوالقائم. |

**اغراض دجامي :** <u>وانت مع النّون</u>: کله چې فارغ شو ماتن د یو حکم د نون وقایه نه، چې لزوم الاتیان وو، نو په دوهم حکم کې یې شروع وکړه، چې جوازالامرین سواءً سواءً دي.

<u>للمحافظة</u>: دا دلیل د جواز الاتیان دی، حاصل د هغې دادی، چې کوم حرکت په آخر د فعل او حروفو کې راځي، نو هغه به په خپل حال پاتې شي او که نون وقایه نه راوړو، نو هغه حرکت به یې بدل شي لکه یضربون سره یاء ضمیر د متکلم پیوست کړې او نون وقایه راوړې نو فتحه د نون اعرابي به په خپل حال پاتې شي، ورنه دغه فتحه به په کسرې سره بدلېږي.

**سوال :** په مضارع کې خو تثنیه هم ده، او هلته خو محافظت نشته، ځکه د تثنیه نون اعرابي خو مکسور وي، نو که نونِ وقایه راوړې او که نه، یو شی دی؟

**جواب:** دا حکم په اعتبار د اغلب سره دی او تثنیه مغلوب ده او مونږ وایو چې للاکثر حکم الکل.

<u>في غير لدن</u>: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** د لدن په آخر کې خو حرکت نشته، نو دلته خو دا وجه نه صحیح کېږي؟

**جواب:** دا مونږ علاوه د لدن دپاره دلیل وایو.

<u>وعلى السكون</u>: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال:** په لدن کې نون اعرابي څه لره راوړی شي؟

**جواب:** په لدن کې نون وقايه محافظت د سکون کوي

**وبين ترکها الخ:** غرض د شارح د ترك دپاره دليل ذکر کول دي، هغه دا چې اجتماع د نوناتو رانه شي بيا مراد د نونات نه جمع لغوي ده. دې سره دفع د يو سوال وشوه

**سوال:** نونات جمع ده او اقل د جمع درې وي. حالانکه دې مقاماتو کې خو درې نونات نه جمع کيږي، په غير د هغه صورت نه چې فعل مضارع کې نونِ تاکيد راشي؟

**جواب:** مراد د جمع نه جمع لغوي ده، چې ما فوق الواحد ته وايي او دې هر مقام کې د نون وقايه راوړو سره کم از کم دوه نونونه جمع کيږي. **يآء** دا حکم يې په اعتبار د اکثر سره کړی دی يا حکم بنابر تغليب دی. يعني ان ان کان لکن کې اجتماع د نوناتو راتله همدارنګې په لدن کې يو نون د نفس کلمه دوهم نون وقايه او دريم دا لام په حکم د نون دی، نو ټولو سره مونږ دغه حکم ورکړو

**ولو حکماً:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** په لعل کې خو نه نونين شته او نه نونات شته، نو دې کې څنګه ترك د نون وقايه جائز دي؟

**جواب:** دلته حکماً اجتماع د نوناتو ده، ځکه لام نون قريب المخرج دي.

**وحملاً علی اخواتها:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** په ليت کې خو تآء ده، نو دلته خو حکماً هم اجتماع د نوناتو نه راځي؟

**جواب:** دا حمل دی په هغه نورو اخواتو باندې طرداً للباب چې حکم د باب مختلف نه شي.

**ويختار:** کله چې فارغ شو ماتن د دوه احکامو د نون الوقاية نه، نو شروع يې وکړه په دريم حکم کې چې اختيار للحوق دی.

**لحوق نون الوقاية:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا ضمير د يختار نون ته راجع دی، نو دا نسبت د اختيار نون ته صحيح نه دی، ځکه نسبت د اختيار هغه څه ته کيږي، چې د قبيلې د احداثو نه وي او مقدور المتکلم وي او نون ذات دی او مقدور المتکلم نه دی؟

**جواب**: شارح جواب وکړو. چې دا نسبت د اختیار لحوق ته شوې دی او لحوق د قبیلې د احداثو نه دي او مقدور المتکلم دي

من بين اخوات: چونکه لیست او لیت کې تجنبس خطي وو. چا به وهم کوو چې دا بـه لیست وي، نو شارح دغه وهم دفع کړو. چې دا لیت دی کوم چې د اخوات ان نه دی

وفي من: ماتن ویلي ومن وعن شارح ورسره في راویستو اشاره ده. چې دا عطف دی په لیت باندې دې کې هم اختیار د لحوق دی بیا ماتن وقد وقط ویلي وو. شارح واېي **وهما بمعنى حسبُ** غرض د شارح دفع د یو سوال ده

**سوال**: دا قط او قط خو حروف دي. ددې ذکر دلته نه دی په کار. ځکه دا بحث د اسم دی؟

**جواب**: دا دواړه اسماء دي په معنی د حسب سره دي

اللام: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: سکون خو په لدن کې هم دی؟

**جواب**: زمونږ مراد لازم سکون دی او د لدن هغه سکون لازم نه دی. ځکه هغې کې نور لغات هم دي

الذي هوالاصل الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: په کار داده چې نون وقایه په ان کان وغیره کې هم مختاره شوي وو. ځکه هلته بـه هم محافظت د فتحې راغلې و. هغه فتحه چې ددې سره لازم ده؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې هلته فتحه لازم ده په شان دسکون ددې الفاظو. لیکن دا سکون په بناء کې اصل دی، نو ددې محافظة امر مقصودي دی

**سوال**: په عبارت د متن کې تعارض دی په دې شان سره چې مخکې یې د لیت دپاره حکم د جوازالامرین ذکر کړو. او دلته یې ورلره اختیار اللحوق ذکر کړو؟

**جواب**: مخکې یو حکم د جوازالامرین وو. دلته ورلره دوهم حکم اختیار اللحوق ذکر کوي. نو هغه حکم هم دی او دلته یې ورسره دوهم حکم د اختیار بیان کړو یاء دا حکم په منزله د استثناء دی د سابق نه په حق د لیت کې

وعکسها: غرض د ماتن څلورم حکم د نون وقايه ذکر کول دي، چې جواز الاتيان مع اختيار العدم دی.

لعل: يعنی لعل کې به نه راوړل مختاره وي

فالمختار: په دې عبارت سره شارح تفصيل کوي. دليل د اختيار د ترک دادی، چې دا لام قريب المخرج د نون دی نو درې نونونه راجمع کېږي، چې سبب د ثقل دی ، بل طرف ته ددې خپل حروف هم زيات دي

ويتوسط: کله چې فارغ شو د بعضې احکام خاصه د ضمير نه. چې ضمير د متکلم وو، نو شروع يې وکړه په بل خاص حکم کې، چې هغه ضمير فصل دی

**تعريف ددې ضمير**: يعنې واقع کېدل په مينځ د مبتداء او خبر کې د ضمير مرفوع منفصل چې مطابق وي د مبتداء سره مخکې د عواملو نه وي او که وروستو.

مثل زيد هو القائم: غرض د شارح د قبل العوامل دپاره مثال پيش کول دي، دې مثال کې هو ضمير په مينځ کې د مبتداء او خبر کې راغلی دی او مخکې ترې عامل لفظي نشته.

| |
|---|
| وَ بَعْدَهَا اَیْ بَعْدَ الْعَوَامِلِ نَحْوُ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ صِيْغَةُ مَرْفُوْعٍ وَ لَمْ يَقُلْ |
| اوو روستو د عواملو نه لکه کنت انت الرقيب په مينځ ددوې کې راځي صيغه د مرفوع ونه ويل مصنف |
| ضَمِيْرٌ مَرْفُوْعٌ لِمَكَانِ الْاِخْتِلَافِ فِيْ كَوْنِهٖ ضَمِيْرًا مُنْفَصِلٍ مطابق لِلْمُبْتَدَاءِ |
| ضمير د مرفوع خکه چې په کيدلو ضمير ددې کې اختلاف دي چې منفصل به مطابق وي د مبتدا سره |
| اِفْرَاداً وَ تَثْنِيَةً وَ جَمْعًا وَ تَذْكِيْرًا وَ تَاْنِيْثًا وَ تَكَلُّمًا وَ خِطَابًا وَ غِيْبَةً وَ يُسَمّٰى هٰذَا |
| په افراد او تثنيه او جمع او تذکير او تانيث او په تکلم او خطاب او په غيبوبت کې او نوم ور کول کيږي دې |
| الْمَرْفُوْعُ فَصْلاً وَ ذٰلِكَ التَّوَسُّطُ لِيَفْصِلَ ذٰلِكَ الْمَرْفُوْعُ الْمُتَوَسِّطُ بَيْنَ كَوْنِهٖ اَیْ كَوْنُ الْخَبَرِ |
| مرفوع ته په فصل سره دا ځکه چې دا جدا والي راولي په مينځ د کيدلو ددې کې يعنې په کيدو د خبر کې |
| نَعْتًا وَ خَبَرًا فِيْمَا يَصْلُحُ لَهُمَا ثُمَّ اِتَّسَعَ فَاَدْخَلَ فِيْمَا لَا |
| صفت او خبر په هغه ځای کې چې د هغوي اصلاح راولي بيا فراخي راغله نو داخل شو په دې کې هغه چې نه |
| لُبْسَ فِيْهِ وَ ذٰلِكَ عِنْدَ اخْتِلَافِ الْاِعْرَابِ وَ كَوْنِ الْمُبْتَدَاءِ ضَمِيْرًا وَ غَيْرَ ذٰلِكَ بِالْحَمْلِ |
| وي التباس په دې کې او دا په وخت د اختلاف د اعراب کې او کيدو د مبتدا ضمير او غير ددې نه حمل دي |
| عَلٰی صُوْرَةِ اللَّبْسِ وَ شَرْطُهٗ اَیْ شَرْطُ الْفَصْلِ بِذٰلِكَ الْمَرْفُوْعِ اَنْ يَكُوْنَ الْخَبَرُ مَعْرِفَةً لِاَنَّ |
| دي په صورت د التباس او شرط د انفصال په دې ضمير مرفوع سره دا وي چې خبر به معرفه وي ځکه چې |

| |
|---|
| اَلْفَصْلَ اِنَّمَا يَحْتَاجُ اِلَيْهِ فِيْهَا اَوْ اَفْعَلُ مِنْ كَذَا لِاِلْحَاقِهِ بِالْمَعْرِفَةِ |
| انفصال احتياج لري ضمير ته په معرفه کې او افعل هم دهمدې جنس څخه ده ځکه چې دا ملحقه ده تر معرفې |
| لِاِمْتِنَاعِ اللَّامِ مِثْلُ كَانَ زَيْدٌ هُوَ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو وَاقْتُصِرَ عَلٰى مِثَالِ اَفْعَلَ مِنْ بَعْدِ |
| پورې ځکه چې لام نه دا خليږي لکه كان زيد هو افضل من عمرو او دا اقتصاريې وکړو په مثال د افعل وروستو د |
| دُخُوْلِ الْعَوَامِلِ دُوْنَ الْمَعْرِفَةِ وَ دُوْنَ الْخَبَرِ قَبْلَ الْعَوَامِلِ لِاِسْتِغْنَائِهِمَا عَنِ الْمِثَالِ |
| دخول دعواملو په غير د معرفې او خبر نه مخکې دعواملو نه دوجې د استغنا د دې نه دمثال نه دوجې د |
| لِكَثْرَتِهِمَا. |
| زيات استعمال د دې نه. |

خلاصه دمتن:

**اغراض دجامي :** وبعدها اى بعد العوامل: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين كول ديز

نحو كنت انت الرقيب: غرض د شارح د بعدالعوامل دپاره مثال ذكر كول دي، دې مثال كې انت ضمير فصل دي ت اسم او الرقيب خبر په مينځ كې راغلى دى او مخكې ترې فعل ناقص عامل لفظي ذكر دى، چې ت اسم كې يې عمل كړى دى.

**سوال :** اطلاق د مبتداء او خبر په مبتداء او خبر قبل العوامل حقيقت دى او بعد العوامل مجاز دى. او دلته ماتن دواړو صورتونو كې دې ته مبتداء او خبر وويل. نو دا نه ده مګر جمع په مابين د حقيقت او مجاز كې او دا خو صحيح نه ده؟

**جواب:** دلته مونږ جمع عموم المجاز كې كړې ده، عموم مجاز دې ته وايي چې د يو لفظ يو معنى حقيقي وي او بله معنى مجاز وي، او ته يوه دريمه معنى واخلې، چې دغه دواړه معاني د هغې افراد وي دلته مونږ د مبتداء او خبر نه مسند او مسنداليه مراد اخلو. او دا معنى حقيقي او مجازي دواړه د دې فراد دي.

**دوهم جواب :** يې دادى، چې دا جمع هله ناجائز ده، چې كله قرينه د تعيين د حقيقت او مجاز نه وي او چې قرينه وي، نو بيا جمع جائز ده، او دلته هم د حقيقت دپاره قبل العوامل او د مجاز دپاره بعد العوامل قرينه شته.

صيغة مرفوع: يعني په مينځ كې به يې ضمير مرفوع راوړى شي.

ولم يقل الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال**: د صيغه د مرفوع په ځای دې ضمير د مرفوع ولې ونه ويلو؟

لمکان الاختلاف الخ: په دې عبارت سره شارح جواب طرف ته اشاره کوي:

**جواب**: حاصل د جواب دادی، چې په دې کې اختلاف دی، خليل صاحب ورته حرف وايي، او باقي ورته ضمير وايي، او د صيغې اطلاق په دې دواړو کيږي نو ده ځکه **صيغة مرفوع** وويل.

منفصل الخ: يعنې دا ضمير، چې څنګه د مرفوع دی نو دا شانته منفصل به وي او مطابق د مبتداء به هم وي، نو دلته څلور سوالات پيدا شو:

**اول سوال**: دا ضمير به مرفوع ولې وي؟

**جواب**: د وجې د مطابقت نه د مبتداء سره، ځکه مبتداء هم د مرفوعاتو نه ده او دا هم د مرفوعاتو نه شي.

**دوهم سوال**: دا ضمير مرفوع به منفصل ولې وي؟

**جواب**: ځکه چې اتصال متعذر دې د وجې د عامل معنوي نه، ځکه د عامل معنوي سره اتصال د لفظي نه کيږي او کنت کې عامل لفظي دی، ليکن دې سره يو ضمير متصل شوی دی، نو اوس که دوهم متصل کوو، نو نقصان دا راځي، چې تقديم د احدالمثلين په مثل آخر راځي.

**دريم سوال**: مطابق د مبتداء سره به ولې وي؟

**جواب**: ځکه چې دا ضمير عبارت د مبتداء نه دی.

**څلورم سوال**: مطابقت څنګه دی؟ ځکه چې ضمير خو اعرف د معارفو نه دی او مبتداء خو اعرف نه ده؟

**جواب**: هغه مطابقت شارح ذکر کړی دی، وايي **افراداً وتثنيةً الخ** دا مطابقت به دې اته شيانو کې مراد دی، کل امورو کې مراد نه دی. يعنې که مبتداء مفرد وه نو ضمير د مفرد به وي که تثنيه وه، نو ضمير به د تثنيه وي او که جمع وه، نو ضمير به هم د جمع وي.

**وجه تسميه**: هغه ماتن ذکر کړې ده **ويسمى فصلاً** دې ته ضمير فصل ځکه وايي، چې دا ضمير فصل راولي په مينځ د مبتداء خبر او موصوف صفت کې. ځکه چې دا ضمير نه وي، نو بيا وهم راځي. چې دا موصوف صفت دی او که مبتداء خبر

**ليفعل**: ماتن **ليفعل** ويلي وو. شارح وايي **ذلك التوسط** غرض د شارح متعلق راويستل دي د جار مجرور لپاره. وايي دا متعلق دی د **يتوسط** پورې. **يسمى** سره يې نه متعلق کوي، اګر چې دا قريب دی. وجه داده چې که تر **يسمى** متعلق شي نو لازمېږي. کون د اسامي **معلولة بعلة** او حال دا دی، چې اسامي **معلول بعلةٍ** نه وي.

**ذلك المرفوع**: غرض د شارح د **يفصل** ضمير مرجع متعين کول دي، او ضمير ورته نه وايي بلکې مرفوع ورته وايي. ځکه مخکې تېر شو چې ددې په ضمير کېدو کې اختلاف دی.

**بين كونه**: چونکه فصل امر معنوي دی. نو د کوم دوه شيونو په مېنځ کې به فصل راځي؟ نو ماتن وايي په مېنځ د خبر او صفت کې.

**اى كون الخبر**: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي.

**سوال**: کله چې ضمير خبر ته راجع دی. نو وروستو خو بيا هم خبر ذکر دی، دا خو تکرار لازم شو؟

**جواب**: دا اول خبر په معنی د **مابعد** سره دی لهذا تکرار نشته.

**فيما يصلح لهما**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: نعت خو تابع دی او خبر د مرفوعاتو نه دی. همدارنګې په نعت کې درې واړه قسمه اعراب راځي، او خبر همېشه مرفوع وي. نو څنګه التباس راځي؟

**جواب**: دا هغه صورت دی. چې صلاحيت د دواړو لري. لکه **زيدن القائم**. دې کې [illegible]حيت د خبر او صفت دواړو دی. نو ضمير فصل راوړل لازم دي.

**ثم اسع فادخل الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: راوړل د ضمير فصل په هغه مقام کې، چې التباس د صفت او خبر راځي صحيح دي، ليکن کوم مقام کې چې صلاحيت د دواړو نه وي. لکه چې خبر منصوب [illegible] **كنت انت الرقيب** [illegible] مبتدا ضمير وي. او ضمير خو لا يوصف **ولا يوصف به** وي. نو دې مقام نو کې [illegible] راوړي؟

**جواب**: دا [illegible] دې په صورت د [illegible] **طردًا للباب**

**شرطه:** د ضمير فصل راوړو دپاره شرائط ماتن ذکر کړي دي. ماتن وايي شرط. شارح وايي اى شرط الفصل غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي

**بذلك المرفوع:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال:** دا خو خروج د بحث نه راغلو؟

**جواب:** مونږ بحث د دغه مرفوع نه کوو. خروج د بحث نه نشته

**او افعل من کذا:** يعني خبر به معرفه يا افعل التفصيل مستعمل په من سره وي. نو معلومه شوه دا خبره چې که خبر معرفه نه وه، يا اسم تفصيل مستعمل په من سره نه وو، نو ضمير فصل راوړو ته ضرورت نشته. بيا کله چې خبر معرفه وه، نو دا خبره معلومه شوه چې مبتداء به په طريقه اولى سره معرفه وي، ځکه دې نحاتو دا قانون وضع کړي دى. چې کله په يو کلام کې معرفه او نکره راجمع شي، نو معرفه متعين وي دپاره د ابتدائيت او نکره متعين وي د پاره د خبريت.

په دې سره دفع د يو سوال وشوه:

**سوال:** ماتن لره په کار وه چې ان يکون المبتداء والخبر معرفتين يې ويلي وى؟ ځکه د مبتداء معرفه کيدل هم شرط دي؟

**جواب:** کله چې خبر معرفه شو، نو مبتداء به په طريقه اولى سره معرفه دي

**لان الفصل الخ:** کله چې خبر هم معرفه وي، نو بيا ضمير فصل ته احتياج وي. ځکه چې نکره شو بيا خو ضرورت نشته.

**لالحاقه:** خبر چې اسم تفصيل مستعمل په من سره وي هلته به هم ضمير فصل راوړى شي. ځکه دا ملحق دى په معرفې پورې د وجې د امتناع د الف لام نه په دې باندې، بيا الف لام په معرفه ځکه نه داخليږي. چې تحصيل د حاصل راځي او په اسم تفصيل مستعمل په من باندې ځکه نه د اخليږي، چې د دې د استعمال درې طريقې دي. چې يو طريقې سره مستعمل شو. نو دوهمه ورسره نه شي جمع کيدې

**سوال:** په طاب الزيدان کې معرفه باندې الف لام راغلى دى؟

**جواب:** کله چې معرفه تثنيه او جمع شي. بيا الف لام راتلى شي ځکه نکره ګرځي

**سوال**: العبأس مفرد معرفه باندې الف لام راغلی دی؟

**جواب**: دلته الف لام تعریف فایده نه ورکوي.

**سوال**: دادې په معرفتین باندې قیاس شي کنه، ځکه نحو کې ډېر مسایل قیاساتو سره ثابت دي؟

**جواب**: خبره دې صحیح ده، لیکنم دې دپاره مقیسي علیه اصل په کار دی او دلته مقیس علیه خلاف القیاس ثابت دی، نو قیاس د بل پرې نه شي کیدې.

**مثل**: مثالونه ماتن ذکر کړي دی.

**كان زيدٌ هو افضل من عمرو**: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي.

**واقتصر الخ**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: په کار دا وه، چې ماتن څلور مثالونه ذکر کړي وې، یو د هغې چې مبتداء خبر دواړه معرفه وي او ضمیر فصل قبل العوامل راغلی وی، دوهم د هغې چې مبتداء و خبر معرفي وي او ضمیر فصل بعد العوامل وي، دریم مثال د هغه چې اسم تفصیل مستعمل په من سره خبر واقع شوې وي قبل العوامل او څلورم چې خبر اسم تفصیل مستعمل په من سره بعد العوامل وي. حالانکه ماتن صرف د څلورم قسم مثال ذکر کړی دی؟

**جواب**: حاصل د جواب دا دی، چې دا اول درې امثله مشهور وو، نو هغه یې ذکر نه کړه او څلورم مثال مشهور نه وو، نو هغه یې ذکر کړو. دوهم جواب دا هم کېدای شي، چې هر کله خبر اسم تفصیل مستعمل په من سره وي او پس د عامل لفظي نه وي، نو د ضمیر فصل راوړو نه دوه موانع دي یو دا چې اسم تفصیل مستعمل په من سره حقیقي معرفه نه ده دوهم دا چې اولی سره راوړی شي، ځکه هغې کې دغه مقدار سره موانع نشته.

| وَلَا مَوْضِعَ لَهُ اَیْ لِلْفَصْلِ مِنَ الْإِعْرَابِ عِنْدَ الْخَلِيْلِ لِاَنَّهُ عِنْدَهُ حَرْفٌ عَلٰی صِيْغَةِ الضَّمِيْرِ وَ |
|---|
| اوځای نشته دپاره دفصل داعراب نه په نزد خلیل ځکه دده په نزد دا حرف دي په صیغې دضمیر سره او |
| عِنْدَ بَعْضِهِمْ اِسْمٌ مَبْنِيٌّ لَا مُقْتَضٰی فِيْهِ لِلْإِعْرَابِ وَ لَا عَامِلَ لٰكِنَّ الْخَلِيْلَ اِسْتَبْعَدَ |
| په نزد د بعضودا اسم مبني دي چې مقتضی د اعراب په کې نشته اونه دعامل لکن خلیل بعیده کړخولي |
| اِلْغَاءَ الْاِسْمِ فَذَهَبَ اِلٰی حَرْفِيَّتِهٖ وَ بَعْضُ الْعَرَبِ يَجْعَلُهُ مُبْتَدَاءً اَیْ يَسْتَعْمِلُهُ |
| لغوه کړخول داسم نوذهاب یې کړي حرفیت دهغې ته اوبعضې عرب یې کړخوي مبتدا یعني استعمالوي |

| |
|---|
| بِحَيْثُ يَحْكُمُ النُّحَاةُ بِكَوْنِهِ مُبْتَدَاءَ وَ إِلَّا فَالْعَرَبُ لَا تَعْرِفُ الْمُبْتَدَاءَ وَ الْخَبَرَ وَ مَا بَعْدَهُ خَبَرَهُ |
| په داسې شان چې حکم کې نحویان په کیدلو دهغې مبتدا ورنه عرف نه پیژني مبتدا اوخبر اومابعد خبر |
| لِقَوْلِهِ خَبَرُهُ إِمَّا مَرْفُوعٌ عَلَى أَنَّهُ خَبَرٌ وَ الْجُمْلَةُ حَالٌ أَوْ مَنْصُوبٌ عَطْفًا |
| ددې وې داقول چې دمصنف چې خبر دایامرفوع دې بنابرخبریت جمله حال ده یامنصوب دې عطف دې |
| عَلَى ثَانِي مَفْعُولَيْ يَجْعَلُهُ وَ إِنَّمَا يُعْرَفُ مِنَ الْعَرَبِ جَعَلَهُ مُبْتَدَاء بِرَفْعِ مَا بَعْدَهُ فِي مِثْلِ كُنْتَ أَنْتَ |
| په دوهم مفعول د يجعل پيژندل شوې د عربو نه گرځيدل ددې مبتدا په رفع د مابعد سره لکه کنت انت |
| الرَّقِيْبَ وَ عَلِمْتَ زَيْدًا هُوَ الْمُنْطَلِقُ وَ فِي بَعْضِ نُسَخِ الْمَتْنِ مُبْتَدَاءُ مَا بَعْدَهُ خَبَرُهُ بِدُوْنِ الْوَاوِ |
| الرقيب کې وعلمت زيداهوالمنطلق بعضې نسخودمتن کې مبتداده چې وروستويې خبردې په غيردواونه |
| وَ حِيْنَئِذٍ فَالرَّفْعُ مُتَعَيِّنٌ وَ يَتَقَدَّمُ قَبْلَ الْجُمْلَةِ وَ إِيْرَادُ لَفْظِ قَبْلُ |
| دغه وخت کې بيارفع متعين ده اومقدم کيږي به مخکې دجملې نه نوراوړل دمصنف لفظ دقبل دپاره |
| لِتَاكِيْدِ التَّقَدُّمِ لِأَنَّ تَقَدُّمَ الضَّمِيْرِ عَلَى مَرْجِعِهِ غَيْرُ مَعْهُوْدٍ. |
| دتاکيدتقدم ځکه چې تقدم دضميرپه خپل مرجع غيرمحصور دې. |

**اغراض دجامي** : ولا موضع له: ددې په ترکيب کې اختلاف دی، ماتن صرف دوه مذهبونه ذکر کړي دي، د خليل مذهب دادی، چې دې لره محل د اعراب نشته.

اى للفصل: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي، چې ضمير فصل ته راجع دی.

من الاعراب: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : ته وايې دې لره موضع نشته، ولې نشته؟ دا په مينځ کې راغلی دی کنه؟

**جواب**: شارح جواب ورکړي چې من الاعراب اى في الاعراب، يعنې په اعراب کې ورلره ځای نشته.

**سوال** : اعراب خو امر معنوي دی هغې کې خو د هيڅ چا ځای نشته؟

**جواب**: په عبارت کې قلب دی، اصل داسې دی لا موضع للاعراب فيه يعنې دې دپاره محل د اعراب نشته.

لانه عنده حرف الخ: دليل د خليل ذکر کوي، چې دا د هغه په نزد حرف دی او حرف دپاره اعراب نه وي.

وعندبعضهم : شارح دوهم مذهب ذکر کوي، هغه دا چې دا هو اسم مبني دی، تقاضا د اعراب او د عامل نه کوي

**سوال** : خلیل ولې دا خبره نه کوله؟

**جواب**: لکن الخلیل استبعد الخ خلیل ورته حرف ځکه وايي، چې که اسم ورته ووايي، نو ملغی کول د اسم لازمېږي، او که حرف ملغی شي، خیر دی لیکن اسم نه شو ملغی کولی

دریم مذهب د کوفیانو دی، هغې وايي دا ضمیر تاکید ما قبل مبتداء دی. او څلورم مذهب د بعضې نورو دی. هغې وايي چې دا هو ضمیر تا کید د ما بعد خبر دپاره دی، لیکن دا دواړه مذهبونه ضعیف وو نو ماتن او شارح ذکر نه کړو.

وبعض العرب الخ : پنځم مذهب دادی، چې بعضې عرب دا هو ضمیر مبتداء او ما بعد خبر ګرځوي، بیا دا دواړه مبتداء خبر جمله خبر د مبتداء ګرځوي.

ای یستعمله الخ : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال** : عرب خو مبتداء خبر پیژني، نو هغې ته څنګه نسبت د جعل کېږي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې مطلب دادی، چې عرب یې استعمال داسې کوي، چې نحاة پرې حکم کولی شي، چې دا یو یې مبتداء او دا بل یې خبر مستعمل کړو.

و بعده خبر شارح په دې جمله کې دوه ترکیبونه کړي دي یو ترکیب دا چې واو حرف عاطف ما موصوله بعده مضاف مضاف الیه ظرف په اعتبار د متعلق سره صله شوه، موصول صله مبتداء شوه او خبره ورلره خبر شو، مبتداء خبر جمله اسمیه عطف ده په بعض العرب باندې، او دا جمله حالیه ده. معنی داده، چې بعضې عرب ګرځوي دې ضمیر لره مبتداء په داسې حال کې چې هغه شی چې واقع وي پس دې ضمیر نه هغه په خبر وي

دوهم ترکیب دا چې واو عاطفه ما بعده په ترکیب کذایي سره عطف دی په مفعول اول د یجعل باندې او خبرا عطف دی، په مفعول ثاني د یجعل باندې، نو عطف د اسمینو شوې دی په معمولینو خو عامل یو دی، په دې صورت کې به دا منصوب شي بنا بر مفعولیت

والما یعرف العرب الخ : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دا پته به مونږ ته څنګه لګي، چې عربو دا ضمیر مبتداء او ما بعد خبر استعمال کړی

دی، ځکه هغې خو تلفظ يو شان کوي؟

**جواب**: د هغې د پيژندو طريقه داده چې يو عربي نه تپوس وکړه چې په دې مبتداء خبر عامل لفظي داخل کړه او بيا يې ووايه، نو چې هغه تاته خبر مرفوع ووايي نو پوهه شه چې دغه ضمير يې مبتداء او ما بعد يې خبر مستعمل کړو، لکه كنت انت الرقيب کې الرقيب مرفوع ووايي، همدارنګې په علمت زيدًا هو المنطلق کې المنطلق مرفوع ووايي.

**وفي بعض نسخ المتن الخ**: ځينې نسخو کې حرف عاطف نشته، په هغه صورت کې دا متعيين دی د دفع دپاره بنابر خبريت، ځکه دا به خبر ثاني شي. د مبتداء دپاره او خبر د مرفوعاتو نه وي.

**ويتقدم قبل الجملة**: کله چې فارغ شو مصنف د بعضې احکام خاصه د ضمير نه . يا بالفاظ ديګر د بعضې خاص ضمائرو د تفصيل نه، چې هغه د متکلم او ضمير فصل وو، نو اوس يې شروع وکړه په تفصيل د بل خاص ضمائرو د تفصيل نه، چې هغه د متکلم او ضمير فصل وو نو اوس يې شروع وکړه په تفصيل د بل خاص قسم ضمير کې، چې مذکر کې ورته ضمير شان او مؤنث کې ورته ضمير قصه ويلی شي

**تعريف دد ې ضمير**: ماتن داسې کړې دی، چې ضمير غائب بلا مرجع چې واقع وي، مخکې د جملې نه او د هغې تفسير کيدې شي په يو جمله چې واقع وي، پس ددې ضمير نه، مذکر کې ورته ضمير شان او مونث کې ورته ضمير قصه ويلی شي. نو په دې تعريف کې پنځه خبرې راغلې، اول داچې ضمير به وي نو د اسم ظاهر نه احتراز وشو ، دوهم دا چې د غائب ضمير به وي، نو د مخاطب او متکلم نه احتراز وشو، دريم داچې بلا مرجع به وي د مرجع والاضمير غائب نه احتراز شو، څلورم دا چې قبل الجملة به وي، نو د مفرد نه احتراز شو، پنځم داچې مفسر به يې جمله وي، په دې سره احتراز وشو د هغه ضمير نه چې جمله يې تفسير نه کوي.

**وايراد لفظ قبل الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: ستا دا عبارت صحيح نه دی، ځکه چې دا مشتمل دی په استدراك باندې او هر هغه عبارت چې شان يې دا وي، هغه صحيح نه وي، نو دا هم صحيح نه شو. دليل د کبری خو واضح دی، ځکه استدراك ذکر کول د يو لفظ پس د بل لفظ نه يې د څه فائدې نه، او دا صحيح نه ده. دليل د صغری دادی، چې يتقدم مخکې واقع کيدو ته وايي او د قبل هم دغه

مخکې معنی ده، نو استدراك راغلو؟

**جواب**: شارح هندي وايي چې نه منم دا خبره چې دا **قبلُ** بې فائدې ذکر دی، بلکې دا د تاکید دپاره ذکر دی.

**سوال**: تاکید خو د ضرورت په مقام راوړی شي نو دلته څه ضرورت دی؟

**جواب**: لان تقدم الضمير الخ يعنې چې يو سړی ووايي چې مخکې واقع کېږي، بلا مرجع، نو د مخاطب ذهن دا خبره نه راخلي، ځکه ضمير بلا مرجع نه وي، نو چې **قبل الجملة** ورسره راوړی شي او تاکید راغلو، نو اوس به د مخاطب ذهن دا خبره واخلي.

| |
|---|
| وَلَا يُبْعِدُ اَنْ يُقَالَ مَعْنَى الْكَلَامِ وَ يَقَعُ مُتَقَدِّمًا مِنْ غَيْرِ سَبَقِ مَرْجِعٍ وَ ذٰلِكَ |
| اوبعيده نه ده چې وويل شي چې معنی د کلام واقع کيږي متقدمه په غير د مخکې والي د مرجع نه اودا په |
| بِحَسْبِ الْمَفْهُوْمِ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ قَبْلَ الْجُمْلَةِ اَوْ لَا فَلِذٰلِكَ قَيَّدَهُ بِقَوْلِهٖ |
| اعتبار د مفهوم عام ده د دې نه چې وي مخکې د جملې نه او يا نه د دې وجې نه مقيد کړې دي قول خپل چې |
| قَبْلَ الْجُمْلَةِ اَیْ قَبْلَ هٰذَا الْجِنْسِ مِنَ الْكَلَامِ ضَمِيْرٌ غَائِبٌ يُسَمّٰى |
| قبل الجملة يعنې مخکې له دې جنس د کلام نه مخکې به يې ضمير غائب وي چې مسمی کيږي په |
| ضَمِيْرُ الشَّانِ اِذَا كَانَ مُذَكَّرًا رِعَايَةً لِلْمُطَابَقَةِ لِاَنَّ الضَّمِيْرَ رَاجِعٌ اِلَيْهِ. |
| ضميرشان سره چې کله مذکر وي دپاره د رعايت د مطابقت ځکه چې ضمير راجع دي مطابقت ته. |

**اغراض د جامي**: ولا يبعد الخ: غرض د شارح دوهم جواب ذکر کول دي، او دا جواب د شارح دی بيا بعيد سره تعبير د بُعد نه کيږي، ليکن دلته شارح دا لفظ کسر نفسی دپاره راوړی دی، حاصل د جواب دا دی چې صرف يتقدم کې په اعتبار د مفهوم سره عموم وو، هغه ضمير ته هم شامليدو، چې مخکې د مفرد فعل او شبه فعل نه ذکر کوي، حالانکه د غه قسمه ضمائرو ته ضمير شان او قصه نه شي ويلی، نو ده د غه تعميم دفع کړو، چې زما مراد صرف هغه ضمير دی چې قبل الجملة وي.

من غير سبق: مرجع دې قيد لره جواب کې څه دخله نشته، وروستو د دې فائده راځي.

ای قبل هٰذا الجنس: د دې قيد فائده هم وروستو را روانه ده.

من الكلام: دا بيان د هذا الجنس دی.

ضمیر: په دې سره احتراز شو دا اسم ظاهر نه

غائب: په دې سره احتراز شو د متکلم او مخاطب نه، ځکه په هغې کې ابهام نه راځي. او مقصود د ضمیر نه ابهام راوستل دي، یو شی یو ځل مبهم ذکر شي او بیا ظاهر ذکر شي، نو ذهن کې ښه واقع شي او عظمت د هغه شي بیان شي.

ویسمّٰی: دا جمله معترضه نه په نزد د شارح باندې صرف د ضمیر د نوم دپاره راوړی شوې ده.

اذاکان مذکراً: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا دوه نومونه ورته ولې کېږدي؟

**جواب**: دا یو نوم د مذکر دپاره او دا بل د مؤنث دپاره دی.

رعایةً للمطابقة الخ: غرض د شارح رد کول دي په غایة التحقیق والا هغه وایي چې دې ته ضمیر شان ځکه وایي، چې دا ضمیر راجع دی، هغه شان ته چې ذهن د متکلم وي او ضمیر قصه ورته ځکه وایي، چې دا ضمیر راجع دی هغه قصه ته چې ذهن د متکلم کې وي؟

**رد**: شارح پرې رد وکړو، چې دا تغییر د شان او د قصه ترې صرف د مطابقت دپاره شوی دی داسې نه ده، چې ګنې دا ضمیر هغه شان یا قصه ته راجع دی.

## حکم د ضمیر د قصې:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ ضَمِیْرُ | الْقِصَّةِ | اِذَا | کَانَ مُؤَنَّثًا | وَ یُحْسِنُ | تَانِیْثَهٗ | اِذَا | کَانَتِ الْعُمْدَةُ فِیْهَا مُؤَنَّثًا | لِتَحْصُلِ |
| اوضمیر قصه چې کله وي مؤنث اوښه کیږي تانیث دهغې چې کله عمده په کې مؤنث وي چې حاصل | | | | | | | | |
| الْمُنَاسَبَةِ | یُفَسِّرُ | ذٰلِکَ | ضَمِیْرُ | الْغَائِبِ | لِاِبْهَامِهٖ | بِالْجُمْلَةِ | | |
| شي مناسبت تفسیربه کیدې شي دضمیرغائب دوجې دابهام دهغې نه په هغې جملې سره چې کومه | | | | | | | | |
| الْمَذْکُوْرَةِ | بَعْدَهٗ | اَیْ | بِهٰذِهِ | الْحِصَّةِ | مِنَ الْجِنْسِ | الْمَذْکُوْرَةِ | وَ الظَّاهِرُ | اَنَّ قَوْلَهٗ یُسَمّٰی |
| ذکر وي وروستو د هغې نه یعني په دغه حصه د جنس مذکوره نه ظاهره دا ده چې دا قول د مصنف یسمی | | | | | | | | |
| ضَمِیْرُ الشَّانِ | وَ الْقِصَّةِ | جُمْلَةٌ | مُعْتَرِضَةٌ | بَیَانٌ | لِلْوَاقِعِ | لَیْسَ دَاخِلًا | فِیْ بَیَانِ الْقَاعِدَةِ | فَاِنَّهٗ |
| ضمیر الشان الخ دا جمله معترضه ده بیان دهغه واقعیت دي چې داخل نه دي په بیان د قاعده کې ځکه چې | | | | | | | | |
| لَا دَخْلَ | لِلتَّسْمِیَةِ | فِیْ هٰذَا | الْحُکْمِ | فَاِنَّهٗ ثَابِتٌ | سَوَاءٌ | وَقَعَتْ | هٰذِهِ التَّسْمِیَةُ | اَوْ لَا وَ |
| دخل نشته تسمیې لره په دې حکم کې نو دا حکم ثابت دي برابره خبره ده چې دا تسمیه وي او که نه او | | | | | | | | |

| |
|---|
| اَيْضًا يَلْزِمُ اِسْتِدْرَاکُ قَوْلُهٗ يُفَسِّرُ بِالْجُمْلَةِ بَعْدَهٗ فَعَلٰى هٰذَا لَوْ لَمْ يُحْمَلِ |
| همدارنګې لازميږي استدراک دقول دمصنف چې يفسر بالجملة بعده نوبنا پر دې که چيرته حمل نه شي |
| التَّقَدُّمُ عَلٰى مَا ذَكَرْنَا اِنْتَقَضَتِ الْقَاعِدَةُ بِقَوْلِنَا الشَّانُ هُوَ زَيْدٌ قَائِمٌ عَلٰى اَنْ يَكُوْنَ هُوَ مُبْتَدَاءً |
| تقدم په على ماذکرنا باندې نومنقوضه به شي قاعده په دې قول زمونږ الشان هوزيدقائم چې هو مبتدا شي |
| رَاجِعًا اِلَى الشَّانِ وَ زَيْدٌ قَائِمٌ خَبَرًا عَنْهُ فَاِنَّهٗ يُصَدِّقُ عَلَيْهِ اَنَّهٗ ضَمِيْرٌ |
| راجع شي لفظ دشان ته چې په اول دکلمه کې دې او زيدقائم ترې خبر شي نو صادقيږي په دې چې دا ضمير |
| غَائِبٍ تَقَدَّمَ الْجُمْلَةَ مُفَسَّرٌ بِالْجُمْلَةِ بَعْدَهٗ فَاِنَّهٗ بِاِعْتِبَارِ رُجُوْعِهٖ اِلَى الشَّانِ |
| غائب دې مخکې دجملې نه او تفسيريږي شوې په وروستو جملې سره نو دا په اعتبار درجوع د دې ضمير شان |
| لَا يَخْرُجُ عَنِ الْاِبْهَامِ بِالْكُلِّيَّةِ بَلْ اِنَّمَا يَرْتَفِعُ بِجُمْلَةِ زَيْدٍ قَائِمٌ كَمَا لَا يَخْفٰى. |
| نه وځي دابهام نه بالکليه بلکې ابهام پورته کيږي جملې د زيد قائم نه کمالا يخفى. |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره د ضمير قصې حکم بيانوي.

**اغراض دجامي:** ويحسن تانيثه الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال:** کوم کلام کې چې مذکر او مؤنث راجمع شي، او داسې ضمير راوړې، نو ضمير شان به راوړې او که ضمير قصه؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې عمده ته به ګورې، اوس الکلمة لفظ کې الکلمة عمده دې، نو ضمير قصه به راوړې، اى انها کلمة لفظ وضع او چې مذکر وي نو ضمير شان به راوړې، دا صورت خپله معلوم شو.

يفسر ذلك الخ: دلته يو څو سوالات مخې ته راځي:

**اول سوال:** تفسير به دچا کوې؟

**جواب:** تفسير به د دغه غائب کېداى شي، اى ذلك ضمير الغائب.

**دوهم سوال:** نفسِ تفسير ولې کوې؟

**جواب:** دا تفسير يې د وجې د ابهام نه کيدې شي لا بهامو.

**دريم سوال:** تفسير په جملې سره ولې کوې؟

**جواب** : تفسیر به یې په جملې سره ځکه کېږي، چې تفسیر حکم ثابتولو ته وایي او حکم په مفرداتو سره نه ثابتیږي.

**څلورم سوال** : جمله به وروستو ولې وي؟

**جواب** : جمله به ځکه وروستو وي، چې دې سره تفسیر کېږي.

**پنځم سوال** : د بهذه الحصة څه مطلب دی؟

**جواب** : د بهذه الحصة الخ سره غرض د شارح دفع د یو سوال ده :

**سوال** : ذکر د بفسّر بالجملة نه پس د قبل الجملة نه مستدرک دي، ځکه چې یو ضمیر مخکې د جملې نه واقع وي، نو دا خبره معلومه ده چې دغه جمله به یې تفسیر کوي او دوهمه دا چې د فصحاوو د قاعدې خلاف هم راغلی دی، ځکه چې یو شی یو ځل په اسم ظاهر سره ذکر شي نو دوباره هغه په اسم ظاهر سره ذکر کول د فصحاوو د کلام نه خلاف دي؟

**جواب**: دا بالجملة بعده مستدرك نه دي، بلکې دا تاکید دی او توضیح د ما قبل جمله کوي.

**دوهم جواب** : دا چې مخکې جمله کې عموم وو او دا خاص جمله مفسره ده، ځکه تفسیر جمله خبریه واقع کېږي. انشائیه نه واقع کېږي دې سره د بهذا الجنس ما قبل قید فایده هم ښکاره شوه، چې هلته کې مطلق جمله مراد وه. او دلته یو نوع د جملې مراد دی، چې هغه جمله خبریه ده.

والظاهر الخ : غرض د شارح رد کول دي، په شارح هندي باندې، چې هغه دا وجه تسمیه په تعریف کې داخل وایي، نو شارح پرې رد کوي، چې دا وجه تسمیه په تعریف کې داخلول نه دي په کار. ځکه چې بیا یو څو نقصانات مخې راځي، چې هغه شارح په خپله وروستو ذکر کوي.

فانه لادخل الخ : دا په اولې طریقې سره رد کوي، حاصل د هغې دادی، چې دې وجه تسمیه لره دې قاعده کې هیڅ دخله نشته. که څوك دې ته ضمیر شان او قسه وواېي او که نه وایي، لیکن دغه قاعده په خپل ځاي ده، او که دا وجه تسمیه مونږ تعریف کې داخل کړو، نو چې بیا دې ته څوك بل قسم نوم کېږدي، نو بیا به دا قاعده نه وي، ددې نقصان د وجې دا وجه تسمیه تعریف کې داخل نه ده.

وايضا الخ: دا په دوهمې طريقې سره رد كوي، حاصل د هغې دا دى، چې كه دا وجه تسميه مونږ په تعريف كې داخل كړو، نو يفسر بالجملة بيا مستدرك ګرځي، ځكه دې سره چې مونږ څه خارجو ، نو هغه په وجه تسميه سره وځي. او هغه دا چې يفسر سره مونږ د هغه ضمير غائب نه احتراز كوو، چې وروستو يې تفسير نه وي اوس چې دغه وجه تسميه مونږ تعريف كې داخل كړو، نو دې سره دغه قسم ضمير خارج شو، ځكه ضمير شان او قصه وايي هغه ضمير ته چې وروستونې جملې سره يې تفسير كيدې شي.

فعلى هذا الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: په كار ده چې الشان هو زيدٌ قائمٌ هو ضمير ته هم ضمير شان وويلې شي، ځكه دا هم ضمير د غائب دي، مخكې د جملې نه دي او وروستو جمله يې تفسير كوي؟

**جواب**: دې ته مونږ ضمير شان ځكه نه وايو، چې ددې مرجع ذكر ده او مونږ وايو چې ضمير شان به بلا مرجع وي.

فانه باعتبار الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: په الشان هو زيدٌ قائم كې په دې هو باندې تعريف د ضمير شان نه صادقېږي، ځكه دې كې ابهام نشته، نو ددې ويستلو څه ضرورت دى؟

**جواب**: ددې ابهام بالكليه رفع نه دى، ورنه وروستو جملې سره تفسير څه لره كوي. لهذا دې مخكې قيد بلا مرجع سره دغه خارج شو.

| وَ يَكُوْنُ ضَمِيْرُ الشَّانِ اَوِ الْقِصَّةِ مُتَّصِلًا وَ مُنْفَصِلًا وَ اِذَا كَانَ مُتَّصِلًا يَكُوْنُ مُسْتَتِرًا وَ بَارِزًا عَلٰى حَسْبِ |
|---|
| اووي به ضميرشان ياقصه متصل يامنفصل نوكله چې متصل وي نوپټ هم وي اوښكاره هم موافق د |
| الْعَوَامِلِ فَاِنْ كَانَ عَامِلُهٗ مَعْنَوِيًا بِاَنْ كَانَ مُبْتَدَاءً كَانَ مُنْفَصِلاً وَ اِنْ كَانَ لَفْظِيًا |
| عواملونوكه چيرته عامل يې معنوي وي په داسې شان چې مبتداوي نو وي منفصل اوكه عامل لفظي |
| يَصْلُحُ لِاِسْتِتَارِ الضَّمِيْرِ كَانَ مُسْتَتِرًا وَ اِلَّا بَارِزًا مِثْلُ هُوَ زَيْدٌ قَائِمٌ مِثَالٌ |
| وي نوصحيح كيږي دپاره دپټ والي دضميركه عامل پټ وي اوكه ښكاره لكه هوزيدقائم مثال دي د |
| لِلْمُنْفَصِلِ وَ كَانَ زَيْدٌ قَائِمٌ مِثَالٌ لِلْمُتَّصِلِ الْمُسْتَتِرِ وَ اِنَّهٗ زَيْدٌ قَائِمٌ مِثَالُ الْمُتَّصِلِ الْبَارِزِ. |
| منفصل اوكان زيد قائم مثال دمتصل دي اوانه زيدقائم مثال دمتصل بارزدي. |

**اغراض د جامي** : **ويكون ضمير الشان او القصة متصلاً و منفصلاً** : په دې عبارت سره د ضمير شان او د ضمير قصې اقسام بيانوي : ضمير شان او قصه په دوه قسمه دي : متصل او منفصل.

**ضمير الشان او القصة** : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : په يكون كې ضمير ما قبل ضمير شان او قصه ته راجع دی او هغه دوه شيان دي، ضمير د تثنيې په كار وو، او دلته ضمير د مفرد دی نو مطابقت نشته؟

**جواب** : مثال ضمير ته راجع دی او هغه مفرد دی، يا كله چې يو دوه شيونه په لفظ د او سره ذكر شي، نو هغې ته ضمير د مفرد هم راجع كولی شي.

**و اذاكان متصلاً الخ** : غرض د شارح دفع د وهم ده. وَهم دا راتلو چې دا مستتر او بارز به ما قبل متصل او منفصل دواړو سره لګېږي، حالانكه دا خو صرف د متصل اقسام دي؟ نو شارح دا وهم دفع كړو، چې دا صرف د متصل سره لګېږي، او دا دواړه اقسام د متصل دي.

**على حسب العوامل** : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : مونږ ته به څنګه پته لګېږي، چې دا ضمير متصل او دا منفصل دی يا دا مستتر دی او كه بارز دی؟

**جواب** : د عامل نه پته لګي، كه عامل كې صلاحيت د متصل وو، نو ضمير به متصل وي او كه صلاحيت د منفصل په كې وو، نو ضمير به منفصل راځي. بيا كه د مستتر صلاحيت وو نو مستتر به وي او كه د بارز صلاحيت وو، نو ضمير بارز به وي.

**فان كان عامله معنوياً الخ** : شارح تفصيل د عواملو كوي، وايي كه عامل معنوي مبتداء ضمير واقع شي، نو هلته به ضمير منفصل وي او كه عامل لفظي وي او صلاحيت د استتار يې لرلو، نو ضمير مستتر متصل به وي او كه صلاحيت د استتار نه وو، نو ضمير متصل بارز به وي.

**مثل هو زيدٌ قائمٌ** . غرض د مانن مثال ذكر كول دي.

**مثال للمنفصل** : غرض د شارح تعيين د ممثل كول دي، او بل غرض تطبيق د مثال دی. د ممثل سره او دريم غرض دفع د سوال ده :

**سوال**: مثال دپاره د وضاحت وي نو د وضاحت دپاره يو مثال هم کافي کيدو. نو زياتو مثالونو ته څه ضرورت وو؟

**جواب**: تعدد د امثله بناء دي په تعدد د ممثلاتو باندي

<u>**وحذفه منصوباً ضعيف**</u>: د ضمير دوه احکام ماتن ذکر کړي دي. په دې عبارت سره يې حکم اول ذکر کړو.

## ضعيفه وجه:

وَ حَذْفُهُ عَنِ اللَّفْظِ بِإِضْمَارِهِ لَا نَسْيًا مَّنْسِيًّا حَالَ كَوْنِهِ

او حذف کول يې د لفظ نه په ضمير جوړولو سره نه دا چې حذف شي نسياًمنسياًپه داسې حال کې چې

مَنْصُوْبًا ضَعِيْفٌ أَيْ جَائِزٌ مَعَ ضُعْفٍ بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ مَرْفُوْعًا فَإِنَّهُ لَا

منصوب وي ضعيف دي يعنې جائزدي سره دضعف نه په خلاف دهغې چې کله مرفوع وي نوبيانه دي

يَجُوْزُ أَصْلًا لِكَوْنِهِ عُمْدَةً إِمَّا جَوَازُهُ فَلِكَوْنِهِ عَلَى صُوْرَةِ الْفَضَلَاتِ وَ أَمَّا ضُعْفُهُ

جائز بالکل دوجې دکيدونه عمده هرچې جوازدحذف دي نو دوجې د صورت د فضلاتو دي او هر چې

فَلِأَنَّهُ حَذْفُ ضَمِيْرٍ مُرَادٍ بِلَا دَلِيْلٍ عَلَيْهِ لِأَنَّ الْخَبَرَ

ضعف ددې دي خکه چې داحذف دضميردي چې مرادشوې په کلام کې بلادليل په هغې ځکه چې خبر

كَلَامٌ مُسْتَقِلٌّ مِثَالُهُ شِعْر أَنَّ مَنْ يَدْخُلُ الْكَنِيْسَةَ يَوْمًا ۞ يَلْقَ فِيْهَا جَآذِرًا

کلام کې مستقل دي مثال يې په دې شعر کې هغه ځوک چې داخليږي کنيسې ته يوه ورځ مخ به شي د

وَ ظِبَاءً ۞ إِلَّا مَعَ أَنَّ الْمَفْتُوْحَةَ إِذَا خُفِّفَتْ فَإِنَّهُ أَيْ حَذْفُهُ

وحشي غواګانو او هوسو سره مخ شي مګر سره دان مفتوحه کله چې تخفيف وکړې شي ځکه يعنې چې حذف

بِنِيَّةِ الْإِضْمَارِ هٰهُنَا مَعَ كَوْنِهِ مَنْصُوْبًا لَازِمٌ كَقَوْلِهِ تَعَالٰى وَ آخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ

ددې په نيت داضمار سره دلته سره د کيدو ددې نه منصوب لازم لکه داقول دالله تعالى واخردعواهم ان الحمد

لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَ ذٰلِكَ لِأَنَّهُ لَمَّا خُفِّفَتْ إِنْ وَ إِنَّ لِثِقْلِهِمَا بِالتَّشْدِيْدِ الْوَاقِعِ

لله رب العالمين او دا ځکه چې تخفيف وکړې شو دان اوان دوجې د ثقل دهغې په تشديد سره چې کوم واقع

فِيْهِمَا.

دي په دې کې

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت کې په حذف داضمار کې ضعيفه وجه بياڼوي.

**اغراض دجامي** : عن اللفظ: غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا حذف په معنی د تقدیر سره دی.

**باضماره**: اشاره ده چې په نیت کې به دا ضمیر پټ وي

**لانسیامنسیا**: ځینې وایي چې نسیا هغه شوي ته ویلی شي. او منسیا تکیه کلام دپاره راغلی دی، لکه روتي موتي. او ځینې وایي چې نسیا هغه شی دی، چې صلاحیت د هېروالي په کې وي، او منسیا هغه ته وایي چې بالفعل حذف شوی وي

**حال کونه**: غرض د شارح د منصوباً وجه د نصب ذکر کول دي. چې دا منصوب دې بنابر حالیت.

**ای جائز الخ**: غرض د شارح دفع د وهم ده. او تفسیر د ضعف کول دي

**وهم** : دا راتلو چې چا به ویل چې دا ضعف به په معنی د ممتنع سره وي. نو دا به ناجائز وي؟

**جواب** : شارح دغه وهم دفع کړو. چې د ضعیف معنی داچې جائز دی، لیکن سره د ضعف نه

**بخلاف ما الخ**: غرض د شارح د منصوباً قید فائده ذکر کول دي. فائده داده چې کله چې ضمیر شان مرفوع وي. نو بیا حذف د سر نه ناجایز دی. ځکه چې مرفوع عمده دی او حذف د عمده ناجایز دی.

**سوال** : مبتداء خو هم د مرفوعاتو نه ده او هغه خو کله کله حذف کېږي؟

**جواب**: حذف د مبتداء قلیل دی او دوهمه وجه داده، چې حذف د مبتداء سره د قرینه او سد مسد نه وي، نو دا حذف د هغې کالحذف شو

**اما جوازه الخ**: چونکه شارح دوه دعوې کړې وې، یو دعوی د جواز د حذف دوهم دعوی د ضعف د حذف د هر یو دپاره دلیل ذکر کوي، د اول دعوې د دلیل حاصل دادی چې دا ضمیر [illegible] فضله دی، او حذف د فضله جائز دی، بیا عین [illegible] وایي، ځکه حقیقت کې خو دا مبتداء دی. لیکن د عامل د وجې پرې نصب راغلی دی نو صورتاً یې د فضله شو

**او دلیل** د ضعف دادی. چې حذف د ضمیر مراد بلا دلیل راځي، او دا صحیح نه دی [illegible] د خبرې دا شو چې [illegible] فضله دی [illegible] جائز شي او [illegible] وکورو، چې حذف د [illegible] نو بانحل د [illegible] اختیار کړ او هغه دا چې د دي حذف [illegible] ه د ضعف نه.

لان الخبر الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي
**سوال**: نه منم دا خبره چې حذف د ضمير بلا دليله راځي، بلکې دا حذف مع الدليل دی، ځکه ضمير شان، خبر لري، او هغه خبر دليل ددې دی چې ددې اسم حذف دی؟
**جواب**: شارح وايي کلام زمونږ په ضمير شان کې روان دی، او ضمير شان مخکې د جملې نه وي او وروستو جمله يې تفسير کړي اوس چې کله دا حذف شو، نو وروستو ددې نه جمله وي او جمله ځان لره مستقله وي هغه په چا دلالت نه کوي.
مثاله الخ: غرض د شارح مثال پيش کول دي، د حذف د ضمير شان سره د ضعف نه ، شاعر وايي:

ان من يدخل الكنيسة يوماً
يلق فيها جآذرا وظبأ

په دې شعر کې ان په اصل کې انه وو، ضمير شان حذف شو، دا حذف ضعيف دی، ځکه حذف د ضمير مراد بلا دليل راغلی دی.
**سوال**: نه منم چې دې شعر کې د ضمير مراد بلا دليل راغلی دی، بلکې حذف د ضمير مراده مع الدليل راغلی دی او هغه داسې چې وروستو من ذکره دی او دا قرينه ددې ده، چې ددې ان اسم حذف دی، ځکه ان دپاره د تحقق راځي او من اسم شرط دی، او په مابين ددې دواړو کې منافات دي، ځکه شرط کې تردد دې او ان کې تحقيق دی؟
**جواب**: دلته ان قرينه د حذفيت د ضمير شان نه شي کېدای، ځکه ان کې احتمال ددې هم شته، چې دا په معنی د جير سره حرف ايجاب شي .
**سوال**: محل ددې په معنی د حرف ايجاب باندې بعيد دی؟
**جواب**: صحيح ده دا ما بعد جمله به په حذفيت د ضمير شان نفس دليل وي، خو دليل قوي نه شي کېدې، ځکه مونږ وايو دا حذف جائز دی سره د ضعف نه.
الا مع ان اذا خففت دا هغه دوهم حکم ذکر کوي. د ما قبل نه استثناء ده بيا ان کې د آتي سره تجنيس خطي وي نو شارح ووئيل المفتوحة چې مراد مفتوحه دی

فانه ای حذفه : اشاره ده دې ته چې دلته هم حذف په معنی د تقدیر سره دی. بنیة الاضحار سره اشاره ده، چې نیت کې به موجود وي، نسیا منسیا به نه وي

مع کونه منصوباً : په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال :** مخکې تا ویل چې دا ضمیر شان منصوب دی او فضله دی، او حذف د فضله ضعیف دی، نو دلته خو هم دا ضمیر شان منصوب دی، نو ددې حذف به هم ضعیف وي؟

**جواب :** شارح جواب وکړو، چې سره د منصوب کېدو نه دا حذف لازم دی. حاصل دا شو، چې حذف د ضمیر شان داسې حال کې چې منصوب وي، نه دی جائز په غیر د ضعف نه په یو وقت او اوقاتو کې مګر په هغه وخت چې ان مخفف وي نو بیا حذف یا لازم دی. (استثناء منقطع شوه) یا حذف د ضمیر شان سره د عامل نه لازم نه دی، مګر هغه وخت چې ددې عامل ان مخففه وي (استثناء متصل شوه).

کقوله تعالی : مثال د حذف د ضمیر شان د ان محففه سره پیش کوي، په دې مثال کې ضمیر شان حذف دی او قرینه پرې داده، چې الحمد مرفوع ویلې شوي دي.

| وَ بَعْدَ تَخْفِيْفِهِمَا وَجَدُوْا اِنَّ الْمَكْسُوْرَةَ الْمُخَفَّفَةَ عَامِلَةً فِي الْمَلْفُوْظِ كَمَا قَالَ اللهُ تَعَالٰى |
|---|
| اووروستو د تخفیف نه بیاموندو نحویانو ان مکسوره عامل په ملفوظ کې لکه الله تعالی فرمایلي دي |
| وَ اِنَّ كُلاًّ لَمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ وَ لَمْ يَجِدُوْا اَنَّ الْمَفْتُوْحَةَ الْمُخَفَّفَةَ عَامِلَةً فِي الْمَلْفُوْظِ مَعَ اَنَّ اَنَّ الْمَفْتُوْحَةَ |
| وَاِنَّ كُلاًّ لَمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ اودوي و نه موندو چې ان مفتوحه داعامل دي په ملفوظ کې سره ددې چې ان مفتوحه |
| اَقْوٰى شِبْهًا بِالْفِعْلِ مِنَ الْمَكْسُوْرَةِ فَهِيَ اَجْدَرُ بِالْعَمَلِ |
| ډېرقوي دي دجهته د مشابهت نه دفعل سره دان مکسوره نه پس دا زیات لائق دي په عمل ورکولو سره چې |
| فَاِذَا لَمْ يَجِدُوْهَا عَامِلَةً فِي الْمَلْفُوْظِ قَدَّرُوْا عَمَلَهَا فِيْ ضَمِيْرِ الشَّانِ لِئَلَّا |
| کله دوي و نه موندل لفظ دان عامله په ملفوظ کې نو مقدر کړو دوي عمل دان په ضمیر شان کې دې دپاره |
| تُزِيْدَ الْمَكْسُوْرَةُ عَلَيْهَا عَمَلاً مَعَ اَنَّهَا اَجْدَرُ |
| چې زیادت د عمل دان مکسوره را نه شي په ان مفتوحه باندې سره ددې چې ان مفتوحه زیاته لائقه ده په |
| بِهٖ وَ لَمْ يُجَوِّزُوْا اِظْهَارَ ذٰلِكَ الضَّمِيْرِ لِئَلَّا يَفُوْتَ التَّخْفِيْفَ |
| حق د عمل کې او جائز و نه ګرځولو دوي اظهار ددغه ضمیر دې دپاره چې فوت نه شي تخفیف کوم چې |

| |
|---|
| الْمَطْلُوْبَ هٰهُنَا كَمَا يَدُلُّ عَلَيْهِ حَذْفُ النُّوْنِ وَ حَكَمُوْا بِلُزُوْمِ حَذْفِ |
| مطلوب دي دلته لكه څنګه چې دلالت كوي په دې باندې حذف د نون او حكم وكړې شو په لزوم د حذف |
| ضَمِيْرِ الشَّانِ مَعَ اَنَّ الْمَفْتُوْحَةَ اِذَا خُفِّفَتْ. |
| د ضمير شان سره د ان مفتوحه چې كله مخفف شي. |

خلاصه د متن:

**اغراض د جامي: وذلك الخ:** د حذف د ضمير شان په صورت د ان مخففه كې د لزوم د پاره دليل ذكر كوي، د هغې د پاره يو څو خايونه دي، ان او ان كې دا خلك تخفيف كوي. دا دواړه د فعل سره مشابهت ساتي، خو اَنّ قوي دى په مشابهت كې د فعل سره د اِنّ نه، اَن فرع د اَنّ ده او اِن فرع د اِنّ ده. فرع د اصل اصل وي او فرع د فرع فرع وي، اوس چې كلام عربي كې مونږ وكتل نو د اَنْ اسم حذف شوى دى او د اِنْ هغه نه دى حذف شوى، لكه اِنْ كلًّا لَّما نو د اصل نه اسم حذف شوى دى او د فرع نه، نه دى حذف شوى دا خو مزيديت د فرع په اصل راځي، نو مونږ وويل چې ان د پاره اسم ضمير شان دى او هغه حذف دى وجوباً چې زيادت د فرع په اصل رانه شي.

**ولم يجوزوا اظهار الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** د غه ضمير ښكاره كوي، ولې نه؟

**جواب:** تخفيف فوت كيږي.

**وحكموا بلزوم الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** زيادت ان مخفف من المثقل چې فرع ده په ان مخفف من المثقل چې اصل دى اوس هم راغلى دى، څكه ان عمل اسم ظاهر كې كوي او ان عمل په اسم ضمير كې كوي؟

**جواب:** عمل د يو عامل په خپل معمول كې وجوباً دائماً اګر چې دا معمولي وي اصل دى د عمل كولو د يو عامل نه په خپل معمول كې جوازاً احياناً دا معمول اسم ظاهر ولې نه وي.

## بحث د اسماء اشاراتو:

| |
|---|
| اَسْمَاءُ الْاِشَارَاةِ اَىْ اَسْمَاءُ الْاِشَارَاةِ الْمَعْدُوْدَةِ فِي الْمَبْنِيَّاتِ بِحَسْبِ الْاِصْطِلَاحِ |
| اسماء الاشارات يعني هغه اسماء اشارات چې معدوده وي په مبنياتو كې په اعتبار د اصطلاح هغه دي چې |

| |
|---|
| مَا وُضِعَ اَیْ اَسْمَاءٌ وُضِعَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهَا لِمُشَارٍ اِلَيْهِ اَیْ لِمَعْنًى مُشَارٍ اِلَيْهِ اِشَارَةً حِسِّيَّةً بِالْجَوَارِحِ وَ |
| وضع شوي وي هر واحد د دوي نه دپاره ديوې معنى چې اشاره شوې وي هغې ته اشاره حسي په جوارحو او |
| الْاَعْضَاءِ لِاَنَّ الْاِشَارَةَ عِنْدَ اِطْلَاقِهَا حَقِيْقَةٌ فِي الْاِشَارَةِ الْحِسِّيَّةِ فَلَا يَرِدُ ضَمِيْرُ الْغَائِبِ وَ |
| اعضاو خکه چې اشاره مطلقا حقيقت دي په اشاره حسي کې نو سوال نه وارديږي په ضمير غائب او په |
| اَمْثَالُهُ فَاِنَّهَا لِلْاِشَارَةِ اِلٰى مَعَانِيْهَا اِشَارَةً ذِهْنِيَّةً لَا حِسِّيَّةً وَ مِثْلُ |
| امثالو دهغې خکه چې دا دي دپاره د اشارې د معانيو دهغې په اشاره ذهني سره نه په حسي سره او په مثل |
| ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ مِنَّا لَيْسَتِ الْاِشَارَةُ اِلَيْهِ حِسِّيَّةً مَحْمُوْلٌ عَلَى التَّجَوُّزِ وَ اِنَّمَا |
| د ذلكم الله ربكم دهغې قبيلې څخه دي چې نه ده اشاره دلته حسي دا حمل ده په جواز او په تحقيق سره |
| بُنِيَتْ لِشُبْهِهَا بِالْحَرْفِ كَمَا سَبَقَ. |
| مبني کړې شوه د وجې د مشابهت نه د حرف سره څنګه چې مخکې تير شو |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره د اسماء اشاراتو اول تعريف کوي او وروسته په کې نور تفصيل بيانوي.

**اغراض د جامي** : اسماء الاشارات : کله چې فارغ شو مصنف عليه الرحمة د تفصيل د يو قسم د اسمآء مبنيو نه، چې مضمرات وو، نو شروع يې وکړه په تفصيل د دوهم قسم د اسمآء مبنيو کې چې اسمآء الاشاراة دي.

دلته دوه سوالات مخې ته راځي:

**اول سوال** : نفس تفصيل ولې کوي؟

**جواب**: نفس تفصيل خو بو ددې وجې نه کوي. چې تفصيل بعد الاعمال اوقع في الذهن وي. دوهمه وجه داده، چې اسمآء الاشاراة تفصيل ته محتاج دي او مخکې يې تفصيل نه دی شوی او کوم شی چې تفصيل ته محتاج وي او تفصيل يې نه وي شوی. نو د هغې تفصيل په کار وي

**دوهم سوال** : تفصيل په دې مقام کې ولې کوي؟

**جواب** : تفصيل په دې مقام کې خکه کوي. چې اجمال کې هم په دې مقام کې واقع وو نو دلته هم د مضمرات پسې متصل کړو. چې تفصيل موافق د اجمال شي اجمال کې اسمآء اشاراة د مضمراتو پسې متصل خکه وو. چې ددې دواړو منځ کې په ډيرو وجوهو سره مناسب دي، يو خو ددې وجې چې دې دواړو کې يو څيز ته اشاره کيدې شي

**سوال**: بیا یې جداولې ذکر کوې؟

**جواب**: چونکه مضمراتو کې اشاره ذهنیه وي او اسمآء اشارتو کې اشاره حسیه وي. ددې وجې نه یې جدا ذکر کړو، دوهمه وجه د مناسبت داده چې د اسمآء اشاراتو نه اکثر اسمآء د مضمراتو سره وضع کې مشابهت لري، ځکه د دې وضع اکثر د درې حروفو نه کم وي.
دریمه وجه د مناسبت داده، چې وجه د بنآء کې د مضمراتو سره مشابه دي. دواړه کې احتیاج موجود دی.

اي اسماء الاشارة المعدودة الخ: غرض د شارح دفع د وهم ده. وهم: دا راتلو چې اسمآء الاشارة نه به مراد دلته غیر د هغه نه وي چې اجمال کې ذکر دي، نو لازمېږي خلاف د تفصیل د اجمال نه، او دا خو ښه خبره نه ده؟ شارح دغه وهم دفع کړو، چې مراد هم هغه اجمال والا اسمآء اشاراة دي او دلیل په دې خبره دادی، چې معرفه کله معاد شي، نو ثاني عین اول مراد وي،
یا غرض د شارح په دې عبارت سره دفع د یو سوال ده :

**سوال** : ته چې د اسمآء الاشارة کوم تعریف کوې نو دا صحیح نه دی، ځکه جامع نه دی او کوم تعریف چې شان یې دا وي، هغه صحیح نه وي، جامع داسې نه دی، چې الاشاراة لفظ ته نه شاملېږي، ځکه د هغې وضع دپاره د معنی د مشارالیه نه ده شوې؟

**جواب**: که لفظ د الاشارة وځي، نو وځي دې، ځکه مونږ تعریف د اسمآء اشاراتو کوو او دا لفظ د هغې دپاره نه دی وضع شوی.

بحسب الاصطلاح: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال** :تعریف دې صحیح نه دی، ځکه اخذ د محدود په حد کې راغلی دی، او کوم تعریف چې داسې وي، هغه صحیح نه دی، دلیل د صغری دادی، چې ته وایې اسمآء الاشارة او وروستو لمشارٍالیه وایې او هر مشتقې کې خپل مشتق منه موجود وي. نو دلته هم مشار الیه کې اشارة راغله، نو اخذ د محدود حد کې لازم شو؟

**جواب**: زمونږ د اول اشاره نه اصطلاحي اشاره مراد ده او دوهم نه لغوي او ددې دواړو منځ کې فرق دی، نو اخذ د محدود کې نه راځي.

اي اسماءٌ وضع الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: دا **ما** عبارت د څه نه وايې؟ د اسم نه به وايې يا د آسماء نه که د اسم نه عبارت شي، نو د وضع د ضمير سره مطابقت راغلو. ليکن حمل د تعريف په معرف نه صحيح کېږي، ځکه معرف کې اسماء ذکر دي. او تعريف کې مفرد شو او که د اسماء نه عبارت شي، نو محل صحيح کېږي، ليکن مطابقت نشته؟

**جواب**: **ما** عبارت د اسماء نه دي او اسماء مؤول دي په تاويل د **کل واحدٍ** سره، نو ضمير د مفرد ورته راجع کول صحيح دي، دا جواب شارح کړی دی. تذکير او افراد د ضمير د وضع په اعتبار د لفظ سره دی، ځکه قانون دادی، چې کله تعبير وشي، د جمع نه په لفظ **من** او **ما** سره نو هغې ته ضمير د مفرد په اعتبار د لفظ سره راجع کولی شي او ضمير د جمع په اعتبار د معنی سره او ضمير د واحده مؤنث په تاويل د **جماعةٌ** سره راجع کولی شي، دلته لحاظ د لفظ ساتلی شوی دی.

بل جواب دادی، چې دا **ما** عبارت د اسم نه دی او حمل صحيح دی، ځکه مراد جنس اسم دی او دجنس اطلاق په قليل او کثير ټولو کېږي.

**ای لمعنیً**: چونکه مشار اليه صفت وو نو هغې لره يې موصوف راويستو.

**اشارة حسّيةً**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: تعريف دې مانع نه شو، ضمير د غايب پکې داخل شو، ځکه هغه هم يو معنی ده چې اشاره پرې کيدې شي؟

**جواب**: مونږ وايو، چې اشاره حسي پرې کيدې شي او ضمير د غايب کې اشاره ذهنيه وي. بيا دا **ما** په منزله د جنس دې ټولو اسماوو ته شامل وو، **وضع لمشارٍ اليه** سره ټوله اسمآء مبنيات په غير د ضمير غائب نه خارج شو **اشارةً حسيةً** سره ضمير غائب خارج شو. جامع مانع تعريف حاصل شو، بيا پاتې شوه داخبره چې اشاره څه سره کيدې شي، نو شارح ويلي **بالجوارح** بيا چونکه **جوارح** جمع د **جارحةٌ** ده، صرف هغه اندامونو ته شامليده چې هغې سره زخم کيدې شي، حالانکه اشاره خو ټولو اندامونو سره کېدای شي، نو شارح وويل **والاعضاء** چې زما مراد ټول اندامونه دي او دا تفسير د ما قبل شو.

**لان الاشارة الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال** : اشاره مطلقه ده او تا مقیده کړه په قید د حسّیةٌ سره نو تقیید دمطلق راغلو او دا خو مجاز دی. نو لازم شو تعریف کې استعمال د مجاز او مونږ دا ویلي دي، چې تعریفاتو کې به مجاز نه ځان ساتو؟

**جواب**: تعریف کې هغه مجاز منع دی، چې متعارف نه وي او چې کوم مجاز متعارف وي، هغه په منزله د حقیقت وي، نو استعمال يې جايز دی او اشاره چې هم مطلقه ذکر شي، نو اشاره حسي ته ذهن شي، ځکه مونږ دا قید ولګوو.

فلا یرد الخ: دا ددغه ما قبل قید فائده ذکر کوي، چې مونږ تفصیل سره ذکر کړه.

و مثل ذٰلکم الله الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : نقض دې راغلو په دې تعریف باندې په دې قول سره، چې ذٰلکم الله. اسم اشاره الله ته راجع ده او الله خو مشار اليه په اشاره حسّی سره نه ده؟

**جواب**: اشاره حسّی عامه ده حقیقتاً وي او که حکماً دلته اشاره حسّی حکماً مراد ده، یعنې ځنګه چې یو شی محسوس وي، حقیقتاً او اشاره ورته کېدای شي، نو الله هم دغسې حقیقتاً موجود دی.

## تعریف داسماء اشاراتو :

| وَ هِيَ اَيْ اَسْمَاءُ الْاِشَارَةِ ذَا حَالَ كَوْنِهَا لِلْمُذَكَّرِ الْوَاحِدِ وَ الْعَامِلُ فِي الْحَالِ مَعْنَى الْفِعْلِ الْمَفْهُوْمِ |
|---|
| اودا یعنې اسماء اشارت ذادي کله چې وي دپاره دمذکرواحد او معنی په حال کې معنی دفعل ده چې فهمیږي |
| مِنْ نِسْبَةِ الْخَبَرِ اِلَى الْمُبْتَدَاءِ وَ لِمُثَنَّاهُ ذَانِ رَفْعًا وَ ذَيْنِ نَصْبًا وَ جَرًّا اَيْ |
| دنسبت دخبرنه مبتداته اودتثنیې دپاره ذان په حالت رفعي کې اوذين په حالت نصبي اوجري کې یعنې |
| ذَانِ وَ ذَيْنِ حَالَ كَوْنِهِمَا لِمُثَنَّى الْمُذَكَّرِ قَدَّمَ لِيَكُوْنَ الضَّمِيْرِ اَقْرَبُ |
| ذان اوذين په حال کون ددې کې چې وي دپاره دمذکرمثنی مخکې راوړل شودې دپاره چې شي ضمیرنږدې |
| اِلَى مَرْجِعِهٖ وَ عَلَى هٰذَا الْقِيَاسِ وَ فِي التَّرْكِيْبِ الثَّلٰثَةِ الْبَاقِيَةِ فَقَوْلُهٗ هِيَ مُبْتَدَاءٌ وَ |
| مرجع خپلې ته اوبناءپردې قیاس اوپه نورودرې ترکیبونوکې پس داقول دمصنف چې هي مبتداده اودا |
| قَوْلُهٗ ذَا مَعَ مَا عَطَفَ عَلَيْهِ مُقَيِّدًا كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهَا بِحَالٍ خَبَرٌ لَهٗ وَ يَجِيْئُ |
| قول چې ذاسره دمانه عطف دي پرهغې تقیددهـ واحدشوې په حال باندې خبردي دپاره د هغې اوراځي |

| |
|---|
| فِي بَعْضِ اللُّغَاتِ ذَانِ فِي جَمِيْعِ الْأَحْوَالِ الرَّفْعِ وَ النَّصْبِ وَ الْجَرِّ مِنْهُ قَوْلُهُ تَعَالَى إِنَّ هٰذَانِ لَسَاحِرَانِ عَلَى |
| په بعضې لغاتو کې ذان په ټولو احوالو کې د رفع نصب جر کې لکه دا قول د الله تعالی ان هذان لساحران په |
| أَحَدِ الْوُجُوْهِ وَ لِلْمُؤَنَّثِ الْوَاحِدَةِ تَا قِيْلَ هِيَ الْأَصْلُ فِي لُغَتِ الْمُؤَنَّثِ الْوَاحِدَةِ لِأَنَّهُ |
| یو د ځو وجوهو سره او د پاره د مؤنث واحده تاء ده چاویلي چې تاء اصل ده په لغاتو د مؤنث واحده کې ځکه |
| لَمْ يُثَنَّ مِنْهَا إِلَّا هِيَ وَ ذِيْ وَ قِيْلَ هِيَ الْأَصْلُ لِكَوْنِهَا بِإِزَاءِ ذَا لِلْمُذَكَّرِ |
| چې تثنیه نه راځي د هغې مګر همدا او ذي چاویلي چې دا اصل دي ځکه چې په مقابله د ذي کې ذا د مذکر |
| فَيَنْبَغِيْ أَنْ يَتَنَاسَبَهَا وَ قِيْلَ هُمَا أَصْلَانِ وَ لِلْقَوْلِ بِإِصَالَتِهِمَا قُدِّمَتَا |
| پاره راځي نو مناسب دي چې تناسب ولري د هغې سره او چاویلي چې دواړه اصلي دي او د دې وجې مقدم شو |
| عَلَى سَائِرِهَا لِفَرْعِيَّتِهَا .وَ تِيْ بِقَلْبِ الْأَلِفِ يَاءً وَ تِهِ وَ ذِهْ بِقَلْبِ الْأَلِفِ وَ الْيَاءِ هَاءً |
| په نورو ټولو د وجې د فرعیت د دې نه او تي چې الف په یاء بدل شوي وته وذه چې الف او یاء په هاء بدل شوي |
| بِغَيْرِ وَصْلِ الْيَاءِ بِهَا وَ تِهِيْ وَ ذِهِيْ بِوَصْلِ الْيَاءِ بِهَا وَ لِمُثَنَّاهُ أَيْ مُثَنَّى الْمُؤَنَّثِ تَانِ فِي |
| په غیر د وصل د یاء نه د هغه سره وتهي وذهي په وصل د یاء د دوي سره او د پاره د مثنی مؤنث راځي تان په |
| الرَّفْعِ وَ تَيْنِ فِي النَّصْبِ وَ الْجَرِّ وَ لَا يُثَنَّى مِنْ لُغَاتِهِ إِلَّا تَا لِكَثْرَةِ |
| حالت رفعي کې او تين په حالت نصبي او جري کې او تثنیه نه راځي د لغاتو نه مګر یواځي تاء د وجې د زیات |
| دَوْرِهَا عَلَى الْأَلْسِنَةِ وَ تَوَهُّمِ بَعْضِهِمْ مِنْ اِخْتِلَافِ أَوَاخِرِ ذَانِ وَ ذَيْنِ وَ تَانِ وَ تَيْنِ بِاخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ |
| استعمال نه په لغاتو کې او وهم کړي بعضې د اختلاف د اخر د ذان او ذین او تان او تین نه په اختلاف د عواملو |
| أَنَّـهَـا مُـعْـرَبَـةٌ. |
| د دوي چې دا معرب دي. |

خلاصه د متن :

**اغراض د جامي** : وهي: دا اسمآء اشاراة چې مخکې ذکر شوي د یو نسبت کیدې شي، دې ته د مجموعه هغه چې وروستو ذکر کیږي، بعضې په هغې کې دا دي، په حال کون ددې ذا کې چې د پاره د مذکر دي

ذا حال کونها: غرض د شارح د للمذکر جار مجرور د پاره اعراب محلي او متعلق ذکر کول دي، متعلق خو مونږ معنی کې راویسته. او ذا ورله خبر ګرځي، خو یواځې ذا نه ګرځي. بلکې سره د ما بعد نه خبر ګرځي. ځکه که یواځې دا خبر کړو. نو حمل د اخص په اعم راځي، او دا

صحيح نه ده، ځکه انحصار د اعم په اخص کې راځي، ددې وجې به دا سره د ما بعد معطوفاتو نه خبر وايو

**سوال**: دلته عطف په ربط هم نه شو مقدم کولې، ځکه عطف په مفرداتو کې راځي، او دلته خو دا جمل دي. نو نتيجه دا شوه چې حمل د اخص دی په اعمم باندې، ځکه هی مبتداء او ذا خبر شو، او دا صحيح نه ده؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې للمذکر په اعتبار د متعلق سره حال دی، نو دا جمله نه شوه. بلکې مفرد شو او عطف د مفرد په مفرد صحيح دی، نو ذا سره د ما بعد معطوفاتو نه مجموعه خبر شو

الواحد: چونکه دا مذکر په مفرد تثنيه او جمع کې مشترك وو، حالانکه دلته خو درې واړه نه دي مراد؟ نو شارح الواحد سره هغه نور دوه جدا کړه.

والعامل الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: حال خو هيئت د فاعل يا مفعول بيانوي او دا خو خبر دی؟ حال دپاره لابدي وي د عامل نه. دې دپاره عامل څه دی؟

**جواب**: دا ذا فاعل د فعل معنوي دی، چې معلوميږي د نسبت د ذا نه مبتداء ته، چې هغه مونږ په معنی کې راويسته او تنسب اليها الخ اوس د نائب فاعل دی، او عامل هغه فعل معنوي تنسب دی، نو دواړه سوالات دفع شو.

**سوال**: ملا عصام وايي چې نسبت خو يواځې د ذا نه، نه کيږي، بلکې د مجموعه کېږي، نو صرف ذا څنګه نائب فاعل دی؟

**جواب**: مونږ وويل چې نسبت د مجموعه ما ذکر ورته کيدې شي، او ذا په کې هم يو دی.

**دوهم جواب**: د سوال مذکور نه نورو شارحينو دا کړی دی، چې ذا خبر د مبتداء محذوفه دی. ای احدها ذا حال کونها الخ او هي دپاره خبر حذف دی. ای هی خمسةٌ ليکن شارح دغه جواب غوره نه کړو، ځکه دې کې کثرت حذف راځي، او دا جواب د شارح اګر چې دقيق دی، ليکن کثرت حذف په کې نه راځي

رفعاً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ذان او ذين دوه صيغې د تثنيه دپاره ولې دي؟
**جواب**: يو په حالت رفعي کې او دا بل په حالتِ نصبي او جري کې راځي
**سوال**: دا خو مبنيات دي او حالت رفعي نصبي خو په معرب کې راځي؟
**جواب**: تثنيه د اسماء اشاراتو معرب ده، اصل داده چې دا حالت رفعي او نصبي د وجې د وضع د واضح نه راغلې دی.
**لمثنی المذکر**: غرض د شارح د لمثناه ضمير مرجع متعين کول دي.
**قدم الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: لمثناه حال دی دپاره د ذان وذين، او عامل ددې معنوي دی، نو لازم شو تقديم د حال په عامل معنوي او دا صحيح نه ده ځکه عامل معنوي ضعيف دی، نو دا خپل معمول مؤخر کې عمل کولی شي او مقدم کې نه شي کولی؟
**جواب**: تقديم د حال په ذوالحال باندې عامل معنوي کې ناجايز دی، خو چې حال نظر نه وي او که حال ظرف وو، نو د جمهورو په نزد تقديم ناجايز دی، او د فراء په نزد جائز دی، ځکه په ظروفو کې توسع دی او زمونږ کلام په مذهب د فراء بنآء دی.
**سوال**: اصل دادې چې ذوالحال په حال مقدم وي او چې حال مقدم شي نو دا خلاف الاصل راغلو او خلاف ته صيرورت د وجې د څه نکتې نه کيږي. دلته څه نکته ده؟
**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا ضمير د حال اقرب شي خپل مرجع ته چې هغه مرجع المذکر دی.
**ويجيئ الخ**: غرض د شارح د عبادت ترکيب کول دي.
**ويجيئ الخ**: غرض د شارح په تثنيه د مذکر کې دوهم لغت ذکر کول دي، او هغه دا چې تثنيه په ټولو حالاتو کې په الف سره راځي ، او بل غرض دفع د سوال ده :
**سوال**: مونږ خو اوريدلي دي چې تثنيه په ټولو حالاتو کې په الف سره وي؟
**جواب**: شارح جواب وکړو، چې ماتن د اکثرو عربو مذهب ذکر کړی دی او دغه بل لغت دبعضې عربو دی، دا مشهور لغت نه دی.

الرفع والنصب الخ: په دې باندې درې واړه اعرابات جائز دي. چې مرفوع شي نو خبر د مبتداء به شي، لکه احدها الرفع، که منصوب شي نو مفعول به د فعل محذوفه به شي. اعنی الرفع او که مجرور شي، نو بیان به شي داحوال لپاره

منه تعالٰی الخ: او ددې لغت نه دا قول د الله تعالٰی دی ان هذان لساحران په یو د وجوهو ثلاثو کې، چې أنّ دی یا داسې وواېه چې دې آیت کې درې احتمالات دي. یو داچې انّ حرف د حروف ایجاب نه دی او ما بعد به ځان لره مبتداء خبر شي، معنی به دا شي. هو! دا دواړه جادوګران دي. ، دوهم داچې ان مخفف من المثقل دی او اسم یې ضمیر شان حذف دی، او ما بعد خبر دی او تفسیر د هغه ضمیر شان دی په دې مقام کې هم څه اشکال نشته. انّ حرف د حروف مشبه بالفعل نه دی. هذان اسم او لساحران ورلره خبر دی، په دې مقام کې دغه اشکال دي، چې هذان منصوب دی، نو بیا هذان په کار وو؟

**جواب:** نو شارح جواب ورکړو، چې دا په هغه لغت راغلی دی، چې د هغې په نزد درې واړو حالاتو کې اعراب تقدیري وي.

وللمونث الواحدة تا: ددې ځای نه بیان د دریمې صیغې کوي، او د هغې مثال هم ذکر کوي، بیا ددې دپاره څو لغات دي د هغې بیان به هم کوي هغه ټول اووه لغات دي، یو.په کې تا دی، د ذا نه مو حرف ذال لرې کړو او تا مو راوړه. ځکه چې تآء دپاره د تانیث راځي، دوهم ذِیْ دی د ذا نه جوړ دی، هغه الف مو په یاء سره بدل کړو. ځکه یآء هم د تانیث دپاره راځي، لکه په تضربین کې یآء راغلې ده.

بیا په دې دواړو کې کوم اصل دی؟ دې باره کې درې مذاهب دي، شارح د درې واړو بیان سره د دلایلو نه کړی دی.

**اول مذهب** دادی تا اصل ده او دلیل دادی، چې تثنیه د مؤنث تان راځي که دا نور لغات اصل وي نو د هغې نه به تثنیه راغلې وه.

**دوهم مذهب** دادې چې ذِیْ اصل دی. ځکه دا په مقابله د ذا کې دی او کوم شی چې د مذکر مقابله کې وي، نو هغه اصل وي

**دریم مذهب** دادې چې دا دواړه اصل دي. ځکه ددې دواړو په اصالت دغه دلائل موجود دي

ولللغول باصالتهما الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

سوال: کله چې دې کې دومره لغات وو، نو دا دوه يې ولې مقدم کړو؟

جواب: چونکه دا دواړه اصل دي، او هغه نور فرعيات دي، نو دا يې ځکه مقدم کړو.

وتي الخ: دريم لغت تي دی، ذا کې ذال په تاء سره او الف په ياء سره بدل شو، څلورم لغت ته دی، ذال په تاء سره بدل شو او الف په هاء سره بدل شو، پنځم لغت ذهٔ دی، دې کې صرف الف په ياء سره بدل کړو. او هاء ځينې اوقاتو کې علامه دتانيث واقع کېږي، لکه ضاربة کې په حالت وقف کې ضاربه ويلی شي.

بغير وصل الياء بها: سره د وروستو دوه لغاتو سره مقابله ذکر کوي.

وتهي وذهي: شپږم لغت تهي دی هغه ذال په تاء سره بدل شو، او هاء ياء دواړه عوض د الف شو اووم لغت ذهي دی دلته صرف د الف په عوض کې هاء ياء راوړی شوه، او د يو حرف عوض کې دوه حروف راوړی شي، دې سره دريمه صيغه ختمه شوه، چې د هغې په مثال کې اووه لغات وو.

ولمثناه: دلته نه څلورمه صيغه د تثنيه مؤنث ذکر کوي سره د مثال نه.

اي مثنى المؤنث: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي، بيا د تثنيه مؤنث دپاره تان تين راځي.

يعني الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

سوال: دې اووه لغاتو کې صرف د تآء نه تثنيه ولې راځي؟

لكثرة دورها الخ: په دې عبارت سره شارح جواب ورکوي چې داتآء په ژبه کثر سره وارد ېږي، نو ځکه صرف ددې تثنيه رغله.

وكرهم بعضهم الخ: غرض د شارح يو خو بيان الاختلاف دی، اوبل غرض د شارح ترجيح د ما هو الراجح ده او دريم غرض دفع د سوال ده. بيان الاختلاف خو په دې شان سره کوي، چې تثنيه د مذکر او مؤنث کې اختلاف دی، بعضې نحاة وايي چې دا معرب دی او جمهور وايي چې دا مبني دی او هر چې ترجيح د ماهوالراجح ده، نو هغه يې مذهب د جمهورو لره ورکړی دی،

ځکه د بعضې نحاتو د مذهب نه يې په تو هم سره تعبير کړی دی او دوهم دا چې دليل د جمهورو يې ذکر کړی دی

او هر چې دفع د سوال ده نو هغه داسې ده چې.

**سوال**: راغي چې ذکر کول د ذان ذين او تان تين په دې مقام کې صحيح نه دي، ځکه دا بيان د مبني دی او دغه مذکور خو معرب دی؟

**جواب**: شارح جواب ورکړو، چې دې ته څوك معرب وايي هغه وهميان دي او د وهميانو خبرې لره څوك اعتبار نه ورکوي. بيا وجه د وهم داده، چې دا اختلاف د دې د آخر د وجې د اختلاف د عامل نه، نه دی، بلکې د وضع د واضع نه اتفاقاً راغلی دی، مقصود دې سره اعراب نه دی.

**سوال**: د تا سره څه دليل دی، چې وقوع د تثنيه په صورت د معرب کې اتفاقي دی او قصد د اعراب نه دی شوی؟

**جواب**: شارح وايي لوجود علة البناء يعنې دليل دادی، چې علت د بنآء اوس هم موجود دی، چې مشابهت د حرف سره دی په احتياج کې.

وَ الْجُمْهُوْرُ عَلٰى اَنَّ هٰذَا الْاِخْتِلَافَ لَيْسَ بِسَبَبِ اِخْتِلَافِ الْعَوَامِلِ بَلْ ذَانِ وَ تَانِ مَوْضُوْعَانِ

جمهور وايي چې دا اختلاف د سبب د اختلاف د عواملو څخه نه دي بلکې ذان او تان وضع شوې د پاره د

لِتَثْنِيَةِ الْمَرْفُوْعِ وَ ذَيْنِ وَ تَيْنِ لِتَثْنِيَةِ الْمَنْصُوْبِ وَ الْمَجْرُوْرِ وَ وُقُوْعُهَا عَلٰى صُوْرَةِ الْمُعْرَبِ

تثنيې د مرفوع او ذين او تين وضع شوې د پاره د تثنيې د منصوب او مجرور او وقوع يې په صورت د معرب

اِتِّفَاقِيٌّ لَا لِقَصْدِ الْاِعْرَابِ لِوُجُوْدِ عِلَّةِ الْبِنَاءِ فِيْهِمَا وَ لِجَمْعِهِمَا اَيْ جَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَ

اتفاقي دي نه د پاره دارادې د اعراب ځکه چې علت د بناء په کې موجود دي او د پاره د جمع مذکرې او

الْمُؤَنَّثِ اُوْلَاءِ مَدًّا وَ قَصْرًا اَيْ مَمْدُوْدًا وَ مَقْصُوْرًا وَ اِذَا كَانَ مَقْصُوْرًا يُكْتَبُ بِالْيَاءِ وَ

مؤنثې اولاء راغي چې ممدوده وي او که مقصوره وي او چې کله مقصوره وي ليکل کيږي د ياء سره او

يَلْحَقُهَا اَيْ اَسْمَاءَ الْاِشَارَةِ يَعْنِيْ يَدْخُلُ عَلٰى اَوَائِلِهَا عَلٰى سَبِيْلِ اللُّحُوْقِ وَ الْعُرُوْضِ بَعْدَ

پيوسته کيږي د اسماء اشاراتو سره يعنې داخليږي په اول د هغې په طريقې د لحوق او عروض سره وروستو د

اِعْتِبَارِ اِصَالَتِهَا حَرْفُ التَّنْبِيْهِ وَ هِيَ كَلِمَةُ هَا فَهُوَ لَيْسَ فِي الْحَقِيْقَةِ مِنْهَا وَ اِنَّمَا

معتبرولو د اصل د هغوي حروف د تنبيه او دا کلمه د هاء ده چې په حقيقت کې د هغوي څخه نه ده شمار بلکې

| |
|---|
| هُوَ حَرْفٌ جِيَ بِهٖ لِلتَّنْبِيْهِ عَلَى الْمُشَارِ اِلَيْهِ قَبْلَ لَفْظِهٖ كَمَا جِيَ بِهٖ |
| دا يو حرف را وړل شوې د پاره د خبرداري په مشار اليه مخکې د لفظ د هغې نه لکه څنګه چې را وړل کيږي |
| لِلتَّنْبِيْهِ عَلَى النِّسَبِ الْاِسْنَادِيَّةِ كَقَوْلِكَ هَا زَيْدٌ قَائِمٌ وَ هَا اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ وَ يَتَّصِلُ بِهَا |
| د پاره د خبرداري په نسبتونو اسناديو سره لکه هاءزيد قائم او هاان زيد قائم او پيوسته کيږي دد پورې |
| اَيْ بِاَوَاخِرِ اَسْمَاءِ الْاِشَارَةِ حَرْفُ الْخِطَابِ وَ هُوَ الْكَافُ تَنْبِيْهًا عَلَى حَالِ الْمُخَاطَبِ مِنَ الْاِفْرَادِ |
| يعني په آخر د اسماء اشاراتو پورې حرف د خطاب چې هغه کاف دي د پاره د خبرداري په حال د مخاطب د افراد |
| وَ التَّثْنِيَةِ وَ الْجَمْعِ وَ التَّذْكِيْرِ وَ التَّانِيْثِ وَ اِنَّمَا جُعِلَتْ هٰذِهِ الْكَافُ حَرْفًا لِامْتِنَاعِ وُقُوْعِ الظَّاهِرِ مَوْقِعَهَا |
| او تثنيې او جمع او تذکير او تانيث او وګرځول شو دا کاف حرف د وجې د امتناع د وقوع ظاهر په ځاى دد ې |
| وَ لَوْ كَانَتْ اِسْمًا لَمْ يَمْتَنِعْ ذٰلِكَ مِثْلُ ضَرَبْتُكَ وَ بِكَ. |
| او که چيرته اسم وي بيا منع نه ده چې واقع شي لکه ضربتک وبک. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت کې د جمهورو خبره ذکر کوي.

**اغراض دجامي** : ولجمعهما: دد ې ځاى نه پنځمه او شپږمه صيغه بيانوي، او د هغې د پاره په يو مثال اکتفاء کوي.

اى جمع المذكر والمونث: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي.

مدًّا و قصراً: دا دواړه منصوب دي بنا بر حاليت د ما قبل نه.

اى محدودا او مقصورا: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا اولا خو ذات دى او مدا و قصرا مصدر وصف دي، او دا د ما قبل د پاره حال دى، نو حال خو محمول وي په ذوالحال باندې او دلته خو حمل نه صحيح کيږي؟

**جواب**: دلته مصدر په معنى د مفعول سره دى، ځکه کوم ځاى چې معنى مصدري نه صحيح کيږي هلته مصدر مبني للفاعل يا مبني للمفعول وي، دلته مبني للمفعول دى.

اذا كان مقصوراً يكتب بالياء: کله چې اولا مقصور وي، نو په آخر کې به الف مقصوره په صورت د ياء ليکلى شي، ځکه دا الف مجهول الاصل دى او کوم الف چې مجهول الاصل وي، نو هغه په صورت د ياء کې ليکلى شي، يو دد ې وجې يائيات په نسبت د واوياتو سره کلام عربي کې ډېر دي، دوهم په دې وجه چې په ياء کې خفت دى او دريم په دې وجه چې کلام عربي کې داسې

کلمه نشته، چې اول کې ضمه او آخر کې واو راغلی وي، هو! چې ممدود وي، نو بیا په خپل صورت لیکلی شي، ځکه هغه علت ختم شو. او پس د اول همزه نه به دواړو کې واو راوړی شي، التباس رانه شي د الی جاره او الا استثنایي سره.

**ویلحقها**: په دې عبارت سره شارح احکام د اسمآء اشارات ذکر کوي، دا اول حکم دی، او هغه دا چې ددې اسمآء پورې حرف تنبیه کله کله ملحق کېږي، وروستو به دې تعیین وکړي، لکه ذا سره هآء راشي، نو هذا ویلی شي.

**ای اسمآء الاشارة**: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

**یعني یدخل**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: لحوق خو آخر کې پیوست والي ته وایي او حرف تنبیه خو اول کې راځي؟

**جواب**: ذکر د لحوق او مراد ترې دخول دی. یعنې ذکر د خاص او مراد ترې نه عام دی.

**علی اوائلها**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دخول خو هم عام دی، چې آخر کې داخل شي هغې ته هم شاملېږي؟

**جواب**: شارح تعیین د ماهو المراد وکړو، چې دخول د اوائلو مراد دی.

**علی سبیل اللحوق**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کله چې مراد د لحوق دخول په اول کې وو نو لحوق سره ولې تعبیر کوي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا دخول په طریقه د لحوق سره مراد وو. یعنې لحوق اول اصل غواړي، نو دا حرف تنبیه به زائد وي، او هغه مدخول به اصل وي، نو دې اشارې دپاره لفظ ق راوړو

**والعروض**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: لحوق خو ذکر د شي ته وایي په آخر کې او دا حروف تنبیه خو اول کې راځي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې لحوق نه مطلب دا چې دا اسمآء اشارات اصل دی او دا حرف تنبیه ورلره عارض دی

**وهي کلمة ها**: چا به ویل چې ټول حروف تنبیه به مراد وي، نو ده ویل چې صرف هآء حرف تنبیه

مراد ده.

وانما حرف الخ: مقصد دادی، چې په ابتداء کې هم کله کله هاء د تنبیه راځي. مثال یې دادی، لکه هازیدٌ قائمٌ ها ان زیداً قائمٌ.

ویتصل بها: کله چې فارغ شو ماتن د یو حکم د اسمآء اشاراتو نه نو شروع یې وکړه په دوهم حکم د اسمآء اشاراة کې او هغه دادی، چې اسمآء اشارات سره کله کله حرف خطاب متصل کېږي.

باواخر: غرض د شارح دفع د وهم ده، چا به وېل چې څنګه مخکې لحوق په معنی د دخول سره وو، نو دلته به هم اتصال په معنی د دخول سره وي او دخول خو مخکې وروستو دواړو طرف ته راځي حالانکه حرف خطاب خو صرف آخر سره متصل کېږي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې اتصال نه مراد په آخر کې متصل کیدل دي.

اسماء الاشاراة: غرض د شارح د بها ضمیر مرجع متعین کول دي.

وهوالکاف: چا به ویل چې حرف الخطاب نه به کلمة الخطاب مراد وي، چې انت ده حالانکه هغه خو دلته نه راځي؟ شارح دا وهم دفع کړو، چې حرف الخطاب نه مراد دغه کاف دی.

تنبیها الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا حرف خطاب ولې متصل کوې؟

**جواب:** نو شارح جواب وکړو، چې دې سره مقصد دمخاطب حال معلومول وي، چې هغه مفرد دی که تثنیه ده که جمع دی. مذکر دی او که مؤنث دی، مثلاً ذلك اسم اشاره د مذکر ده او د ك نه معلوم شوه چې مخاطب یو دی.

وانما جعلت الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** ته وایې چې دا کاف حرف دی نو ددې دپاره د تاسره څه دلیل دی؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې دلیل دا دی چې که چیرته دا کاف اسم وي، نو وقوع د اسم ظاهر به ددې په ځای جائز وي، خو چې کله ددې په ځای وقوع د اسم ظاهر نه کېږي، نو معلومه شوه چې دا حرف دی. مثال دادی، چې ضربتك او بك کې د كاف په ځای اسم ظاهر راتلل صحیح کېږي او نو دې کاف ته به اسمي وایو، لیکن د ذلك د کاف په ځای اسم ظاهر نه

صحیح کیږي، نو دې ته کاف حرفي ویلی شي.

**سوال:** اضرب ولا تضرب کې چې دننه کوم ضمیر دی نو د هغې په ځای خو هم اسم ظاهر نه شي واقع کیدې، باید چې هغه دی هم حرف شي حالانکه هغې ته خو اسم ویلې شي؟

**جواب:** مراد زمونږ د ملفوظ حرف خبره ده او د اضرب ضمیر منوي دی.

**سوال:** اضرب دا ضمیر منوي خو هم حکماً لفظ دی؟

**جواب:** د اصل سوال نه جواب دادی، چې دې ته حرف خطاب ځکه وایو چې صلاحیت د مسند الیه په کې نشته. که دا اسم وي نو مسند الیه به راتلو، ځکه اسم مسند او مسندالیه دواړه واقع کیږي.

## حروف خطاب:

وَ هِيَ اَیْ حُرُوْفُ الْخِطَابِ خَمْسَةٌ وَ الْقِيَاسُ يَقْتَضِي السِّتَّةَ وَ اشْتَرَکَ خِطَابُ الْاِثْنَيْنِ وَ رَجَعَتْ اِلٰى

اودا یعنې حروف دخطاب پنځه دي قیاس تقاضادشپږوکوي لکن شریک شوخطاب ددووا وراجع شو

خَمْسَةٌ مَضْرُوْبَةٍ فِيْ خَمْسَةٍ مِنْ اَنْوَاعِ اَسْمَاءِ الْاِشَارَةِ يَعْنِي الْمُفْرَدَ الْمُذَكَّرَ وَ الْمُؤَنَّثَ وَ مُثَنَّاهُمَا وَ جَمْعُهُمَا

پنځوته چې ضرب شوې په پنځونوعوداسماءاشاراتونه یعنې مفردمذکراومؤنث اوتثنیه ددوي اوجمع

وَ هِيَ سِتَّةٌ رَاجِعَةٌ اِلٰى خَمْسَةٍ لِاِشْتِرَاکِ جَمْعِهِمَا وَ اِنَّمَا قُلْنَا مِنْ

ددوي اوداشپږاقسام دي چې رجع يې پنځو ته کیږي ځکه چې جمع يې مشترکه ده اومونږوویل چې

اَنْوَاعِ اَسْمَاءِ الْاِشَارَةِ لِاَنَّ اَفْرَادَ الْمُفْرَدِ الْمُؤَنَّثِ تَرْتَقِيْ اِلٰى سِتَّةٍ فَيَكُوْنَ اَيِ الْحَاصِلَ مِنَ الضَّرْبِ خَمْسَةً

انواع داسماء اشاراتوځکه چې افراددمفردمؤنث رسیږي شپږوته نووي به یعنې حاصل دضرب نه پنځه

وَ عِشْرِيْنَ وَ هِيَ اَیْ تِلْکَ الْخَمْسَةِ وَ الْعِشْرُوْنَ ذَاکَ اِلٰى ذَاكُنَّ يَعْنِيْ ذَاکَ اِذَا اَشَرْتَ اِلٰى

ویشت اودا یعنې پنځه ویشت اقسام دذاک نه ترذاکن پورې یعنې ذاک چې کله ته اشاره وکړې پرې

مُذَكَّرٍ وَ خَاطَبْتَ مُذَكَّرًا وَ ذَاكُمَا اِذَا اَشَرْتَ اِلٰى مُذَكَّرٍ وَ خَاطَبْتَ

مذکرته او مخاطب کړې پرې مذکر اوذاکماچې کله ته اشاره پرې کوې مذکرته اومخاطب کوې دوه

مُذَكَّرَيْنِ وَ ذَاكُمْ اِذَا اَشَرْتَ اِلٰى مُذَكَّرٍ وَ خَاطَبْتَ مُذَكَّرِيْنَ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ ذَانِکَ وَ

دوه مذکراوذاکم چې کله ته اشاره پرې کوې مذکرته اومخاطب کوې ډیرمذکراوهمداسې ذانک او

ذَيْنِکَ اِذَا اَشَرْتَ اِلٰى مُذَكَّرَيْنِ وَ خَاطَبْتَ مُذَكَّرًا اِلٰى ذَانِكُنَّ وَ ذَيْنِكُنَّ اِذَا

| ذینک چې کله اشاره کوي دوه مذکروته او خطاب کوي مذکرته تر ذانکن پورې او ذینکن کله چې ته |
|---|
| اَشَرْتَ اِلٰى مُذَكَّرَيْنِ وَ خَاطَبْتَ مُؤَنَّثَاتٍ وَ كَذَا الْبَوَاقِيْ يَعْنِيْ تَاكَ |
| اشاره وکړې ډیرومذکروته اومخاطب کوي ډیرمؤنثات اوهمدا حکم دباقي نورودي چې هغه تاک دي |
| اِلٰى تَاكُنَّ وَ تَيْكَ اِلٰى تَيْكُنَّ وَ تَانِكَ وَ تَيْنِكَ اِلٰى تَانِكُنَّ وَ تَيْنِكُنَّ وَ اُولٰئِكَ بِالْمَدِّ وَ اُولَاكَ بِالْقَصْرِ اِلٰى |
| ترتاکن پورې اوتیک ترتیکن اوتانک اوتینک ترتانکن پورې اواولئک په مدسره اواولاک په قصرسره تر |
| اُولٰئِكُنَّ وَ اُولَاكُنَّ وَ اَمَّا ذَيْكَ فَقَدْ اَوْرَدَهُ الزَّمَخْشَرِيُّ وَ الْمَالِكِيُّ وَ فِي الصِّحَاحِ |
| اولئکن اواولاکن پورې اوهرچې ذیک دي هغه راوړې دي زمخشري اومالکي اوپه صحاح کتاب کې |
| لَا تَقُلْ ذَيْكَ فَاِنَّهٗ خَطَأٌ وَ يُقَالُ ذَا لِلْقَرِيْبِ وَ ذٰلِكَ لِلْبَعِيْدِ وَ ذَاكَ لِلْمُتَوَسِّطِ |
| دي چې مه وایې ذیک ځکه چې دا خطا دي، ویل کیږي دا دنزدې دپاره اوذلک دلرې دپاره اوذاک دمتوسط |
| وَ اَخَّرَ الْمُتَوَسِّطَ لِاَنَّ التَّوَسُّطَ لَا يَتَحَقَّقُ اِلَّا بَعْدَ تَحَقُّقِ الطَّرَفَيْنِ. |
| دپاره اومتوسط یې ځکه وروستو کړو چې تحقق ددې نه راځي مګر وروستو دتحقق دطرفینو نه. |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره حروف خطاب ذکر کوي چې حروف خطاب په پنځه قسمه دي.

**اغراض دجامي:** وهي: کله چې فارغ شو ماتن د دوه احکامو د اسمآء اشارات نه، نو شروع یې وکړه په اقسامو د اسمآء اشاراتو کې، اول تقسیم په اعتبار د لحوق د کاف خطابي سره دی په دې اعتبار سره د ضمائرو پنځه ویشت اقسام نقل کوي، ځکه د اسمآء اشارة پنځه صیغې دي او حروف خطابه خو عقل وایي، چې شپږ شي ،لیکن حرف خطابه د تثنیه مذکر مؤنث مشترك دي، نو پېنځه حروف شو او هرې صیغې سره چې پېنځه حروف راځي، نو ټول پنځه ویشت (۲۵) اقسام شو.

اي حروف الخطاب: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي، دوهم غرض دفع د یو سوال ده:

**سوال:** ظاهره داده، چې ضمیر مخکې حرف ته راجع دی نو مطابقت نشته په مینځ د ضمیر او مرجع کې؟

**جواب:** ددې نه خلکو ډیر جوابونه کړي دي تانیث د ضمیر په اعتبار د خبر سره دی او دا بنآء دی په هغه قاعده باندې چې کله ضمیر دائر شي په مینځ د مرجع او حبر کې نو رعایة د

خبر اولى دى، دلته رعايت د خبر ساتلې شوې دى. ضمير اسماء اشارات ته راجع دى او هغه جمع مكسر ده، ضمير د واحد مونث ورته راجع كيدې شي، معنى هغه حرف خطاب چې د اسماء اشارات سره ملحق كېږي، ليكن دا دوه جوابونه غير ظاهر وو، نو شارح دريم جواب وكړو، چې ضمير حروف الخطاب ته راجع دى او حروف جمع مكسر ده ضمير د واحد مؤنث ورته راجع كيدې شي.

خمسةً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: قاعده داده، چې معدود مذكر وي، نو عدد مؤنث راوړى شي. او چې معدود په مفرداتو كې مونث وي، نو عدد مذكر راوړى شي، نو دې مقام حرف معدود دى او دا په اعتبار د ماصدق عليه سره مونث دى. لهذا عدد خمسٌ مذكر په كار وو؟

**جواب**: د حرف دا لفظ مذكر دى، نو ځكه عدد مونث راوړى شوى دى.

**دوهم جواب**: يا حرف مونث سماعي دى، نسبت د مذكر مؤنث دواړو ورته كيدې شي.

والقياس الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: چې مخاطب په شپږ قسمه دي، نو په كار وه چې حروف الخطاب شپږ وي.

و اشترك الخ: سره جواب طرف ته اشاره كوي، چې چونكه حرف خطاب تثنيه مذكر مؤنث هغه شريك دى، نو دا پنځه شو.

من انواع الخ: غرض د شارح تعيين د خمسة كول دي، چې دا خمسة د څه نه دى؟ نو ده ويل چې د انواعو د اسمآء اشاره نه دى چې هغه مفرد مذكر. مفرد مؤنث تثنيه مذكر، تثنيه مؤنث، جمع مذكر او جمع مؤنث دى، ليكن د جمعې صيغه په اسمآء اشاراتو كې مشترك ده، نو ددې رجمع خمسة ته كېږي.

و انما قلنا الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: دادى، چې افراد د اسمآء اشاراة دې ولې ونه ويلو؟

لان افراد الخ: سره جواب طرف ته اشاره كوي، چې افراد موځكه ونه ويلو چې هغه خو ډېر شى دى، صرف په واحده مونث كې شپږ لغات او افراد دي، چې حرف خطاب ورسره راځي.

**سوال**: په ځينو نسخو كې سبعةٌ ذكر دي؟

**جواب:** هغه نسخې صحيح نه دي، ځکه چې اووم لغت دې سره حرف خطاب راتلل صحيح نه دي.

<u>**فيكون اي الحاصل الخ**</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال:** ظاهره داده، چې ضمير به خمسةٌ ته راجع وي دا خو مطابقت نشته؟

**جواب:** ضمير الحاصل ته راجع دی او هغه مذکر دی. لهذا مطابقت نشته.

<u>**وهي اي تلك الخمسة والعشرون**</u>: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي.

<u>**ذاك الى ذاكن**</u>: يعنې چې اسم اشاره د مفرد مذکر وي او دغه پنځه قسمه حرف خطاب ورسره يو ځای کړې، نو پېنځه اقسام شو ذاك ذاکما، ذاکم، ذاك، ذاکن.

<u>**ذانك الى ذانكن الخ**</u>: يعنې چې اسم اشارة د تثنيه مذکر وي او دغه پنځه قسمه حرف خطاب ورسره يو ځای کړې، نو دا به هم پنځه قسم شي، لکه ذانك، ذانکما، ذانکم، ذانك، ذانکن.

<u>**يعنى تاك الى تاكن**</u>: يعنې چې اسم اشارة د مفرد مونث وي او دغه پنځه قسمه حرف خطاب ورسره يو ځای ورکړې، نو دا به هم پنځه قسمه شي، يعنې تاك، تاکما، تاکم، تاكِ، تاکن، دا شانته هغه نور. افراد ددې راواخله

<u>**وتانك وتينك الى تانكن وتينكن**</u>: يعنې چې اسم اشاره د تثنيه مونث وي او دا پنځه قسمه حرف خطاب ورسره يو ځای کړې. نو پنځه قسمه حاصل کېږي، لکه تانك تينك، تانکما، تينکما، تانکم، تينکم، تانك، تينك، تانکن، تينکن

<u>**واولئك الخ**</u>: يعنې اسم اشاره د جمع مذکر مونث وي او دغه پنځه قسمه حرف خطاب ورسره يو ځای کړې، نو پنځه قسمه به حاصل شي، لکه اولئكَ، اولئکما، اولئکم، اولئك، اولئکن، په هر حال د حرف خطاب د اتصال په اعتبار سره پنځه ويشت قسمه حاصل شو.

<u>**واما ذيك**</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال:** مخکې تا دا وويل چې افراد د مونث شپږو ته رسيږي، حالانکه دا خو اوه دي. ذيِ په کې هم شامل دي نو دا عبارت دې صحيح نه شو؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې ذي سره حرف خطاب اګر چې زمحشري په مفصل کې او

مالكي په تسهيل كې نقل كړى دى او دوى په نورو افرادو ددې قياس كړى دى. ليكن دا صحيح نه ده ځكه علامه جوهري په صحاح كې فرمايي، چې لا تقل ذيك فانه خطاء.

ويقال: كله چې فارغ شو ماتن د دوه تقسيماتو نه په اسمآء اشاراتو كې نو اوس يې شروع وكړه په دريم تقسيم د اسمآء اشاراتو كې چې په اعتبار د مسافت سره دى، ځكه ځينې اسماء اشارات د قريب دپاره راځيو ځينې د بعيد دپاره او ځينې د متوسط دپاره راځي، نو دى وايي چې ويلى شي، چې ذا د پاره د قريب راځي، ځكه دې كې حروف كم دي. او كم والې د حروفو دا دلالت كوي، په كم والي د مسافت باندې. او ذلك دپاره د بعيد راځي. ځكه دې كې حروف زيات دي او زيادت د حروفو دلالت كوي په زيادت د مسافت باندې او ذاك دپاره د توسط راځي، ځكه دې كې حروف متوسط دي او توسط د حروفو دلالت كوي په توسط د مسافت باندې.

واخر المتوسط الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: څه وجه ده، چې ماتن په ترتيب ذكر كې د ترتيب طبعي نه خلاف كړى دى، ځكه طبع كې اول قريب بيا متوسط او بيا بعيد وي، او ماتن اول قريب دوهم بعيد او دريم متوسط ذكر كړو؟

**جواب**: ماتن اګر چې يو طبعي نه خلاف كړى دى، ليكن د طبع د تحقق خلاف يې ساتلى دى او هغه دا، چې توسط هله متحقق كېږي، چې اول او آخر متحقق شي يا داسې ووايه چې تحقق د متوسط پس د تحقق د حاشينو نه راځي.

وَ لَمَّا رَاَى الْمُصَنِّفُ كَثْرَةَ اسْتِعْمَالِ كُلٍّ مِنْ هٰذِهِ الْكَلِمَاتِ الثَّلٰثِ مَقَامَ الْاُخْرَيَيْنِ مِنْهَا لَمْ يَتَّخِذْ هٰذَا الْفَرْقَ

اوكله چې وليدل مصنف كثرتِ استعمال هريو دغه دريو كلماتو په ځاى دبل نوغوره يې نه كړو دغه فرق

مَذْهَبًا وَ اَحَالَهُ اِلٰى غَيْرِهٖ فَقَالَ وَ يُقَالُ وَ تِلْكَ وَ تَانِكَ وَ ذَانِكَ حَالَ كَوْنِ هَاتَيْنِ

په اعتبار د مذهب سره بلكې وي ګرځولو بل ته نه نووي ويل چې ويل كيږي تلك وتانك وذانك چې دا

الْاَخِيْرَتَيْنِ مُشَدَّدَتَيْنِ وَ اُولَالِكَ بِاللَّامِ اَيْ هٰذِهِ الْكَلِمَاتِ الْاَرْبَعِ مِثْلُ كَلِمَةِ ذٰلِكَ فِيْ اِفَادَةِ

دواړه آخري مشدد وي او اولالك په لام سره يعنې دا څلور كلمات په شان د كلمې د ذلك دي په فائدې

الْبُعْدِ وَ لَا يُبْعَدُ اَنْ يَجْعَلَ ذٰلِكَ اِشَارَةً اِلٰى كَلِمَةِ ذٰلِكَ الْمَذْكُوْرِ سَابِقًا وَ اَمَّا تَاكَ وَ

وركولو دبعد كې اوبعيده نه ده چې وګرځول شي ذلك اشاره كلمې د ذلك مخكيني ته او هرچې تاك او

| |
|---|
| ذانِکَ وَ تَانِکَ مُخَفَّفَتَيْنِ وَ اُولَاکَ بِغَيْرِ اللَّامِ فَلِلْمُتَوَسِّطِ وَ مَا هُوَ لِلْمُتَوَسِّطِ |
| ذانک او تانک چې مخفف وي او اولاک په غير د لام نه راځي دپاره د متوسط او هغه څه چې د متوسط دپاره دوي |
| بَعْدَ حَذْفِ حَرْفِ الْخِطَابِ مِنْهُ لِلْقَرِيْبِ وَ اَمَّا ثَمَّ وَ هُنَا بِضَمِّ الْهَاءِ وَ |
| وروستو د حذف کولو د حرف خطاب د هغې نه راځي دپاره د نزدې او هرچې ثَمَّ او هنا دي په ضم د هاء او په |
| تَخْفِيْفِ النُّوْنِ وَ هَنَّا بِفَتْحِ الْهَاءِ وَ تَشْدِيْدِ النُّوْنِ وَ هُوَ الْاَكْثَرُ وَ جَاءَ كَسْرُ الْهَاءِ اَيْضًا |
| تخفيف د نون سره او هنا په فتحې د هاء او په تشديد د نون سره او دا زيات راځي او کسره د هاء هم راغلې دا |
| فَلِلْمَكَانِ الْحَقِيْقِيِّ وَ الْحِسِّيِّ خَاصَّةً لَا تَسْتَعْمِلُ فِيْ غَيْرِهِ اِلَّا مَجَازًا عَلٰى سَبِيْلِ |
| راځي دپاره د مکان حقيقي او حسي وي خاص دي نه استعماليږي په غير د دې کې مګر مجازا په طريقې |
| التَّشْبِيْهِ وَ اَمَّا مَا عَدَاهَا مِنْ اَسْمَاءِ الْاِشَارَةِ فَقَدْ يَسْتَعْمِلُ فِي الْمَكَانِ وَ غَيْرِهِ. |
| د تشبيه سره او هرچې نور اسماء اشارات دي نو کله استعماليږي په مکان او غير مکان کې. |

**اغراض د جامي** : ولما رأى الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: مصنف عمده شخص دی او کلام د عمده کې تغيير د نکتې نه خالي نه وي اوس مخکې چې څومره مسائل ماتن ذکر کړو، نو په يقيني طريقې سره يې ذکر کړي دي او په بل خاى يې حواله نه ده ورکړې، او دلته چې وروستو کوم مسائل ذکر کوي نو يقينا نه دي ذکر کړي، بلکې حواله يې په بل ورکړې ده دا ولې؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې کله مصنف وکتل چې د هر مقاماتو کې دا د يو بل په ځاى استعماليدو، نو د دې وجې رأيې خپل مذهب ونه ګرځوو، بلکې په بل چا يې حواله ورکړه.

**سوال**: علامه عصام وايي چې ده لره په بل چا حواله ورکول نه وو په کار، ځکه يو حرف د بل حرف په معنى مجازاً استعماليږي نو ده به معنى حقيقي ذکر کړې وي، او بيا به يې ويلي وو چې غير د دې کې مجازاً راځي؟

**جواب**: مونږ وايو چې مجاز خو هغه وي چې کله کله يو حرف د بل په معنى راشي او دلته دا الفاظ د يو بل په معنى کثير راځي. د دې ته مونږ مجاز نه شو ويلى، د دې وجې داده خپل مذهب ونه ګرځوو.

وتلك الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: چې تا کوم تقسيم ذکر کړو، نو دا خو صرف اسم اشاره د مفرد مذکر کې وو، اوس دې

باقي اسمآء اشاراتو کې به څنګه راځي؟

**جواب**: ماتن د باقي اسمآء اشاراتو نه صرف د بعید هغه صورتونه ذکر کوي، او هغه قریب او متوسط ترې معلومېږي، لکه **تلك** دپاره د مفرد مونث بعید راځي او د متوسط دپاره **تاك** راځي او د قریب دپاره **تا** راځي. همدارنګې **تانك** مشدد د تثنیه مونث بعید دپاره راځي، او د متوسط دپاره **تانك** مخفف راځي، او د قریب دپاره **تان** راځي. همدارنګې **ذانك** مشدد د تثنیه مذکر بعید دپاره راځي د متوسط دپاره **ذانك** مخفف راځي، او د قریب دپاره **ذان** راځي. همدارنګې د جمع مذکر مونث بعید دپاره **اولالك** راځي او د متوسط دپاره **اولئك** راځي او د قریب دپاره **اولاء** راځي.

حال کون الخ: غرض د شارح وجه د نصب د مشددتین ذکر کول دي، او بل غرض دفع د یو سوال ده:

**سوال**: چا به ویل چې دا مشددتین به ما قبل تولو سره تعلق ساتي. نو بیا حمل نه صحیح کېږي، ځکه حمل د تثنیه په جمع راځي، نو شارح وویل چې دا صرف ددې آخري دوو نه حال دی.

بیا فاضل هندي وایي، چې ددې حال دپاره عامل معنوي دی، چې **یشبه** دی او د تشبیه د مثل نه معلومېږي، نو بیا پرې سوال راځي:

**سوال**: چې دا خو تقدیم د حال په عامل معنوي راغلو او دا خو ناجائز دي؟

**جواب**: دا تقدیم د حال په عامل معنوي باندې په نزد دسیبویه ناجائز دی او په نزد د اخفش باندې جائز دی، کلام د ماتن بنآء دی په مذهب د اخفش باندې.

**دوهم جواب**: دادی چې تقدیم د حال په عامل معنوي هغه وخت ناروا دی، چې التباس نه راځي. او چې کله التباس راځي نو بیا تقدیم د حال په عامل معنوي جائز دی، لکه **زیدٌ قائماً کعمرٍ و قاعداً** کې که **زیدٌ کعمرٍ و قائماً قاعداً** ووایي، نو بیا التباس راځي، نو دلته تقدیم د حال په عامل معنوي جائز دی، همدارنګې په دغه مذکور مقام کې هم د دفع د التباس دپاره حال مقدم شوي دی.

**دریم جواب**: دادی، چې تقدیم د حال په عامل معنوي باندې هغه وخت ناروا دی، چې

مبتداء مخکې نه وي ذکر، لکه په زيدٌ في الدار قائماً کې قائماً زيدٌ في الدار ووايي، نو دا ناروا دی او که زيدٌ قائماً في الدار ووايي نو دا جائز دی، نو دلته هم صحيح ده چې تقديم د حال په عامل معنوي شوی دی، ليکن تان ذان مبتداء مخکې ذکر ده نو تقديم د حال دلته جائز دی.

بيا په دې مقام کې بل اختلاف دادی، چې هغه اختلاف په لفظ د ذالك کې دی، مبرد وايي چې اصل کې ذان لك وو، نون لام قريب المخرج وو لام په نون بدل شو او نون په نون کې مدغم شو، نو ذالك شو.

**سوال**: دا خو د قاعدې د ادغام نه خلاف وشو، ځکه قاعده د ادغام داده، چې اول به ثاني حرف سره بدلېږي، او بيا به اول حرف ثاني کې مدغم کېږي، او دلته خو عکس وشو؟

**جواب**: دا خلاف مو د مجبوری نه کړی دی او هغه دا چې که مونږ موافقت ددې قاعدې وکړو، نو لام به مو رامخکې کوو او دلام به بيا په نون سره بدلوو، نو ذانك لك نه به ذالنك جوړ شي او بيا چې دغه لام په نون بدل کړو، نو ادغام به کوو، ليکن دې سره لازمېږي دخول د لام په نون باندې قبل تمام الکلمة او دا ناجائز دي، نو ددغه نقصان نه د بچ کيدو دپاره مونږ قاعده د ادغام نه خلاف وکړو، او بيا مو په دغه طريقه ادغام وکړو، جمهور وايي چې ذالك کې يو نون د تثنيه دی او دوهم نون عوض د الف محذوفه دی، د ذا ځکه د التقاء ساکنين د وجې دغه الف تثنيه کې د ذانه غورځېدلی وو، نو مونږ د هغې عوض کې نون راوړو او ادغام مو وکړو، نو ذالك شو.

مثل ذلك: يعني دا څلور واړه کلمات په شان د ذلك دي، بيا چونکه په دې ذلك کې دوه احتماله وو. شارح هغه دواړه ذکر کړي دي، يو دا چې ددې نه مراد لفظ د ذلك شي بيا وجه د مشابهت داده، چې څنګه ذلك افاده د بعد ورکوي، نو دا څلور کلمات هم د افادې د بعد دپاره راځي، او دوهم دا چې مراد ددې نه مدلول د ذلك شي، نو بيا مطلب دادی، چې دا کلمات په شان د معنی د کلمه د ذلك دي، چې مخکې مذکور ده.

واما تاك الخ: دې سره ددغه اسمآء اشاراتو د متوسط صيغې ذکر کوي، تاك مفرد مؤنث متوسط دپاره تانك تثنيه مونث متوسط دپاره ذانك تثنيه مذکر متوسط دپاره اولاك يا اولئك د جمع مذکر مونث متوسط دپاره راځي.

وما هو للمتوسط الخ: دې عبارت سره شارح د دغه څلور اسمآء اشاراتو د قريب صيغې ذکر کوي، نو وايي چې د توسط دپاره کومې صيغې راتلې، نو د هغې نه حرف خطاب حذف کړه، نو دغه صيغې د قريب دي، يعنې تا، ذان، تان، اولآء.

واما ثم وهنا: کله چې فارغ شو ماتن د درې تقسيماتو نه په اسمآء اشاراتو کې نو شروع يې وکړه په څلورم تقسيم د اسمآء اشاراتو کې چې دا په اعتبار د زمان او مکان سره دی، تر اوسه پورې چې څومره ضمائر او صيغې ذکر شوې دا د زمان دپاره وو، اوس د مکان دپاره ذکر کوي، په دې سره يو سوال دفع شو:

**سوال:** دا ثم اوهنا ته د اسماء اشاراتو نه وايي او که نه، که وايې نو تا مخکې ولې ذکر نه کړو او که نه وايې نو اوس يې ولې ذکر کوي؟

**جواب:** دا زه په اسماء اشاراتو کې وايم هم او نه وايم هم. په اسماء اشاراتو کې وايم، نو ځکه مې دلته ذکر کړه او نه وايم يې داسې هغه مخکې د زمان دپاره وو او دا دمکان دپاره راځي، نو په هغې کې مې ذکر نه کړه. بيا په دې هنا کې درې لغات دي، هنا په فتحه د هاء او نون مخففه سره هَنَّا په فتحې د هاء او نون مشد ده سره هِنَّا په کسرې د هاء او نون مشدد سره نو دا دواړه اسمآء اشاراة د مکان دپاره راځي.

**سوال:** چا به ويل چې مکان به کون نه وي په معنی د ثابت سره به وي؟

**جواب:** نو شارح جواب وکړو په الحقيقي سره چې دلته مراد د الحقيقي نه هغه حقيقي مکان مراد دی.

**سوال:** بيا به چا وويل چې ظرف مکان او زمان دواړه به مراد وي نو ده ويل چې الحسي صرف هغه محسوس مکان مراد دی.

لا تستعمل: د خاصة د قيد فائده ذکر کوي، يعنې د مکان نه علاوه بل څه کې نه مستعملېږي، خو مجازاً راځي، لکه هنالك الولاية لله الحق.

## تعريف د اسم موصول:

| اَلْمَوْصُوْلُ اَيِ الْمَوْصُوْلُ الْمَعْدُوْدُ مِنَ الْمَبْنِيَّاتِ فِيْ اِصْطِلَاحِ النُّحَاةِ مَا لَا يَتِمُّ |
|---|
| موصول يعني هغه موصول چې شمارېږي دمبنياتو نه په اصطلاح دنحاتو هغه اسم دي چې نه پوره کېږي |

| جُزْءًا اَیْ اِسْمٌ لَا یَتِمُّ مِنْ حَیْثُ جُزْئِیَّتِهٖ یَعْنِیْ لَا یَکُوْنُ جُزْءًا تَامًّا اِنْ کَانَ |
|---|
| دحيثيت دجزئيت نه يعني داسې اسم چې نه پوره کيږي دحيثيت دجز ءنه يعني نه وي جزء تام که چيرته |
| جُزْءًا تَمْیِیْزًا اَوْ لَا یَصِیْرُ جُزْءًا تَامًّا اِنْ کَانَ یَتِمُّ مِنَ الْاَفْعَالِ النَّاقِصَةِ وَ الْمُرَادُ بِالْجُزْءِ التَّامِ مَا |
| جزتميزوي اويانه نونه ګرځي جزء تام که چيرته تاميدودافعال ناقصو نه اومرادپه جزءتام سره هغه دي |
| لَا یَحْتَاجُ فِیْ کَوْنِهٖ جُزْءًا اَوَّلِیًّا یَنْحَلُّ اِلَیْهِ الْمُرَکَّبُ اَوَّلًا اِلَی انْضِمَامِ اَمْرٍ |
| چې نه وي محتاج په کيدودهغې کې جزءداولي چې متحمل کيږي دې ته مرکب اولاًدپاره دانضمام دامر |
| آخَرَ مَعَهٗ کَالْمُبْتَدَاءِ وَ الْخَبَرِ وَ الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ وَ غَیْرِهَا وَ اِنَّمَا نَفٰی کَوْنِهٖ جُزْءًا تَامًّا لَا جُزْءًا مُطْلَقًا |
| آخردې سره لکه مبتداا وخبراوفاعل اومفعول وغيره اونفي ددې وشوه چې جزءتام به وي نه مطلق جزء |
| لِاَنَّهٗ اِذَا کَانَ مَجْمُوْعُ الْمَوْصُوْلِ وَالصِّلَةِ جُزْءًا مِنَ الْمُرَکَّبِ یَکُوْنُ الْمَوْصُوْلُ وَحْدَهٗ اَیْضًا جُزْءًا لٰکِنْ لَا جُزْءًا تَامًّا |
| ځکه چې کله ومجموع دموصول اوصولې جزءدمرکب نه نووي به موصول يواځې هم جزءلکن نه جزء تام |
| اَوَّلِیًّا اِلَّا بِصِلَةٍ وَ عَائِدٍ. |
| اولي مګرپه صلې او عائدسره. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره د موصول تعريف کوي.

**اغراض دجامي** : الموصول: کله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د دوه اقسامو د اسم مبني نه، چې مضمرات او اسمآء اشارات وو، نو شروع يې وکړه په تفصيل د دريم قسم د اسم مبني کې، چې موصولات دي.

نو دلته دوه سوالات مخې ته راځي:

**اول سوال** : نفس تفصيل ولې کوي؟

**جواب:** نفس تفصيل خو ځکه کوي، چې تفصيل بعدالاجمال اوقع فی الذهن وي، دوهمه وجه داده چې اسمآء موصولات تفصيل ته محتاج دي او تفصيل يې نه دی شوې او کوم شی چې تفصيل ته محتاج وي او تفصيل يې نه وي شوی، نو د هغې تفصيل په کار وي.

**دوهم سوال** :تفصيل په دې مقام کې ولې کوي؟

**جواب** :تفصيل يې په دې مقام کې ځکه ذکر کوي، چې اجمال کې په دې مقام کې ذکروو. او اجمال کې په دې مقام کې ځکه ذکروو، چې د موصولاتو د اسمآء اشاراتو سره مناسبت دی يو خو په دې وجه چې دې دواړو کې ابهام دی، ځکه اسمآء اشاراة په غير د تعيين د مشارٌ اليه نه

مبهم وي همدارنګې اسمآء موصولات په غير د صلې نه هم مبهم وي او ددې وجې نه په نحومير کې دا دواړه په دې نوم سره يو قسم ګرځولې دی. دوهم مناسبت په دې وجه دی، چې وجه د بنآء د دواړو يوه ده، ځکه اسمآء اشاراتو کې وجه د بنآء شبه افتقاري وه او موصولاتو کې وجه د بنآء هم شبه افتقاري ده. دريم مناسبت په دې وجه دی، چې د دواړو صيغې يو بل سره مناسب دي. اسمآء موصولات کې هم د اسمآء اشارة په شان د تثنيه دوه حالتونه راځي، او باقي صيغې يو يو دي او دې کې هم ځينې صيغو کې ډير افراد دي، نو ددې مناسبات ثلاثه د وجې اسمآء موصولات د اسمآء اشارة پسې راوړل.

**سوال**: دا تفصيل دې موافق د اجمال سره نه دی، ځکه په اجمال کې الموصولات جمع وه او دلته په تفصيل کې دې مفرد راوړو؟

**جواب**: دا مقام د تعريف دی، او تعريف د جنس کيږي د جمع نه کيږي.

**وجه د بنآء**: وجه د بنآء يې داده، چې اسمآء موصولات مشابه دي د حروفو سره په احتياج کې يا په وضع کې او يا په نيابت کې يعني لکه څنګه چې حروف په خپله معنی ورکولو کې ضم د ضميمې ته محتاج وي نو همدارنګې اسمآء موصولات هم صلې ته محتاج وي، دې ته شبه افتقاري وايي. يا په وضع کې داسې مشابه وي، چې د حروفو وضع په کم د درې حروفو نه شوې ده. او من ما کې هم دوه حروف دي، باقي اسمآء موصولات په دې حمل دي طردًا للباب او دې ته شبه وضعي وايي. يا مشابهت نيابتي دی او هغه داسې چې په کار وه، چې موصول دپاره وضع د حروفو شوې وه، خو چې کله دې لره اسمآء وضع شو، نو دا د حروفو قائمقام شو او حروف مبني وو، نو د هغې د نيابت د وجې دا هم مبني شو.

<u>اى الموصول المعدود الخ</u>: غرض د شارح دفع د وهم ده:

**وهم**: چا به ويل چې دلته مفرد موصول راغلو، نو دا به غير د اجمال والاموصولات نه وي، حالانکه دا خو صحيح نه ده؟

**جواب**: شارح دغه وهم دفع کړه، چې په اجمال کې هغه شمېرلی شوي موصولات مراد دي، او قرينه داده، چې معرفه کله معاد شي معرفې ته، نو ثاني عين اول وي.

<u>في اصطلاح النحاة</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: تعريف دې صحيح نه دی، ځکه دې کې اخذ د محدود په حد کې راځي، او هغه داسې چې ته د موصول تعريف کوې، او دا مشتقي دی او هر مشتقي کې خپل مشتق منه موجود وي، نو دلته دې کې صله پرته ده او وروستو تعريف کې هم لفظ د بصلة راغلی دی، نو اخذ د محدود په حد کې راغلو. او دا ناجائز ده؟

**جواب**: مونږ وايو چې دې معرف کې کومه صله پرته ده، نو دا مصطلح ده او تعريف کې لغوي صله مراد ده، نو اخذ د محدود په حد کې نه لازمېږي.

اي اسمٌ: چونکه ما مبهم وو نو شارح د هغې تعيين وکړو.

من حيث الخ: غرض د شارح د جزءِ منصوب دپاره وجه د نصب ذکر کوي، چې دا منصوب دی بنا برتمييز.

**سوال**: دا خو تمييز محول عن الفاعل دی، او تمييز محول عن الفاعل خو په معنی کې فاعل وي او دلته خو معنی د فاعليت نه صحيح کېږي، ځکه بيا به معنی شي چې نه تمامېږي جزء د موصول يعنې موصول خپله تام وي ليکن جزء يې ناتمام وي، حالانکه دا معنی صحيح نه ده؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا جزءً مصدر دی او مؤول دی په تاويل د جزئيت سره او کوم مصدر چې مؤول شي په تاويل د جزئيت سره نو مراد د هغې نه نفس د هغه شي وي، نو دلته مراد نفس د موصول دی، معنی چې نه تامېږي نفس ددې موصول او دا معنی صحيح ده.

لا يكون جزءً تامًّا: غرض د شارح حاصل د معنی ذکر کول دي.

او لا يصير الخ: غرض د شارح دوهم جواب کول دي، حاصل د هغې دا دی، چې دا جزءً منصوب دی بنا بر خبريت او که ته وايې چې د چا نه يې خبر وايې؟ نو مونږ وايو چې د يتم نه خبر دی او که ته وايې چې يتم خو فعل دی مبتداء نه ده؟ نو مونږ وايو چې دا فعل ناقص دی اسم او خبر غواړي اسم يې ضمير او دا ورلره خبر شو.

په دې ځای کې سوالات مخې ته راغلل:

**اول سوال**: په افعال ناقصه کې خو مونږ يتم نه دی ليدلی؟

**جواب**: هغه مذکور افعال ناقصه مشهور دي، ليکن محصور نه دي، د هغې نه علاوه نور غير مشهور افعال ناقصه هم شته. دا يتم د افعال ناقصه غير مشهوره نه دي.

**دوهم سوال**: ستا دې عبارت کې استدراك راغلو، ځکه اوله معنی داسې وه، لا یکون جزءً تاما او دوهمه معنی داسې شوه چې: لا یصیر جزءً تاما دې کې څو فرق نشته؟

**جواب**: هغه اول مونږ حاصل معنی ذکر کړې وه، نو اول معنی کې دا تمییز دی او دې دوهمه کې خبر د فعل ناقص دی.

**دریم سوال**: افعال ناقصه خو نور هم ډیر دي، نو دا لا یتم په معنی د لا یصیر ولې ګرځوې د کان په معنی سره یې وګرځوه کنه ؟

**جواب**: دا لا یتم د افعال ناقصه غیر مشهوره نه دی او دغه افعال خپله معنی نه ورکوي، بلکې ددې مشهور افعال ناقصه په معنی سره راځي، او دې کې بیا د صار په معنی سره راځي، دې سره د هغه دوهم سوال جواب هم وشو، چې خاص کر د صاد په معنی سره ولې ګرځوې، نو مونږ جواب وکړو، چې افعال ناقصه مشهور کې صاد مشهور دی.

والمراد الخ : په دې عبارت سره غرض د شارح رد کول دي په فاضل رضي باندې، چې هغه د جزء تام معنی کړې ده رکن في الکلام سره او د رکن في الکلام اطلاق صرف په هغه کېږي، چې کوم شی مسند مسند الیه واقع کېږي، او په مفعول به یې اطلاق نه کېږي، نو شارح پرې رد کوي، چې مراد په جزء تام سره رکن في الکلام نه دی، بلکې مراد په جزء تام سره هغه شی دی، چې د مرکب په انحلال اولی سره انضمام د شي آخر ته محتاج نه وي، لکه په زیدٌ قائمٌ ابوه کې انحلال وکړې نو زیدٌ هم جزء تام دی او قائمٌ ابوه هم جزء تام دی، خو په خلاف د الذی قام زیدٌ سره چې کله ددې انحلال وکړې نو الذي ځان لره جزء تام نه ګرځي، بلکې انضمام د صلې ته محتاج دی، په دې مراد اخیستو سره مفعول به هم په دې کې داخل شو

وانما نفی کونه الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي.

**سوال**: ته چې نفي د جزء تام کوې نو د جزء مطلق نفي ولې نه کوې، ځکه چې جزء تام نه شو نو جزء ناقص خو به هم نه وي ؟

**جواب**: مونږ نفي د جزء مطلق نه کوو، بلکې د جزء تام کوو، ځکه موصول په غیر د صلې نه جزء تام نه دی، جزء ناقص خو دی.

الا بصلة الخ: غرض د ماتن د موصول تعریف تام کول دي.

وَ الْمُرَادُ بِالصِّلَةِ مَعْنَاهَا اللُّغَوِيُّ لَا الْاِصْطِلَاحِيُّ فَاِنَّ الْاِصْطِلَاحِيَّ عِبَارَةٌ عَنْ جُمْلَةٍ

اومراد په صلې سره معنی لغوي ده نه اصطلاحي ځکه چې اصطلاحي عبارت ده د جملې نه چې

مَذْكُوْرَةٍ بَعْدَ الْمَوْصُوْلِ مُشْتَمِلَةٍ عَلَى ضَمِيْرٍ عَائِدٍ اِلَيْهِ فَمَعْرِفَتُهَا

مذکوره وي وروستو د موصول نه مشتمله وي په داسې ضمیر چې عائد وي دې ته پس پيژندل د هغې

مَوْقُوْفَةٌ عَلَى مَعْرِفَةِ الْمَوْصُوْلِ فَلَوْ عَرَفَ الْمَوْصُوْلَ بِهَا لَزِمَ الدَّوْرُ وَ

موقوف دي په پيژندلو د موصول نو که چيرته تعریف د موصول وکړې شي په هغې سره لازم به شي دور او

الْقَرِيْنَةُ عَلَى اَنَّ الْمُرَادَ بِهَا مَعْنَاهَا اللُّغَوِيُّ لَا الْاِصْطِلَاحِيُّ قَوْلُهُ وَ عَائِدٍ فَاِنَّهُ

قرينه په دې چې مراد په صلې سره معنی لغوي ده نه اصطلاحي دا قول د مصنف چې وعائد ځکه که چيرته

لَوْ اُرِيْدَ بِهَا مَعْنَاهَا اِصْطِلَاحِيٌّ لَكَانَ هٰذَا الْقَوْلُ مُسْتَدْرِكًا لِاَنَّهُ

مراد کړې شي په صلې سره معنی اصطلاحي د هغې نو شي به دا قول قول بالاستدراک ځکه دا د پاره د

لَاِخْرَاجِ مِثْلُ اِذْ وَ حَيْثُ وَ لَيْسَ لَهُمَا صِلَةٌ اِصْطِلَاحِيَّةٌ وَ لِقَائِلٍ اَنْ

اخراج د مثل د اذ او حيث دي اونشته دې دواړو د پاره صله اصطلاحي معترض اعتراض کولې شي چې

يَّقُوْلَ يُمْكِنُ اَنْ تُعْرَفَ الصِّلَةُ بِمَا لَا تَتَوَقَّفُ مَعْرِفَتُهُ

وايې چې ممکن دي چې تعریف د صلې وکړل شي په دې چې صله هغه ده چې موقوف نه وي معرفت د هغې

عَلَى مَعْرِفَةِ الْمَوْصُوْلِ بِاَنْ يُّقَالَ الصِّلَةُ جُمْلَةٌ مُتَّصِلَةٌ بِاِسْمٍ لَا يَتِمُّ جُزْءًا

په معرفت د موصول سره چې وويل شي چې صله جمله متصله ده په اسم پورې چې نه پوره کيږي جزء د

اِلَّا مَعَ هٰذِهِ الْجُمْلَةِ مُشْتَمِلَةٌ عَلَى عَائِدٍ اِلَيْهِ فَعَلَى هٰذَا يَجُوْزُ

هغې مګر سره د دې جملې چې مشتمله وي دا جمله په عائد چې راجع وي دې صلې ته بناءپه دې بيان جائز

اَنْ يَّكُوْنَ الْمُرَادُ بِالصِّلَةِ مَعْنَاهَا الْاِصْطِلَاحِيَّ وَ لَا يَلْزِمُ الدَّوْرُ وَ ذِكْرَ الْعَائِدَ مَعَ اَنَّهُ

دي چې شي مراد په صلې سره معنی اصطلاحي د صلې او نه لازميږي دور او ذکر د عائد سره د دې چې دا

مَاخُوْذٌ فِيْ مَفْهُوْمِ الصِّلَةِ الْاِصْطِلَاحِيَّةِ تَصْرِيْحٌ بِمَا عُلِمَ ضِمْنًا

ماخوذ دي په مفهوم د صلې اصطلاحي کې دا تصريح د هغه شي ده کوم چې معلوم ضمنا و دې د پاره چې

مُبَالَغَةً فِي الْاِحْتِرَازِ عَنْ مِثْلِ اِذْ وَ حَيْثُ وَ لَمَّا كَانَتِ الصِّلَةُ بِمَعْنَيَيْهِ اَعَمُّ بِحَسْبِ الْمَفْهُوْمِ مِنْ

مبالغه وشي په احترازکې د مثل د اذ او د حيث نه او کله چې وه صله بعينه عامه په اعتبار د مفهوم سره چې

مِّنْ اَنْ تَكُوْنَ خَبَرِيَّةً اَوْ غَيْرَ خَبَرِيَّةٍ وَ لَا تَكُوْنُ بِحَسْبِ الْوَاقِعِ اِلَّا خَبَرِيَّةً

**خلاصه دمتن**: په دې مقام کې د صلې معنی مراد ذکر کوي.

**اغراض دجامي**: والمراد الخ: غرض د شارح تعیین د صلې کول دي او بل غرض دفع د يو سوال ده:

**سوال**: دې تعریف کې د مذکورې صلې نه صله لغوي اخلي او که اصطلاحي؟ که صله نه لغوي صله مراد شي، نو معنی لغوي په منزله د مجاز ده او مجاز قرینه غواړي، ددې څه قرینه ده؟ او که معنی اصطلاحي مراد اخلې نو د صله اصطلاحي په تعریف کې به لفظ د موصول راوړې یا نه، که راوړې نو اخذ د محدود راغلو په حد کې نو دور لازم شو او دا ناجائز دي او که ذکر د موصول نه کوې بلکې صرف جمله خبریه سره تعریف د صلې کوې، نو بیا خو هره جمله خبریه دې صله شي؟

**جواب**: حاصل د جواب دادی، چې مراد د صلې نه معنی لغوي ده او قرینه پرې وروستو قول عائد دی، ځکه که مونږ معنی اصطلاحي واخلو نو په تعریف کې عائد راغلی دی نو بیا ذکر ددې عائد متن مستدرك ګرځي، نو دا قرینه ددې ده چې مراد د صلې نه معنی لغوي ده. شارح هم دا وایي چې والمراد الخ یعني مراد په صلې سره معنی لغوي ده.

**سوال**: اصطلاحي صله ولې مراد نه اخلې؟

**جواب**: شارح جواب کوي، چې فانه الاصطلاحی الخ یعني که دصلې نه معنی اصطلاحي مراد کړو، نو بیا دَور لازمیږي. او هغه داسې چې د صلې اصطلاحي تعریف دادی: جملة مذکورة بعد الموصول مشتملة علی ضمیرٍ عائد الیه. نو معرفت د صلې په موصول موقوف شو. او مخکې معرفت د موصول په صلې موقوف شوی دی، دغه ته دور وایي.

**سوال**: په معنی لغوي اخیستو د تاسره څه قرینه ده؟

**جواب**: شارح جواب کوي، چې والقرینه الخ قرینه په معنی لغوي باندې دا لفظ د عائد دی، ځکه که معنی اصطلاحي واخلو نو تعریف کې دا لفظ د عائد مستدرك ګرځي، ځکه دا قید مونږ د حیث وغیره د ویستو دپاره لرولې دی، ځکه ددې دپاره صله اصطلاحي نه وي اوس چې دې تعریف کې صله اصطلاحي مراد شي، نو په هغې اصطلاحي تعریف کې عائد پټ پروت دی نو دا عائد ذکر کول مستدرك شو.

**ولقائل الخ**: غرض د شارح دوهم جواب کول دي، حاصل د هغې دادی، چې مراد په صلې سره صله اصطلاحي ده اوس که ته وایې دَور لازمېږي، یا هرې جملې خبریې ته صله شاملېږي؟ نو مونږ وایو چې مونږ د صلې داسې تعریف کوو، چې دور هم لازم نه شي، او هرې جملې خبریې ته هم شامل نه شي او هغه تعریف مونږ داسې کوو چې: **الصلة جملةٌ متصلةٌ باسم لا يتمّ جزءً الّا مع هذه الجملة مشتملةٌ على عائدٍ اليه**. د موصول په ځای مونږ اسم روا ړو نو اخذ د محدود په حد کې هم رانغلو او هرې جملې خبریې ته هم تعریف شامل نه شو.

**وذكر العائد الخ**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: که ته د صلې نه اصطلاحي صله مراد اخلې، نو ذکر د عائد مستدرك ګرځي، ځکه چې د مصطلح صلې په تعریف کې اذ حیث داخل نه وو، نو ذکر د عائد ددغه دواړو د ویستلو دپاره اخراج د مخرج دی او دا صحیح نه دی؟

**جواب**: ذکر کول د عائد سره ددې چې دا په مفهوم د مصطلح صله کې پروت دی لیکن دلته ددې ذکر **تصريح لما علم ضمناً** ده.

**سوال**: ددې په صراحت سره ذکر کولو کې فائده څه ده؟

**جواب**: دې کې مبالغه ده په احتراز کې د اذ او حیث نه.

**ولما كانت الخ**: غرض د شارح په دې عبارت سره تمهید دی ما بعد متن ته، ربط د ما بعد دی د ما قبل سره او دفع د یو سوال ده:

**سوال**: مقصود خو بحث د موصولاتو دی نو اشتغال د ماتن په بحث د صلې باندې اشتغال په غیر مقصود دی او اشتغال په غیر مقصود بنه کار نه دی؟

**جواب**: دا اشتغال په مقصود باندې دی، ځکه لفظ د صلې په تعریف کې ذکر وو، نو لابدي وه چې ددې وضاحت وشي دپاره د وضاحت د تعریف.

یا سوال دا دی، چې تا وویل چې صله جمله خبریه وي، حالانکه هره جمله خبریه صله نه جوړېږي؟ نو جواب دادې چې دا ذکر شده تعریف د صلې نه دی، بلکې دا وضاحت د صله کوي بیا شارح بمعنییه کې ضمیر د مذکر راجع کړو اشاره دې ته کوي چې کله ضمیر په مینځ د

شارح وايي ولا تكون بحسب الواقع الاخبرية .

وَ الْعَائِدُ اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ ضَمِيْرًا اَوْ غَيْرَهٗ وَ اِذَا كَانَ ضَمِيْرًا اَعَمُّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ لِلْمَوْصُوْلِ وَ

اوعائد عام دي كه ضمير اوياغير د ضمير نه اوچې كله ضمير عام وي د دې نه چې د موصول د پاره وي اويا

لِغَيْرِهٖ وَ الْوَاجِبُ اَنْ يَكُوْنَ ضَمِيْرًا لِلْمَوْصُوْلِ عَيَّنَهُمَا بِقَوْلِهٖ

غير د موصول نه اولازمي داده چې وي ضمير د پاره د موصول نو د دې وجې تعين وكړو مصنف په قول خپل

وَ صِلَتِهٖ اَىْ صِلَةُ مَا لَا يَتِمُّ جُزْءًا اِلَّا صِلَةُ جُمْلَةٌ خَبَرِيَّةٌ اَوْ مَا

سره چې وَصِلَتِهٖ يعني صله دهغې چې نه تماميږي خبر دهغې مگر په صلې سره جمله خبريه به وي ياهغه

فِيْ مَعْنَاهَا كَاِسْمِ الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ وَ الْعَائِدِ ضَمِيْرٌ لَا غَيْرُ ضَمِيْرٍ

چې په معنى د جملې خبرې سره وي لكه اسم فاعل اومفعول اوعائد په كې كه ضمير وي اوكه غير ضمير

لَهٗ اَىْ لِلْمَوْصُوْلِ لَا لِغَيْرِهٖ وَ صِلَةُ الْاَلِفِ وَ اللَّامِ اِسْمُ فَاعِلٍ وَ مَفْعُوْلٍ لِاَنَّ اللَّامَ

وي خاصتاً د موصول د پاره وي نه د بل د پاره اوصله د الف اولام اسم فاعل اومفعول دي ځكه چې لام

الْمَوْصُوْلَةَ تَشْبَهُ اللَّامَ الْحَرْفِيَّةَ فَجُعِلَتْ صِلَتُهَا مَا كَانَ جُمْلَةً مَعْنًى وَ مُفْرَدًا

موصوله مشابه دي د لام حرفيه سره پس وګرځول شوه صله دهغې كومه چې جمله ده معناً اومفرد دي

صُوْرَةً عَمَلًا بِالْحَقِيْقَةِ وَ الشِّبْهُ جَمِيْعًا وَ هِيَ اَيِ الْمَوْصُوْلَاتِ الَّذِيْ لِلْمُفْرَدِ

صورتا د دې د پاره چې عمل راشي هم حقيقتاً اوهم چې مشابه د حقيقت او دا يعني موصولات الذي د مفرد

الْمُذَكَّرِ وَ الَّتِيْ لِلْمُفْرَدِ الْمُؤَنَّثِ وَ اللَّذَانِ لِمُثَنَّى الْمُذَكَّرِ وَ اللَّتَانِ لِمُثَنَّى الْمُؤَنَّثِ وَ يَكُوْنَانِ

مذكر د پاره اوالتي د پاره د مفرد مؤنث اواللذان د پاره د مثنى مذكر اواللتان د پاره د مثنى مؤنث اووي دا

بِالْاَلِفِ فِيْ حَالِ الرَّفْعِ وَ الْيَاءِ فِيْ حَالِ النَّصْبِ وَ الْجَرِّ وَ الْاُوْلٰى عَلٰى وَزْنِ الْعُلٰى

دواړه په الف سره په حالت رفعي كې اوپه ياء سره په حالت نصبي اوجري كې اواولى په وزن دعلى د پاره

لِجَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ اِلَّا اَنَّهٗ فِيْ جَمْعِ الْمُذَكَّرِ اَشْهَرُ وَ الَّذِيْنَ كَاللَّاتِيْنَ

د جمع مذكر اومؤنث راځي ليكن دا په جمع مذكر كې زيات شهرت لري اواللذين په شان د اللاتين دي د

لِجَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَ اللَّائِيْ بِالْهَمْزَةِ وَ الْيَاءِ وَ اللَّاءِ بِالْهَمْزَةِ الْمَكْسُوْرَةِ فَقَطْ وَ اللَّائِيْ بِالْيَاءِ فَقَطْ

پاره د جمع مذكر اواللائي په همزې اوياء سره اواللاء په همزې مكسورې سره فقط اوواللاى په ياء سره فقط

مَكْسُوْرَةً اَوْ سَاكِنَةً اِجْرَاءً لِلْوَصْلِ مَجْرَى الْوَقْفِ لِجَمْعِ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ

مكسوره وي اوكه ساكنه وي د پاره د اجراد وصل په مجرى د وقف كې راځي د پاره د جمع مذكر اومؤنث

| إِلَّا أَنَّهَا فِيْ جَمْعِ الْمُؤَنَّثِ أَشْهَرُ وَ اللَّاتِيْ وَ اللَّوَاتِيْ بِجَمْعِ الْمُؤَنَّثِ وَ جَاءَ فِيْ اللَّاتِيْ اللَّاتِ |
|---|
| مګر په جمع مؤنثه کې زيات شهرت لري واللاتي واللواتي دپاره د جمع مؤنثې لکه په جاء في اللاتي کې اللات |
| بِحَذْفِ الْيَاءِ وَ إِبْقَاءِ الْكَسْرَةِ عَلَى التَّاءِ وَ فِيْ اللَّوَاتِيْ اللَّوَا بِحَذْفِ التَّاءِ وَ الْيَاءِ |
| په حذف د ياء سره او په ابقاء د کسرې په تاء باندې اوويل کيږي په اللواتي کې اللوا په حذف د تاء او ياء سره |
| مَعًا وَ مَا بِمَعْنَى الَّذِيْ فِيْمَا لَا يَعْقِلُ غَالِبًا نَحْوُ عَرَفْتُ مَا عَرَفْتَهُ وَ |
| يو ځاى او ما په معنى د الذي استعماليږي په هغه ځا کې چې عقل نه لري غالباً لکه عرفت ما عرفته او |
| جَاءَ فِيْمَا يَعْقِلُ نَحْوُ وَ السَّمَآءِ وَ مَا بَنَاهَا وَ مَنْ أَيْضًا بِمَعْنَاهُ |
| او استعمال په خاوندانو د عقل کې هم کيږي لکه والسماء ومابناها او من هم د ما په معنى سره دي په |
| فِيْمَنْ يَعْقِلُ وَ يَسْتَوِيْ فِيْهِمَا الْمُفْرَدُ وَ الْمُثَنَّى وَ الْمَجْمُوْعُ وَ الْمُذَكَّرُ وَ الْمُؤَنَّثُ. |
| استعمال د ذوات العقول کې او برابر دي په هغې کې مذکر او مؤنث مفرد او جمع او تثنيه. |

**اغراض د جامي :** والعائد اعم الخ : په دې ځاى کې يو څو سوالات دي :

**سوال:** صله به نفس جمله ولې وي؟

**جواب:** دا ځکه چې واضع وضع د موصول دپاره د معرفې د توصيف کړې ده او بيان د معرفې په صلې سره راځي .

**سوال:** دا صله به جمله خبريه ولې وي؟

**جواب:** دا ځکه چې انشائيه ثابت بنفسه نه وي نو مثبت لغيره به څنګه شي؟

**سوال:** عائد به ولې ضروري وي؟

**جواب:** جمله من حيث الجملة مستقل وي، نو دې کې وحشت راغلو د ما سبق نه نو رابط ورله په کار دى، چې د مخکې سره يې تعلق راشي .

**سوال:** ضمير ولې رابط ګرځوې؟

**جواب:** د صلې تعلق د موصول سره په شان د هغه تعلق نه ده کوم چې د مبتداء او خبر وي، ددې وجې نه رابط قوي په کار وو، او هغه ضمير دى.

**سوال:** د ضمير رجع موصول ته ولې کوې؟

**جواب:** دا ټول بحث د موصول د وجې نه دى، نو عائد به موصول ته ځکه راجع کيږي.

او ما في معناها: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال**: اسم فاعل او اسم مفعول هم صله واقع کېږي او هغه خو جمله خبريه نه ده؟

**جواب**: دا دواړه په معنی د جمله کې دي

و صلة الالف الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: مخکې ماتن ويلي وو، چې صله به جمله خبريه وي. اوس کله چې دده د خبرې نه خلاف راشي، نو دا په منزله د استثناء وي سائل وويل چې ته وايې چې صله به جمله خبريه وي، حالانکه اسم فاعل او اسم مفعول صله د الف لام واقع شوې ده او دا جمله نه ده اوس سوال دا دی، چې دا دواړه د الف لام صله واقع شوې ده، نو دا الف لام اوچت دي که ښکته دي چې دا يې صله واقع شوې ده؟

**جواب**: ماتن جواب وکړو، چې صله د الف لام اسم فاعل او اسم مفعول واقع کېږي، وجه داده چې د الف لام دوه جهته دي صورت يې د حرف دی او په معنی کې اسم دی او اسم فاعل اسم مفعول هم لفظاً مفرد او معنی شبه جمله ده، نو ددې وجې نه مونږ الف لام لره دغه صله وګرځوله، ځکه دا دواړه ذو جهتين دي.

وهي: غرض د ماتن صيغې او مثالونه ذکر کول دي.

اى الموصولات: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ظاهره داده، چې هي ضمير به موصول ته راجع وي او هغه مذکر دی نو مطابقت د راجع او مرجع په خپل مينځ کې سره نشته؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې ضمير موصولات ته راجع دی او موصولات جمع دي، او جمع په تاويل د جماعةٌ سره مونث ده. ضمير د هي ورته راجع کولی شي.

الذي الخ: ماتن شپږ صيغې د موصول ذکر کوي او دا هره صيغه د جدا ذات دپاره وضع ده، او که کوم ځای اشتراك راغلی دی، نو يو په کې اشهر ګرځېدلی دی، نو اشتراك په شان د نه اشتراك دی.

ويكونان: غرض د شارح د وروسته جار مجرور دپاره متعلق ذکر کول دي.

والاولی: چونکه د دې شکل د اولی په شان دی. او تلفظ پرې په غیر د واو نه کېږي نو شارح وویل چې دا په شان د علی دی په وزن کې بیا دا زیادت د واو خکه شوې دی. چې د الی جاره سره التباس رانه شي.

**سوال**: دا التباس بالعکس دفع کړه؟

**جواب**: واو ما قبل مضموم غواړي او الی جاره کې همزه مکسوره وه، نو مونږ اولی کې واو راوړو. دوهمه وجه داده، چې الی جاره حرف دی او په حروفو کې تغییر نه راځي، او په اسماوو کې تغییر راځي، او اولی اسم موصول وو، نو دې کې مونږ تغییر وکړو.

بیا اولی چې د الف لام سره ذکر شي، نو دا د موصول دپاره راځي، او چې په غیر د الف لام نه ذکر شي. نو دا بیا د اشارې دپاره راځي.

الا انه الخ: غرض د شارح اشاره کول دي. چې دغه اشتراك کلا اشتراك دی.

والذین الخ: غرض د ماتن الذین صیغه کې څلور لغات ذکر کول دي.

اجرآء للوصل الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي.

**سوال**: په دې آخري لغت کې التقآء د ساکنینو راغله او دا خو په حالت د وصل کې ناجائز ده؟

**جواب**: مونږ دا حالت وصل قائمقام د وقف ګرځولې دی او حالت وقف کې التقاء ساکنین جائز ده، ځکه چې په وقف کې خفت وي نو التقآء ساکنین جائز کیږي.

**سوال**: دا خو آسان کار دی، هر ځای په سړی التقاء ساکنین کوي او ددغه نه به دلیل نیسي؟

**جواب**: ضرورت چې نه وي بیا دغه عمل ناجائز دی.

الا انها في جمع المؤنث الخ: غرض د شارح اشاره کول دي، چې دغه اشتراك کلا اشتراك دی.

واللاتي: غرض د ماتن شپږمه صیغه ذکر کول دي، شارح په کې نور لغات ذکر کوي.

وما ومن: غرض د ماتن اقسام د اسم موصول ذکر کول دي. اسم موصول دوه قسمه دي، خاص او عام. خاص دپاره مخکې شپږ صیغې ذکر شوې او کومو کې چې اشتراك وو. نو هغه کلا اشتراك وو. نو سوال نه راځي. او هر چې عام اسم موصول دی، نو هغه اوس ذکر کوي چې دغه شپږ واړه په کې راتلی شي. او دغه عام اسم موصول مامن وغیره دی.

بمعنی الذي: غرض د شارح د ما معنی ذکر کول دي چې دا په لا یعقل ئې غالباً استعمالیږي

بيا مثال يې دا دی، عرفت ما عرفته.

**وجاء فيما الخ:** غرض د شارح د غالباً قيد فائده ذکر کول دي. هغه دا چې دې سره والسّمآء وما بناها خارج شو، ځکه ما دپاره د مايعقل راغلی دی.

**ومن ايضاً الخ:** غرض د شارح د من معنی ذکر کول دي، چې دا هم په معنی د الذي سره دی خو دا په مايعقل کې استعمالېږي، بيا په دې دواړو کې مذکر مؤنث، مفرد، تثنيه، جمع، شپږ واړه يو شان دي. دلته کې دا خبره ده، چې الله د ذکورت انوثت نه پاك دی. خو ادب دې کې دی، چې دالله دپاره د ذکورت صيغې استعمال شي.

**سوال:** لفظ د من خو هم د لايعقل دپاره راځي، الله وايي: **فمنهم من يمشی علی بطنه** نو دلته به يې هم د غالباً قيد لړولې وی؟

**جواب:** دغه قيد دلته هم مراد دی، اګر چې ذکر نه دی اکتفاءً بماسبق.

| |
|---|
| وَ اَيٌّ بِمَعْنَى الَّذِیْ نَحْو اَضْرِبْ اَيَّهُمْ فِي الدَّارِ اَیْ اَضْرِبْ الَّذِیْ فِي الدَّارِ وَ اَيَّةٌ بِمَعْنَى الَّتِيْ نَحْو اِضْرِبْ |
| اواي په معنی دالذي سره لکه اضرب ايهم في الدار ای اضرب الذي في الدار واية په معنی داللتي لکه اضرب |
| اَيَّتَهُنَّ فِي الدَّارِ اَیْ اِضْرِبِ الَّتِيْ فِي الدَّارِ وَ ذُو الطَّائِيَّةِ اَيِ الْمَنْسُوْبَةِ اِلٰى بَنِي طَيٍّ لِاخْتِصَاصِ مَجِيْئِهَا |
| ايتهن في الدار ای اضرب التي في الدار او ذوالطائيه يعنې هغه ذوچې منسوب وي لغت دبني طي ته راتلل د ذو |
| مَوْصُوْلَةً بِلُغَتِهِمْ بِمَعْنَى الَّذِيْ اَوِ الَّتِيْ قَالَ الشَّاعِرُ وَ بِئْرِیْ |
| موصولاًخاص دي په لغت دبني طي پورې په معنی دالذي او اللتي سره لکه چې ويلي شاعر کوهي زما کوم |
| ذُوْ حَفَرْتُ وَ ذُوْ طَوَيْتُ اَیِ الَّتِيْ حَفَرْتُهَا وَ الَّتِيْ طَوَيْتُهَا وَ ذَا بَعْدَ مَا الْكَائِنَةُ |
| چې ماکنستې اوراغوند کړې يعنې هغه چې ماکنستې اوراغوند کړې او ذاچې وروستوترې ماچې کائنه |
| لِلْاِسْتِفْهَامِ نَحْو مَا ذَا صَنَعْتَ اَیْ مَا الَّذِيْ صَنَعْتَ وَ الْاَلِفُ وَ اللَّامُ اَیْ مَجْمُوْعُهُمَا بِمَعْنَى الَّذِيْ اَوِ الَّتِيْ اَوِ |
| وي دپاره داستفهام لکه ماذاصنعت يعنې الذي صنعت او الف اولام دواړه په معنی دالذي او التي سره اويا |
| الْمُثَنّٰى اَوِ الْمَجْمُوْعِ وَ الْعَائِدُ الْمَفْعُوْلُ اَيِ الْعَائِدُ الَّذِیْ لَا يُتِمُّ الْمَوْصُوْلُ اِلَّا بِهٖ اِذَا كَانَ مَفْعُوْلًا |
| مثنی اويامجموع وي او عائد مفعول کو، چې موصول نه پوره کيږي مګرپر دې پورې کله چې مفعول وي |
| يَجُوْزُ حَذْفُهٗ اِذَا لَمْ يَمْنَعْ مَانِعٌ لِاَنَّهٗ فُضْلَةٌ لَا اِذَا كَانَ فَاعِلًا |
| جائز دي حذف کول د دې کله چې نه وي مانع ځکه چې دافضله دي نه په هغه وخت کې کله چې فاعل وي |

| لِكَوْنِهِ عُمْدَةً نَحْوَ قَوْلِهِ تَعَالَى اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَ يَقْدِرُ لَهٗ اَىْ لِمَنْ يَّشَآءُهٗ. |
| --- |
| ځکه فاعل عمده وي لکه دا قول دالله تعالى الله يبسط الرزق لمن يشاء عن عباده ويقدر له يعني لمن يشاءه |

**اغراض دجامي** : وای بمعنی الذي: غرض د شارح د اي دپاره معنی ذکر کول دي. او ددې دپاره مثال او تطبيق د مثال کول دي، كما هو ظاهر بيا ځنګه چې اي په معنی د الذي راځي، نو همدارنګې اية په معنی د التي سره راځي لکه اضرب ايتهن في الدار اى التي في الدار.

وذوالطائية : غرض د شارح د الطائية قيد تشريح کول دي، دا قيد د طائيه چې يې لرولې دی دا منسوب دی بني طی قبيلې ته، وجه داده چې د دوی په لغت کې ذو په معنی د الذي او التي سره راغلې دی، شاعر وايي :

و بئرى ذو حفرت و ذو طويت

الى التي حفرتها و الى طويتها

بيا ذوا دلته په معنی د التي سره ځکه اخلي، چې بئر مونث سماعي دی بيا ذو په دوه قسمه دی، يو ذو صاحبی دی، دا معرب دی او دوهم ذوطائي دی دا په احوال ثلاثه کې مبني وي، ځکه که دا بدليدلی، نو په کار ده چې ذي حضرت وی.

**سوال** : کله چې ذو موصولي دی، نو په دې شعر کې خو عائد ذکر نه دی؟

**جواب**: هغه عائد شارح په دې عبارت حضرتها سره ذکر کړې دی.

وذا بعد ما : غرض د ماتن خو پنځم موصول عام ذکر کول دي، چې هغه ذا دی کله چې د ما استفهامي نه وروسته ذکر شي. شارح الكائنة راويستو، د جار مجرور دپاره يې متعلق راويستو، او دې کې اشاره دې ته ده چې دا جار مجرور صفت د ما دی په اعتبار د متعلق سره. شارح بيا مثال او تطبيق د مثال کړې دی.

والالف واللام : غرض د شارح د ماتن شپږم موصول عام ذکر کول دي، چې هغه الف لام په معنی د الذي او التي سره دی، دا شانته د تثنيه او جمع دپاره هم راځي.

والعائد المفعول الخ : غرض د ماتن حکم اول د موصول ذکر کول دي ، هغه دا چې عائد کله مفعول وي، نو حذف يې جائزدی، دوهم غرض دفع د يو سوال ده :

**سوال**: تا مخکې وويل، چې د موصول دپاره صله لازم ده، چې دغه صله کې به عائد وي او

راجع به وي موصول ته. حالانکه زه به درته وښايم، چې په صله کې به عائد نه وي. لکه قرآن کريم کې راځي الله يبسط الرزق لمن يشآء دلته يشآء صله ده، او عائد په کې نشته، چې موصول ته راجع وي؟

**جواب:** ماتن جواب وکړو، چې عائد کله مفعول وي، نو حذف يې جائزدی مثال مذکور کې هم عائد مفعول دی، نو ځکه حذف شوی دی.

اي العائد الذي الخ: غرض د شارح دفع د يو سوال ده:

**سوال:** بحث د حذف د عائد خروج دی د بحث نه او خروج د بحث نه ښه کار نه دی؟

**جواب:** مراد ددې نه هغه عائد دی، چې په موصولاتو کې ذکر کيږي نو دا خروج د بحث نه، نه دی.

اذالم تمنع الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** ته وايې چې عائد مفعول وي، نو حذف يې جائزدی، حالانکه په سمع الله لمن حمده کې د ه ضمير حذف د سر نه جائزنه دی؟

**جواب:** مونږ دا قيد لګوو چې کله مانع نه وي او دلته د حذف نه مانع شته هغه دا چې ما ابق دليل په ما القی نه ګرځي. همدارنګې کوم عائد چې الف لام موصولي ته راجع وي، د هغې حذف هم ناجائزدی.

لانه فضلةٌ: غرض د شارح دليل د حذف دپاره ذکر کول دي، هغه دا چې دغه عائد فضله دی او حذف د فضله جائزدی.

لا اذاكان الخ: غرض د شارح د المفعول قيد فائده ذکر کول دي، او دفع د يو وهم او سوال هم کوي:

**سوال:** زه به درته وښائم چې په صله کې به ضمير د مجرور وي او هغه به حذف شوی وي؟ لکه الذي انا ضاربٌ زيدٌ ای انا ضاربه؟

**جواب:** دا قيد د المفعول دپاره د اخراج د فاعل دی، ځکه صله کې فاعل نه حذف کيږي، هغه عمده دی.

وَ اعْلَمْ اَنَّ النُّحَاةَ وَضَعُوْا بَابًا يُسَمُّوْنَهُ بَابَ الْاَخْبَارِ بِالَّذِيْ اَوْ مَا يَقُوْمُ مَقَامَهُ

پوه شه چې نحويانو وضع کړي يو باب نوم يې ور کړي ورته د باب د هغه اخبار و کوم چې په الذي او يا قائمقام

وَ مَقْصُوْدُهُمْ مِنْ وَضْعِهٖ تَمْرِيْنُ الْمُتَعَلِّمِ فِيْمَا تَعَلَّمَهُ فِيْ هٰذَا الْفَنِّ مِنَ الْمَسَائِلِ وَ تَذْكِيْرِهٖ

د الذي وي او مقصود د وضع نه تمرين د متعلمينو دي په خپل تعليم کې د دې فن سره د مسائلونه او يادولو

اِيَّاهَا فَاِنَّهُمْ اِذَا قَالُوْا لِاَحَدٍ اَخْبِرْ عَنِ الْاِسْمِ الْفُلَانِيِّ فِي الْجُمْلَةِ الْفُلَانِيَّةِ

د مسائلو دي نه خکه چې کله دوي ووايي يو چاته چې خبرور کړه د فلاني نوم نه په فلاني جمله کې په

بِالَّذِيْ بَعْدَ بَيَانِهِمْ طَرِيْقَةَ الْاَخْبَارِ بِهٖ لَا بُدَّ لَهُ مِنْ تَذَكُّرِ كَثِيْرٍ مِنْ

الذي سره وروستو د بيان د دوي لره طريقې د خبرور کولو په هغې سره نو ضروري ده چې ياد کړل شي ډير

مَسَائِلِ النَّحْوِ وَ تَدْقِيْقِ النَّظَرِ فِيْهَا حَتّٰى يَعْلَمَ اَنَّ ذٰلِكَ الْاَخْبَارَ

مسائل د نحو او پوره په دقت سره نظر و کړل شي په دغه مسائلو کې تر دې چې بيا معلومه شي چې دا اخبار

فِيْ اَيِّ اِسْمٍ يَصِحُّ وَ فِيْ اَيِّ اِسْمٍ يَمْتَنِعُ فَاَرَادَ الْمُصَنِّفُ الْاِشَارَةَ اِلٰى هٰذَا الْبَابِ

په کوم اسم کې صحيح کيږي او په کوم کې نه صحيح کيږي نو اراده و کړه مصنف اشاره کول دې باب ته په

فَقَالَ وَ اِذَا اَخْبَرْتَ اَيْ اِذَا اَرَدْتَّ اَنْ تُخْبِرَ عَنْ جُمْلَةٍ بِالَّذِيْ اَيْ

دې قول سره واذا اخبرت يعني کله چې ته اراده و کړې چې خبرور کړې جزء د جملې ته په الذي سره يعني

بِاِسْتِعَانَةِ الَّذِيْ اَوِ الَّتِيْ وَ الْاَلِفُ وَ اللَّامُ فَاِنَّ الْبَاءَ لَيْسَتْ بِصِلَةٍ لِلْاَخْبَارِ

په استعانت د الذي سره او يا په استعانت د التي سره او يا په الف لام سره خکه چې با صله نه ده د اخبار د پاره

لِاَنَّ الَّذِيْ مُخْبِرٌ عَنْهَا لَا مُخْبِرٌ بِهَا صَدَّرْتُهَا اَيْ اَوْقَعْتُ كَلِمَةَ

خکه چې الذي نه خبرور کول شوې دي نه دا چې خبر د هغې په وصيله کيدې شي نو په سر کې به راخي کلمه

الَّذِيْ اَوْ مَا يَقُوْمُ مَقَامَهَا فِيْ صَدْرِ الْجُمْلَةِ الثَّانِيَةِ وَ جَعَلْتَ مَوْضِعَ الْمُخْبِرِ

د الذي او هغه څه چې قائمقام د الذي دې يعني په اول د دوهمې جملې کې او و به ګرځول شي په ځای د مخبر

عَنْهُ اَيْ فِيْ مَوْضِعِ مَا هُوَ مُخْبِرٌ عَنْهُ بِالَّذِيْ فِي الْجُمْلَةِ الثَّانِيَةِ يَعْنِيْ فِيْ مَوْضِعِهٖ الَّذِيْ كَانَ

عنه يې کوي نه چې خبر ور کړل شوې په الذي سره په دوهمه جمله کې يعني په هغه ځای کې چې د هغه د

لَهٗ فِي الْجُمْلَةِ الْاُوْلٰى ضَمِيْرًا لَهَا اَيْ لِكَلِمَةِ الَّذِيْ وَ اَخَّرْتَهٗ اَيِ الْمُخْبِرَ عَنْهُ عَنِ

پاره په اولنۍ جمله کې ضمير د پاره د دې يعني د پاره د کلمې د الذي او د مخبر عنه به وروستو کړل شي د

| الضَّمِيرِ خَبَرًا نُصِبَ عَلَى الحَالِ وَ ضَمَّنَ اٰخَرْتُهٗ مَعْنَى |
|---|
| ضميرنه په داسې حال کې چې دا به خبروي نصب د خبر بنابر حاليت دي يا متضمن دي آخر د هغې معنى د |
| جَعَلْتُهٗ اَیْ جَعَلْتُهٗ خَبَرًا مُتَاخِرًا فَاِذَا اَخْبَرْتَ مَثَلاً عَنْ زَيْدٍ مِنْ جُمْلَةِ ضَرَبْتُ زَيْدًا |
| جعل لره يعنې دا چې وبه ګرځوې دا خبر مؤخر پس که ته خبرور کوې مثلاً د زيدنه په جمله د ضربت زيداً |
| بِكَلِمَةِ الَّذِيْ وَقَعْتَهَا فِيْ صَدْرِ الجُمْلَةِ الثَّانِيَةِ وَ جَعَلْتَ فِيْ مَوْضِعِ مَا هُوَ |
| سره په کلمه د الذي هغه چې واقع ده په صدر د دوهمې جملې کې او وبه يې ګرځوې په داسې ځای |
| مُخْبَرٌ عَنْهُ فِيْ هٰذِهِ الجُمْلَةِ اَعْنِيْ زَيْدًا. |
| کې چې خبرور کول کيږي د دې نه په دې جمله کې يعنې زيداً کې. |

**اغراض د جامي** : واعلم الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره د يو سوال مقدر جواب ورکول دي:

**سوال**: مخکې ماتن د اسمآء اشاراة او موصولاتو ذکر وکړو اوس ذکر د اخبار بالذي کوي ددې د مخکې سره څه ربط دي؟ دا خو خروج د بحث نه دی؟

**جواب**: دا خروج د بحث نه، نه دی، بلکې الذی د موصولاتو نه دی، نو اخبار بالذی متعلق د موصولاتو شو.

او مايقوم: غرض د شارح دفع د وهم ده. وهم دادی، چې اخبار خو په التي الف لام سره هم راځي، نو صرف الذي ولې ذکر کوې؟

**جواب**: که الذي دي او که د هغې قائمقام دی، دا ټول مراد دي بيا مقصود په دې باب کې د متعلم تمرين وي.

واذا اخبرت الخ: غرض د ماتن په دې عبارت سره قاعده کليه ذکر کول دي، دوهم ددې دپاره به مثال ذکر کړي، دريم اجراء د دغه قاعدې به په الف لام کې وکړي، څلورم تفريع کلي به پرې وکړي، پنځم بيا به تفريحات جزئيه وکړي. حاصل د قاعدې کليې دا دی، چې کله ته د يو شي نه په الذي سره خبر ورکوې، نو اول د جمله کې به الذی راوړې او کوم شی چې په الذي سره مخبر عنه جوړيږي، نو دده په ځای به ضمير راوړې او دغه مخبرعنه به په طور د خبر وروسته کړې لکه د ضربت زيدًا اخبار چې په الذي سره ورکوې، نو اول به الذي راوړې بيا به د زيد په

خای ضمير راوړي. او زيد به په طور د خبر وروسته کړي نو عبارت به داسي شي، الذی ضربته زيد.

ای اذا اردت الخ: غرض د شارح په دي عبارت سره دفع د سوال ده :

**سوال** : اذا اخبرت شرط او صدرتها ورلره جزاء ده. او جزاء په شرط متفرع وي او دلته تفريع نه صحيح کيږي، ځکه چي تصدير په الذي سره مخکي دی د اخبار بالذي نه؟

**جواب**: صدرتها جزاء د اخبار نه ده، بلکي د ارادة عن الاخبار دپاره ده او ارادة عن الاخبار مقدم وي په تصدير باندي.

ای باستعانة الذی الخ: غرض د شارح اشاره کول دي، چي بآء د استعانت ده او دوهم غرض دفع د يو سوال ده :

**سوال**: کله چي د اخبار په صله کي بآء راشي، نو مدخول د بآء مخبر به حالانکه دلته مدخول د بآء الذي مخبر به نه دی، بلکي مخبر عنه دی؟

**جواب**: دا بآء صله د اخبار نه ده، بلکي دا دپاره د استعانت ده ای اذا اخبرت مستعناً بالذي.

او التي اله: غرض د شارح عموم طرف ته اشاره کول دي.

فان البآء الخ: غرض د شارح تصريح کول دي په جواب مذکوره باندي.

ای اوقعت الخ: غرض د شارح دفع د وهم ده :

**وهم**: تصدير خو دي ته وايي چي په الذي بل شی مخکي کړي، حالانکه دلته خو بل شی نشته بلکي دغه الذي مخکي راوړي شي، نو صدرتها ويل صحيح نه دي؟

**جواب**: صدرت په معنی د اوقعت سره دی يعني همدغه الذي به په سر د کلام کي راوړی شي.

ومايقوم الخ: غرض د شارح عموم طرف ته اشاره کول دي.

في صدر الجملة الثانية: په دي مقام کي يو جمله اولی ده، دا هغه ده چي الذي په کي نه وي راغلي، او بله جمله ثانيه ده. دا هغه ده چي د اخبار په وخت په کي الذي راوړي شي.

وجعلت موضع المخبرعنه: په دي مقام کي الذي حقيقتاً مخبرعنه نه دی، بلکي مخبرعنه هغه

شي دي چي الذي د هغه په ځای واقع وي، نو دا الذی مجازاً مخبر عنه شو.

اى في موضع الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** د جعل دپاره دوه مفعوله وي او مفعول ثاني حمل وي په اول باندې او دلته دغه حمل نه صحيح کېږي؟

**جواب:** دلته موضع مفعول به نه دی، بلکې دا مفعول فيه دی، په تقدير د في سره.

يعني في موضعه الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** ته وايې چې دغه ضمير به په ځای د مخبرعنه راوړی شي، اوس سوال دا دی، چې کوم ځای دغه مخبرعنه وو، نو هغه وخت دا ضمير نه وو او کله چې ضمير شته، نو اوس دا ضمير مخبرعنه نه دی، حالانکه نائب لره حکم د منوب وي؟

**جواب:** دې ته مونږ مخبرعنه په اعتبار د جمله اولی سره وايو، او ضمير ورته په اعتبار د جمله ثانيه سره وايو.

اى الكلمة الذي: غرض د شارح په دې عبارت سره د ها ضمير مرجع متعين کوي او دفع د يو سوال هم کوي:

**سوال:** هاء ضمير راجع دی الذي ته او هغه مذکر دی، نو مطابقت نشته د ضمير او مرجع په مينځ کې؟ شارح دغه سوال وکړو چې دا ضمير الذي ته نه دی راجع، بلکې کلمه د الذي ته راجع دی او كلمة لفظ مؤنث دی، نو مطابقت موجود شو.

اى المخبرعنه: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي يو بيا تاخير به ځکه کوو، چې دغه مخبر عنه په دې ترکيب کې خبر جوړيږي، او اصل په خبر کې تاخير دی.

نصب على الحال: غرض د شارح وجه د نصب ذکر کول دي، چې خبراً حال دی د ضمير د مخبر عنه نه او حال د منصوباتو يو قسم دی.

او ضمّن الخ: غرض د شارح دوهمه وجه د نصب ذکر گول دي، حاصل د هغې دا دی، چې اخرته متضمن دی معنی د جعل لره دا بيا دوه مفعوله غواړي، نو خبراً مفعول ثاني دی، ځکه منصوب دی بيا تضمين په دوه قسمه دی: اول دا چې متضمِن اصل او متضمّن فرع وگرځوې، او دوهم د دې بر عکس صورت دی، دلته اخرته متضمن دی او جعل ورلره متضمّن دی نو شارح دا

متضمن اصل کړو او متضمَّن يې فرع کړه، ځکه چې متضمن يې صفت د خبر وګرځوو او صفت تابع وي نو دلته د تضمين هغه دوهم قسم مراد دی.

فاذا اخبرت الخ: غرض د ماتن ددغه قاعدې دپاره مثال ذکر کول دي.

مثلاً: غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا قيد اتفاقي دی. نورو مثالونو کې هم اجراء کولې شي.

من جملة: د شارح اشاره کول دي چې خبر خو د ټولې جملې نه، نه وي، بلکې د يو جزء د جملې نه وي، چې هغه زيد دی.

اوقعتها الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح طريقه د اجراء ذکر کول دي، چې مخکې د هغې تفصيل شوې دی.

| |
|---|
| وَ الْمُرَادُ بِمَوْضِعِهٖ مَحَلُّهُ الَّذِيْ كَانَ لَهُ فِي الْجُمْلَةِ الْأُوْلٰى وَ هُوَ مَحَلُّ الْمَفْعُوْلِ مِنْ ضَرَبْتَ |
| اومراد په وضع د محل د الذي کان له کې په جمله اولی کې محل د مفعول دي د ضربت نه نو په ضربت کې |
| ضَمِيْرًا لِلَّذِيْ وَ أَخَّرْتَ الْخَبَرَ عَنْهُ يَعْنِيْ زَيْدًا وَ جَعَلْتَهُ خَبَرًا عَنِ الَّذِيْ |
| ضمير د الذي دپاره شو وروستو کړل شو خبرور کول د هغې نه يعني زيداًاو وګرځول شو هغه خبر د الذي نه زه |
| وَ قُلْتُ الَّذِيْ ضَرَبْتُهٗ زَيْدٌ وَ كَذٰلِكَ أَيْ مِثْلُ الَّذِي الْأَلِفُ وَ اللَّامُ فِي الْجُمْلَةِ الْفِعْلِيَّةِ خَاصَّةً |
| وايم الذي ضربته زيد اوهمدارنګې په مثل د الذي الف اولام دي په جمله فعليه کې خاص ددې دپاره |
| لِيَصِحَّ بِنَاءُ اِسْمِ الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ مِنْهَا فَإِنَّ صِلَةَ الْأَلِفِ وَ اللَّامِ لَا تَكُوْنُ إِلَّا اِسْمَ الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ |
| چې صحيح شي بنا د فاعل اومفعول له دې نه ځکه چې صله د الف لام نه وي مګر يا اسم فاعل يا مفعول اودا |
| وَ يُمْكِنُ أَنْ يُؤْخَذَ اِسْمُ الْفَاعِلِ مِنَ الْمَبْنِيِّ لِلْفَاعِلِ وَ اِسْمُ الْمَفْعُوْلِ مِنَ الْمَبْنِيِّ |
| امکان هم شته چې واخستل شي د اسم فاعل نه چې مبني للفاعل وي اوداسم مفعول نه هغه چې مبني |
| لِلْمَفْعُوْلِ بِشَرْطِ أَنْ يَكُوْنَ الْفِعْلُ الَّذِيْ يَتَضَمَّنُهُ الْجُمْلَةُ الْفِعْلِيَّةُ مُتَصَرِّفًا إِذْ |
| للمفعول وي په دې شرط چې هغه فعل کوم چې متضمن وي جملې فعليې لره فعل متصرف وي ځکه چې |
| غَيْرُ الْمُتَصَرِّفِ نَحْوُ نِعْمَ وَ بِئْسَ وَ حَبَّذَا وَ عَسٰى وَ لَيْسَ لَا يَجِيْءُ مِنْهُ اِسْمُ فَاعِلٍ وَ لَا مَفْعُوْلٍ فَلَا |
| فعل غير متصرف لکه نعم بئس حبذا عسی او ليس نه راځي د دوي نه، نه اسم فاعل او اسم مفعول نو نه شي |
| يُخْبَرُ بِاللَّامِ عَنْ زَيْدٍ فِيْ لَيْسَ زَيْدٌ مُنْطَلِقًا وَ بِشَرْطِ أَنْ لَا يَكُوْنَ فِيْ أَوَّلِ ذٰلِكَ الْفِعْلِ |
| ورکولې اخبار په لام سره د زيد نه په مثل د ليس زيد منطلقاً کې اوپه دې شرط چې نه به اول ددې فعل داسې |

| |
|---|
| حَرْفٌ لَا يُسْتَفَادُ مِنْ اِسْمِ الْفَاعِلِ وَ الْمَفْعُوْلِ مَعْنَاهَا كَالسِّيْنِ وَ سَوْفَ وَ حَرْفُ النَّفْيِ وَ |
| حرف چې هم ته نه راځي داسم فاعل یا داسم مفعول نه معنی دهغې لکه سین اوسوف اوحرف د نفي اود |
| الْاِسْتِفْهَامِ فَلَا يُخْبِرُ بِاللَّامِ مِنْ زَيْدٍ فِيْ جُمْلَةِ سَيَقُوْمُ زَيْدٌ فَاِنَّهُ اِذَا |
| استفهام نوخبرنه شي ورکول کیدي په لام سره د زید نه په جمله د سیقوم زید کې ځکه چې کله اسم فاعل |
| بُنِيَ اِسْمَ الْفَاعِلِ مِنْ سَيَقُوْمُ يَكُوْنُ قَائِمًا فَيَفُوْتَ مَعْنَى السِّيْنِ. |
| جوړکړې شي د سیقوم نه نوشي به قائمانوفوت شوه معنی د سین. |

**اغراض دجامي : والمراد بموضعه الخ** :په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال:** مخکې مونږ ذکر کړی دی سره د جواب نه، اوس پس د اجرآء نه به تقدیر د عبارت داسې شي الذي ضربته زيدٌ.

**وكذلك**: غرض د ماتن دریمه خبره اجرآء ددغه قاعدې ده په الف لام کې مقصد د خبرې دادی، چې کله د یو شي په الف لام سره خبر ورکوې، نو چې فعل معلوم وي، نو په اسم فاعل سره به خبر ورکوې، او الف لام به پرې داخل کړې. او د مخبرعنه په ځای به ضمیر راوړې او که فعل مجهول وو، نو په اسم مفعول سره به خبر ورکوې او الف لام به پر داخل کړې او د مخبرعنه په ځای به ضمیر راوړې، لکه په ضرب زيدٌ کې به الضارب هو زيدٌ ویلی شي او ضُرب زيدٌ کې به المضروب هو زيدٌ ویلې شي.

**اى مثل**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال:** دلته جار مجرور په اعتبار د متعلق سره مبتداء واقع ده، حالانکه جار مجرور خو مبتداء نه واقع کیږي؟

**جواب:** کاف په معنی د مثل دی او مثل مبتداء واقع کیږي؟ یا دا جار مجرور خبر مقدم دی، او الالف ورلره مبتداء مؤخر ده.

**في الجملة الفعلية**: غرض د شارح دفع د وهم ده :

**وهم** : چې کله دغه قاعده په الذي سره ذکر شوه، نو ددغه اجرآء په الف لام سره کولو ته څه ضرورت دی؟

**جواب**: ماتن دغه سوال دفع کړو، چې ماسبق الذی کې عموم وو، دا الف لام د جمله فعلیه سره

خاص دی.

**لیصح الخ**: غرض د ماتن د جمله فعلیه پورې د اختصاص وجه ذکر کول دي، الف لام سره اخبار صرف د جمله فعلیه دپاره ځکه خاص دی، چې ددې نه بناء د اسم فاعل او اسم مفعول صحیح شي، ځکه چې د جمله اسمیه نه بنآء د اسم فاعل او اسم مفعول نه صحیح کېږي.

**فان صلة الخ**: مقصد دا دی، چې د الف لام موصولي دپاره صله حرف اسم فاعل او اسم مفعول واقع کېږي، البته عکس نشته، چې هر داخل شده په اسم فاعل او اسم مفعول دې الف لام موصولي وي.

**ویمکن الخ**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ته وایې چې د جمله فعلیه نه بنآء د اسم فاعل او اسم مفعول کیږي، خالانکه نعم فعل مدح دی او بناء د اسم فاعل او اسم مفعول ترې نه کیږي، نو په کار ده چې ورسره قید د متصرفا زیات کړې وی.

**جواب**: لیکن تاسو جواب کولې شئ چې لیصح، نو په دې عبارت کې دغه قید ته اشاره ده، ځکه چې فعل متصرف وي، نو هله ترې بنآء د اسم فاعل او اسم مفعول کېږي.

**فلا یخبر الخ**: غرض د شارح په دغه قید باندې تفریح کول دي.

**وبشرط الخ**: غرض د شارح په ماتن باندې دوهم سوال کول دي، حاصل د سوال دادی، چې زه به درته وښائم چې فعل متصرف به وي او بیا به هم بنآء د اسم فاعل او اسم مفعول ترې نه کیږي، لکه یسن، سوف چې د کوم فعل ابتداء کې راشي، نو ماتن لره په کار وو چې دا قید یې ورسره لړولې وی.

**بشرط ان لا یکون في ذلك الخ**: لیکن تاسو جواب کولې شئ، چې ماتن په لیصح سره دغه قید ته هم اشاره کړې ده، ځکه چې د هغه فعل نه بناء د اسم فاعل او بناء د اسم مفعول نه صحیح کیږي، د کوم په سر کې چې سین او سوف وي، ددې وجه داده چې که دغه سین سوف ورسره نه راوړې نو معنی د سین سوف فوت کیږي، او که راوړې نو اسم فاعل اسم مفعول ترې جوړېدل ناممکن دي.

| فَإِنْ تَعَذَّرَ اَمْرٌ مِنْهَا اَیْ مِنَ الْاُمُوْرِ الثَّلٰثَةِ الَّتِيْ هِيَ تَصْدِیْرُ الْمَوْصُوْلِ وَ وَضْعَ |
| --- |
| اوکه چیرته متعذر شو یو امر د دغه دري امورو نه چې هغه په سر کې راوړل د موصول دي او وضع کول دی |

عَائِدُ الْمَوْصُوْلِ مَقَامَ ذٰلِکَ الْاِسْمِ وَ تَاخِيْرَ ذٰلِکَ الْاِسْمِ خَبَرًا تَعَذَّرَ الْاِخْبَارُ وَ مِنْ ثَمَّ
عائد دي په ځای د دغه اسم او تاخير د دې اسم دي په خبر باندې نو متعذر کيږي اخبار ور کول او د دې وجې

اَیْ مِنْ اَجْلِ اَنَّهٗ اِذَا تَعَذَّرَ اَمْرٌ مِنْهَا تَعَذَّرَ الْاِخْبَارُ اِمْتَنَعَ الْاِخْبَارُ بِالَّذِیْ فِیْ ضَمِیْرِ
چې کله يو د دغه امورو متعذر شو نو ور سره متعذر کيږي اخبار جائز نه دي اخبار ور کول په الذي سره په ضمير

الشَّانِ بِاَنْ يَّكُوْنَ ضَمِيْرُ الشَّانِ مُخْبِرًا عَنْهُ لِاِمْتِنَاعِ تَصْدِيْرِ الْجُمْلَةِ بِالَّذِیْ
شان سره په داسې شان چې د ضمير شان نه خبر ور کړل شي د وجې د عدم جواز د سر ته راوړلو د الذي په سر د

وَ تَاخِيْرُ الْمُخْبِرِ عَنْهُ خَبَرًا لِوُجُوْبِ تَقْدِيْمِهٖ عَلَی الْجُمْلَةِ وَ كَذٰلِكَ
جمله کې او ورستو والي د مخبر عنه بنا بر خبريت څکه چې لازم دي تقديم د هغې په جمله باندې او همدارنګه

اِمْتَنَعَ فِی الْمَوْصُوْفِ بِدُوْنِ الصِّفَةِ وَ فِی الصِّفَةِ بِدُوْنِ الْمَوْصُوْفِ فَلَا يَجُوْزُ فِیْ ضَرَبْتُ زَيْدًا نِ
جائز نه دي په موصوف کې په غير د صفت نه او په صفت کې په غير د موصوف نو جائز نه دي په ضربت زيدن

الْعَاقِلَ اَنْ تُخْبِرَ بِالَّذِیْ عَنْ زَيْدٍ بِدُوْنِ الْعَاقِلِ وَ لَا عَنْ عَاقِلٍ بِدُوْنِ زَيْدٍ
العاقل کې چې خبر ور کړل شي په الذي سره د زيد نه په غير د عاقل نه او نه د عاقل نه په غير د زيد څکه چې

لِاِسْتِلْزَامِهٖ وُقُوْعَ الضَّمِيْرِ صِفَةً اَوْ مَوْصُوْفًا بِخِلَافِ مَا
دلته دوي په طريقې د ملزوم سره واقع دي په ځای د ضمير که صفت وي او که موصوف په خلاف د هغې چې

اِذَا اَخْبَرْتَ عَنْ مَجْمُوْعِهِمَا فَيُقَالُ الَّذِیْ ضَرَبْتُهٗ زَيْدُ نِ الْعَاقِلُ وَ كَذٰلِكَ امْتَنَعَ فِی الْمَصْدَرِ
کله ته خبر ور کوې د مجموعې د هغوي نه نو ويل کيږي ضربته زيدن العاقل او همدارنګه جائز نه دي په مصدر

الْعَامِلِ بِدُوْنِ الْمَعْمُوْلِ فَلَا يَجُوْزُ فِیْ نَحْوِ عَجِبْتُ مِنْ دَقِّ الْقَصَّارِ الثَّوْبَ اَنْ تُخْبِرَ
عامله کې په غير د معمول نه پس جائز نه دي په مثل د عجبت من ان القصار الثوب چې خبر ور کړل شي په

بِالَّذِیْ عَنْ دَقِّ الْقَصَّارِ بِدُوْنِ الثَّوْبِ لِاَنَّهٗ يُؤَدِّیْ اَنْ يَّعْمَلَ الضَّمِيْرُ الَّذِیْ جُعِلَ
الذي سره د دق القصار نه په غير د الثوب نه څکه چې دا مؤدي کيږي دې ته چې عمل وکړي ضمير کوم چې ګرځول

فِیْ مَوْضِعِ دَقِّ الْقَصَّارِ عَامِلًا فِی الثَّوْبِ بِخِلَافِ الَّذِیْ عَجِبْتُ مِنْهُ دَقُّ الْقَصَّارِ الثَّوْبَ.
شوې په ځای د دق القصار کې عامل په ثوب کې په خلاف د الذي عجبت منه دق القصار الثوب

**اغراض دجامي** : فان تعذر الخ : غرض د ماتن په دې عبارت سره تفريع کلي يعنې څلورمه خبره کول دي، حاصل د هغې دا دی، چې مخکې درې شرائط بيان شو.

| |
|---|
| فَضَمِيْرُ ضَرَبْتُ مُشْتَرَكٌ بَيْنَ الْوَاحِدِ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ ضَمِيْرُ ضَرَبْنَا بَيْنَ |
| ضمير د ضربت مشترک دي په مينځ د واحد او مذکر او مؤنث کې او ضمير د ضربنا مشترک دي په مينځ د |
| الْأَرْبَعَةِ الْمُثَنَّى الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ الْمَجْمُوْعِ الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ وَضَعُوْا لِلْمُخَاطَبِ خَمْسَةَ أَلْفَاظٍ |
| څلورو کې چې مثني مذکر ده او مؤنث ده او مجموع مذکر او مؤنث ده او وضع شو د مخاطب د پاره پنځه الفاظ |
| أَرْبَعَةٌ غَيْرُ مُشْتَرَكَةٍ وَ وَاحِدٌ مُشْتَرَكٌ بَيْنَ الْمُثَنَّى الْمُذَكَّرِ وَ الْمُؤَنَّثِ وَ أَعْطَوْا لِلْغَائِبِ حُكْمَ |
| څلور غير مشترک دي او يو مشترک دي په مينځ د مثنی مذکر او مؤنث کې او ورکړې شو غائب ته حکم |
| الْمُخَاطَبِ فِيْ ذٰلِكَ فَإِنَّ الضَّمِيْرَ فِيْ مِثْلِ ضَرَبَا وَ ضَرَبَتَا هُوَ الْأَلِفُ الْمُشْتَرَكُ بَيْنَهُمَا وَ التَّاءُ حَرْفُ |
| د مخاطب په دې کې ځکه چې ضمير په مثل د ضربا او ضربتا کې الف مشترک دي په دوي کې او تا حرف |
| التَّانِيْثِ وَ بَقِيَّةُ الْأَنْوَاعِ الْخَمْسَةِ جَارِيَةٌ عَلٰى هٰذَا الْمَجْرٰى أَعْنِيْ أَنَّ لِلْمُتَكَلِّمِ لَفْظَيْنِ وَ لِلْمُخَاطَبِ |
| تانيث دي پاتې نورې نوعې هم په همدې طريقه دي يعني چې د متکلم د پاره دوه لفظه دي او د مخاطب د پاره |
| خَمْسَةً وَ لِلْغَائِبِ خَمْسَةً فَصَارَ الْمَجْمُوْعُ إِثْنَيْ عَشَرَةَ كَلِمَةً لِثَمَانِيَةَ عَشَرَ مَعْنًى فَإِذَا كَانَ لِكُلٍّ مِنَ الْأَنْوَاعِ الْخَمْسَةِ |
| پنځه او د غائب د پاره پنځه نو ټول شو دولس کلمې جوړې شوې د اتلس معنو د پاره او چې د هر يو د پنځو نوعو |
| إِثْنَتَا عَشَرَةَ كَلِمَةً لِثَمَانِيَةَ عَشَرَ مَعْنًى تَكُوْنُ جُمْلَتُهَا سِتِّيْنَ كَلِمَةً لِتِسْعِيْنَ مَعْنًى وَ بَيَّنُوْا |
| د پاره دولس کلمې جوړې شوې د اتلسو معنو د پاره نو ټولې شپيته کلمې شوې د نوي معنو د پاره او بيان |
| لِتِلْكَ الْأُمُوْرِ عِلَلًا وَ مُنَاسَبَاتٍ لَا نُطَوِّلُ الْكَلَامَ بِذِكْرِهَا. |
| کړې نحويانو د دې کلمو د پاره اعلالات او مناسبات چې مونږ ډير اوږد بحث نه شو ذکرولای. |

**اغراض د جامي** : <u>والخامس</u>: کله چې فارغ شو ماتن د څلورو اقسامو د مثالونو نه، نو شروع يې وکړه په مثال د پنځم قسم کې.

<u>والنوع</u>: چونکه الخامس صفت وو، نو شارح ورلره موصوف راويسته چې هغه النوع دی، بيا په دې مقام کې شارح د قسم خامس تعيين ونه کړو، ځکه د ما قبل نه خپله معلوم شو چې پاتې قسم مجرور متصل دی.

<u>غلامي</u>: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي.

<u>مثال المنفصل بالاسم</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : څه باعث ده په ماتن چې دوه امثله يې راوړې دي، وضاحت د پاره خو يو مثال کافي وو؟

التي هي الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره د ضمير مرجع متعين كول دي

التي هي الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره بيان د هغه شرائط ثلاثه كول دي، كوم چې مخكې مونږ بيان كړو.

و من ثم الخ: غرض د ماتن پنځمه خبره تفريعات جزئيه كول دي، نو مجموعه شپږ مقامات به ذكر كړي، چې په هغه مقاماتو كې اخبار په الذي سره منع دی، يو د هغې نه ضمير شان دی، چې دې كې دوه وجې د منع په كې دي او باقي پنځه مقامات كې يو يو وجه د منع ده.

اى من اجل الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** ثم اسم اشاره دپاره د مكان راځي، نو ددې مشار اليه به مكان وي او دلته خو تعذر مكان نه دی؟

**جواب:** ثم دلته كې اجليه دی.

**سوال:** د ثم اجليه او اسم اشاره په مينځ كې به مونږ فرق په څه كوو؟

**جواب:** كه په ثم باندې من داخل شوې وو نو دا به اجليه وي، او كه من پرې نه وو داخل شوې نو دا به اسم اشاره د مكان وي.

بيا دلته كې شارح قانون طرف ته اشاره وكړه، چې ما قبل د ثم به علت وي دپاره د ما بعد د ثم لكه دلته كې تعذر علت دی دپاره د امتناع.

الاخبار بالذي: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** بحث د اخبار بالذي روان دی او ته ضمير شان ته لاړې دا خو خروج دی د بحث نه؟

**جواب:** دا خروج عن البحث نه دی، بلكې دغه ضمير شان په اخبار بالذي كې مراد دی.

لامتناع الخ: ددغه امتناع دپاره دوه وجې ذكر كوي، ضمير شان هم صدارت في الكلام غواړي، او الذي هم صدارت في الكلام غواړي، اوس كه الذي سره د ضمير شان نه خبر وركوو، نو د ضمير شان هغه صدارت فوت كيږي. ضمير شان په طور د خبر نه شي وروستو كيدې، ځكه دده تقديم په جمله واجب دی، او خبر خو وروسته وي.

والموصوف والصفة: غرض د ماتن دوهم مقام د امتناع ذكر كول دي، هغه دا چې خبر د موصوف نه په الذي سره وركړې او صفت ذكر نه كړې يا ددې عكس وكړې.

**كذلك**: شارح په دې تقدير سره اشاره وکړه. چې عطف د قبيلې د مشبه نه په مشبه به باندې دی، نه که عطف د مساوي په مساوي باندې. وجه داده چې را تلونکو مقاماتو کې د امتناع دپاره يو وجه ده او ضمير شان کې د امتناع دوه وجې وې

**امتنع في غرض**: د شارح قاعدې طرف ته اشاره کول دي قاعده داده. چې ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي، په ما قبل د معطوف کې نو دا عبارت يې راويستو.

**لاستلزامه الخ**: غرض د شارح وجه د امتناع ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی، چې ددغه موصوف او صفت په ځای به ضمير راوړې يا نه؟ که ضمير نه راوړې، نو د قاعدې خلاف راځي او که ددغه په ځای ضمير راوړې، نو دا ضمير به قايم مقام د موصوف او صفت ذکر کيږي او نائب لره حکم د موصوف وي او حال دادی، چې ضمير يې په موصوف او صفت باندې نه موصوف کېږي.

**فلا يجوز الخ**: غرض د شارح په دغه ما قبل خبره تفريع کول دي، هغه دا چې **ضربت زيدٌ العاقل** نه په **الذي** سره خبر ورکول په غير د **زيد** يا په غير د **العاقل** نه ورکول ناجائزدي، خو که د دغه مجموعه نه خبر په **الذي** سره ورکړې، نو بيا صحيح ده.

**في المصدر العامل**: غرض د ماتن دريم مقام د امتناع ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی، چې مصدر کله عامل وي، نو دغه مصدر عامل نه اخبار په **الذي** سره ورکول په غير د معمول نه ناجائز دي، ځکه چې عامل مصدر کله لرې کړې او دغه ځای ضمير راوړې، نو عامل به ضمير وګرځي، حالانکه د ضمير وضع دپاره د معمول شوې ده.

**فلا يجوز الخ**: غرض د شارح په دغه ما قبل خبره تفريع کول دي، هغه دا چې **عجبت من دق القصار الثوب** نه خبر په **الذي** سره په غير د **الثوب** نه ورکول ناجائزدي، خو د عامل او د معمول د مجموعې نه په **الذي** سره خبر ورکولې شي، نو بيا په دې صورت کې **الذي عجبت منه دق القصار الثوب** ويل جائز دي.

| وَ كَذَا امْتَنَعَ فِي الْحَالِ لِاَنَّ الْحَالَ يَجِبُ اَنْ تَكُوْنَ نَكِرَةً فَلَا يَجُوْزُ اَنْ يَّقَعَ |
| --- |
| او همدارنګه جائزنه دي په حال کې ځکه چې په حال کې لازمي ده چې وي به نکره پس جائزنه دي چې واقع |
| الضَّمِيْرُ الَّذِيْ هُوَ مَعْرِفَةٌ فِيْ مَوْضِعِهَا بِالْحَالِيَّةِ وَ كَذٰلِكَ امْتَنَعَ فِي الضَّمِيْرِ |
| شي ضمير کوم چې معرفه دي په ځای دنکرې بنابر حاليت او همدارنګه جائزنه دي په هغه ضمير کې کوم |

الْمُسْتَحِقِّ لِغَيْرِهَا اَیْ لِغَيْرِ كَلِمَةِ الَّذِیْ لِامْتِنَاعِ تَصْدِيْرِ الَّذِيْ

چې مستحق وي دبل دپاره يعني په غير دكلمې دالذي دوجې دعدم جواز دمصدر كولو دكلام په الذي

لِاسْتِلْزَامِ ذٰلِكَ عَوْدَ الضَّمِيْرِ اِلَيْهَا فَبَقِيَ ذٰلِكَ الْغَيْرُ بِلَا ضَمِيْرٍ وَ كَذٰلِكَ اِمْتَنَعَ فِيْ

سره دوجې دلازميدو دارجاع دضمير دې ته نو پاتې شو داغير بلاضميراوهمدارنګې جائزنه دي په هغه

الْاِسْمِ الْمُشْتَمِلِ عَلَيْهِ اَیْ عَلَى الضَّمِيْرِ الْمُسْتَحِقِّ لِغَيْرِهَا نَحْو قَوْلِكَ زَيْدٌ ضَرَبْتُ غُلَامَهُ

اسم كې كوم چې مشتمل وي په هغه ضمير چې مستحق وي دغيردپاره لكه داقول ستا زيدضربت غلامه نو

فَلَا يَصِحُّ الْاِخْبَارُ عَنْ غُلَامِهِ بِاَنْ يُقَالَ اَلَّذِیْ زَيْدٌ ضَرَبْتُهُ غُلَامَهُ لِاَنَّكَ اِذَا

نه صحيح كيږي خبروركول دغلامه په داسې شان چې وويل شي الذي زيدضربته غلامه خكه چې ته كله

جَعَلْتَ الضَّمِيْرَ عَائِدٌ اِلَى الْمَوْصُوْلِ بَقِيَ الْمُبْتَدَاءَ بِلَا عَائِدٍ وَ اِنْ جَعَلْتَهُ عَائِدًا اِلَى الْمُبْتَدَاءِ بَقِيَ

وګرځوي ضمير راجع موصول ته نومبتدا بلاعائده پاتې شوه اوكه وګرځوي ضميرراجع مبتداته نوباقي

الْمَوْصُوْلُ بِلَا عَائِدٍ وَ كُلٌّ مِنْهُمَا مُمْتَنِعٌ وَ مَا الْاِسْمِيَّةُ لَا الْحَرْفِيَّةُ فَاِنَّهَا اِمَّا كَافَّةٌ نَحْو اِنَّمَا

پاتې شوموصول بلاعائده اودواړه صورته جائزنه دي اوهرچې اسميه دہ نه حرفيه دابه ياكافي وي لكه انما

زَيْدٌ قَائِمٌ وَ اِمَّا نَافِيَةٌ مَا ضَرَبْتُ زَيْدًا وَ مَا زَيْدٌ قَائِمًا مَوْصُوْلَةٌ نَحْو عَرَفْتُ مَا اِشْتَرَيْتَهُ وَ

زيدقائم يابه نافيه وي لكه ماضربت زيدا ومازيد قائما يابه موصوله وي لكه عرفت مااشتريته اويابه

اِسْتِفْهَامِيَّةٌ نَحْو مَا عِنْدَكَ وَ مَا فَعَلْتَ وَ شَرْطِيَّةٌ نَحْو تَصْنَعْ اَصْنَعْ وَ مَوْصُوْفَةٌ اِمَّا بِمُفْرَدٍ نَحْو

استفهاميه وي لكه ماعندك ومافعلت اويابه شرطيه وي لكه ماتصنع اصنع يابه موصوفه بالمفردوي لكه

مَرَرْتُ بِمَا مُعْجِبٍ لَكَ اَیْ شَیْءٍ يُعْجِبُكَ وَ اِمَّا بِجُمْلَةٍ نَحْو شِعْر رُبَّمَا تَكْرَهُ النُّفُوْسُ

مررت بمامعجب لكه اى شئ يعجبك اويابه موصوفه جمله وي لكه داقول دشاعرڅ يرخله ناخوښ وي يونفس

مِنَ الْاَمْرِ لَهُ فَرْجَةٌ كَحَلِّ الْعُقَالِ اَیْ رُبَّ شَيْءٍ تَكْرَهُهُ النُّفُوْسُ

ديوخيزنه چې وي خلاصي په هغې كې لكه خلاصيدل داوښ دكړي دبندنه يعني رب الشئ تكرهه النفوس

وَ تَامَّةٌ بِمَعْنَى شَيْءٍ مُنْكَرٍ عِنْدَ اَبِيْ عَلِيٍّ وَ الشَّيْءُ الْمُعَرَّفُ عِنْدَ سِيْبَوَيْهِ

اويابه پوره وي په معنى ديوشئ سره چې نكره وي په نزددابوعلى اوشيء به معرفه وي په نزددسيبويه

نَحْو قَوْلِهِ تَعَالٰى فَنِعِمَّا هِيَ اَیْ نِعْمَ شَيْئًا اَوْ نِعْمَ الشَّيْءُ هِيَ وَ صِفَةٌ نَحْو اَضْرِبْهُ ضَرْبًا مَا اَیْ

لكه داقول دالله تعالى فنعماهي يعني نعم شيئاًيانعم الشئ هي اويابه صفت وي لكه اضربه ضرباما يعني

| |
|---|
| ضَرْبًا اَیْ ضَرْبٍ كَانَ وَ مَنْ كَذَٰلِكَ اَیْ تَكُوْنَ مَوْصُوْلَةً نَحْو اَكْرَمْتُ مَنْ جَاءَكَ اِسْتِفْهَامِيَةً نَحْو |
| ضرباًای ضرب کان او من همدارنګې وي به موصوله لکه اکرمت من جاءک او کیږي استفهامیه هم لکه |
| مَنْ غُلَامُكَ وَ مَنْ ضَرَبْتَ وَ شَرْطِيَةً نَحْو مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ وَ مَوْصُوْفَةً اِمَّا بِمُفْرَدٍ نَحْو قَوْلِهٖ |
| من غلامک ومن ضربت او کیږي شرطیه لکه من تضرب اضرب او کیږي موصوفه یا په مفرد سره لکه دا قول |
| شِعْر وَ كَفٰى بِنَا فَضْلًا عَلٰى مَنْ غَيْرِنَا حُبُّ النَّبِيِّ مُحَمَّدٍ اِيَّانَا |
| د شاعر شعر. کافي دي زمونږ د پاره دافضيلت په نوروچې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مينه کوي دمونږ سره |
| اَیْ شَخْصٍ غَيْرِنَا اَوْ بِجُمْلَةٍ نَحْو مَنْ جَاءَكَ قَدْ اَكْرَمْتُهُ اِلَّا فِي |
| يعني د خپل امت سره يعني شخص غيرنا يا به موصوف په جملې سره وي لکه من جاءک قد اکرمته مګر په |
| التَّامَةِ وَ الصِّفَةِ فَاِنَّ كَلِمَةَ مَنْ لَا تَجِئُ تَامَّةً وَ لَا صِفَةً. |
| تامه او صفت نې خکه کلمه د من نه تامه راځي او نه صفت. |

**اغراض د جامي** : **والحال**: غرض د ماتن څلورم مقام د امتناع ذکر کول دي، حاصل د هغې دا دی، چې دا د حال نه اخبار په الذي سره هم صحيح نه ده. ځکه د حال په ځای به ضمير راوړې يا نه. اوس که ضمير نه راوړې، نو د قاعدې خلاف راځي، او که ضمير راوړې، نو لازميږي، تعريف د حال او حال خو نکره وي.

**والضمير المستحق الخ**: غرض د ماتن پنځم مقام ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی، چې يو ضمير وي او د هغې دپاره يو مرجع موجود وي، علاوه د الذي نه. اوس که د دغه نه خبر په الذي سره ورکوې نو دغه ضمير سابقه به مونږ زيد ته راجع کوو يا الذي ته، که زيد ته راجع کوو، نو اسم موصول په غير د عائد نه پاتې کيږي او که اسم موصول ته راجع کيږي، لکه زيدٌ ضربته شو بيا په دې مقام کې يو سوال دی:

**سوال** : دا مقام دې جائز شي کنه په داسې طريقه باندې، چې ضربته کې دا ضمير زيد ته راجع شي او هو ضمير دې زيد ته راجع شي، نو هر يو به بلا عائده پاتې نه شي؟

**جواب**: داسې نه کيږي. ځکه چې زيد ته داسې ضمير راجع کول په کار دي، چې خبر کې واقع وي او هغه ضمير د ضربته والا دی، نو بل ضمير ورته نه شي راجع کولی

**والاسم المشتمل الخ**: غرض د ماتن شپږم مقام د امتناع ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی،

چې يو جمله وي او هغې کې يو اسم وي، چې مشتمل په يو ضمير او د ضمير دپاره يو مرجع ذکر وي، نو ددغه اسم نه اخبار په الذي سره نه شي ورکولی، ځکه دغه ضمير به مرجع ته راجع کوې يا نه؟ که اسم موصول ته راجع کوې نو مبتداء بلا عائده پاتې کېږي، او که دغه مرجع ته راجع کوې، نو اسم موصول بلا عائده پاتې کيږي.

لانك الخ: چونکه د ما قبل دوه صورتونو دپاره علت يو وو، نو شارح د دواړو دپاره مشترك علت ذکر کوي.

وما: کله چې فارغ شو مصنف عليه الرحمة د بيان د احکامو د موصول خاص نه، نو شروع يې وکړه په احکامو د موصول مشتري کې، موصول مشترك بيا ډير قسمه دي، يو د هغې نه ما دی، نو د هغې تفصيل کوي ما په دوه قسمه دی، حرفي اسمي، حرفي پنځه قسمه دی اسمي بيا يو قسم موصولي، اته قسمه استفهامي دوه قسمه موصوفه، دوه قسمه تامه، يو صفتي، بل شرطي دی، ټول شل (۲۰) قسم شول.

لاالحرفية: غرض د شارح د الاسمية قيد فايده ذکر کول دي، دې سره د ما حرفي نه احتراز شو.

فانها كافة الخ: ما حرفي په ډير قسمه ده يو په هغې کې كافه ده، کافه د کف نه مشتق دی کف بندولو ته کوي، يعنې هغه ما چې بندوي خپل عامل لره د عمل نه، لکه انما زيدٌ قائمٌ دې مثال کې دې ما د ان هغه عمل ختم کړی دی.

واما نافيةٌ: دوهم قسم د ما حرفي ذکر کوي، چې کله دا نافيه راځي دا بيا خپله دوه قسمه ده. کله ما نافيه وي او په جمله فعليه داخل شوې وي لکه ما ضربت زيدًا. او کله ما نافيه وي او په جمله اسميه داخل شوې وي، لکه ما زيدٌ قائماً. بيا دا دوه قسمه د ما حرفي به طور مثال ذکر شوي دي، ګنې ددې نور اقسام هم شته، کله ما حرفي مصدري راځي، او کله ما حرفي زائد راځي، دا ټول پنځه اقسام د ما حرفي شو، كافة نافيه چې په فعل داخله وي، نافيه چې په اسم داخله وي، مصدريه، زائده. بيا دا کومه ما چې اسمي وي، ده د هغې شپږ قسمه ذکر کړې دي، اول په کې موصوله ده، ليکن دا خبره واورئ، چې مقصود بالذات په دې مقام کې ما موصوله ده او دا نور پنځه قسمه يې طبعاً ذکر کړي دي، دې سره مونږ دفع د سوال وکړه.

**سوال**: بحث د موصولاتو شروع دی، نو دا نور اقسام څه لره ذکر کوې؟

**جواب**: دا موصوله مقصود بالذات ده او دا نور يې تبعاً ذکر کړي دي.

**موصولةٌ**: ما اسميه کې اول قسم موصوله ده. بيا دا ما موصوله شپږ معانيو کې مشترك راځي، مفرد، تثنيه، جمع. هر واحد ددې نه مذکر او مؤنث لپاره، نو ټول شپږ معاني شوې.

**نحو عرفت ما الخ**: غرض د شارح د ما موصوله دپاره مثال ذکر کول دي.

**واستفهاميةٌ**: غرض د ماتن د ما اسميه دوهم قسم ذکر کول دي. نو وايي چې ما اسميه استفهاميه هم راځي.

**نحو ما عندك الخ**: غرض د شارح د ما استفهاميه دپاره مثالونه ذکر کول دي، بيا دوه مثالونه يې راوړې دي، اول مثال د هغه دی چې ما په ظرف داخله وي، او دوهم مثال د هغه دی، چې ما په فعل داخل وي، بيا دا استفهام څلور قسمه راځي، انکاريه، تعجبيه. تعظيميه. تحقيريه بيا هر واحد ددې نه، چې په جمله اسميه او فعليه داخل شي، نو اته قسمه دا شو. نو ټول نهه قسمه شوه، ځکه يو ما اسميه موصوله او اته قسمه استفهاميه شوه.

**وشرطيةٌ**: غرض د ماتن د ما اسمي بل قسم ذکر کول دي، نو دی وايي. چې کله دا ما اسميه شرطيه هم راځي دا لسم قسم شو.

**نحو ما تصنع الخ**: غرض د شارح د ما اسميه شرطيه دپاره مثال ذکر کول دي.

**وموصوفةٌ الخ**: غرض د ماتن د ما اسميه بل قسم ذکر کول دي، نو دی وايي چې ما اسميه موصوفه هم راځي، يعنې بل شی د دې دپاره صفت واقع شوی وي، بيا ددې صفت کله مفرد راځي او کله غير مفرد راځي. دوه قسمه دا شو، نو ټول دولس قسمه شو.

**نحو مررت بما معجب لك**: غرض د شارح مثال ذکر کول دي، د هغه ما موصوفه دپاره چې صفت يې مفرد راغلی وي، دې مثال کې ما موصوفه ده او معجب صيغه داسم فاعل مفرد يې صفت راغلی دی.

**ای شیءٍ يعجبك**: غرض د شارح د ما تعيين کول دي، ځکه دا مبهم ده بيا د معجب نه يې يعجبك سره تعبير وکړو. ځکه چې معجب نکره ده او جمله هم په تنکير کې واضح ده. نو عبارت واضح شو. او دوهم دفع د وهم يې وکړه، چې بـه ويل چې دا معجب بـه د چا نوم وي، او علم خو معرفه وي، نو بيا مطابقت نه راتلو. نو ده وويل چې دا معجب د چا نوم نه دی، بلکې نکره ده.

ربما تكره النفوس من الامر

له فرجة كحل العقال

غرض د شارح مثال د هغه ما موصوفه ذكر كول دي، چې صفت يې جمله واقع وي، مطلب د شعر دا دى. چې نفسونه ډېر كرته يو كار بد ګڼي، ليكن ناڅاپه د هغې د اسانتيا اسباب پيدا شي او داسې اسان شي، لكه تړلې شوې او ښې لره چې پښې پرانيزي او هغه آزاده شي

محل د استشهاد ربما تكره النفوس الخ دى، دلته ما موصوفه ده او صفت يې جمله واقع شوې ده

اى رب شيءٌ الخ: غرض د شارح يو خو د ما مبهم تعيين كول دي. او دوهم غرض دفع د يو سوال ده

**سوال**: جمله چې كله صفت د ما واقع شي، نو لابدي وي د عائد نه او دلته خو عائد نه دى ذكر. ځكه نكره كې دا هاء د نفسِ كلمې نه ده؟

**جواب**: شارح جواب وكړو. چې عائد حذف دى په اصل كې تكرهه دى، او دا ځكه، چې دا عائد ضمير د مفعول دى او دا قاعده ده، چې والعائد المفعول يجوز حذفه.

وتامةٌ الخ: او ما تامه هم راځي، يعنې چې صفت او صله ته محتاج نه وي. بيا دې كې اختلاف دى، چې ددې نه به تعبير په څه سره كوو؟ نو ابوعلي وايي. چې شى منكر سره به ترې تعبير كوو او دليل دا دى. چې ما تميز وي او تميز نكره واقع كېږي، نو ددې نه تعبير هم په نكرې سره كوو، او سيبويه وايي، چې دې نه به په شي معرف سره تعبير كوو. ځكه چې دا ما فاعل واقع كېږي او اصل په فاعل كې تعريف دى، په هر حال دوه قسمه دا شو، نو ټول څوارلس قسمه شو.

نحو قوله تعالى فنعما هي: غرض د شارح مثال ذكر كول دي. دې مثال كې دا ما په معنى د شيءٌ سره دى په نزد د ابوعلي باندې او په معنى د الشئ سره دى په نزد د سيبويه باندې

وصفةً يعني اقسام اسمي كله صفتي هم راځي او دا پنځلسم قسم دى، نو پنځلس اقسام دا شو او پنځه اقسام د ما زائد شو. دا ټول شل اقسام شو

نحو اضربه ضرباً الخ: غرض د شارح د ما اسمي صفتي دپاره مثال ذكر كول دي

ومن كذلك : کله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د يو قسم د موصولات مشترکه نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د دوهم قسم د موصولات مشترکه کې نو دی وايي چې من هم په شان د ما راځي اوس شارح هره يو معنی او مثال ذکر کوي، نو شارح فرمايي : اى تكون موصولةً يعني من هم موصولي راځي، لکه اكرمت من جاءك ، دوهم من هم استفهامي راځي لکه من غلامك ومن ضربت دوه مثالونه يې د مخکې په شان ذکر کړه، يو مثال د جمله اسميه او دوهم د جمله فعليه دی، دريم من هم شرطي راځي لکه من تضرب اضرب، څلورم من هم موصوفه راځي، بيا ددې صفت کله په مفرد سره وي، لکه

عفى بنا فضلاً على من غيرنا

حب النبى محمدٍ ايانا

په دې شعر کې بنا په معنی د لنا سره دی. مطلب د شعر دا دی، چې کافي ده مونږ لره په فضيلت کې په غير زمونږ باندې دا خبره چې نبي عليه السلام زمونږ سره مينه ساتي.

من غيرنا : محل د استشهاد دی چې غيرنا مفرد صفت د من واقع شوی دی، بيا شارح وايي اى شخصٍ غيرنا غرض د شارح تعيين د من کول دي، دا همدارنګې کله ددې صفت جمله راځي. لکه من جاء قد اكرمته، دلته دا من موصوفه دی او جاء جمله صفت واقع شوې ده.

الا في التامة والصفة : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : کله چې من د ما په شان وو، نو جدا دې ولې ذکر کړو؟

**جواب**: حاصل د جواب دادی، چې دا من په تامه او صفتي راتلو کې د ما په شان نه دی، نو ځکه يې جدا ذکر کړو، مطلب د عبارت دادی، چې من تامه او صفتي نه راځي، ولې؟ وجه داده چې ددې سمع د عربو نه،نه ده شوې، او قواعد د نحو بناء دي د عربو نه. بيا دا من او ما دواړه مبني دي، وجه د بناء د حرف سره په احتياج کې مشابهت دی.

**سوال**: ما خو يو قسم تامه هم راځي، په هغې کې خو احتياج نه وي؟

**جواب**: دا ما تامه د ما ناقصه سره صورت کې مشابهت ساتي او ما ناقصه خو حرف سره د مشابهت في الاحتياج د وجې نه مبني وه، نو دا هم مبني شو د وجې د مشابهت صوري نه.

## بيان داي او اية :

| |
|---|
| وَ اَيٌّ لِلْمُذَكَّرِ وَ اَيَّةٌ لِلْمُؤَنَّثِ كَمَنْ فِيْ ثُبُوْتِ الْاُمُوْرِ الْاَرْبَعَةِ وَ اِنْتِفَاءُ |
| او اي چې وي دپاره دمذكر او اية دپاره دمؤنث په شان دمن دي په ثبوت دامورار بعوسره او په انتفاء د |
| التَّامَّةِ وَالصِّفَةِ فَاَيٌّ الْمَوْصُوْلَةُ نَحْوِاضْرِبْ اَيَّهُمْ لَقِيْتَ وَالْاِسْتِفْهَامِيَّةُ نَحْوِ اَيُّهُمْ اَخُوْكَ وَ اَيُّهُمْ لَقِيْتَ وَالشَّرْطِيَّةُ |
| تامه او صفت كې نو اي موصوله لكه اضرب ايهم لقيت او استفهاميه لكه ايهم اخوك او ايهم لقيت او شرطيه |
| نَحْو اَيًّامَا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَاءُ الْحُسْنٰى وَ الْمَوْصُوْفَةُ نَحْو يَا اَيُّهَا الرَّجُلُ قِيْلَ اَيٌّ تَقَعُ صِفَةً اِتِّفَاقًا |
| لكه اياماتدعوا فله الاسماء الحسنى او موصوفه لكه ياايها الرجل چاويلي چې اي واقع كيږي صفت اتفاقا |
| فَلِمَ جَعَلَهَا الْمُصَنِّفُ كَمَنْ الَّتِيْ لَا تَقَعُ صِفَةً اَصْلًا وَ اُجِيْبَ بِاَنَّ اَيَّانَ الْوَاقِعَةُ |
| نو مصنف ولې په شان دمن كړ څول كوم چې صفت نه واقع كيږي اصلاً جواب دادې چې كوم اي چې واقع |
| صِفَةً هِيَ فِي الْاَصْلِ اِسْتِفْهَامِيَّةٌ لِاَنَّ مَعْنٰى مَرَرْتُ بِرَجُلٍ اَيِّ رَجُلٍ رَجُلٌ عَظِيْمٌ يَسْأَلُ |
| كيږي صفت دا په اصل كې استفهاميه دي ځكه معنى دمررت برجل اى رجل رجل عظيم ده تپوس كيدې |
| عَنْ حَالِهِ لَا يَعْرِفُهُ كُلُّ اَحَدٍ نَقَلْتَ عَنِ الْاِسْتِفْهَامِيَّةِ اِلَى الصِّفَةِ. |
| شي دحال رجل نه چې نه يې پيژندي هرڅوك نو نقل شوې داستفهاميت نه صفتيت ته. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره د اي او اية بيان كوي اي د مذكر دپاره راځي او اية د مؤنث دپاره راځي.

**اغراض د جامي** : <u>واىٌّ وايةٌ كمن</u>: مخكې په موصولات مشتركه كې د ما او من تفصيل وشو اوس د دريم او څلورم موصول مشترك تفصيل كوي، چې ایٌّ او ايةٌ دی ایٌّ دپاره د مذكر راځي مطلقاً او ايةٌ دپاره د مونث راځي مطلقاً يعني كه مفرد وي، تثنيه وي او كه جمع وي.

<u>في ثبوت الامور الخ</u>: په دې عبارت سره غرض د شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : ددې دواړو موصولاتو تشبيه د من سره صحيح نه ده، ځكه دا تشبيه په لفظ كې وركوې يا په حكم كې؟

كه لفظ كې تشبيه وركوې د هغې بطلان ظاهر دی، ځكه د دواړو الفاظ جدا دي، او كه په حكم كې تشبيه وركوې نو دا هم صحيح نه دي، ځكه حكم د من دادی، چې دا مبني وي او دا دواړه معرب دي؟

**جواب:** تشبیه په ثبوت د امور اربعو په انتفاء د نامه او صفت کې ده، کل امورو کې تشبیه مراد نه ده.

اضرب الخ: غرض د شارح مثالونه پیش کول دي، بیا دوه مثالونه یې ذکر کړه، اشاره ده چې دا په اسمیه او فعلیه دواړو کې راځي، همدارنګې شرطیه هم راځي او موصوفه هم راځي، د دواړو دپاره شارح مثالونه بیان کړي دي.

قیل الخ: غرض د شارح په قیل سره سوال کول دي او وروسته په اجیب سره جواب ورکول دي، حاصل د سوال دادی، چې د ایٌ تشبیه د من سره صحیح نه ده، ځکه چې ایٌ صفتي واقع کېږي او من خو صفتي نه واقع کېږي؟

**جواب:** مونږ وایو چې کوم ایٌ صفتي واقع دی، نو هغه په اصل کې استفهامي دی، بیا د استفهامي نه صفت ته نقل شوی دی، او اعتبار اصل لره وي، لکه مررت برجل الخ نو اصل ددې استفهامي معنی ده، بیا صفتي معنی ته نقل شوی دی.

## حکم دای او ایة:

| |
|---|
| وَ هِيَ اَیٌ کُلٌّ مِنْ اَيٍّ وَ اَیَّةٍ مُعْرَبَةٌ بِالْاِتِّفَاقِ وَحْدَهَا لَا یُشَارِکُهَا فِي الْاِعْرَابِ غَیْرُهَا مِنَ الْمَوْصُوْلَاتِ اِلَّا |
| اوهریو دای او ایة نه معرب دي بالاتفاق یواځې چې شریک ورسره اعراب کې نور مواصلات نه وي مګر |
| عَلَی اِخْتِلَافٍ فِي اللَّذَانِ وَ اللَّتَانِ وَ ذُو الطَّائِیَّةِ وَ اَنَّمَا اُعْرِبَتْ لِاَنَّهُ اِلْتَزَمَ فِیْهَا |
| بنابر اختلاف په الذان او اللتان او ذو الطائیه کې او دې ته اعراب ځکه ورکړل شو ځکه چې لازم دي په دې کې |
| الْاِضَافَةُ اِلَی الْمُفْرَدِ الَّتِيْ هِيَ مِنْ خَوَاصِّ الْاِسْمِ الْمُتَمَکِّنِ فَلَا یَرِدُ حَیْثُ وَ اِذْ وَ اِذَا اِلَّا اِذَا |
| اضافت مفرد ته کوم چې دخواصو د اسم متمکن نه ید نو سوال نه راځي په حیث او اذ، او، اذا مګر چې |
| کَانَتْ مَوْصُوْلَةً حُذِفَ صَدْرُ صِلَتِهَا نَحْوُ قَوْلِهٖ تَعَالٰی ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ کُلِّ شِیْعَةٍ |
| کله موصوله وي چې حذف شوی وي صدر دصلې دهغې لکه داقول د الله تعالی ثم لننزعن من کل شیعة |
| اَیُّهُمْ اَشَدُّ عَلَی الرَّحْمٰنِ عِتِیًّا فِیْمَنْ قَرَاَ بِالضَّمِّ اَیْ اَیُّهُمْ هُوَ اَشَدُّ وَ اِنَّمَا بُنِیَتْ مَوْصُوْلَةً عِنْدَ حَذْفِ |
| ایهم اشد علی الرحمن عتیا چاچې قرأت یې کړي په ضمې سره یعني ایهم هو اشد او په وخت د حذف د |
| صَدْرِ صِلَتِهَا لِتَاَکُّدِ شِبْهِهٖ الْحَرْفِ مِنْ جِهَةِ الْاِحْتِیَاجِ اِلٰی اَمْرٍ |
| صدر دصلې دهغې کې مبني ځکه شوه چې مشابهت یې د حرف سره مضبوط شي په احتیاج کې امر د |

| |
|---|
| غَيْرَ الصِّلَةِ وَ بُنِيَتْ عَلَى الضَّمِّ تَشْبِيْهًا لَهٗ بِالْغَايَاتِ لِاَنَّهٗ |
| غير دصلې ته او مبني بر ضمه ځکه شوه چې مشابهت لري دغاياتو سره ځکه چې حذف شوددې نه بعضې |
| حُذِفَ مِنْهَا بَعْضُ مَا يُوْضِحُهَا كَمَا حُذِفَ مِنَ الْغَايَاتِ مَا يُبَيِّنُهَا |
| هغه څه چې وضاحت ددې يې کولو لکه څنگه چې دغاياتو حذف شوې هغه څه چې بيان دهغوي يې کولو |
| وَ هُوَ الْمُضَافُ اِلَيْهِ وَ لَمْ يَسْتَثْنِ الْمَوْصُوْفَةَ الْبِنَائِيَّةَ مِثْلُ يَا اَيُّهَا الرَّجُلُ كَمَا اِسْتَثْنَى |
| چې هغه مضاف اليه ده او استثناء ونه شوه داي موصوفې مبني لکه ياايهاالرجل لکه څنگه چې استثناء |
| الَّتِيْ حُذِفَ صَدْرُ صِلَتِهَا لِاَنَّهٗ ذُكِرَ فِيْ قِسْمِ الْمُنَادٰى اَنَّ كُلَّ |
| وشوه دهغه اي چې صدر دصلې دهغې حذف شوې وي ځکه چې ذکر شوي په قسم دمنادى کې چې هر هغه |
| مَا يَقَعُ مُنَادًى مُفْرَدًا مَعْرِفَةً فَهُوَ مَبْنِيٌّ وَ بِنَاءَ الْمَوْصُوْفَةِ لِهٰذَا فَلَا حَاجَةَ |
| څيز چې منادى مفرده معرفه واقع شي نو دا مبني دي او بناداي موصوفې دې دپاره نو ضرورت يې پيدا |
| اِلَى الذِّكْرِ ثَانِيًا. |
| نه شو ذکر کولو ته دوهم ځل . |

**خلاصه دمتن :** په دې عبارت سره شارح حکم د اي او اية ذکر کوي چې اي او اية دا معرب دي بالاتفاق په دې کې دهيچا اختلاف نشته .

**اغراض دجامي : اى كل من :** په دې عبارت سره شارح د هي ضمير مرجع بيانوي.

وحدها: په دې عبارت سره شارح دا بيانوي چې دا حکم دمعرب چې دي دا يوائى د اي او اية دپاره دي .

والما اعربت: په دې عبارت سره شارح وجه داعراب بيانوي .

لتاكد هبه الحرف: په دې عبارت سره شارح وجه دبناء موصولې بيانوي په وخت دصدر دکلام ... ځکه چې د . ... مضبوط مشابهت دي دحرف سره دوجې داحتياج نه په غير دامر دصلې .

نيت على الضم . په دې سره شارح دا بيانوي چې صله مبني ده په ضمې سره دوجهې دمشابهت غاياتو سره ځکه چې حذف شوې دي ددې نه بعضې هغه شيان چې وضاحت کوي ددې لکه ... چې حذف شوي دغاياتو نه هغه څه چې کوم چې وضاحت دغاياتو کوي چې هغه مضاف

ولم يستثن الموصوفة: په دې عبارت سره عدم وجه د استثناء د موصوفې بيان ... مانوي چې دا وايي چې موښ مستثنى نه کړه موصوفه بنائيه ځکه چې دا په قسم د من ... ي کې داخله ده نو ددې وجې نه يې استثناء وکړه

وَ فِيْ قَوْلِهِمْ مَا ذَا صَنَعْتَ وَجْهَانِ اَحَدُهُمَا اَنَّ مَعْنَاهُ مَا الَّذِيْ عَلٰى اَنْ يَّكُوْنَ ذَا بِمَعْنَى الَّذِيْ

او په دې قول کې چې ماذا صنعت دوه وجهې دي يو دا چې معنى يې ما الذي ده چې ذا په معنى د الذي شي

فَيَكُوْنَ التَّقْدِيْرُ اَيُّ شَيْءٍ نِ الَّذِيْ صَنَعْتَ اَيْ صَنَعْتَهُ فَمَا مُبْتَدَاءٌ وَ مَا بَعْدَهُ خَبَرُهُ اَوْ بِالْعَكْسِ وَ حِيْنَئِذٍ

نو تقدير به دا شي چې اى شئ الذي صنعت اى صنعته نو ما مبتدا شوه او ما بعد يې خبر شو يا بالعكس نو په دې

جَوَابُهُ رَفْعٌ اَيْ مَرْفُوْعٌ عَلٰى اَنَّهُ خَبَرُ مُبْتَدَاءٍ مَحْذُوْفٍ كَمَا اِذَا قُلْتَ الْاِكْرَامُ اَيْ

وخت کې جواب به يې مرفوع بنا پر دې چې دا خبر د مبتداء محذوفې دی لکه څنګه چې ته وايې الاکرام يعنې

الَّذِيْ صَنَعْتَهُ الْاِكْرَامُ لِيَكُوْنَ الْجَوَابُ مُطَابِقًا لِلسُّوَالِ فِيْ كَوْنِ كُلٍّ مِنْهُمَا جُمْلَةً اِسْمِيَّةً وَ الْوَجْهُ الْاٰخَرُ اَنَّ

الذي صنعته الاکرام چې شي جواب مطابق د سوال په کيدلو د هر يو کې جمله اسميه دوهمه وجه دا ده چې

مَعْنَاهُ اَيُّ شَيْءٍ وَ هٰهُنَا عِبَارَتَانِ اَحَدُ بِهِمَا اَنَّ مَا ذَا بِكَمَالِهَا بِمَعْنٰى

معنى يې اى شئ ده دلته دوه عبارته دي يو دا چې ماذا ټوله په معنى د اى شئ سره ده دوهم دا چې ما معنى

اَيِّ شَيْءٍ وَ الثَّانِيَةُ اَنَّ مَا مَعْنَاهُ اَيُّ شَيْءٍ وَ ذَا زَائِدَةٌ وَ الظَّاهِرُ اَنَّ مُؤَدَّاهُمَا وَاحِدٌ فَاِنَّ مَعْنٰى قَوْلِهِمْ اِنَّهَا

يې اى شئ ده او ذا زيداه ده لکن ظاهره دا ده چې رجع د دواړو اقوالو يوه ده ځکه معنى ددې قول چې انها

بِكَمَالِهَا بِمَعْنٰى اَيِّ شَيْءٍ اَنَّهُ لَيْسَ لِكُلٍّ مِنْهُمَا مَعْنًى بِالْاِسْتِقْلَالِ لِكَوْنِ كَلِمَةِ ذَا زَائِدٌ لِمَفْهُوْمٍ مِنْ مَجْمُوْعِهِمَا

بکالها په معنى د اى شئ يعنې نشته د هر واحد د پاره معنى مستقله چې کلمه د ما دې زائده شي او د مجموعې

اَيِّ شَيْءٍ وَ حِيْنَئِذٍ جَوَابُهُ نَصْبٌ اَيْ مَنْصُوْبٌ عَلٰى اَنَّهُ مَفْعُوْلٌ لِفِعْلٍ

نه دې اى شئ جوړ شي نو په دې وخت کې يې جواب منصوب دي بناء په دې چې دا مفعول دې د پاره د فعل

مَحْذُوْفٍ كَمَا اِذَا قُلْتَ الْاِكْرَامُ لِيَكُوْنَ الْجَوَابُ مُطَابِقًا لِلسُّوَالِ فِيْ

محذوف لکه څنګه چې ته په جواب کې الاکرام ووايې دې د پاره چې شي جواب مطابق د سوال سره په

كَوْنِ كُلٍّ مِنْهُمَا جُمْلَةً فِعْلِيَّةً وَ يَجُوْزُ فِي الْاَوَّلِ نَصْبُ الْجَوَابِ بِتَقْدِيْرِ الْفِعْلِ الْمَذْكُوْرِ وَ فِي الثَّانِيْ

کيدلو د هر واحد کې جمله فعليه او په اول کې نصب د جواب هم جائز دي په تقدير د فعل مذکور سره او په دوهم

رَفْعُهُ عَلٰى اَنْ يَّكُوْنَ خَبَرَ مُبْتَدَاءٍ مَحْذُوْفٍ وَ لَمْ يَعْتَبِرْهُ الْمُصَنِّفُ لِفَوَاتِ

کې رفع د جواب چې شي خبر د پاره د مبتدا محذوفې لکن مصنف دا نه ده غوره کړې دوجې د فوت کيدو

| الْمُطَابَقَةِ بَيْنَ السُّوَالِ وَ الجَوَابِ. |
|---|
| د مطابقت نه په مینځ دسوال اوجواب کې. |

**اغراض دجامي** : وفي ماذا صنعت الخ: ماتن احكام د موصولاتو مشتركو يې ذكر كول، بعضې په كې ماذا هم دي اوس دلته د هغې بيان كوي.

وفي ما: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال** : في جاره دى او ماذا صنعت جمله ده، حالانكه په جمله حرف جاره نه داخلېږي؟

**جواب**: شارح جواب وكړو، چې مدخول د في حذف دى چې هغه قول دى او قول مفرد دى، نو في پرې داخلول صحيح دي او دا وروستو جمله هم د قول ده.

احدهما ماالذي: ماتن احدهما ويلي وو، شارح ورسره وايي ان معناه غرض د شارح دفع د وهم ده:

**وهم**: دا ما الذي به لازم د وجه اول وي يا دليل او يا معنى د وجه اول؟

**جواب** :نو شارح وويل چې دا معنى د وجه اول ده.

على ان يكون الخ: غرض تشريح د وجه اول ده. دوهم غرض د شارح اشاره كول دي ، دې خبرې ته چې ذكر كول د ذا پس د ما او من نه . دې سره معنى استفهامي د ما نه ختمېږي، بلكې دا به په خپل ځاى وي او الذي معنى د ذا ده. دريم غرض د شارح دفع د وهم ده:

**وهم**: ما الذي كې به الذي د ما نه وروستو او ذا نه مخكې مقدر وي؟

**جواب** :نو شارح وويل چې دلته مقدر نشته، بلكې دا ذا په معنى د الذي سره دى اوس تقدير د عبارت به داسې شي، اى شيء الذي صنعت.

اى صنعته: غرض د شارح يو خو اشاره ده دې خبرې ته، چې عائد د مفعول حذف دى دوهم غرض دفع د يو سوال ده :

**سوال** : صنعت صله ويل د الذي دپاره صحيح نه دي، ځكه په صله كې عائد ضروري دي او دلته هغه نشته؟

**جواب**: شارح جواب وكړو، چې هغه عائد حذف دى، ځكه والعائد المفعول يجوز حذفه

فما مبتدأ: غرض د شارح په دې وجه اول كې دوه تركيبه كول دي، اول تركيب دادى، چې ما په

معنی د ای شيءٍ سره مبتداء شي او ذا په معنی د الذي سره موصول او مابعد صله ده. موصول صله د مبتداء دپاره خبر شو بيا دا ای شيءٍ اگر چې نکره ده ليکن دا په معنی د هذا ام ذاك سره دی، نو ابتدائيت يې په نزد د سيبويه صحيح دی. دوهم ترکيب دادی، چې ما په معنی د ای شئ سره خبر مقدم دی او ذا په معنی د الذي سره موصول دی، بيا موصول صله مبتداء موخره ده، دا ترکيب په نزد د جمهورو دی

**سوال** : اصل په خبر کې تاخير دی، نو دلته ولې مقدم شوې دی؟

**جواب**: دا ما په معنی د استفهام سره ده، او استفهام تقاضا د صدارت کوي، نو ځکه مقدم شوی دی.

وجوابه رفعٌ : غرض د ماتن د جواب تشريح کول دي، شارح ورسره ح راويستو، غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا کلام مستانف نه دی، بلکې ما قبل سره متعلق دی .

ای مرفوعٌ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : جوابه مبتدا او رفعٌ يې خبر دی او حمل د رفعٌ په مبتداء نه صحيح کيږي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې مصدر مبني للمفعول دی، لهذا حمل صحيح دی.

على انه الخ : غرض د شارح وجه د رفعې ذکر کول دي، چې دا به مرفوع وي، بنا بر خبريت د مبتداء محذوفه، لکه يو سړی تپوس وکړي، ای الذي صنعته؟ نو ته جواب وکړې الاکرام يعنې هوالاکرام

ليکون الخ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : دا جواب به مرفوع ولې وي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا جواب د سوال سره مطابق شي، ځکه سوال په جمله اسميه سره شوی وو، نو هغه مرفوع وي نو دا جواب به هم مرفوع شي او خبر به شي د پاره د مبتداء محذوفې.

والوجه الآخر : ماتن تعيين د وجه ثاني کوي، شارح ورسره الوجه لفظ راويستو اشاره دې ته چې د الآخر صفت دپاره موصوف الوجه حذف دی، بيا د ان معناه قيد فائده مخکې ذکر شوې ده، چې دې سره معنی د وجه اول ذکر کوي.

و دبهما عبارتان: په د ی عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** په کار دا وه، چې ماتن د وجهان په ځای اوجه ثلاثة ویلې، ځکه دې ماذا کې دوه ترکیبه دي، یو دا چې ماذا مجموعه په معنی د ای شئ سره شي او دوهم دا چې ما په معنی د ای شئ سره شي، او ذا زائد شي.

والظاهر الخ: غرض د شارح جواب ته اشاره کول دي حاصل د جواب دا دی، چې ددې دواړو مقصد یو وو نو تعبیر یې ځکه په یوې وجې سره وکړو، ځکه ددې ما او ذا دپاره مستقل معنی نشته، بلکې یا د مجموعه دغه معنی ده، او یا صرف د ما معنی شته او ذا زائد ده.

ماتن وایي وجوابه نصبٌ شارح ورسره وایي وح ددې قید فائده ذکر شوې ده. د ا شارح وأیي ای منصوبٌ ددې قسم قید فائده هم مخکې مرفوعٌ کې ذکر شوه.

على انه الخ: غرض د شارح وجه د نصب ذکر کول دي، یعنې په دې صورت کې به دا مفعول د فعل محذوفه شي، لکه یو سړی ووایي ماذا صنعت؟ نو ته جواب کې ووایي چې الاکرام یعنې صنعت الاکرام.

ليكون الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا جواب به منصوب ولې وي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې جواب به منصوب ... ځکه وي چې د سوال سره مطابق شي، ځکه سوال کې حرفٌ استفهام منصوب وو، نو جواب به هم منصوب وي؟ او مفعول به شي د فعل محذوفه.

**سوال:** دا پته به څنګه لګي چې اول صورت کې سوال په جمله اسمیه سره دی او په دوهم صورت کې سوال په جمله فعلیه سره دی؟

**جواب:** اول صورت کې ما په معنی د ای شيءِ سره مضاف الیه دی او دا خبره د جملې وي نو یا به مبتداء وي او یا خبر دواړو صورتونو کې به جمله اسمیه وي او دوهم صورت کې ما په معنی د ای شيءِ سره منصوب دی مفعول به دی د فعل محذوفه ... دی نه معلومیږي چې دا جمله فعلیه ده.

ويجوز الخ: غرض د شارح اشاره کول دي، دې خبرې ته چې دې اول صورت ... مرفوع او

...وهم کې منصوب ویل واجب نه دي، بلکې جائز دي

ولم یعتبره: سوال ته اشاره کوي، چې ماتن ولې دغه طرف ته تعرض ونه کړو

لفوات الخ: سره جواب طرف ته اشاره کوي، وجه داده چې دغه صورتونه غیر اولی دي، ځکه هغه مطابقت په کې فوت کېږي

## تعریف د اسماء افعالو:

أَسْمَاءُ الْأَفْعَالِ مَا كَانَ أَيْ اِسْمٌ كَانَ بِمَعْنَى الْأَمْرِ وَ الْمَاضِي الَّذِيْنَ هُمَا مِنْ أَقْسَامِ مَبْنِيِّ الْأَصْلِ
اسماء افعال هغه اسماء دي چې په معنی د امر او د ماضي راځي کوم چې د اقسام د مبني الاصل نه دي

فَعِلَّةُ بِنَائِهَا كَوْنُهَا مُشَابَهَةً لِمَبْنِيِّ الْأَصْلِ فَمَا قِيْلَ أُفٍّ بِمَعْنَى اتَّضَجُّرُ وَ أَوَّهْ
وجه د بناء یې داده چې د امشابه دي د مبني الاصل سره چاچې ویلي چې اف په معنی د اتضجر او اوه په

بِمَعْنَى اتَّوَجُّعُ فَالْمُرَادُ بِهِ تَضَجَّرْتُ وَ تَوَجَّعْتُ عَبَّرَ عَنْهُ بِالْمُضَارِعِ الْحَالِيِّ لِأَنَّ الْمَعْنَى عَلَى
معنی د اتوجع نو مراد په هغې سره تفجرت او توجعت دي تعبیر ترې په مضارع حالي وشو ځکه معنی

الْإِنْشَاءِ وَ هُوَ أَنْسَبُ بِأَنْ يُعَبَّرَ عَنْهُ بِالْمُضَارِعِ الْحَالِيِّ مِثْلُ رُوَيْدَ زَيْدًا أَيْ أَمْهِلْهُ مِثَالُ
انشایي شوه او مناسب داوه چې د دې معنی نه تعبیر د مضارع حالي وشي لکه روید زیداً ای امهله مثال

لِمَا هُوَ بِمَعْنَى الْأَمْرِ وَ هَيْهَاتَ ذَاكَ بِفَتْحِ التَّاءِ فِي الْحِجَازِ وَ بِكَسْرِهَا
د هغې دي چې په معنی د امر سره وي و هیهات ذاک په فتحې د تاء سره په نزد د اهل حجاز او په کسرې سره

فِيْ بَنِيْ تَمِيْمٍ وَ بِالضَّمَّةِ فِيْ لُغَةِ بَعْضِهِمْ أَيْ بَعُدَ مِثَالُ لِمَا هُوَ بِمَعْنَى الْمَاضِيْ
په نزد د بني تمیمو او په ضمې سره د بعضې په لغاتو کې او بعد مثال د هغې دي چې په معنی د ماضي سره

وَ قَدَّمَ الْأَمْرَ لِأَنَّ أَكْثَرَ أَسْمَاءِ الْأَفْعَالِ بِمَعْنَاهُ وَ الَّذِيْ حَمَلَهُمْ عَلَى أَنْ قَالُوْا إِنَّ هٰذِهِ
وي امر ځکه مخکې شو چې زیات اسماء افعال په معنی د امر سره وي او چاچې حمل کړي په دې چې دا

الْكَلِمَاتِ وَ أَمْثَالَهَا لَيْسَتْ بِأَفْعَالٍ مَعَ تَأْدِيَتِهَا مَعْنَاهَا فِي الْأَفْعَالِ أَمْرٌ لَفْظِيٌّ وَ هُوَ
کلمات او د دې امثال افعال نه دي سره له دې چې معنی د فعل اداکوي نو د اقول امر لفظي دي په داسې

أَنَّ صِيَغَهَا مُخَالَفَةٌ لِصِيَغِ الْأَفْعَالِ وَ أَنَّهَا لَا يَتَصَرَّفُ تَصَرُّفَهَا لَا أَنَّهَا
شان چې صیغې د دې مخالفې دي صیغو د افعالو نه او په دې کې تصریف د افعالو هم نه شي کېدې نه داچې

مَوْضُوْعَةٌ لِصِيَغِ الْأَفْعَالِ عَلَى أَنْ يَكُوْنَ رُوَيْدَ مَثَلًا مَوْضُوْعًا لِكَلِمَةِ أَمْهِلْ كَمَا قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيُّ وَ لَيْسَ
داوضع شوي د پاره د صیغو د افعالو لکه روید وضع شوي د پاره د امهل شارح د رضي وایي چې داسې نه ده

| |
|---|
| مَا قَالَ بَعْضُهُمْ اِنَّ صَهْ مَثَلًا اِسْمٌ لِلَفْظِ اُسْكُتْ اَلَّذِيْ هُوَ دَالٌّ عَلٰى مَعْنَى الْفِعْلِ فَهُوَ عَلَمٌ |
| لکه بعضو چې ویلي چې صه اسم داسکت دي کوم چې دلالت کوي په معنی دفعل نودا علم شود پاره د |
| لِلْفِعْلِ لاَ لِمَعْنَاهُ بِشَيْئٍ اِذِ الْعَرَبِيُّ اَلْقُحُّ رُبَمَا يَقُوْلُ صَهْ مَعَ اَنَّهُ لَمْ يَخْطُرْ بِبَالِهٖ |
| دلفظ دفعل نه دمعنی دفعل ځکه چې خالص عرب لفظ دصه ډیر استعمالوي لیکن په نیت اوزړه کې یې |
| لَفْظُ اُسْكُتْ وَ رُبَمَا لَمْ يَسْمَعْهُ اَصْلًا وَ لِهٰذَا قَالَ الْمُصَنِّفُ |
| زړه کې یې ورسره لفظ داسکت نه وي ډیرخو خودادسره اوریدلې هم نه دي ددې وجې نه مصنف وویل |
| مَاكَانَ بِمَعْنَى الْاَمْرِ اَوِ الْمَاضِيْ اَوْلَمْ يَقُلْ مَاكَانَ مَعْنَاهُ الْاَمْرُ اَوِ الْمَاضِيْ وَ الْمُتَبَادِرُ اَنْ يَكُوْنَ هٰذَا بِحَسْبِ الْوَضْعِ |
| ماکان بمعنی الامر والماضي وي نه ویل ماکان معناه الامر والماضي اوښکاره داده چې داپه اعتباردوضع سره |
| فَلَا يَرِدُ مِثْلَ الضَّارِبِ اَمْسِ نَقْضًا عَلَى التَّعْرِيْفِ. |
| دي نواعتراض نه واردیږي په الضارب امس سره دوجې دنقض نه تعریف نه . |

**اغراض دجامي : اسمآء الافعال:** کله چې فارغ شو ماتن د تفصیل د درې اقسامو د اسم مبني نه، نو شروع یې وکړه په تفصیل د څلورم قسم د اسم مبني کې چې اسماء افعال دي، نو ده وویل چې اسمآء الافعال الخ

دلته څو سوالات واردیږي :

**سوال** : نفس تفصیل ولې کوي؟

**جواب:** نفس تفصیل ځکه کوې چې تفصیل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي. دوهمه وجه داده، چې دا اسمآء افعال تفصیل ته محتاج وو داسې تفصیل چې دلته ذکر دی، او مخکې نه دی شوی او کوم شی چې تفصیل ته محتاج وي او تفصیل یې نه وي شوی، نو د هغې تفصیل په کار وي.

**سوال** : تفصیل په دې مقام کې ولې کوي ؟

**جواب** : تفصیل په دې مقام کې ځکه کوي، چې اجمال په دې مقام کې ذکر وو، نو تفصیل کې هم په څلورم مقام کې یې ذکر کړو، چې تفصیل موافق شي، د اجمال سره . بیا اجمال یې په دې مقام کې ځکه ذکر کړي وو، چې دا مخکې اقسام په منزله د مفرد وو، او دا اسمآء افعال په منزله د مرکب دي او مفرد په طبع کې په مرکب مقدم وي ، نو په وضع کې یې مقدم کړو، چې وضع موافق شي، د طبع سره.

ماکان بمعنی الامر والماضي: بس هر هغه اسم چې په معنی د امر او ماضي سره وي، نو دا اسم فعل دی.

ای اسمٌ کان: غرض د شارح په دې عبارت یو خو د ما ابهام دفع کول دي، چونکه دا مبهمه وه، نو شارح وویل چې دا د اسم نه عبارت دی.

**سوال**: په دې کې څلور احتمالات شته، چې د شيء نه عبارت شي یا د لفظ نه یا د کلمې نه او یا د اسم نه، نو ته یې صرف د اسم نه ولې عبارت اخلې؟

**جواب**: دا مقام د تعریف دی، او مونږ ویلي دي، چې په مقام د تعریف کې کله د یو شي جنس قریب مراد کیدي شي، نو جنس بعید لره به نه ځو او دا اسم دې دپاره جنس قریب دی او دا نور اجناس بعیده دي.

دوهم غرض د شارح په دې عبارت سره دا دی، چې دا ما موصوله نه ده، بلکې موصوفه ده.

**سوال**: دې کې خو احتمال د دواړو شته، نو قرینه په دې څه ده، چې ته ترې موصوفه اخلې او موصوله نه اخلې؟

**جواب**: دا مقام د خبر دی او اصل په خبر کې نکارت دی او نکره هله ګرځي، چې مونږ دا ما موصوفه کړو.

**سوال**: دا ما د اسم نه عبارت اخلې که د اسماو نه، که د اسم نه عبارت اخلې، نو حمل نه صحیح کیږي، ځکه دا په اسماو حمل دی، هغه جمع ده او دا مفرد دی؟ او که د اسماو نه عبارت شي، نو د ضمیر او مرجع په مینځ کې موافقت نشته. ځکه په کان کې ضمیر د مفرد دی؟

**جواب**: دا ما که د اسم نه عبارت شي او که د اسماو نه دواړه صحیح دي، ځکه اسم اشاره په بحث کې دا د اسماو نه عبارت اخیستې و

**سوال**: راتلو چې مطابقت نشته، نو مونږ وایو چې د اسم نه مراد جنس دی او د جنس اطلاق په قلیل کثیر تېولو کیږي. بیا د جنس نه عبارت ځکه اخلو، چې دا مقام د تعریف دی او تعریف د جنس کیږي.

یا بل جواب دادی، چې په کان کې ضمیر د مفرد راجع دی په اعتبار د کل واحدٍ سره

**الذين الخ**: غرض د شارح تمهيد ايخودل دي، وجه د بنآء ددې اسمآء افعالو ته.

**فعلة البنآء الخ**: دا په مخکې عبارت تفريع ده ا ووجه د بنآء ذکر کوي، چې وجه د بنآء هغه مشابهت ددې دی، د مبني الاصل سره، ځکه چې يو اسم په معنی د امر او ماضي سره راشي، نو دا هم د هغه وجوهِ موثره نه دی په منع د اعراب کې.

**فما قيل الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: نه منم حصر د اسمآء افعالو په دوه اقسامو کې، ځکه اف اسم فعل دی، او معنی يې د فعل مضارع راخي، دا شانته اووه اسم فعل دي او معنی د فعل مضارع ورکوي؟ جواب: شارح جواب وکړو، چې دا په معنی د ماضي سره دی صرف تعبير ترې مضارع سره شوی دی.

**و عبرعنه الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کله چې په معنی د ماضي سره دی، نو مضارع سره ترې ولې تعبير کوي؟

**جواب**: چونکه دې اسمآء افعالو کې معنی د انشآء ده او موجود کول او نه موجود کول خو آئنده زمانه کې وي، ځکه مضارع سره تعبير کوي.

**سوال**: په دې خبره دې پوهه نه شو، چې تعبير ترې مضارع سره کيږي معنی په کې د انشآء پرته ده او بيا هم ته وايې چې په معنی د ماضي سره دی؟

**جواب**: دا خبره ځکه کوو، چې اسمآء افعال هم دي، نو په معنی د ماضي يا امر سره دی او اکثر لره حکم د کل وي، نو ځکه مونږ دغه خبره کوو.

بيا تقسيم ثاني په اسمآء افعالو کې دادی، چې افعال په دوه قسمه دي، قياسي او سماعي:
قياسي هغه دي چې په معنی د امر او ماضي سره وي ، او سماعي چې سمع يې د عربو نه شوې وي، په معنی د امر او ماضي سره.

تقسيم ثالث دادی، چې دا دوه قسمه دي صحيح او ملحقات صحيح هغه دي، چې سماعي او قياسي وي. او ملحقات هغه دي چې وزن د هغې دا اسمآء افعالو وي.

**مثل رويد**: غرض د ماتن د اسم فعل دپاره مثال ذکر کول دي.

**و هيهات ذاك**: غرض د ماتن دوهم مثال ذکر کول دي، ذاك کې ضمير مخکې زيد ته راجع دی په اصل کې مثال داسې دی، **هيهات زيدٌ**.

اي امهله: غرض د شارح تطبيق دمثال دي د ممثل سره، چې رويد اسم فعل په معنی د امهله امر سره دی.

اي بعد: غرض د ماتن تطبيق د مثال دی د ممثل سره، چې هيهات اسم فعل په معنی د بعد فعل ماضي سره دی.

مثال لما هو بمعنى الامر: غرض د شارح تعيين د ممثل دی، او بل غرض دفع د يو سوال ده:

**سوال:** مثال دپاره د وضاحت راځي، او وضاحت دپاره يو مثال کافي وو، دوه مثالونه يې ولې ذکر کړي دي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې تعدد د مثالونو بنآء دی، په تعدد د ممثلاتو، يو مثال د هغه دی چې بمعنى الامر وي او دوهم مثال د هغه اسم فعل دی، چې بمعنى الماضي وي.

بفتح التآء الخ: غرض د شارح تعيين د ممثل کول دي، بيا دعدد د امثلو دپاره دوهمه وجه داده، چې اول مثال د متعدي اسم فعل دی او دوهم مثال د لازم اسم فعل دی. دريمه وجه د فرق داده. چې اول مثال د هغه اسم فعل دی، چې په غير د اسم فعل نه په عربو کې د هغې استعمال شوی وي، او دوهم مثال د هغه اسم فعل دی، چې په غير د اسم فعل نه په عربو کې د هغې استعمال نه وي شوی.

وقدم الامر الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** اسم فعل هغه وي، چې په معنی د امر او ماضي سره راځي. اوس وجه د تقديم د امر څه ده؟ سره ددې نه چې طبع تقاضا د خلاف کوي، ځکه چې ماضي په وقوع کې مخکې وي او امر وروستو وي، او بله وجه داده، چې هيهات لازمي دي او رويد متعدي دي، نو لازمي مخکې کول په کار وي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، حاصل د هغې دا دی، چې دلته د يو بلې طبعي لحاظ هم ساتل شوې دی، هغه دا چې اسم فعل په معنی د امر سره کثير الوقوع والاستعمال مقدم کوي په قليل الوقوع والاستعمال باندې

والذی حملهم الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کله چې دا اسمآء افعال په معنی د امر او ماضي سره راځي، نو دې ته افعال ولې نه وايې؟

**جواب**: ددې سوال نه يو جواب عام خلکو کړی دی او يو جواب شارح کړی دی، شارح به خپل جواب وکړي او د نورو په جواب به رد وکړي، حاصل دده د جواب دادی، چې هغه شی چې دوی لره يې په دې خبره تيز کړی دی، چې د کلماتو ته افعال نه وايي او اسمآء افعال ورته وايي، هغه دا خبره ده، چې ددې اسمآء افعالو صيغې د افعالو نه خلاف دي، دوهم دا چې فعل کې تصرف کېږي او دې اسمآء افعالو کې تصرف نه کېږي.

لا انها الخ: غرض د شارح رد دی په بعض الناس باندې، ځينې خلکو داسې جواب کړی دی، چې دې ته افعال ځکه نه وايي، چې ددې کلماتو وضع دپاره د صيغو د افعالو شوې ده. اوس که دې ته مونږ افعال ووايو نو وضع د شيء لنفسه لازمېږي، او دا خبره صحيح نه ده، ليکن شارح په دې جواب رد وکړو، چې دا جواب صحيح نه دی، چې وجه يې وروستو راځي

قال الشارح الرضي الخ: يو غرض د شارح رضي دی په خپل عبارت سره او دوهم غرض د شارح دی په نقل کولو د عبارت سره غرض د شارح رضي خو دا دی.

د اسمآء افعالو وضع دپاره د صيغو د افعالو شوې ده (مثلاً صَهْ نوم دی د لفظ د اسکت، هغه اسکت چې په معنی د فعل دلالت کوي، نو ګنې دا صه علم د لفظ ددې فعل دی او د معنی دپاره نه دی) نو دا خبره هيڅ هم نه ده، نو دعوی يې هم رد کړه او دليل هم. اوس دا ولې؟ نو اذالعزنی الخ سره خپلې خبرې دپاره دليل پيش کوي، چې وجه داده چې خالص عربي دان کله کله صه لفظ استعمال کړي او د هغه په زړه د اسکت لفظ خيال هم نه وي تېر شوی ا وکله کله هغه دا اسکت د سر نه اورېدلی هم نه وي.

غرض د ماتن په نقل د عبارت د شارح رضي سره دادی، چې دغه مذکور خبره يواځې زه نه کوم، بلکې شارح رضي هم دغه خبره کړې ده، چې دغه اسمآء افعال اسمآء د لفظ د فعل ماضي او امر نه دي، بلکې په معنی د ماضي او امر سره دي.

ولهذا قال الخ: سره يې د تفريع په طريقه حاصل ذکر کړو، چې ددې وجې نه مصنف عبارت داسې راوړی دی ماکان بمعنی الامر الخ

والمتبادر الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال:** ستا دا تعریف د اسمآء افعال صحیح نه دي، ځکه مانع نه دی او کوم تعریف چې مانع نه وي، هغه صحیح نه وي، مانع داسې نه دی، چې داخلیږي په کې اسم فاعل په دې قول کې الضارب امس، ځکه دا اسم فاعل دی په معنی د ماضي سره دی، حالانکه دې ته خلك اسم فعل نه وایي؟

**جواب:** مونږ وایو چې په معنی د امر او ماضي سره وي، خو په اعتبار د وضع سره او الضارب اسم فاعل په معنی د ماضي سره دی، خو په اعتبار د استعمال سره نه، که په اعتبار د وضع سره.

**سوال:** مخکې د فعل په تعریف کې مونږ ویلي وو چې فعل هغه دی چې اعتبار د اصل وضع سره په معنی فی نفسها دلالت کوي، او دې سره مونږ افعال د اسمآء افعال نه جدا کړي وو، چې اسمآء افعالو کې اصل وضع نشته او دلته خو ورلره وضع ثابت کړه، دا خو تعارض دی؟

**جواب:** د وضع دپاره ډیر اقسام دي، هلته وضع اصطلاحي مراد وه، او دلته وضع عرفي مراد ده. لهذا تعارض نشته.

| |
|---|
| وَ فَعَالِ اَیْ مَا یُوْزَنُ بِفِعَالِ الْکَائِنُ بِمَعْنَی الْاَمْرِ الْمُشْتَقِ مِنَ الثُّلَاثِیِّ الْمُجَرَّدِ |
| اوفعال کوم چې وزن یې فعال راشي اوکوم فعال چې وي په معنی دامر مشتق دثلاثي مجرد نه قیاس دي |
| قِیَاسٌ اَیْ قِیَاسِیٌّ کَنَزَالِ بِمَعْنَی اَنْزِلْ قَالَ سِیْبَوَیْهِ هُوَ مُطَّرِدٌ فِی الثُّلَاثِیِّ الْمُجَرَّدِ وَ یَرِدُ |
| یعني قیاسي دي لکه نزال په معنی دانزل سیبویه وایي چې داجاري شوي په ثلاثي مجرد کې اووارديږي |
| عَلَیْهِ اَنَّهُ لَا یُقَالُ قَوَامِ وَ قَعَادِ وَ بِمَعْنَی قُمْ وَ اقْعُدْ فَلِهٰذَا یُؤَوِّلُ بَعْضُهُمْ قَوْلَ سِیْبَوَیْهِ |
| په دې باندې سوال چې په قوام او قعاد کې قم او اقعد نه ویل کیږي د دې وجې تاویل کړي بعضو قول د سیبویه |
| بِاَنَّهُ اَرَادَ بِالْاِطِّرَادِ الْکَثْرَةُ فَکَاَنَّهُ قِیَاسٌ لِکَثْرَةِ |
| داسې چې مراد د طرد اللباب نه کثرت استعمال د دوي دي ګویا که دا قیاس شي دوجې د کثرت استعمال نه |
| وَ اَمَّا فِی الرُّبَاعِیِّ فَاتَّفَقُوْا عَلٰی اَنَّهُ لَمْ یَاْتِ اِلَّا نَادِرًا وَ فَعَالِ حَالَ کَوْنِهٖ مَصْدَرًا مَعْرِفَةً |
| او هرچې په رباعي کې دي نو بالاتفاق هغه کم راځي اوفعال په داسې حال کې چې مصدر معرفه وي لکه |
| کَفَجَارِ بِمَعْنَی الْفَجْرَةِ اَوِ الْفُجُوْرِ قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِیُّ هُوَ عَلٰی مَا قِیْلَ مَصْدَرٌ |
| فجار په معنی د الفجرة او فجور شارح رضي وایي چې دا قول بنا دهغه چا په مذهب دي چې وایي چې مصدر |

| مَعْرِفَةٌ مُؤَنَّثٌ وَ لَمْ يَقُمْ لِيْ اِلَى الْآنَ دَلِيْلٌ قَاطِعٌ عَلٰى تَعْرِيْفِهٖ وَ لَا تَانِيْثِهٖ وَ حَالَ كَوْنِهٖ |
|---|
| معرفه مؤنث وي او ماته نه دي ملاؤ شوې تر اوسه پورې دليل يقيني په تعريف او تانيث د دې او په داسې حال |
| صِفَةٌ لِمُؤَنَّثٍ مِثْلُ يَا فُسَاقِ بِمَعْنٰى يَا فَاسِقَةُ مَبْنِيٌّ اَيْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الْقِسْمَيْنِ الْاَخِيْرَيْنِ مَبْنِيٌّ |
| كې چې وي صفت د مؤنث لكه فساق په معنى د يافاسقة سره نو دا مبني دي معنى دواړه اقسام مبني دي ځكه |
| لِمُشَابَهَةٍ لَهٗ اَيْ لِفَعَالِ بِمَعْنَى الْاَمْرِ عَدْلًا وَ زِنَةً اَمَّا زِنَةً فَظَاهِرٌ وَ اَمَّا عَدْلًا |
| چې مشابهت لري د معنى دامر سره په عدل او وزن كې وزني مشابهت يې ښكاره دي او عدلي مشابهت هغه |
| فَلِمَا ذَهَبَ اِلَيْهِ النُّحَاةُ اَنَّ فَعَالِ بِمَعْنَى الْاَمْرِ مَعْدُوْلٌ عَنِ الْاَمْرِ الْفِعْلِيِّ |
| دي نو ذهاب نه دي كړي دې ته نحويانو چې فعال په معنى دامر سره معدول دي د امر فعلي نه كوم چې د |
| لِلْمُبَالَغَةِ وَ هٰذِهِ الصِّيْغَةُ لِلْمُبَالَغَةِ فِي الْاَمْرِ كَفَعَّالٍ وَ فَعُوْلٍ لِلْمُبَالَغَةِ فِيْ |
| مبالغې دپاره دي او دا صيغه د مبالغې د پاره په امر كې په شان د فعال او فعول ده د پاره د مبالغې په |
| فَــــاعِــــلٍ. |
| فاعل كې. |

**اغراض دجامي** : وفعال الخ: هر كله چې فارغ شو ماتن د يو قسم اسماء افعال نه، چې سماعي وو يعنې په معنى د ماضي او امر سره راځي او محصور وي د سمع پورې، نو اوس بيان د قياسي كوي، يعنې چې په داسې طريقه د عربو نه اوريدلى شوې وي، چې نور پرې قياس كولى شي، دا قياسي بيا په دوه قسمه دي: حقيقتاً، چې په معنى د امر سره وي. حكمي ملحقات: چې په معنى د امر سره نه وي خو د هغه اسمآء افعال په وزن وي، چې په معنى د امر سره وي، لكه وروستو مصدر معرفه وغيره راځي، نو دى ددغه احكام ذكر كوي، وايي هغه فعال چې په معنى د امر سره د ثلاثي مجرد نه راشي نو دا به اسم فعل قياسي وي، لكه نزال په معنى د انزل سره راځي، او مقصود په دې كې تاكيد وي، لكه تاته نون تاكيد ګران ښكاري، نو ضراب ووايه، نو تاكيد به ادا شي، سره د تخفيف نه، ځكه د نون تاكيد اداء كول زور غواړي، او د چا چا نه ذور نه كېږي.

اى مايوزن: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي :

**سوال** : مطابقت نشته په مينځ د مثال او ممثل كې، ځكه په ممثل كې فعال او په مثال كې نزال ذكر دى؟

**جواب:** مونږ وايو لفظ د فعال مراد نه دی، بلکې وزن د فعال مراد دی، او نزال په وزن د فعال سره دی.

الكائن: غرض د شارح د بمعنى الامر جار مجرور دپاره متعلق راويستل دي، نو دا په اعتبار د متعلق سره د فعال دپاره صفت دی. بيا دا صفت يې نکره او حال ونه ګرځوو، بلکې معرفه معرف باللام يې وګرځوو، دې دپاره چې غتوالی د معنی راشي.

المشتق: غرض د شارح د جار مجرور دپاره متعلق راويستل دي، بيا متعلق يې د افعال خاصه نه راويسته ، ځکه قرينه پرې من الثلاثي موجوده.

المجرد: دې لفظ راويستو کې اشاره ده، چې مطلق ثلاثي مراد نه دی، بلکې ثلاثي مجرد مراد دی، الف لام عهدي دی، وجه داده، چې د ثلاثي مزيدو نه فعال په معنی د امر سره نه راځي.

ای قیاسيٌ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال:** و فعال بمعنى الامر من الثلاثي مبتداء ده او قياسٌ خبر دی او خبر حمل وي په مبتداء باندې او دلته حمل نه صحيح کېږي، ځکه قياسٌ مصدر دی نو حمل د وصف په ذات راځي؟

**جواب:** دلته حمل حقيقتاً نه دی، بلکې مجازاً دی بيا مجاز في الكلمة دی په معنی د قياسيٌ سره دی او شارح دغه توجيه کړې ده يا مجاز في الحذف دی ای ذو قياس، لهذا حمل صحيح دی.

كنزال: غرض د ماتن مثال پيش کول دي.

**سوال:** چې نزال وايي نو انزل ولې نه وايي؟

**جواب:** ځکه چې دا د تاکيد دپاره راځي.

**سوال:** لام، او نون تاكيد دې مستعمل کړي کنه؟

**جواب:** لام او نون تاكيد په اداء کولو کې زور غواړي او ځيني خلکو ته دا زورونه کول ګران وي، هغې دغه ساده لفظ ووايي.

قال سيبويه الخ: غرض د شارح سوال ته تمهيد ايخودل دي، وايي چې : سيبويه ويلي دي، چې دا فعال بمعنى الامر د ثلاثي مجرد نه قياسي دي، نو څومره ثلاثي مجرد چې راځي، نو د هغې نه راتلې شي.

ويرد الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ستا دغه قاعده صحيح نه ده، ځکه قوام، قعاد چېرته په معنی د قم، اقعد، سره نه دي راغلي، او سره ددې نه چې دا ثلاثي مجرد دي؟

فلهذا الخ: غرض د شارح جواب ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی، چې دا قاعده اکثري ده.

فكانه قياس الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: هر کله چې مطرد نه کثرت مراد اخلي، نو کثرت سره تعبير ولې نه کوې؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې ګويا که دا قاعده ده ځکه اکثر لره حکم د کُل وي.

واما الرباعي الخ: غرض د شارح د ثلاثي قيد فائده ذکر کول دي، وايي الثلاثي قيد ورسره ځکه ولګولو، چې په رباعي کې دا قسم نادر راغلی دی او نادر په منزله د عدم وي او هغه صرف دوه الفاظ دي، قرقار، عرعار، لهذا دې نادر لره اعتبار نشته.

وفعال مصدراً الخ: کله چې فارغ شو ماتن د اسمآء افعالو قياسي حقيقي نه، نو شروع يې وکړه په اسمآء افعالو قياسي غير حقيقي کې، يعنې حقيقت کې اسمآء افعال نه دي، خو ددې په وزن دي، نو ځکه يې دې باب کې ذکر کړو.

**سوال**: د اما بعد خو نه بمعنى الامر دی او نه بمعنى الماضي دی، نو دلته يې ولې ذکر کوې؟

**جواب**: مونږ وايو دا اسمآء افعال حکمي دي، يعنې د هغې په وزن دي، نو د وزن د مناسبت د وجې نه يې ذکر کړو.

حال كونه: غرض د شارح د مصدراً وجه د نصب ذکر کول دي، چې دا منصوب دي بنآء برحاليت وروستو د مبني د ضمير نه حال دی.

**سوال**: دا خو تقديم د حال په ذوالحال راغلو؟

**جواب**: دا تقديم د حال په ذوالحال هغه وخت ناروا دی، چې عامل معنوي وي او دلته مبني عامل لفظي دي بيا يې دلته مصدر او معرفه وويلو، ځکه دا مشابه دی د فعال بمعنى الامر سره نو د هغې فرع دي، اوس چې دې کې مصدريت او معرفه راغلو، نو فرعيت به مضبوط شي، لکه غير منصرف کې دوه فرعي دي او فعل کې هم دوه فرعي دي، نو فرعيت د غير منصرف دې سره مضبوطېږي.

كفجار الخ: غرض د ماتن مثال پیش کول دي، غرض د شارح ددې مثال معاني ذکر کول دي، بیا دوه معاني يې ذکر کړي، یو مصدر او دوهم اسم مصدر دی، یا یو ذوالتآء او دوهم په غیر د تآء نه دي بیا دا دواړه معاني معرفې دي اشاره دې ته چې فجار معرفه ده.

قال الشارح: غرض د شارح په نقل کولو د عبارت سره سوال ته تمهید دی. وايي شارح رضي ويلي دي، چې خلك دې فجار ته مصدر معرفه مؤنث وايي.

ولم يقم الخ: په دې عبارت سره شارح هغه سوال کوي:

**سوال**: هغه سوال دادې چې ددې په تعریف او تانیث هیڅ دلیل نشته، تاسو جواب کولې شئ؟

**جواب**: په فجار کې عدل تقدیري دی او عدل تقدیري دلیل ته محتاج نه دی. عدم وجدان د دلیل ستا دلالت نه کوي، په عدم وجدان د دلیل په نفس الامر کې.

یاداچې دلته دلیل قاطع به نه وي، خو دلیل ظني شته، ځکه ټول خلك الفجرة قبيح المنظر زنانه ته وايي او د نحوې ټول دلائل ظني دي.

وصفةً: دوهم قسم د فعال قیاسي حکمي هغه دي، چې صفت د مؤنث وي، لکه فساق په معنی د فاسقةٌ سره راځي.

مبني: دا يې ورلره حکم ذکر کړو، چې دا هم مبني دی.

**سوال**: نسبت د مبني دوه شیانو ته شوې دی، نو مبنیان په کار وو؟

**جواب**: دا نسبت په تاویل د كل واحدٍ سره شوی دی، بیا چونکه په كل واحدٍ کې عموم وو، فعال بمعنى الامر ته هم شاملیده، بیا هغه مخکې عبارت قياسٌ بې فائده ګرځېدو نو شارح ددغه وهم ددفع دپاره ویل چې من القسمين الآخرين.

لمشابهته: غرض د ماتن وجه د بنآء ذکر کول دي، یعنې د وجهې د مشابهت د هر واحد نه د فعال بمعنى الامر سره. اوس هر واحد د فعال مصدري او صفتي نه مشتبه شو او فعال بمعنى الامر مشبه به شو. اوس وجه د شبه څه ده؟ نو هغه ماتن ذکر کوي، چې:

عدلاً وزنةً: غرض د ماتن وجه د شبه ذکر کول دي، شارح وايي چې وزن کې خو مشابهت ظاهر

دی، ځکه د دواړو وزن فعال دی او په عدل کې مشابهت دادی. چې څنګه فعال بمعنی الامر د
النزال نه معدول دی، همدارنګې دا فعال مصدري او صفتي هم معدول دی دپاره د مبالغې په
فاعل کې.

قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيُّ وَ الَّذِيْ اُرٰى اَنَّ كَوْنَ اَسْمَاءِ الْاَفْعَالِ مَعْدُوْلَةً عَنْ اَلْفَاظِ الْفِعْلِ شَيْءٌ لَا دَلِيْلَ لَهُمْ
شارح رضي وايي زما رای داده چې دانظریه چې اسماء افعال معدول دي الفاظو د فعل نه هیڅ دلیل نشته
عَلَيْهِ كَيْفَ وَ الْاَصْلُ فِيْ كُلِّ مَعْدُوْلٍ عَنْ شَيْءٍ اَنْ لَا يَخْرُجَ عَنِ النَّوْعِ الَّذِيْ ذٰلِكَ الشَّيْءُ
په دې باندې ځکه چې اصل په معدول کې داده چې عدول ځیز د هغه څه نه، نه خارجوي کوم کې چې دې
مِنْهُ فَكَيْفَ خَرَجَ الْفِعْلُ بِالْعَدْلِ عَنِ الْفِعْلِيَّةِ اِلَى الْاِسْمِيَّةِ وَ اَمَّا الْمُبَالَغَةُ فَهِيَ ثَابِتَةٌ
وومخکې د عدل نه نو فعل څنګه په عدول سره د فعلیت نه اسمیت ته خارج شو او هرچې مبالغه ده نو دا ثابته
فِيْ جَمِيْعِ اَسْمَاءِ الْاَفْعَالِ وَ بَيَّنَ وَجْهَهَا فِيْ كَلَامٍ طَوِيْلٍ فَمَنْ اَرَادَ الْاِطِّلَاعَ عَلَيْهِ فَلْيَرْجِعْ اِلَيْهِ وَ
ده په ټولو اسماء افعالو کې او بیان کړي وجه د دې په تفصیل سره شوک یې چې ګوري هلته دې وګوري او
فَعَالِ حَالَ كَوْنِهٖ عَلَمًا لِلْاَعْيَانِ اَيْ لِعَيْنٍ مِنَ الْاَعْيَانِ وَ اِنَّمَا قَالَ
کوم په حال کون دې کې چې دا به علم وي دپاره د اعیانو یعنې دپاره د عین د اعیانو او په تحقیق سره یې وویل
عَلَمًا لِيَخْرُجَ بَابُ فَسَاقِ وَ اِنَّمَا قَالَ لِلْاَعْيَانِ لِيَخْرُجَ عَنْهُ بَابُ فَجَارِ لِاَنَّهٗ وَ اِنْ كَانَ عَلَمًا
علما چې خارج شي په دې سره باب د فساق خارج شو او په قید د اعیان سره باب د فجار خارج شو دا اګرکه علم دي
كَمَا قَالُوْا لٰكِنَّهٗ لِلْمَعَانِيْ لَا لِلْاَعْيَانِ وَ قَوْلُهٗ مُؤَنَّثًا صِفَةُ عَلَمًا وَ
لکه څنګه یې چې ویلي لیکن د معانیو دپاره نه د اعیانو دپاره او دا قول چې مؤنثا دا صفت او علم دي او
ذِكْرُهٗ لِلتَّنْبِيْهِ عَلٰى اَنَّهٗ لَمْ يَقَعْ اِلَّا كَذٰلِكَ كَقَطَامِ عَلَمًا لِلْمُؤَنَّثِ وَ غَلَابِ كَذٰلِكَ مَبْنِيٌّ
ذکر یې دپاره د دې خبر دي چې دا همیشه همدارنګې راځي لکه قطام علم دپاره د مؤنث دي او غلام هم مبني
فِيْ اِسْتِعْمَالِ اَهْلِ الْحِجَازِ لِمُشَابَهَتِهٖ فَعَالِ بِمَعْنَى الْاَمْرِ عَدْلًا وَ
دي په استعمال د اهل حجازو کې ځکه چې مشابهت لري د فعال سره چې په معنی د امر سره وي په عدل او
زِنَةً وَ مُعْرَبٌ فِيْ اِسْتِعْمَالِ بَنِيْ تَمِيْمٍ اِلَّا مَا كَانَ فِيْ اٰخِرِهٖ اَيْ اِلَّا فِيْ فَعَالِ
وزن کې او معرب دي په استعمال د بني تمیم کې مګر چې کله وي په آخر د دې یعنې مګر په فعال کې چې
عَلَمًا لِلْاَعْيَانِ يَكُوْنُ فِيْ اٰخِرِهٖ رَاءٌ فَاِنَّ بَنِيْ تَمِيْمٍ اِخْتَلَفُوْا فِيْهِ فَاَكْثَرُهُمْ يُوَافِقُوْنَ
علم دي دپاره د اعیان وي به په آخر د دې کې راء ځکه بني تمیم اختلاف لري په دې کې زیات یې موافق

| |
|---|
| الحِجَازِيُّوْنَ فِيْ بِنَائِهٖ وَ اَكْثَرُهُمْ لَا يَفْرُقُوْنَ بَيْنَ ذَوَاتِ الرَّاءِ وَ غَيْرِهَا بَلْ |
| دي دحجازيانوسره په مبني والي دهغې کې اوکم يې فرق نه کوي په ذوات الراءاوغير ذوات الراء کې بلکه |
| يَحْكُمُوْنَ بِاِعْرَابِ الْكُلِّ نَحْوُ حَضَارِ عَلَمًا لِكَوْكَبٍ وَجْهُ الْاَكْثَرِيْنَ اَنَّ الرَّاءَ حَرْفٌ مُسْتَثْقَلٌ لِكَوْنِهٖ |
| تولوته اعراب ورکوي لکه حضارچې نوم دستوري دي وجه دا کثرو داده چې راء حرف ثقيل دي دوجې دکيدو |
| فِيْ مَخْرَجِهٖ كَالْمُكَرَّرِ فَاخْتِيْرَ فِيْهِ الْبِنَاءُ لِاَنَّهٗ اَخَفُّ اِذْ سُلُوْكُ |
| نه په مخرج خپل کې په شان دمکررده نوغوره شوې په دې کې بنا ځکه مبني اخف ده ځکه چې تلل په |
| طَرِيْقَةٍ وَاحِدَةٍ اَسْهَلُ مِنْ سُلُوْكِ طَرَائِقَ مُخْتَلِفَةٍ. |
| يوه لاره آسان دي دتللو نه په ډيرو لارو اومبني هم په يوه لاره تلل دي |

**اغراض دجامي : قال الشارح الرضي الخ** : غرض د شارح رضي سوال کول دي په ماتن باندې :

**سوال:** مشابهت د فعال مصدري ا وصفتي د فعال بمعنى الامر سره عدلاً ويل صحيح نه دي، ځکه قانون په عدل کې دادی، چې دا به د خپل نوع نه. نه وځي که معدول عنه فعل وو، نو معدول به هم فعل وي او که معدول عنه اسم وو، نو معدول به هم اسم وي او دلته معدول عنه فعل دی او معدول اسم دی ، دوهمه وجه داده، چې په دې دليل نشته ؟

**جواب:** د دوهم دليل نه جواب دادی، چې عدل تقديري دليل ته محتاج نه دی، او د اول سوال نه جواب دا دی، چې دغه قاعده په عدل لفظي کې ده او دلته خو عدل تقديري دی.

**وعلماً للاعيان:** هر کله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د درې قسمونو د فعال نه، چې يو اسم فعل او دوه ملحقان وو، نو اوس مجموعه کې څلورم قسم او ملحقانو کې دريم قسم ذکر کوي.

**وفعال حال الخ** : غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا عطف دی په مصدراً باندې او ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي په ما قبل د معطوف کې نو فعال يې معاد کړو، بيا دا علماً منصوب وو، نو علت د نصب ذکر کوي، چې دا منصوب دی بر برحاليت او عامل په دې حال کې مفهوم د مبني ا ومعرب دی عصام صاحب وايي، چې مفهوم د مبنيٌ معربٌ عامل ګرځول صحيح نه دي، بلکې دا مبنيٌ لفظ عامل ګرځول په کار دي؟ ليکن باسولي دې ترکيب لره ترجيح ورکړې ده.

**اى لعين من الاعيان** : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** : مثال دې مطابق د ممثل سره نه دی، ځکه په ممثل کې للاعيان ذکر دی او مثال د يو عين دی؟

**جواب**: شارح وايي چې دا للاعيان صفت د عين دی په اعتبار د متعلق سره او عين مفرد دی، نو مثال مطابق د ممثل سره دی.

**وانما قال الخ**: غرض د شارح د علماً قيد فائده ذکر کول دي، چې قيد سره باب د **فساق** يعنې **فعال** صفتي خارج شو، ځکه هغه علم نه وي.

**وانما قال الخ**: غرض د شارح د للاعيان قيد فائده ذکر کول دي، چې دې قيد سره باب د **فجار** يعنې **فعال** مصدري خارج شو، ځکه هغه اګر چې علم وي، ليکن د معاني دپاره وي، نه که د اعلامو دپاره.

**ومؤنثاً الخ**: په دې عبارت سره غرض د شارح د **مؤنثاً** دپاره وجه د نصب ذکر کول دي چې دا صفت د علماً دی.

**وذکره الخ**: غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا **مؤنثاً** قيد احترازي نه دی، بلکې اتفاقي دی يعنې هسې وقوع ددې قسم داسې شوې ده، چې مؤنث وي نور دا قيد اتفاقي دی، مؤنث کيدل ورله شرط نه دی.

**کقطام**: غرض د ماتن مثال ذکر کول دي، او شارح تطبيق د مثال د ممثل سره کوي.

**مبنيٌّ**: غرض د ماتن خو حکم ددې قسم ذکر کول دي، چې دا مبني دی او بيا دې کې اختلاف ذکر کوي، چې د اهل حجاز دا مذهب دی.

**في استعمال اهل الحجاز**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: حجاز خو د علاقې نوم دی، او دغه علاقه خو مبني کول نه شي کولی، ځکه بنآء خو صفت د متکلم دی، نو هغې ته څنګه نسبت کوي؟

**جواب**: شارح ورسره اهل لفظ راويستو.

**سوال** : بيا بل سوال دا وو، چې في د ظرفيت دپاره وي او ظرف حقيقي يو زمان او بل مکان دی او ظرف مجازي خو په صفاتو کې راځي. اوس اهل حجاز خو نه ظرف حقيقي دي او نه ظرف مجازي دي، نو في لفظ څه لره راوړې؟

**جواب**: دا عبارت په حذف د مضاف سره دی ای في استعمال اهل الحجاز، او استعمال نسبت دی په مینځ د مستعمل او مستعمل کې مستعمل متکلم او مستعمل دا لفظ شو. نو دا استعمال نسبت شو د مستعمل دپاره، او نسبت د شيء په حکم د صفت کې وي، نه د دغه شيء دپاره.

لمشابهته الخ: غرض د شارح وجه د بنآء ذکر کول دي، چې دا د **فعال بمعنی الامر** سره په عدل او وزن کې مشابهت ساتي. وزن کې مشابهت خو ظاهر دي، او عدل کې مشابهت داسې چې **قطام** د **قاطمة** نه معدول دي هغه زنانه ته وايي چې جنګ کې زوروره وي.

معربٌ في الخ: دا هغه اختلاف بیان شو، بیا دا راویستو الا حرف استثنآء ده. مستثنی منه **معربٌ** دی، خو یو قید ددې سره دی او هغه دا دی **ومعربٌ بالاتفاق**.

في استعمال بني تميم الا ماكان في آخره الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ظاهر د عبارت نه دا معلومه ده، چې فعال علم داعیان مؤنثه به په نزد د بنو تمیم معرب وي، خو که آخر کې رآء وه، نو بیا به د دوی په نزد مبني وي، حالانکه خبره خو داسې ده، چې کله په آخر ددې کې رآء وي، نو بیا په کې د دوي اختلاف دی؟

**جواب**: مونږ وایو دا استثناء د معرب نه ده، لیکن مونږ ورسره دا قید د بالاتفاق لګوو. اوس خبره واضح ده، چې دغه قسم فعال د بنو تمیم په نزد بالاتفاق معرب ده، خو چې په آخر کې رآء وي، نو په هغې کې بیا اختلاف دی، بیا ځینو په دې صورت کې معرب او ځینو مبني ویلي دي.

نحو حضار: غرض د ماتن ذکر کول دي، شارح یې معنی کوي، د اعلم د کوکب ستوری دی.

وجه الاکثرین الخ: غرض د شارح وجه د اختیار د بنآء ذکر کول دي او هغه داده، چې رآء ثقیله ده، ځکه دا د خپل مخرج نه د آداء کیدو سره مکرر کېږي، نو په دې کې بنآء غوره کړې شوه. بیا وجه د نفس بنآء مخکې ذکر شوې ده، هغه مشابهت دی او وجه د اختیار د کسرې (سره ددې نه چې اصل په بنآء کې سکون دي) هغه داده، چې د سکون سره التقآء د ساکنینو راځي او چې کسره ورکړو، نو اما له به راشي او دا مستحسن ده په نزد د عربو دپاره د خفت، بیا اما له په لغت کې مائل کولو ته وايي. او په اصطلاح کې الف یآء ته او زبر زیر ته مائله کولو ته اما له

وايي. اوس دا هله کېږي، چې مونږ کسره ورکړو

لانه الخ: دې ته تدقيق وايي، دليل دپاره دليل ذکر کوي دا ددوي دليل وو او د بعضو دليل دادی، چې دا په شان د قطاب او غلاب دی او معرب دی دپاره ددې، چې حکم د باب مختلف نه شي.

## تعريف د اسماء اصواتو:

| |
|---|
| الْأَصْوَاتُ اِعْلَمْ اَنَّ الْأَصْوَاتَ الْجَارِيَةَ عَلٰى لَفْظِ الْاِنْسَانِ اِمَّا مَنْقُوْلَةٌ اِلٰى بَابِ الْمَصَادِرِ وَ لَزِمَتْ |
| اصوات پوهه شه چې هغه اصوات چې جاري وي په لفظ د انسان يا منقول دي باب د مصادر وته او لازم شوې |
| الْمَصْدَرِيَّةُ وَ لَمْ تَصِرْ اسْمَ فِعْلٍ اَوْ لَمْ تَلْزِمِ الْمَصْدَرِيَّةُ فَصَارَتْ اِسْمَ فِعْلٍ فَالْاَوَّلُ |
| ورسره مصدريت او اسماء افعال نه ګرځي او نه ورسره مصدريت لازمي دي نو وګرځيدل اسماء افعال نو اول |
| مِثْلُ وَاهًا لِلتَّعَجُّبِ وَ حُكْمُهٗ حُكْمُ الْمَصَادِرِ وَ الثَّانِيْ مِثْلُ مَهْ وَ صَهْ وَ حُكْمُهٗ حُكْمُ اَسْمَاءِ |
| لکه واها دپاره د تعجب او حکم يې په شان د حکم د مصادر و دي دوهم لکه قرء او صه حکم يې حکم د اسماء |
| الْاَفْعَالِ وَ اَمَّا غَيْرُ مَنْقُوْلَةٍ بَلْ بَاقِيَةٌ عَلٰى مَا كَانَتْ عَلَيْهِ حِيْنَ كَوْنِهَا اَصْوَاتًا سَاذِجَةً |
| افعالو دي او يا به غير منقوله وي بلکه باقي به وي په خپل حالت کوم باندې چې مخکې وو چې هغه خالص |
| وَ لَمْ تَصِرْ مَصَادِرَ اَسْمَاءِ اَفْعَالٍ وَ هِيَ عَلٰى اَنْوَاعٍ فَمِنْهَا مَا |
| اصوات وو چې صيرورت يې نه وي کړي مصادر و د اسماء افعالو ته او دا په څو قسمه دي بعضې هغه دي چې |
| يَعْرِضُ لِلْاِنْسَانِ عِنْدَ عُرُوْضِ مَعْنًى لَهٗ كَقَوْلِ الْمُتَنَدِّمِ وَ الْمُتَعَجِّبِ |
| عارضيږي انسان ته په وخت د عروض د يو معنى کې د ه سره لکه قول د پښيمان سړي يا د متعجب سړي |
| وَىْ وَحْ لَا تَقْدِرُ اَنْ تَحْكُمَ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ وَ بِهٖ عَلٰى شَيْءٍ وَ مِنْهَا مَا يَجْرِيْ |
| وي وح او قدرت نه لري چې حکم وشي پرې د يو څيز ياده باندې دپاره د بل څيز بعضې هغه دي چې جاري |
| لَفْظُ الْاِنْسَانِ عَلٰى سَبِيْلِ الْحِكَايَةِ بِاَنْ يَصْدُرَ مِنْ نَفْسِهٖ مَا يُشَابِهُ صَوْتَ شَيْءٍ كَمَا اِذَا قُلْتَ غَاقِ قَاصِدًا |
| کيږي په لفظ د انسان په طريقې د حکايت سره په داسې شان چې صادر شي د نفس نه هغه څه چې مشابهت |
| لِاِصْدَارِ مَا يُشَابِهُ صَوْتَ الْغُرَابِ عَنْ نَفْسِكَ وَ حِيْنَئِذٍ |
| لري د اواز د يو څيز سره لکه ته چې وايي عاق او نيت وي مشابهت دې آواز د کارغه سره نو اوس په دې وخت |
| لَا تَقْدِرُ اَنْ تَحْكُمَ عَلَيْهِ اَوْ بِهٖ وَ مِنْهُمَا مَا يُصَوِّتُ |
| کې ته فيصله نه شې کولې په دې باندې او يا دې دپاره بعضې هغه دي چې آواز کولې شي په هغې باندې |

| لِاَجْلِ حَيَوَانٍ اِمَّا لِزَجْرٍ اَوْ لِدُعَاءٍ اَوْ غَيْرِ ذٰلِكَ كَمَا اِذَا قُلْتَ نَخْ لِاَنَاخَةِ الْبَعِيْرِ |
| --- |
| دپاره دحیوان یادپاره دشړلو دحیوان اویادپاره دراغوښتلو اویادبل څیزلکه چې ته وایي نخ داوښې څوکولو |
| وَ حٍ اَيْضًا لَا تَقْدِرُ اَنْ يَحْكُمَ عَلَيْهِ زَيْدٌ عِنْدَ التَّعَجُّبِ وَىْ اَوْ عِنْدَ اَنَاخَةِ |
| دپاره اوپه دې وخت کې فیصله نه شي کولې په دې باندې زید په وخت دتعجب کې اووي په وخت دڅو |
| الْبَعِيْرِ نَخْ اَوْ غَاقِ عِنْدَ حِكَايَةِ صَوْتِ الْغُرَابِ فَهِيَ فِيْ هٰذِهِ الْحَالَةِ اَيْضًا مَبْنِيَّةٌ لٰكِنْ لَا مِنْ حَيْثُ |
| کولو داوښې اویاغاق په وخت دحکایت داوازدقارغه نوداپه دې حالت کې همدارنګې مبني دي لکن |
| اَنَّهَا اَصْوَاتٌ بَلْ مِنْ حَيْثُ اَنَّهَا حِكَايَةٌ عَنْهَا. |
| ددې حیثیت نه ،نه چې دااصوات دي بلکې ددې حیثیت نه چې دلته حکایت کیدې شي ددې نه |

**خلاصه دمتن:** په دې عبارت سره د اصواتو تعریف کوي.

**اغراض دجامي:** الاصوات: چې کله فارغ شو ماتن د تفصیل د څلورو اقسامو د اسم مبني نه، نو شروع یې وکړه په تفصیل د پنځم قسم د اسم مبني کې، نو وې ویل الاصوات الخ.

دلته یو څو سوالات مخې ته راځي:

**سوال:** نفس تفصیل ولې کوي؟

**جواب:** نفس تفصیل څکه کوي، چې تفصیل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي.

**سوال:** تفصیل په دې مقام کې ولې کوي؟

**جواب:** تفصیل په دې مقام کې څکه کوي، یعنې تفصیل د اجمال نه خلاف شو په تر کې، څکه اجمال کې مرکبات او کنایات مخکې وو او اسماء افعال شپږمه مرتبه کې او اصوات اومه مرتبه کې وو، لیکن تفصیل کې دا دواړه مقدم کړو، لیکن اصل داده چې که د ټول تفصیل د اجمال سره موافق کړی وی، نو چا به ویل چې ګنې دا ترتیب فرض دی. نو ددې وهم د دفع کولو دپاره ماتن تفصیل د اجمال نه خلاف کړو. او بله دا هم ده، چې کیدې شي، د ناسخ نه غلطي راغلې وي.

**سوال:** تفصیل څنګه کوي؟

**جواب:** تفصیل داسې کوي چې د اصوات تعریف به وکړي کل لفظ الخ سره. بیا دوه قسمونه به ذکر کړي، حکمي به صوت او صوت به البهائم سره. بیا به د قسم اول مثال ذکر کړي، فالاول کغاق

سره او بیا به د قسم ثاني مثال ذکر کړي والثاني کنخ سره.

اعلم: غرض د شارح په اعلم سره تنبیه ده مخاطب ته په اقسامو د اصواتو باندې غرض د شارح په اعلم سره تنبیه ده مخاطب ته په امثله ددغه اقسامو باندې. دریم غرض د شارح په اعلم سره تنبیه ده مخاطب ته په حکم د هر قسم باندې، څلورم غرض د شارح په اعلم سره تنبیه ده مخاطب ته په وجه د بنآء د مبني اقسامو. پنځم غرض د شارح په اعلم سره تنبیه ده مخاطب ته په دفع د سوالاتو باندې.

اما منقولةٌ الخ: یعني اصوات په دوه قسمه دي، یو هغه دي چې مصادرو ته نقل شي او د مصدریت سره لازم وي، نو اسم فعل ترې نه وي جوړ، او دوهم هغه دی، چې د مصدریت سره لازم نه وي، نو اسم فعل ترې جوړوي، د اول مثال لکه واه شو. عرب دا کلمه د تعجب په وخت استعمالوي، ددې قسم حکم حکم د مصادرو دی، مصادر معرب واقع کېږي، نو دا به هم معرب واقع کېږي. د دوهم قسم مثال صه دی، په معنی د السکوت سره راځي، خو بیا اسکت ته نقل شو، اوس فرق صرف په تنوین سره راځي، صَهٍ عام دی او صَهْ خاص دی. ددې حکم حکم د اسمآء افعالو دی.

واما غیر منقولةٍ الخ: یعني هغه اصوات چې په خپل حال باقي وي مصادر وي او افعالو ته نه نقل شوي، دا درې قسمه دي: اول قسم هغه دي، چې انسان ته د یو معنی د عارض کېدو په وخت عارض کیږي، څکه محکوم علیه او محکوم به هغه شی واقع کیږي، چې مسند او مسندالیه واقع کیږي، او دا مذکور داسې نه واقع کیږي بلکه دا، چې د صوت هغه معنی بیا فوت کېږي. دوهم قسم هغه دی، چې جاري شي په لفظ د انسان په طریقه د حکایت سره.

بان یصدر الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** د غراب آواز د قبیلې د الفاظو نه، نه دی نو دا خو انسان طاقت کې نشته، چې د هغې حکایت په ژبه وکړي؟

**جواب:** شارح وایي دی ورلره داسې ترتیب ورکړي، چې د حیوان د آواز سره دده آواز مشابه شي، لکه د قارغه آواز نقل کوي او غاق ووایي. دا قسم هم محکوم علیه او محکوم به نه واقع کېږي، دریم قسم هغه دی چې د یو حیوان د زجر او یا بلنې دپاره ویلی شي، لکه نخ د اوښ د

کېنولو دپاره عرب استعمالوي، دا قسم هم محکوم علیه او محکوم به نه واقع کېږي.

**وهٰذه الاقسام الخ:** غرض د شارح حکم ددې اقسامو بیانوي، چې بنآء د هغې دپاره وجه ذکر کول دي او هغه انتفآء د ترکیب ده په دې کې.

**واذا تلفظ بها الخ:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** زه به درته وښایم چې ترکیب به وي او بیا به هم دا اسمآء مبني وي، لکه **قال زید عند التعجب وَيْ**؟

**جواب:** په دې وخت کې مونږ دې ته مبني وایو بناء بر حکایت. اصل بنآء د عدم ترکیب د وجې نه ده، لیکن اوس په دې صورت کې بنآء هغه د حکایت د وجې نه راغلې ده، نو سوال دفع شو.

| |
|---|
| وَ الْمُرَادُ بِالْاَصْوَاتِ هٰهُنَا مَا كَانَتْ بَاقِيَةً عَلٰى مَا هِيَ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ نَقْلِهَا عَلٰى سَبِيْلِ الْحِكَايَةِ |
| اومراد داصواتونه دلته هغه دي په کوم حال چې اصوات باقي وي په غیر د نقل نه په طریقې دحکایت سره |
| وَ هِيَ بِهٰذَا الْاِعْتِبَارِ لَيْسَتْ بِاَسْمَاءٍ لِعَدَمِ كَوْنِهَا دَالَّةً بِالْوَضْعِ وَ ذِكْرِهَا فِيْ بَابِ الْاَسْمَاءِ |
| او په دې اعتبار دا اسماء نه وي ځکه چې دادال بالوضع نه دي او ذکر کول یې په باب د اسماء کې دوجې د |
| لِاِجْرَائِهَا مَجْرَاهَا وَ اَخْذِهَا حُكْمَهَا وَ بُنِيَتْ لِجَرْيِهَا |
| جاري کېدو ددې په ځای د اسماو او دوجې دحکم اخستلو د اسماو او مبني والې یې دوجې دجاري کېدو |
| مَجْرٰى مَا لَا تَرْكِيْبَ فِيْهِ مِنَ الْاَسْمَاءِ فَالْاَصْوَاتُ بِهٰذَا الْاِعْتِبَارِ |
| ددې په ځای دهغه څه چې ترکیب نشته په هغې کې چې هغه اسماء دي نو اصوات په دې اعتبار سره |
| كُلُّ لَفْظٍ اِنَّمَا قَالَ لَفْظٍ وَ لَمْ يَقُلْ اِسْمٍ لِعَدَمِ الْوَضْعِ فِيْهَا كَمَا عَرَفْتَ حُكِيَ بِهٖ |
| هر هغه الفاظ دي مصنف لفظ وویل نه اسم ځکه چې په اسم کې وضع نشته چې په هغې سره حکایت |
| صَوْتٌ اَيْ اُصْدِرَ عَلٰى لِسَانِ الْاِنْسَانِ تَشْبِيْهًا بِصَوْتِ شَيْءٍ كَمَا |
| دصوت وکړل شي یعني چې صادر شي په ژبه دانسان چې مشابهت لري د آواز د یو څیز سره لکه څنګه چې |
| عَرَفْتَ فِي الْقِسْمِ الثَّانِيْ مِنَ الْاَصْوَاتِ الْغَيْرِ الْمَنْقُوْلَةِ اَوْ صُوِّتَ بِهٖ الْبَهَائِمُ |
| تاوپېژندل په قسم ثاني د اصوات غیر منقولو کې او یا هغه دي چې آواز وکړل شي په هغې سره بهائمو ته |
| يَعْنِيْ مَثَلًا اَيْ لِاِنَاخَتِهَا وَ زَجْرِهَا اَوْ دُعَائِهَا اَوْ غَيْرِ ذٰلِكَ وَ اِنَّمَا قُلْنَا مَثَلًا لِاَنَّ الْمُتَبَادِرَ مِنَ الْبَهَائِمِ |
| یعني مثلاً د هغوي د څوکولو یا شړلو یا رابللو وغیره دپاره او مونږ قید د مثلاً ځکه وویل چې غالب د بهائمو |

| |
|---|
| ذَاتَ الْقَوَائِمِ الْاَرْبَعِ فَلَا يَتَنَاوَلُ مَا هُوَ لِلطُّيُوْرِ بَلْ لِبَعْضِ اَفْرَادِ الْاِنْسَانِ اَيْضًا |
| هغه دي چې خاوندان دڅلورو خپوي نو بيانه شامليږي مارغانو ته بلکه بعضې افرادو دانسانانو ته هم |
| كَالصِّبْيَانِ وَ الْمَجَانِيْنِ وَ اِذَا كَانَ ذِكْرُهَا عَلٰى سَبِيْلِ التَّمْثِيْلِ يَتَنَاوَلُ التَّعْرِيْفُ كُلَّهَا فَالْاَوَّلُ كَغَاقٍ |
| لکه ماشومان اوليوني او کله يې چې ذکر په طريقې دتمثيل شونو بيا تعريف ټولو ته شامليږي اول لکه غاق |
| اِذَا صَوَّتَ بِهِ اِلْسَانٌ تَشْبِيْهًا بِالْغُرَابِ وَ الثَّانِيْ كَنَخْ مَشْدُوْدَةً اَوْ مُخَفَّفَةً عِنْدَ |
| کله چې آواز پرې انسان وکړي او دکارغه سره مشابهت کوي او دوهم لکه نخ په شد او په غير دشد نه په وخت |
| اَنَاخَةِ الْبَعِيْرِ وَ لَمْ يَذْكُرِ الْمُصَنِّفُ الْقِسْمَ الْاَوَّلَ وَ هُوَ مَا كَانَ صَوْتُ الْاِنْسَانِ اِبْتِدَاءً مِنْ غَيْرِ |
| دځوکولو داوښ کې او مصنف قسم اول ذکر نه کړ او دا هغه دي چې آواز دانسان ابتداء وي په غير د |
| تَعَلُّقٍ بِالْغَيْرِ قِيْلَ ذٰلِكَ لِاَنَّهٗ لَمَّا كَانَ هٰذَانِ الْقِسْمَانِ مَعَ تَعَلُّقِهِمَا بِالْغَيْرِ مُلْحَقَيْنِ |
| تعلق نه په غير پورې چاويلي چې داځکه چې کله دادواړه اقسام وو سره دتعلق نه په غير پورې ملحق |
| بِالْاَسْمَاءِ الْمَبْنِيَّةِ كَانَ كَوْنُ ذٰلِكَ الْقِسْمِ كَكَ اَوْلٰى لِكَوْنِهٖ صَوْتُ الْاِنْسَانِ مِنْ غَيْرِ تَعَلُّقٍ |
| په اسماء مبنيو پورې نو کيدل ددې قسم زيات اولى دي ځکه چې دا صوت دانسان دي په غير دتعلق |
| بِــغَـيْرِهٖ. |
| نه په غير پورې. |

**اغراض دجامي : والمراد الخ:** غرض د شارح تعيين د ما هو المراد ههنا دی.

**سوال:** په کار وه، چې هغه اصوات دې هم ذکر کړی وی، چې په طريقې دحکايت سره راځي. نو په دې کې به دې قسم اول ذکر کړې وي؟

**جواب:** چونکه دغه زمونږ مراد نه دی، ځکه مو ذکر نه کړو.

**وهي بهذا الاعتبار:** غرض د شارح سوال ته تمهيد دی، وايي دا اصوات په اعتبار د غير منقوليت د دې باندې اسماء نه دي.

**وذکرها:** په دې عبارت سره شارح سوال ته اشاره کوي، چې کله دا اسماء نه دي، نو باب د اسماو کې دې ولې ذکر کړو؟

**لاجرائها الخ:** په دې عبارت سره شارح جواب ته اشاره کوي، حاصل د هغې دا دی، چې دا د اسماء په ځای جاري دي او حکم د هغې يې اخيستی دی، ځکه مونږ اسماو کې ذکر کړو.

**فالاصوات الخ:** غرض د شارح ما بعد تعريف ته تمهيد ايخودل دي.

**كل لفظ**: ماتن داسې ويلي وو.

**وانما قال الخ**: او شارح داسې ويلي . نو په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال**: مصنف عمده شخص دی او د عمده شخص په كلام كې تغيير د نكتې نه خالي نه وي او دده عبارت كې تغيير راغلې دی د **كل اسم** په ځاى يې **كل لفظ** ويلی دی دا ولې؟

**جواب**: اسم ځكه نه وايي چې بيا به چا ويل چې عربو دې لره وضع كړی دی، حالانكه خبره خو داسې نه ده.

**اى اصدر الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي.

**سوال**: ستا مراد به حكايت د آواز وي يا د الفاظو او حروفو كه عين آواز وي نو دا د انسان وسع كې نه دی، او كه الفاظ او حروف وي، نو د غراب آواز خو د قبيلې د الفاظو او حروفو نه . نه وي؟

**جواب**: مونږ وايو، چې دې انسان به الفاظ ويلي وي، خو د حيوان د هغه آواز سره به يې مشابه كړی وي، او دا قسم ثاني شو داصوات غير منقولو.

**او صوت بالبهائم**: يا پرې ځناورو ته آواز كولی شي، او دا قسم ثالث شو د اصوات غير منقولو نه.

**يعني مثلاً**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال**: حاصل د سوال دادی، چې متبادر د بهائم نه ذهن ته ځناور راځي، نو تعريف دې جامع نه شو، ځكه هغه اصوات ترې خارج شو، چې طيورو دپاره استعمالېږي، او هغه اصوات چې انسانانو ماشومانو ته كيدې شي؟

**جواب**: ددې نه يو جواب فاضل هندي كړی دی، دې هغې لره وروستو نقل كوي او دلته خپل جواب كوي او هغه دا چې دا ذكر د بهائم به طور مثال دی لهذا تعريف ټولو ته شامل دی

**فالاول كغاق**: غرض د ماتن د قسم اول دپاره مثال ذكر كول دي، كوم اقسام چې ماتن ذكر كړي دي، شارح تطبيق د مثال كوي.

**والثاني كنخ**: غرض د ماتن د مجموعه نه قسم ثاني دپاره مثال ذكر كول دي، شارح يې تطبيق كوي او دوه لغته په كې ذكر كوي، چې دا نخ مشدد او مخفف دواړه راغلی دی.

ولم يذكر الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** قانون دادی، چې روایاتو کې مفهوم مخالف لره اعتبار وي، نو دې شارح اصوات غیر منقولو کې اول قسم ذکر نه کړو، معلومیږي چې هغه مبني نه دی؟

**جواب:** شارح ددې سوال نه مخکې خپل جواب کړی دی او هغې ته یې مثلاً سره اشاره کړې ده او قیل سره دوهم جواب د فاضل هندي نقل کوي او هغه دا دی، چې مفهوم مخالف لره روایاتو کې هله اعتبار وي، چې حکم په مفهوم مخالف کې په طريقه اولی سره ثابت نه وي، او دلته خو په مفهوم مخالف کې حکم په طريقه اولی سره ثابت دی، نو مفهوم لره اعتبار نشته.

| اَلْمُرَكَّبَاتِ اَيِ الْمُرَكَّبَاتُ الْمَعْدُوْدَةُ مِنَ الْمَبْنِيَّاتِ كُلُّ اِسْمٍ حَاصِلٍ مِنْ تَرْكِيْبِ كَلِمَتَيْنِ حَقِيْقَةً اَوْ |
|---|
| او مرکبات معدوده دمبنياتونه هرهغه اسماء دي چې حاصل وي دترکيب د دوه کلمو نه حقيقتاً او يا |
| حُكْمًا اِسْمَيْنِ اَوْ فِعْلَيْنِ اَوْ حَرْفَيْنِ اَوْ مُخْتَلِفَيْنِ وَ جَعْلِهِمَا كَلِمَةً وَاحِدَةً لَيْسَ |
| حکماً اسمين وي اوکه فعلين وي حرفين وي اوکه مختلفين وي اوګرځول دهغې يوه کلمه چې نه وي د |
| بَيْنَهُمَا نِسْبَةٌ اَصْلًا لَا فِي الْحَالِ وَلَا قَبْلَ التَّرْكِيْبِ وَ اَنَّمَا قُلْنَا حَقِيْقَةً اَوْ حُكْمًا لِئَلَّا |
| هغوي په مينځ کې کوم نسبت نه په حال کې اونه مخکې دترکيب نه اوقيد دحقيقتاً اوحکماً مونږ ځکه |
| يَخْرُجَ مِثْلُ سِيْبَوَيْهِ فَاِنَّ الْجُزْءَ الْاَخِيْرَ مِنْهُ صَوْتٌ غَيْرُ مَوْضُوْعٍ |
| راوړوچې خارج نه شي مثل دلفظ د سيبويه ځکه چې لفظ آخر ددې صوت دي چې وضع نه دي دپاره د |
| لِمَعْنًى فَلَا يَكُوْنُ كَلِمَةً لٰكِنَّهٗ فِيْ حُكْمِ الْكَلِمَةِ حَيْثُ اُجْرِيَ مَجْرَى الْاَسْمَاءِ الْمَبْنِيَّةِ وَ |
| معنی نونه ګرځي کلمه لکن په حکم دکلمې کې دي ځکه چې جاري ده په مجرى داسماء مبني کې اودا |
| قَوْلُهٗ لَيْسَ بَيْنَهُمَا نِسْبَةٌ لِيَخْرُجَ مِثْلُ عَبْدِاللّٰهِ وَ تَأَبَّطَ شَرًّا لِاَنَّ بَيْنَ جُزْأَىْ كُلٍّ وَاحِدٍ |
| قول چې ليس بينهمانسبة دپاره دخارجولو دلفظ دعبدالله اودتابط شراً دي ځکه چې په مينځ ددې اجزاوکې |
| مِنْهُمَا نِسْبَةٌ قَبْلَ الْعَلَمِيَّةِ وَلَا يَخْفٰى اَنَّهٗ يَخْرُجُ بِهٰذَا الْقَيْدِ مِثْلُ خَمْسَةَ عَشَرَ عَنِ الْحَدِّ مَعَ |
| مناسبت شته مخکې دعلميت نه اوهمدا رنګې وويل په دې قيدسره په مثل دخمسة عشرد تعريف نه سره |
| اَنَّهٗ مِنْ اَفْرَادِ الْمَحْدُوْدِ لِاَنَّ بَيْنَ جُزْأَيْهِ قَبْلَ التَّرْكِيْبِ نِسْبَةَ الْعَطْفِ |
| ددې چې دادافرادو دمحدودنه دي ځکه چې ددواړواجزاوپه مينځ کې نسبت دعطف دي مخکې دترکيب |
| وَ تَعْيِيْنِ النِّسْبَةِ عَلٰى وَجْهٍ تَخْرُجُ مِنْهَا هٰذِهِ النِّسْبَةُ اَصْعَبُ مِنْ خَرْطِ الْقَتَادِ وَ الْاَحْسَنُ اَنْ يُّقَالَ |
| نه اوتعين دنسبت په داسې شان چې خارج شي ورسره دانسبت ګران وي دازغني وني نه ښه داده چې وويل |

| |
|---|
| الْمُرَادُ بِالنِّسْبَةِ نِسْبَةٌ مَفْهُوْمَةٌ مِنْ ظَاهِرِ هَيْأَةِ تَرْكِيْبِ اِحْدَى الْكَلِمَتَيْنِ مَعَ الْاُخْرَى وَ |
| شي چې مراد د نسبت نه هغه نسبت دي کوم چې فهميږي د ظاهر شکل د ترکيب د يوې کلمې د بلې نه او |
| لَا شَكَّ اَنَّهُ يُفْهَمُ مِنْ ظَاهِرِ الْهَيْأَةِ التَّرْكِيْبِيَّةِ الَّتِيْ فِيْ عَبْدِاللّٰهِ |
| شک نشته چې دا نسبت فهميږي د ظاهري شکل د ترکيب د دې کلمونه هرچې په عبدالله کې دي هغه |
| النِّسْبَةُ الْاِضَافِيَّةُ وَ مِنْ ظَاهِرِ الْهَيْأَةِ التَّرْكِيْبِيَّةِ الَّتِيْ فِيْ تَأَبَّطَ شَرًّا اَنَّ النِّسْبَةَ التَّعْلِيْقِيَّةَ الَّتِيْ تَكُوْنُ |
| نسبت اضافي دي او د ظاهري ترکيبي هيئت دي او هرچې تأبط شرا دي دلته نسبت عقليه دي کوم چې |
| بَيْنَ الْفِعْلِ وَ الْمَفْعُوْلِ بِخِلَافِ مِثْلِ خَمْسَةَ عَشَرَ فَاِنَّ هَيْأَةَ تَرْكِيْبِ اَحَدِ جُزْأَيْهِ مَعَ الْاٰخَرِ لَا تَدُلُّ عَلٰى |
| د فعل او مفعول په مينځ کې دي په خلاف د خمسة عشر ځکه دلته ترکيب د اجزاو د دې دلالت نه کوي په |
| نِسْبَةٍ اَصْلًا كَمَا اَنَّ هَيْأَةَ تَرْكِيْبِ اَحَدِ شَطْرِيْ جَعْفَرٍ مَعَ الْاٰخَرِ لَا تَدُلُّ عَلَيْهَا |
| نسبت باندې بالکل لکه ځنګه چې دلالت نه کوي يو طرف د جعفر سره د ترکيب د بل طرف د دې نه په دې باندې |
| مِنْ غَيْرِ فَرْقٍ فَانْطَبَقَ الْحَدُّ عَلَى الْمَحْدُوْدِ طَرْدًا وَ عَكْسًا. |
| په غير د فرق نه نو موافق شو حد د محدود سره طرداً او عکساً يعنې جامع او مانع. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره د مرکباتو تعريف او تفصيل بيانوي .

**اغراض د جامي** : المرکبات: کله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د پنځه اقسامو د اسم مبني نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د شپږم قسم د اسم مبني کې نو وې ويل چې : المرکبات الخ .

**سوال** : نفس تفصيل ولې کوي؟

**جواب**: نفس تفصيل ځکه کوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

**سوال** : تفصيل په دې مقام کې ولې کوي؟

**جواب** : تفصيل يې د اجمال نه خلاف کړو، چې خبره وجوب ته ونه رسي.

اي المرکبات المعدودة الخ: غرض د شارح دفع د وهم ده :

**وهم** : چا به ويل چې د اجمال د هغې نه علاوه مرکبات به مراد وي نو دا خو تفصيل بيا د اجمال نه خلاف کېږي؟

**جواب**: شارح د غه وهم دفع کړو، چې هغه اجمال والا مرکبات مرا دي.

**سوال**: په دې د تا سره قرینه څه ده؟

**جواب**: قرینه داده، چې معرف معاد شي معرفه نوعین اول مراد وي، او دلته معرفه معاد شوې ده معرفه. نو عین د اجمال هغه مراد دی

كل اسمٍ الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: المرکبات مبتداء ده او کل اسمٍ ورلره خبر دی او خبر حمل وي په مبتداء باندې، او دلته حمل نه صحیح کېږي، ځکه مرکبات اسمآء دي یو اسم خو نه دي؟

**جواب**: دا کل اسمٍ خبر دی په خذف د مبتداء سره ای هو کل اسمٍ معنی به دا شي، چې دا جنس مرکب چې دلالت کوي په دې باندې المرکبات جمع د قبیلې د دلالت د جمع نه په جنس نه د قبیلې د دلالت د جمع نه په افرادو باندې.

**سوال**: المرکبات خو جمع ده او تعریف خو د جنس کېږي او په جنس سره کېږي؟

**جواب**: مونږ جواب وکړو، چې دا هو ضمیر جنس مرکب ته راجع دی، نو تعریف د جنس دی نه د افرادو.

بیا دې مقام کې دا کل دپاره د جامعیت راوړی شوی دی، دې سره مونږ یو بل سوال دفع کړو.

**سوال**: ستا دا تعریف صحیح نه دی، ځکه دا مشتمل دی په کلمه د کل باندې، او کل راځي دپاره د احاطې د افرادو. او تعریف د افرادو هم نه کېږي او په افرادو سره هم نه کېږي، بلکې تعریف د جنس کېږي او په جنس سره کېږي؟

**جواب**: مونږ جواب وکړو، چې کل منطقي نه دی مراد بلکې کل نحوي مراد دی، چې دپاره د جامعیت راځي.

**بل جواب**: چې کل په درې قسمه دي، مجموعي، افرادي، کلّي، دلته كُل كلّي مراد دی. چې په جنس دلالت کوي

نو ماتن تعریف وکړو. چې هر هغه اسم چې د دوو کلمو نه جوړ وي، او په مینځ کې یې نسبت نه وي.

بیا په دې مقام کې یو بل سوال راځي

**سوال**: ذکر د کل اسمٍ مخکې د کلمتین نه بې فائدې دی، ځکه دا د من کلمتین نه معلومېږي؟

**جواب:** دا تصریح بما عُلِمَ ضِمنًا ده

**سوال:** ددې تصریح خو څه فائده وي، نو دلته یې څه فائده ده؟

**جواب:** دې سره یې دفع د وهم وکړه، ځکه من کلمتین نه به چا وهم کولو، چې دا به مرکب وي او اسم به نه وي ځکه چې اسم خو مفرد وي، نو ماتن دغه وهم دفع کړو، چې سره د ترکیب نه دا اسم دی.

**حاصل:** غرض د شارح په دې عبارت سره وروستو جار د مجرور دپاره متعلق راویستل دي.

**ترکیب:** غرض د شارح دفع د وهم ده :

**وهم:** چا به ویل چې من به د تبعیض دپاره وي، ځکه دا په متعدد داخل شوی دی، کله چې من د تبعیض دپاره شو نو فساد په معنی کې راغلو، ځکه معنی به دا شي، چې حاصل وي د بعضِ کلمتینو نه، او بعض کلمتین نه وي مګر یوه کلمه، نو مرکب خو د یو اسم نه، نه حاصلیږي ؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې دا من اجلیه دی او تبعیضیه نه دی او داخل دی په مفرد باندې که په متعدد باندې او هغه مفرد ترکیب لفظ دی.

**حقیقةً او حکماً:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال:** تـه وایې مرکب وي د کلیتونو نه، نو بنآء په دې باندې سیبویه نفطویه وځي، ځکه دوهم جزء ددې صورت دی او کلمه نه ده؟

**جواب:** مونږ وایو چې دغه کلمتین حقیقتاً وي او که حکماً او دلته جزء ثاني حکماً کلمه ده.

**اسمین الخ:** په دې ترکیب کې احتمال د شپږ صورتونو دی : اسم و اسم، اسم و فعل، اسم و حرف، فعل و فعل، فعل و حرف، حرف و حرف، لیکن معتبر په کې دوه صورتونه دي. مرکب د اسمینو نه، مرکب د فعل او اسم نه.

**لیس بینهما نسبةٌ :** مونږ ددې عبارت معنی وکړه، چې ددې دواړو منځ کې هېڅ قسم نسبت نه وي دا معنی مونږ ځکه وکړه، چې نکره تحت النفي عموم پیدا کوي

**سوال :** دادې چې ذکر ددې عبارت مستدرک دی؟

**جواب:** دا تصریح بِمَا عُلم ضمناً ده

**سوال**: ددې د ذکر فائده څه ده؟

**جواب**: چونکه بحث د اسماو دی او اصل په اسماو کې افراد دي وهم دا راتلو، چې دې کې په مرکب نه راځي، نو دغه وهم يې رفع کړو.

اصلاً الخ: ددې قيد لړولو فائده مخکې ذکر شوه، چې په دې کې عموم طرف ته اشاره ده.

ولا قبل التركيب: مراد په ترکيب سره علميت دی ، په دې عبارت سره يو سوال دفع شو :

**سوال** : چې قبل التركيب وي، نو نسبت به خامخا نه وي؟

**جواب**: مراد زمونږ قبل العلمية دی.

و انما قلنا الخ: غرض د شارح د حقيقتاً او حکماً قيد فائده ذکر کول دي، مخکې مونږ د هغې ذکر کړی دی.

ليس بينهما الخ: غرض د شارح د ليس بينهما نسبةٌ قيد فائده ذکر کول دي حاصل د هغې دادی، چې دې قيد سره عبدالله خارجيږي ، ځکه قبل العلمية په دې کې نسبت د اضافت دی، همدارنګې تابط شراً ترې هم خارجيږي ځکه قبل العلمية دې کې نسبت تعليقي دی نسبت تعليقي دې ته وايي، چې نسبت د فعل او شبه فعل مفعول ته وشي ا ونسبت اسنادي دې ته وايي، چې د فعل شبه فعل نسبت فاعل ته وشي.

ولا يخفى الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره نقل کول د سوال د شارح رضي دی، بيا فاضل هندي د هغې نه جواب کړی دی ، نو شارح به په دغه جواب رد وکړي او بيا به خپل جواب والاحسن سره ذکر کړي حاصل د سوال د شارح رضي دادی، چې ستا داتعريف د مرکباتو صحيح نه دی، ځکه دا جامع نه دی خپل افرادو لره. او هر تعريف چې جامع خپلو افرادو لره نه وي هغه صحيح نه وي. دليل کبری واضح دي او دليل صغری دادی، چې دې سره خمسة عشر خارجيږي سره ددې نه چې دا د محدود د افرادو نه دی او دوتلو وجه داده، چې ده وويل چې په دې کې نسبت نه وي، او دلته خمسة عشر کې مخکې د علميت نه نسبت د عطف موجود دی؟

فاضل هندي صاحب داسې جواب کړی دی، چې مراد د مصنف د ليس بينهما نسبة نه هغه نسبت مراد دی، چې غير وي د نسبت د عطف نه. شارح په دغه جواب رد کوي، چې د نسبت په داسې طريقه سره تعين کول، چې نسبت دعطف ترې وځي نو دا سخت ګران دی د ازغو د

تعليقي دې ته وايي، چې نسبت د فعل او شبه فعل مفعول ته وشي ا ونسبت اسنادي دې ته وايي، چې د فعل شبه فعل نسبت فاعل ته وشي

**ولا يخفى الخ**: غرض د شارح په دې عبارت سره نقل كول د سوال د شارح رضي دى، بيا فاضل هندي د هغې نه جواب كړى دى ، نو شارح به په دغه جواب رد وكړي او بيا به خپل جواب **والاحسن** سره ذكر كړي حاصل د سوال د شارح رضي دادى، چې ستا داتعريف د مركباتو صحيح نه دى، ځكه دا جامع نه دى خپل افرادو لره. او هر تعريف چې جامع خپلو افرادو لره نه وي هغه صحيح نه وي. دليل كبرى واضح دي او دليل صغرى دادى، چې دې سره **خمسة عشر** خارجيږي سَره ددې نه چې دا د محدود د افرادو نه دى او دوتلو وجه داده، چې ده وويل چې په دې كې نسبت نه وي، او دلته **خمسة عشر** كې مخكې د علميت نه نسبت د عطف موجود دى؟ فاضل هندي صاحب داسې جواب كړى دى، چې مراد د مصنف د **ليس بينهما نسبة** نه هغه نسبت مراد دى، چې غير وي د نسبت د عطف نه شارح په دغه جواب رد كوي، چې د نسبت په داسې طريقه سره تعين كول، چې نسبت دعطف ترې وځي نو دا سخت ګران دى د ازغو د توګلو نه.

**والاحسن**: په دې عبارت سره شارح احسن جواب وركوي : چې احسن جواب دادى، چې مراد د نسبت نه هغه نسبت دى، چې كوم د ظاهري هيئت د تركيب نه معلومېږي، اوس چې دا خبره شوه، نو **عبدالله** او **تابط شرًا** خارج شو، ځكه **عبدالله** كې ظاهري هيئت د تركيب كې نسبت اضافي دى او په **تابط شرًا** كې نسبت تعليقي دى، په خلاف د **خمسة عشر** نه چې ددې د ظاهري هيئت نه هېڅ قسم نسبت نه معلومېږي، نو لهذا تعريف جامع مانع شو.

## حكم دمركباتو :

| فَإِنْ تَضَمَّنَ الْجُزْءُ الثَّانِيْ حَرْفًا أَيْ حَرْفَ عَطْفٍ أَوْ غَيْرَهُ بَنَيَا أَيِ الْجُزْآنِ |
|---|
| اوس كه چيرته متضمن وو جزء ثاني دحرف عطف وغيره لره نومبني به ګرځول كيږي دواړه اجزاء |
| الْأَوَّلِ لِوُقُوْعِ آخِرِهِ فِيْ وَسَطِ الْكَلِمَةِ الَّذِيْ لَيْسَ مَحَلًّا لِلْإِعْرَابِ وَ الثَّانِيْ لِتَضَمُّنِهِ |
| هرجې اول دې ځكه چې آخرېې په وسط د كلمه كې راغلي كوم چې محل داعراب نه دې اوجزء ثاني متضمن |
| الْحَرْفَ كَخَمْسَةَ عَشَرَ فَإِنَّ أَصْلَهُ خَمْسَةٌ وَّ عَشَرٌ حُذِفَتِ الْوَاوُ وَ رُكِّبَ عَشَرَ مَعَ خَمْسَةَ وَ مِثْلُ |
| دحرف دې لكه خمسة عشراصل يې خمسة وعشروو واوحذف شو اوتركيب د خمسة اود عشروشواوپه شان |

حَادِيْ عَشَرَ وَ اَخَوَاتُهَا يَعْنِيْ اَخَوَاتِ كُلِّ مِنْ خَمْسَةَ عَشَرَ وَ حَادِيْ عَشَرَ وَ اِنَّمَا اَوْرَدَ مِثَالَيْنِ

دحادي عشراواخوات ددې اخوات دحادي عشر ثاني عشر تر تسع عشرپورې مصنف دوه مثاله راوړل دي د

لِيُعْلَمَ اَنَّ الْبِنَاءَ ثَابِتٌ فِيْ هٰذَا الْمُرَكَّبِ سَوَاءٌ كَانَ اَحَدُ جُزْأَيْهِ الْعَدَدُ الزَّائِدُ

پاره چې معلومه شي چې بنا ثابت ده په دې ترکيب کې ولوکه يو دجزئينويې عدد دي کوم چې زائددي

عَلَى الْعَشَرَةِ اَوْ صِيْغَةَ الْفَاعِلِ الْمُشْتَقَّةِ مِنْهُ وَ قِيْلَ فِيْهِ نَظَرٌ

په عشرباندې اوياپه هغه صيغه دفاعل کومه چې مشتقه وي دهغې نه چاويلي په دې کې نظرشته دي

لِاَنَّ الثَّانِيْ فِيْهِ لَا يَتَضَمَّنُ الْحَرْفَ لِاَنَّهُ لَا يُرَادُ بِهٖ

ځکه چې دوهم جزء په دې ترکيب کې متضمن نه دي حرف لره ځکه چې نه شي مرادکولې په دې سره

حَادِيَ وَ عَشَرَ وَ جَوَابٌ اَنَّ الْمُرَادَ بِصِيْغَةِ الْفَاعِلِ اِذَا اشْتُقَّ مِنْ

حادي وعشرسره دحذف نه جواب دادې چې مرادپه صيغې دفاعل سره هغه ده چې کله مشتق شي د

اَسْمَاءِ الْعَدَدِ وَاحِدٍ مِنَ الْمُشْتَقِّ مِنْهُ لٰكِنْ لَا مُطْلَقًا بَلْ بِاِعْتِبَارِ وُقُوْعِهٖ بَعْدَ الْعَدَدِ السَّابِقِ عَلَى الْمُشْتَقِّ

اسماءعددنه يودمشتق منه نه، نه مطلقاًبلکه په اعتباردوقوع د هغې وروستودعددسابق نه په مشتق

مِنْهُ فَاِنَّ الثَّالِثَ مَثَلًا وَاحِدٌ مِنَ الثَّلٰثَةِ لٰكِنْ لَا مُطْلَقًا بَلْ بِاِعْتِبَارِ وُقُوْعِهٖ بَعْدَ الْاِثْنَيْنِ

منه باندې لکه ثالث مثلاًواحد دثلاثه دي لکن نه مطلقاًبلکه په دې اعتبارچې واقع دي وروستودا ثنين

فَلَمَّا اَخَذُوْا هٰذِهِ الصِّيْغَةَ مِنَ الْمُفْرَدَاتِ لِلدَّلَالَةِ عَلٰى مَا ذَكَرْنَا اَرَادُوْا

نوکله چې دوي دا صيغه دمفرداتونه واخسته دپاره ددلالت په هغه څه چې کوم مونږذکرکړل نواراده وکړه

اَنْ يَأْخُذُوْا مِثْلَ ذٰلِكَ مِنَ الْمُرَكَّبَاتِ وَلَا يَتَيَسَّرُ ذٰلِكَ مِنْ مَجْمُوْعِ الْجُزْأَيْنِ

دوي چې دهمدې غوندې صيغه واخلي دپاره دمرکباتواودا په آسانۍ سره نه حاصليږي ددواړواجزاونه

لِاَنَّ صِيْغَةَ فَاعِلٍ لَا تَسَعُ حُرُوْفُهُمَا جَمِيْعًا فَاقْتَصَرُوْا عَلٰى

ځکه چې صيغه دفاعل ګنجائش نه لري تقسيم دحروفو د هغې دواړواجزاونه نواقتصارورکړل شوپه

اَخْذِهَا مِنْ اَحَدِ الْجُزْأَيْنِ اِذْ فِيْ اَخْذِ بَعْضِ الْحُرُوْفِ مِنْ كُلِّ جُزْءٍ مَظِنَّةَ الْاِلْتِبَاسِ وَ اخْتَارُوْا الْاَوَّلَ

اخذ ديودجزئينوځکه چې په اخستلودبعضې حروفودهرواحدد اجزاونه التباس راتلواواول جز غوره شو

لِيَدُلَّ عَلَى الْمَقْصُوْدِ مِنْ اَوَّلِ الْاَمْرِ فَاَخَذُوْا مَثَلًا مِنْ اَحَدَ عَشَرَ الْمُتَضَمِّنِ حَرْفَ الْعَطْفِ

ځکه چې دلالت وکړي په مقصوددال نه مثلاًدوي واخستوداحد عشرنه کوم چې متضمن دي حرف عطف

حَادِيْ عَشَرَ بِمَعْنَى الْوَاحِدِ مِنْ اَحَدَ عَشَرَ بِشَرْطِ وُقُوْعِهِ بَعْدَ الْعَشَرَةِ فَحَادِيَ عَشَرَ يَتَضَمَّنُ
لره حادي عشر په معنی د واحد د احد عشر نه به شرط د وقوع د دې وروستو د عشرنه نو حادي عشر متضمن شو

حَرْفَ الْعَطْفِ بِاِعْتِبَارِ اَنَّهُ مَاخُوْذٌ مِنْ اَحَدَ عَشَرَ الْمُتَضَمِّنِ حَرْفَ الْعَطْفِ لَا
حرف عطف لره په دې اعتبار چې دا ماخوذ د احد عشر نه دي کوم چې متضمن دي حرف عطف لره نه په

بِاِعْتِبَارِ اَنَّ اَصْلَهُ حَادِيٌ وَ عَشَرَ اِذْ لَا مَعْنَى لَهُ وَ عَلَى هٰذَا الْقِيَاسِ اَلْحَادِيَ وَ الْعِشْرُوْنَ
دې اعتبار چې اصل يې حادي وعشر دي ځکه د دې هيڅ معنی نشته او په همدې قياس الحادي والعشرون

لَا فَرْقَ بَيْنَهُمَا اِلَّا بِذِكْرِ الْوَاوِ وَ حَذْفِهَا اِلاَّ اِثْنَیٰ عَشَرَ وَ اِثْنَتَیٰ عَشَرَةَ
فرق نشته په مينځ د دې کې مګر په ذکر د واو سره او په حذف د واو سره مګر اثنى عشر او اثنتي عشر دلته

فَاِنَّهُ لَا يُبْنَى فِيْهِمَا الْجُزْآنِ بَلْ يُبْنَى الثَّانِيْ لِلتَّضَمُّنِ وَ يُعْرَبُ
دواړه اجزاء مبني نه دي بلکه مبني دي فقط دوهم جزء د وجې د متضمن کيدو د وه حرف لره او اعراب

الْاَوَّلُ لِشِبْهِهِ بِالْمُضَافِ لِسُقُوْطِ النُّوْنِ وَ اِلَّا اَیْ
به ورکول کيږي اول ته ځکه هغه مشابه دي مضاف سره په سقوط د نون کې او که چيرته نه وو يعنې که

وَ اِنْ لَمْ يَتَضَمَّنِ الثَّانِيْ حَرْفًا اُعْرِبَ الثَّانِيْ مَعَ مَنْعِ صَرْفِهِ
چيرته متضمن نه وو دوهم جزء حرف لره نو اعراب به ورکول کيږي دوهم جزء ته سره د غير منصرف کيدو

اِنْ لَمْ يَكُنْ قَبْلَ التَّرْكِيْبِ مَبْنِيًّا كَبَعْلَبَكَّ وَ بُنِيَ الْاَوَّلُ
دمعنى اګر که هغه مخکې د ترکيب نه مبني نه وو لکه بعلبک او مبني به ګرځول کيږي اول جزء د وجې

لِلتَّوَسُّطِ الْمَانِعِ مِنَ الْاِعْرَابِ وَ عَلَى الْفَتْحِ لِاَنَّهُ اَخَفُّ فِي الْاَفْصَحِ اَیْ
توسط نه چې مانع دي د اعراب نه او مبني بر فتحه ځکه شو چې فتحه خفيفه ده په افصح لغت کې يعنې

اِعْرَابُ الْجُزْأَيْنِ مَعًا وَ اِضَافَةُ الْاَوَّلُ اِلَى الثَّانِيْ وَ مَنْعَ صَرْفُ الْمُضَافِ اِلَيْهِ وَ اُخْرٰهُمَا
اعراب د دواړو جزئينو يو ځای او اضافت د اول دوهم ته او مضاف اليه غير منصرف شي او بل دا چې

اِعْرَابُ الْجُزْأَيْنِ مَعًا وَ اِضَافَةُ الْاَوَّلِ اِلَى الثَّانِيْ وَ صَرْفُ الثَّانِيْ.
اعراب ورکړل شي دواړو ته يو ځای او اضافت د اول وشي دوهم ته او دوهم منصرف وګرځي.

**خلاصه دمتن**: په دې عبارت سره د مرکباتو حکم بيانوي حکم يې داده چې که چيرته متضمن وو جزء ثاني حرف عطف لره نو دا به مبني وي.

**اغراض دجامي** : فان تضمن الخ: غرض د ماتن اقسام سره د حکم نه ذکر کول دي، نو ماتن وايي که متضمن شي دوهم جزء د مرکب حرف عطف ته يا غير د حرف عطف ته، نو دغه وخت به دا دواړه جزء وي دا اول قسم شو.

الجزء: غرض د شارح بيان د ترکيب کول دي، چې الثاني صفت د موصوف محدود دی، چې الجزء دی.

الجزآن: چونکه دا بنيا صيغه د تثنيه وه، نو شارح د الف ضمير تعيين وکړو.

لوقوع البنآء الخ: چې جزء اول ځکه مبني دی، چې په وسط د کلمة کې واقع دی او وسط د کلمه صالح دپاره د اعراب نه وي او جزء ثاني ځکه مبني دی، چې دا حرف لره متضمن دی او حرف مبني الاصل وو، نو دی هم مبني شو.

کخمسة عشر: شارح ددې تطبيق کوي، چې اصل خمسةٌ و عشرٌ وو، واو حذف شو او عشرٌ د خمسة سره مرکب شو، نو دواړه جزء مبني شو.

**سوال**: د شارح د کلام نه معلومېږي، چې عشرٌ د خمسة سره مرکب شوی دی، حالانکه د ترتيب نه دا معلومېږي، چې خمسةٌ د عشرٌ سره مرکب دی، ځکه خمسة عشر به هله جوړېږي چې عشرٌ موجود وي او پنځه ورسره نور زيات شي؟

**جواب**: شارح نظر کړی دی وجود ته او په وجود کې خمسةٌ په عشرٌ مقدم دی اګر چې په ترتيب کې عشرٌ مخکې دی.

**سوال**: ماتن مثال د ابتداء يا انتهآء نه ولې نه پيش کوي، چې د مينځ نه پيش کوي؟

**جواب**: خير الامور اوساطها اشاره دې ته کوي، چې مثال څنګه د ابتداء او انتها نه راتلی شي، نو د وسط نه هم راتلی شي.

**سوال**: تخصيص د خمسة عشر دې ولې وکړو؟

**جواب**: دوجې د خير الامور اوساطها نه.

وحادي عشر: غرض د ماتن دوهم مثال ذکر کول دي، شارح مثل راويستو اشاره دې ته چې دا عطف دی په خمسة عشر او هلته کاف په معنی د مثل وو، نو دلته يې هم معاد کړو، ځکه ما

قبل د معطوف عليه نه معاد وي، په ما قبل د معطوف كې بيا شارح په اى اخوات سره بيان د اخواتو كوي.

**واخوات كل الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** اخواتهما په كار دى، ځكه مخكې دوه څيزونه ذكر دي، چې حادي عشر خمسة عشر دي؟

**جواب:** شارح جواب وكړو، چې ها ضمير په اعتبار د كل واحد سره راجع دى، نو سوال نه راځي.

**والما اورد الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** د يو قسم دپاره دوه مثاله ولې پيش كوي، حالانكه مثال دپاره د وضاحت د ممثل وي او دهغې دپاره يو مثال كافي وو؟

**جواب:** دوه مثالونو راوړو كې اشاره دې ته، چې دې مركب كې بنآء ثابت ده. عام ددې نه چې كه ددې په دوه جزؤنو كې يو جزء زائد على العشر حقيقةً وي يا مشتق وي، ددغه عدد نه، خمسةُ عشر د حقيقةً مثال دى او حادي عشر د مشتق مثال دى.

**قيل و فيه نظر الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** حاصل د سوال دادى، چې تا وويل چې دې قسم كې به جزء ثاني متضمن وي حرف لره، حالانكه حادي عشر، خو متضمن حرف لره نه دى؟

**وجوابه:** سره جواب كوي، حاصل د جواب دادى، چې د جزء ثاني متضمن كيدل حرف لره عام دي كه په اعتبار د نفس سره وي او كه په اعتبار د اصل يعنې، ماخوذ د منه سره وي. او دلته حادي عشر، اګر چې په اعتبار د نفس سره متضمن حرف لره نه دى، ليكن په اعتبار د اصل سره جزء ثاني دده متضمن حرف لره دى، ځكه چې حادي د احد نه مشتق دى، او په احد عشر كې جزء ثاني حرف لره متضمن دى، داسې ويلى كيږي احدٌ وّ عشر.

**فان الثالث الخ:** دې سره ورلره شارح مثال ذكر كوي او اشاره دې ته كوي، چې صيغه د فاعل كومه مشتق ده، نو دا به مطلقاً په عدد دلالت نه كوي، بلكې په دې شرط به دلالت كوي، چې ددغه عدد نه مخكې كوم اعداد وي، هغه دده په مشتق منه مخكې شوي وه.

**فلما اخذوا الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: تا چې کوم تائید د مشتق او مشتق منه پیش کړو، نو دا خو مفرداتو کې ده او بحث خو زمونږ مرکباتو کې دی؟

**جواب**: شارح جواب کوي، چې کله دغه دلالت مفرداتو کې کیده، نو دوی اراده وکړه، چې دغسې حکم په مرکباتو کې هم جاري کړی.

ولا یتیسر الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: په کار ده، چې ته کوم اشتقاق کوې، نو د مجموعه د جزئینو نه به دې کړی وی، مثلاً ثالث نه ثا او عشر نه به دې عر راخیستی وی، نو ثاعر به جوړ شوی وو؟

**جواب**: داسې نه شي کېدای، ځکه صیغه د فاعل ګنجائش د جمع ددغه حروفو نه لري. وجه داده، چې که د دواړو نه یې ځینې ځینې راخیستی وی نو التباس به را تلو.

فاخذوا الخ: غرض د شارح د ما سبق خلاصه ذکر کول دي، او تطبیق د حادي عشر کوي.

فحادي عشر الخ: غرض د شارح حاصل د جواب ذکر کول دي..

الا اثنی الخ: غرض د ماتن استثناء د ما سبق کول دي، شارح ددې دپاره وجه د اعراب ذکر کوي، هغه دا چې جزء اول ځکه منصرف دی، چې عندالاضافة دې نه سقوط د نون کېږي،- والاضافة من الخواص المعظمة المکبرة للاسم والاصل فیه الاعراب.

**سوال**: په کار ده، چې خمسة عشر هم منصرف وي، ځکه اصل کې دا خمسةٌ وعشرٌ وو، نو اضافت سره تنوین ساقط شو؟

**جواب**: دغه منصرف ځکه ده، چې سقوط د تنوین اضافت سره خاص نه دی، بلکې د الف لام د دخول د وجې هم کېږي او سقوط د نون د اضافت سره خاص دی.

ولا الخ: غرض د ماتن بیان د قسم ثاني دی، سره د مثال نه. شارح اشاره کوي چې دا عطف دی په فان تضمن باندې.

اعرب الثاني: دا حکم د قسم ثاني دی.

وبنی الاول: ماتن اختلاف ته اشاره کوي بیا دې بعلبك کې دوه لغاته نور هم دي، چې دواړه منصرف شي او جزء ثاني غیر منصرف وي.

# تعريف د كناياتو :

| |
|---|
| اَلْكِنَايَاتُ جَمْعُ كِنَايَةٍ وَ هِيَ فِي اللُّغَةِ وَ الْاِصْطِلَاحِ اَنْ يُعَبِّرَ عَنْ شَيْءٍ |
| حروف كنايات كنايات جمع د كناية ده او دا په لغت او اصطلاح كې دې ته وايي چې تعبير وكړل شي د شيئ |
| مُعَيَّنٍ بِلَفْظٍ غَيْرِ صَرِيْحٍ فِي الدَّلَالَةِ عَلَيْهِ لِغَرَضٍ مِنَ الْاَغْرَاضِ كَالْاِبْهَامِ عَلَى |
| معلوم نه په لفظ غير صريح سره په دلالت كې په دې څيز باندې دپاره د يو مقصد لكه ابهام راوستل په |
| السَّامِعِيْنَ كَقَوْلِكَ جَاءَنِيْ فُلَانٌ وَ اَنْتَ تُرِيْدُ زَيْدًا وَ الْمُرَادُ بِهَا هٰهُنَا مَا |
| اوريدونكو لكه دا قول ستا جاءني فلان او مراد ستا زيد وي او مراد دلته ترې هغه الفاظ دي په كوموچې |
| يُكَنّٰى بِهٖ لَا الْمَعْنَى الْمَصْدَرِيُّ وَ لَا كُلُّ مَا يُكَنّٰى بِهٖ بَلْ بَعْضُهُ وَلَا |
| كنايه كيدې شي نه معنى مصدري او نه ټول هغه په كومو كې چې كنايه كيدې شي بلكه بعضې او نه |
| كُلَّ بَعْضٍ بَلْ بَعْضَ مُعَيَّنٍ فَكَاَنَّهُمْ اِصْطَلَحُوْا فِيْ بَابِ الْمَبْنِيَّاتِ اَنْ يُرِيْدُوْا |
| بعضې ټول بلكه بعضې معين نو ګويا كه د نحويانو اصطلاح په باب د مبنياتو كې دا ده چې اراده كوي د وي |
| بِهَا ذٰلِكَ الْبَعْضَ الْمُعَيَّنَ وَ لِذٰلِكَ لَمْ يَقُلْ بَعْضَ الْكِنَايَاتِ كَمَا قَالَ بَعْضُ الظُّرُوْفِ |
| په كناياتو سره بعض معين د دې وجې نه مصنف بعض الكنايات ونه ويل لكه څنګه چې ده بعض الظروف ويلې |
| وَ يَتَعَذَّرُ تَعْرِيْفُهٗ اِلَّا بِالتَّصْرِيْحِ بِهٖ مُفَصَّلًا فَلِذٰلِكَ اَعْرَضَ عَنْ |
| او متعذر دې تعريف د دې بعضې مګر په تفصيلي بيان كولو سره د دې وجې نه تعرض وكړو مصنف د |
| تَعْرِيْفِهَا مُطْلَقًا وَ تَعَرَّضَ لِذٰلِكَ لِبَعْضِ الْمُعَيَّنِ فَقَالَ . |
| تعريف د هغې نه مطلقا او تعرض يې وكړو دې بعض معلومو ته نو وي ويل. |

خلاصه د متن :

**اغراض د جامي :** الكنايات: كله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د شپږ اقسامو د اسم مبنى نه، نو شروع يې وكړه په تفصيل د اووم قسم د اسم مبني كې. درې سوالات رامخې ته شو دلته يو څو سوالات مخې ته راځي :

**اول سوال :** نفس تفصيل ولې كوي؟

**جواب:** نفس تفصيل ځكه كوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

**سوال :** تفصيل په دې مقام كې ولې كوي ؟

**جواب** : تفصيل په دې مقام کې ځکه کوي، چې اجمال په دې مقام کې ذکر وو، نو تفصيل کې هم په څلورم مقام کې يې ذکر کړو، چې تفصيل موافق شي، د اجمال سره .

وهي في اللغة والاصطلاح: د دې ځای نه لغوي او اصطلاحي معنی د کنایاتو بیانوي او اشاره کوي دې خبرې ته ، چې د معنی لغوي او اصطلاحي په مینځ کې مطابقت دی.

تفصيل د مقام داسې دی، چې کله کله د معنی لغوي او اصطلاحي په مینځ کې موافقت وي، لکه قتل، چې لغوي او اصطلاحي دواړه معاني يې اذهاق الروح ده .

او کله کله د معنی لغوي او اصطلاحي په مینځ کې مناسبت د تضمن وي، لکه تيمم لغت کې قصد ته وايي. او اصطلاح کې قصد د پاکې ځمکې ته وايي نو معنی اصطلاحي معنی لغوي لره متضمن ده .

او کله کله د معنی لغوي او اصطلاحي په مینځ کې نسبت د التزام وي، لکه زکات په لغت کې نمآء ته وايي، او په اصطلاح کې (۴۰) څلويښتمه برخه ورکول دي، ليکن دې سرا دا زياتېدل د مال په دنيا او يا آخرت کې لازم دي، دلته اول مناسبت مراد دی.

نو شارح وايي، چې کناية دې ته وايي، چې د يو معين شي نه په لفظ غير صريحي سره تعبير وکړی شي .

**سوال**: هلکه لفظ صريحي ولې نه راوړې؟

**جواب**: لغرض الخ دې کې څه غرض پروت وي، لکه مثلاً ته د مخاطب نه علاوه په نورو سامعينو خبره پټه او مبهمه ساتل غواړې، نو خپل مخاطب ته کناياتو کې خبره وکړې.

كقولك الخ: لکه ته ووايې جآءني فلانٌ او ستا اراده په فلانٌ سره زيد وي، نو ستا مخاطب به پوهه شي، او نور سامعينو باندې به خبره مبهمه پاتې شي.

والمراد: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: په ترکيب کې الكنايات مبتداء او ما بعد ورلره خبر دی او خبر حمل وي په مبتداء باندې او دلته حمل نه صحيح کېږي، ځکه کم کذا ذات دی، او الكنايات د ان يعبر الخ په تاويل د مصدر سره وضف دی دا خو حمل د ذات راځي په وصف باندې؟

**جواب**: وصف چې په جانب د موضوع کې [illegible]، نو حکم د ذات راځي په وصف باندې؟

**بل جواب:** وصف چې په جانب د موضوع کې ذکر شي، نو حکم د ذات اخلي دا قانون نحاتو وضع کړی دی، لهذا حمل د ذات په ذات راغلو

**سوال:** لیکن دغه جواب صحیح نه دی، ځکه دا قانون په هغه مقام کې دی، چې ذات مع الوصف دواړه وي، ذات محضه نه وي او دلته کم کذا ذات محضه دی، لهذا سوال په خپل خای باقي دی؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې مراد په کنایات سره **مایکنی** به دی، او ما ذات دی، نو حمل د ذات په ذات راغلو.

**ولاکل مایکنی:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** **مایکنی به خو فلانٌ** هم وي، نو هغه دې هم کنایه شي حالانکه هغه خو معرب دی؟

**جواب:** مراد زمونږ **بعض مایکنی به** دی.

**ولاکل بعض الخ:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** **فلانٌ** خو هم **بعض مایکنی به** دی؟

**جواب:** هر **بعض مایکنی به** نه دی مراد.

**فکانها الخ:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** هر کله چې ستا مراد بعضې معین کنایات دي، نو عنوان به دې **بعض الکنایات** ویلې وي په شان د **بعض الظروف**؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې د نحاتو اصطلاح داده، چې دوی د مبني په بحث کې کنایات ذکر کړي، نو بعض کنایات مراد وي او ظروف کې دا اصطلاح نه ده مقرر، ددې وجې هلته لفظ د **بعض** راوړي او دلته نه راوړي.

**ولا مشاحة في الاصطلاح:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي.

**سوال:** په دې کې نکته څه ده؟

**جواب:** ظروفو کې تعیین نه راځي. او دلته تعیین راځي

**ویتعذر الخ:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال:** تقسيم په يو شي کې فرع د معرفت د مقسم وي، په کار وه، چې د کنايا تو تعريف يې اول کړې وی؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې داسې تعريف دلته متعذر وو، چې صرف د مبني اقسام په کې داخل شي، او معرب ترې وځي، نو ځکه يې تعريف ونه کړو، او هر چې دا خبره چې تقسيم فرع د معرفت د مقسم وي؟ نو جواب دادی، چې معرفت د مقسم عام دی حقيقتاً وي او که حکماً دلته حکماً معرفت راغلی دی د ما يطلق عليه لفظ الکناية نه

## کنايات:

| |
|---|
| الْكِنَايَاتُ كَمْ وَ بِنَاؤُهَا لِكَوْنِهَا مَوْضُوعَةً وَضْعَ الحَرْفِ أَوْ لِكَوْنِ الإِسْتِفْهَامِيَّةِ مُتَضَمِّنَةً |
| چې الکنايات کم دي او کم ځکه مبني دي چې وضع شوې په وضع د حرف سره يا دا چې استفهاميت متضمن |
| لِمَعْنَى الحَرْفِ وَ حُمِلَ الخَبَرِيَّةُ عَلَيْهَا وَ كَذَا وَ بِنَاؤُهَا لِأَنَّهَا فِي الأَصْلِ ذَا مِنْ |
| دي معنی د حرف لره او کم خبري په دې باندې محمول شول وکذا ځکه مبني دي چې دا په اصل کې ذا وو د |
| أَسْمَاءِ الإِشَارَةِ دَخَلَ عَلَيْهَا كَافُ التَّشْبِيهِ وَ صَارَ المَجْمُوعُ بِمَنْزِلَةِ كَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ بِمَعْنَى كَمْ |
| اسماء اشارات نه کاف د تشبيه ورباندې داخل شواو ټول په منزله د يوې کلمې شو چې په معنی د کم شو |
| وَ بَقِيَ ذَا عَلَى أَصْلِ بِنَائِهِ وَ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَكُونُ لِلْعَدَدِ وَ الكِنَايَةِ عَنْهُ وَ |
| نو ذا په اصلي حالت باندې باقي پاتې شو او هر واحد د دې نه راځي د پاره د عدد او د پاره د کنايې د عدد نه او |
| جَاءَ كَذَا كِنَايَةً عَنْ غَيْرِ العَدَدِ أَيْضًا نَحْو خَرَجْتُ يَوْمَ كَذَا كِنَايَةً عَنْ يَوْمِ السَّبْتِ أَوْ غَيْرِهِ وَ كَيْتَ وَ ذَيْتَ |
| کذا کنايه د غير عدد نه هم راځي لکه خرجت يوم کذا چې کنايه ده د يوم السبت نه او ليت او ذيت راځي د پاره |
| لِلْحَدِيثِ أَيْ لِلْكِنَايَةِ عَنِ الحَدِيثِ وَ الجُمْلَةِ وَ إِنَّمَا بُنِيَتَا لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَلِمَةٌ وَاقِعَةٌ |
| د خبرو چې يعني د کنايې د خبرو او د جملې نه او دا يې بيان کړل چې هر يو د دې نه جدا کلمه ده چې واقع دي |
| مَوْقِعَ الجُمْلَةِ الَّتِي هِيَ مِنْ حَيْثُ هِيَ لَا تَسْتَحِقُّ إِعْرَابًا وَ لَا بِنَاءً |
| په ځای د جملې باندې هغه جمله چې د حيثيت د جملې نه استحقاق د اعراب نه لري او نه د مبني والي |
| فَلَمَّا وَقَعَ المُفْرَدُ مَوْقِعَهَا وَ لَمْ يَجُزْ خِلُوُّهُ عَنْهُمَا رَجَحَ |
| نو چې کله مفرد په ځای د هغې راغلو او جائز نه وو خالي کيدل د معرب د اعراب نه نو ترجيح ورکړل شوه |
| البِنَاءُ الَّذِي هُوَ الأَصْلُ فِي الكَلِمَاتِ قَبْلَ التَّرْكِيبِ وَ مِنَ الكِنَايَاتِ كَأَيِّنْ وَ إِنَّمَا |
| مبني والي ته کومه چې اصل ده په کلماتو کې مخکې د ترکيب نه او بعضې د کنايا تو نه کائن دي دا ځکه |

| |
|---|
| بُنِيَ لِاَنَّهُ کَافُ التَّشْبِيْهِ دَخَلَتْ عَلٰى اَيٍّ وَ اَيٌّ كَانَ فِي الْاَصْلِ مُعْرَبًا لٰكِنَ |
| مبني شوچې دلته کاف تشبيه دي چې داخل شوې په دې باندې اواي په اصل کې معرب وو لکن کله |
| اِنْمَحَى عَنِ الْجُزْأَيْنِ مَعْنَاهُمَا الْاِفْرَادِيُّ وَ صَارَ الْمَجْمُوْعُ كَاِسْمٍ مُفْرَدٍ بِمَعْنٰى كَمِ الْخَبَرِيَّةِ |
| چې زائله شوه د دواړو اجزاو نه معنى افرادي او مجموع په شان د اسم مفرد وګرځيد په معنى د کم خبري سره |
| فَصَارَ كَاَنَّهُ اِسْمٌ مَبْنِيٌّ عَلَى السُّكُوْنِ آخِرُهُ نُوْنٌ سَاكِنَةٌ كَمَا فِي مَنْ لَا |
| نوګوياکه دا شو په شان د اسم مبني په سکون سره چې آخرېي نون ساکن دي لکه څنګه چې په من کې نه |
| تَنْوِيْنَ تَمَكُّنٍ وَ لِهٰذَا يُكْتَبُ بَعْدَ الْيَاءِ نُوْنٌ مَعَ اَنَّ التَّنْوِيْنَ لَا صُوْرَةَ لَهَا |
| په تنوين تمکن کې د دي وجې ليکل کيږي وروستو د ياء نه نون سره د دې چې تنوين نه صورت شته دي |
| فِي الْخَطِّ فَمَرْتَبَتُهُ فِي الْبِنَاءِ مُنْحَطَّةٌ عَنْ اَخَوَاتِهَا فَلِذٰلِكَ لَمْ يَذْكُرْهُ الْمُصَنِّفُ |
| په خط کې نو مرتبه د دې په مبني والي کې لاندې ده د خپلو اخواتو نه د دې وجې نه ذکر نه کړو مصنف |
| مَـعَـهَـا . |
| د هغې سره . |

**خلاصه د متن:** په دې عبارت سره کنايات بيانوي .

**اغراض د جامي** :كم وكذا: يعني کنايات کم کذا کيت و ذيت دی.

وبناؤها الخ: د کم وجه د بناء داده، چې د ده وضع د حرف په شان شوې ده او مشابهت د ده د حرف سره په مشابهت صوري سره، يعني څنګه چې وضع د حرف د دريو حروفو نه د کم دپاره شوې. د کم وضع هم د غسې شوې ده، بيا د مشابهت صوري سره مونږ دفع د سوال وکړه.

**سوال:** هغه ځايونه چې کوم ځاى وضع د حرف شوې ده نو هغې کې مونږ کم نه دی ليدلی؟

**جواب:** مونږ وايو، چې عين د هغه ځايونو نه. نه دی بلکې مشابهت يې د هغې سره دی په شبه صوري سره.

**سوال:** په کار وه چې په کذا کې دې هم وجه د بناء د غه ذکر کړی وی، ځکه چې د بعضې حروفو وضع په درې حروفو شوې وي؟

**جواب:** زمونږ مراد د وضع نه وضع خاص ده او دا هغه وضع ده، چې د درې حروفو نه په کم وي، ځکه بعضې اسماء هم داسې وي، چې وضع يې په درې حروفو شوې وي

او لكون الخ: غرض د شارح دوهمه وجه د بنآء ذكر كول دي، هغه دا چې كم استفهامي متضمن دي معنى د حرف لره او هغه خو مبني الاصل دى. نو كم خبرې پرې طرداً للباب حمل شوى دى، او دريمه وجه داده، چې دا حمل دى په رب باندې، ځكه رب دپاره د تقليل راځي، او كم دپاره د تكثير راځي، او د دواړو په مينځ كې تضاد دى، دې ته حمل د احد الضدين على الاخر وايي اوس رب خو مبني وو، نو دا هم مبني شو.

وبنآؤها الخ: غرض د شارح د قسم ثاني دپاره وجه د بنآء ذكر كول دي، هغه دا چې اصل كې كذا كې ذا اسم اشاره وه. او كاف تشبيهي پرې داخل شوى دى، نو دا په منزله د كلمه واحده باندې په معنى د كم سره ګرځېدلى دى او ذا په خپل اصل بنآء باندې پاتې شو.

للعدد: غرض د ماتن خو معنى ذكر كول دي، شارح په كل واحد سره دفع د وهم كوي، وهم راتلو چې دې كې به حرف كذا د عدد دپاره وي؟ نو شارح وويل، چې هر واحد ددې نه دپاره د عدد راځي.

والكناية الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** د عدد دپاره چې كوم الفاظ وضع دي، په هغې كې خو مونږ دا نه دي ليدلي؟

**جواب:** دا عين عدد دپاره نه دي، بلكې كنايه دي د هغه شي نه چې د عدد دپاره راځي.

وجآء كذا الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** ته وايې، چې كذا دعدد دپاره راځي او خرجت يوم كذا خو د عدد دپاره نه دى؟

**جواب:** مونږ وايو، چې زيات استعمال ددې دپاره د عدد دى او كله كله غير عدد دپاره هم راځي.

او غيره: په دې باندې رفع او جرّ دواړه جائز دي، چې مجرور شي، نو عطف يې په السبت هم صحيح دى، او په يوم باندې هم صحيح دى، او چې مرفوع شي، نو دا به په نحو عطف شي.

والجملة: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال:** حديث قول، فعل او تقرير د پيغمبر عليه السلام ته وايي، او دا خو هغه نه دي؟

**جواب:** دلته د حديث نه مصطلح حديث نه دى مراد، بلكې په معنى د جملې سره دى.

وانما بني الخ: غرض د شارح وجه د بنآء ذکر کول دي. هغه دا چې په ځای د هغه خبرې واقع دی، چې نه مستحق د اعراب او نه د بنآء وي او کله چې یو مفرد په داسې ځای واقع شي. نو د هغه خالي والی د دې دواړو نه جائزنه وي، نو موږ بنآء لره ترجیح ورکړه. ځکه چې د غه کلمات قبل الترکیب مفردات وو، او مفرداتو کې اصل بنآء ده. نو موږ دا مبني کړو.

ومن الکنایات الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي.

**سوال:** حاصل د سوال دادی، چې حصر د کنایاتو دې څلورو اقسامو کې صحیح نه دی. د وجې د وجود د قسم آخر نه، چې کائن دی، ځکه دې هم د کاف تشبیهي دد خول په وجه مبني شوی دی، په داسې طریقه چې د دې دواړو جزءنو نه معنی افرادي ختمه شوه او مجموع په شان د اسم مفرد په معنی د کم خبرې وګرځېدو، نو داسې شوه چې دا هم اسم مبني علی السکون وي، چې آخر کې یې نون ساکن وي، لکه من شو چې د هغې آخر کې تنوین تمسکن نه راځي، همدارنګې کائن په آخر کې نون ساکنه لیکلی شي، سره د دې نه چې تنوین دپاره څه صورت نه وي په خط کې نو پته ولګېده. چې کائن په صورت د نون ساکنه کې لیکلی شوی دی، نو دی مبني دی.

ومرتبته: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي حاصل د جواب دا دی چې منم چې کائن په کې داخل وو، خو چونکه دده مرتبه ددې نورو اقسامو نه کمه وه. نو ځکه یې ذکر نه کړو

| فَکَمِ الْاِسْتِفْهَامِیَّةِ الْمُتَضَمِّنَةِ مَعْنَی الْاِسْتِفْهَامِ مُمَیِّزُهَا الَّذِيْ یَرْفَعُ الْاِبْهَامَ عَنْ جِنْسِ |
|---|
| پس کم استفهامیه متضمن دي معنی داستفهام لره تمیزدهغې کوم چې پورته کوي ابهام دجنس د |
| الْمَسْئُوْلِ عَنْهُ مَنْصُوْبٌ عَلَی التَّمْیِیْزِ مُفْرَدٌ لِاَنَّهَا لَمَّا کَانَتْ لِلْعَدَدِ وَ وَسْطِ |
| مسئول عنه نه منصوب به وي بنابر تمیزیت اومفرد به وي ځکه چې کله دا راغلو دپاره دعدد اووسط د |
| الْعَدَدِ وَ هُوَ مِنْ اَحَدَ عَشَرَ اِلٰی تِسْعَةَ وَ تِسْعِیْنَ مُمَیِّزُهَا کَکَ |
| عدد دا احد عشرنه تر تسعة وتسعین پورې وواوتمیزیې مفرد منصوب وونو ممیز ددې هم همدارنګې وګرځول |
| لِاَنَّهُ لَوْ جَعَلَ کَاَحَدِ الطَّرَفَیْنِ لَکَانَ تَحَکُّمًا وَ کَمِ الْخَبَرِیَّةُ مُمَیِّزُهَا مَجْرُوْرٌ |
| شو ځکه که چیرته یې یو دطرفینو ګرځي نودا به قول بالتحکم شي اود کم خبریه ممیزبه مجروروي په |

| بِالْاِضَافَةِ مُفْرَدٌ تَارَةً وَ مَجْمُوْعٌ اُخْرٰى تَقُوْلُ كَمْ رَجُلٍ عِنْدِيْ وَ كَمْ رِجَالٍ كَمَا تَقُوْلُ مِائَةُ ثَوْبٍ |
|---|
| اضافت سره كله به مفردوي او كله به جمع لكه كم رجل عندي وكم رجال لكه څنګه ته وايي مائة ثوب |
| وَ ثَلٰثَةُ اَثْوَابٍ وَ اِنَّمَا جَاءَ مُفْرَدًا لِاَنَّ الْعَدَدَ الْكَثِيْرَ مُمَيِّزُهٗ كَذٰلِكَ وَ اِنَّمَا جَاءَ مَجْمُوْعًا |
| وثلاثة اثواب اودامفردځكه راغلوځكه چې دعدد كثير مميزهم همدارنګې راځي اوجمع ځكه راغلو |
| لِاَنَّ الْعَدَدَ الْكَثِيْرَ فِيْهِ مَا يُنْبِئُ عَنْ كَثْرَتِهٖ صَرِيْحًا. |
| چې عدد كثيرپه دې كې هغه دي كوم چې مبني دي دوجې دكثرت نه صريحا. |

**اغراض دجامي** : فكم الاستفهامية: ددې ځاى نه د بعضې اقسامو تفصيل ذكر كوي دلته يو څو سوالات مخې ته راغلل:

**اول سوال** : نفس تفصيل ولې كوې؟

**جواب** : نفس تفصيل ځكه كوي، چې تفصيل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي.

**دوهم سوال** : د نورو اقسامو تفصيل ولې نه كوې؟

**جواب** : د نورو اقسامو تفصيل ځكه نه كوي، چې هغه تفصيل ته محتاج نه دى، تفصيل داسې كوي، چې دوه قسمه د كم به ذكر كړي، د دواړو تمييز به ذكر كړي، اعراب به د دواړو ذكر كړي، صيغه د تمييز به ذكر كړي، امثله د دواړو به ذكر كړي...

نو دا كم استفهاميه مميز مفرد منصوب وي، نو دلته يو څو سوالات واردېږي:

**سوال** : دې كم ته استفهامي ولې وايي؟

**جواب**: المتضمنة معنى الاستفهام چونكه دا معنى د استفهام لره متمضن دى، ځكه ورته كم استفهامي وايي.

**سوال** : دې لره نفس تمييز ولې راځي؟

**جواب** : الذى يرفع الابهام يعنې دې كې ابهام وي، او هغه تمييز دا ابهام رفع كوي، ځكه دې دپاره تمييز راځي.

**سوال**: دې كې ابهام په اعتبار د لفظ سره وايي او كه په اعتبار د معنى سره؟ كه په اعتبار د لفظ سره وايي، نو ددې لفظ كې خو ابهام نشته؟ او كه په اعتبار د معنى سره وايي نو معنى ددې هم واضح ده؟

**جواب:** شارح وايي عن جنس المسؤل عنه دا د جنس د مسؤل عنه نه ابهام دفع کوي. ځکه دې سره خو د هر اجناس واقع کیدې شي،

**سوال**: دا تمييز به منصوب ولې وي؟

**جواب**: على التمييز يعني دا به منصوب وي بنآء بر تمييز. ځکه تمييز د منصوباتو نه دی.

**سوال**: مفرد به ولې وي؟

**جواب**: لانها لما كانت للعدد الخ چونکه دا کم استفهامي د عدد دپاره راځي، او وسط د عدد د يولسو (۱۱) نه نهه نوي (۹۹) پورې وي او د عدد اوسط تمييز مفرد منصوب وي، نو ددې تمييز هم مفرد منصوب شو.

**سوال**: عدد په درې قسمه دی، عدد اقل، عدد اوسط، عدد اکثر، اوس ددې تمييز چې د عدد اوسط ګرځوې نو د عدد اقل يا اکثر په شان ولې نه ګرځوې؟

**جواب:** شارح وايي لانه لوجعل كاحد الخ حاصل د جواب دادی، چې بيا ترجيح بلا مرجح راځي، ځکه عدد اقل به وايي چې زه اصل يم، ځکه اصول د عدد ما کې دي او عدد اکثر به وايي چې زه اصل يم، ځکه ما کې کثرت دی. او دا قاعده ده. اذا تعارض الدليلان ولا ترجيح لاحدهما تساقطا. دوهمه وجه دا ده، چې خير الامور اوسطها او عدد اوسط په وسط کې دی، دريمه وجه داده، چې عدد اوسط په مينځ کې دی عدد اقل او اکثر دواړو سره يې واسطه ده. مثالونه يې دادي، كم رجلاً عندك، وكم درهماً عندك؟

وكم الخبرية الخ: کله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د يو قسم نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د دوهم قسم کې، نو دی وايي چې کم خبريه دپاره تمييز مفرد مجرور يا جمع مجرور راځي ماتن والخبرية ويلي وو. شارح ورسره کم راويستو اشاره دې ته، چې دا عطف دی په الاستفهامية باندې او ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي، په ما قبل د معطوف کې نو کم يې راويستو.

دلته هم يو څو سوالات دي

**سوال**: دې ته کم خبرې ولې وايي؟

**جواب**: دې ته کم خبرې ځکه وايي، چې ددې مقصود اخبار ورکول دي د کثرت د يو شي نه،

فرق په دواړو کې دادی. چې په کم استفهامي کې کنايه دعدد نه وي ، خو هغه متکلم ته معلوم نه وي. خو د مخاطب په ذهن کې وي او کم خبري د دې په عکس دی، دې کې هغه عدد متکلم ته معلوم وي او مخاطب ته معلوم نه وي.

**سوال** : دې دپاره نفس تمييز ولې راځي؟

**جواب** : نفس تمييز ورلره ځکه راځي، چې د جنس د مسئول عنه نه ابهام رفع کړي.

**سوال** :دا تمييز به مجرور ولې وي؟

**جواب** : ددې تمييز به مجرور وي په اضافت سره، ځکه دا کم به مضاف وي او ما بعد به مضاف اليه وي. او مضاف اليه مجرور وي.

تارةً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** :ته وايې ددې تمييز به مفرد جمع راځي، او ددې دواړو په مينځ کې تضاد دی؟

**جواب**: دا زه په يو وخت کې نه وايم. بلکې په جدا جدا وخت کې وايم.

تقول کم رجلٍ عندي: دا مثال د عدد مفرد دی.

و کم رجالٍ عندي: مثال د عدد جمع دی.

کما تقول مائة ثواب الخ: غرض د شارح مثال پيش کول دي .

و انما جآه الخ : ددې تمييز مفرد ځکه راځي، چې دی د عدد کثير سره په کثرت کې مشابهت ساتي او د هغې تمييز مفرد راځي، نو ددې تمييز به هم مفرد راځي .

و انما جآه مجموعاً الخ: ددې تمييز جمع هم راتلې شي، ځکه عدد کثير دپاره تمييز جمع راتلو، ځکه هغه په معنی د جمعيت کې صريح وو او کم خبري اګر چې په معنی د جمعيت کې صريح نه دی. ليکن په کثرت کې د عدد کثير نه نائب دی. نو ددې تمييز هم مونږ جمع راتلل جائزکړو.

**سوال**: د شارح دا عبارت لان العدد الکثير فيه ما يبني الخ صحيح نه دی، ځکه ددې نه دا مطلب راوځي، چې دې عدد کثير کې دننه يو بل شی په کثرت خبرداری ورکوي، حالانکه دا عدد کثير خپله په کثرت دلالت کوي؟

**جواب** : فيه دپاره د ظرفيت دی او ددې نه مراد معنی ده. او ما يبني عبارت دی د لفظ نه،

اوس معنی داسې شوه. شته دی معنی کې هغه لفظ چې فائده ورکوي د کثرت نه یا شته دی لفظ کې هغه معنی، چې فائده ورکوي د کثرت

**سوال**: نه وایې چې عدد کثیر د کثرت نه خبرداری ورکوي، نو څنګه چې عدد کثیر د کثرت نه خبرداری ورکوي، نو کم خبري خو هم د کثرت دپاره راځي اوس فرق څه دی؟

**جواب**: هغه عدد معین دي او ددې دا غیر معین دي.

وَ لَمَّا كَانَ هٰذَا لَيْسَ مِثْلَهُ فِي التَّصْرِيْحِ بِالْكَثْرَةِ جُعِلَ جَمْعِيَّةُ مُمَيِّزِهَا كَأَنَّهَا نَائِبَةٌ عَنْ مَعْنَى

کله چې یې دامثال صریح په کثرت کې نه وونو وګرځید و جمعیت د ممیز د هغې ګویاکه نائب وي د معنی

التَّصْرِيْحِ بِهَا وَ تَدْخُلُ مِنْ فِيْهِمَا اَیْ فِيْ مُمَيِّزِيْ كَمِ الْاِسْتِفْهَامِيَّةِ وَ الْخَبَرِيَّةِ تَقُوْلُ كَمْ مِنْ رَجُلٍ ضَرَبْتَ

د تصریح نه په جمعیت کې او داخلیږي من په ممیز د کم خبریه او استفهامیه کې لکه کم من رجل ضربت

وَ كَمْ مِنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنَاهَا قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيُّ هٰذَا فِي الْخَبَرِيَّةِ كَثِيْرٌ نَحْوَ كَمْ مِنْ مَلَكٍ وَ كَمْ مِنْ قَرْيَةٍ

اوکم من قریة اهلکناها شارح رضي وایي چې دا په کم خبریه کې ډیر راځي لکه کم من ملک اوکم من قریة

وَ ذٰلِكَ لِمُوَافَقَتِهٖ جَرًّا لِلْمُمَيِّزِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ كَمْ وَ اَمَّا مُمَيِّزُ كَمِ الْاِسْتِفْهَامِيَّةِ

او داځکه چې دا موافقت لري د جر د ممیز علیه سره کومه چې مضاف الیه ده او هرچې ممیز د کم استفهامیه

فَلَمْ اَعْثُرْ عَلَيْهِ مَجْرُوْرًا بِمِنْ فِيْ نَظْمٍ وَ لَا نَثْرٍ وَ لَاۤ اَوَّلٍ عَلٰی جَوَازِهٖ

دي نو خبر نه لرم په هغې باندې د مجرور په من سره نه په نظم او نه په نثر کې او نه تاویل کړي په جواز د دې

كِتَابٌ مِنْ كُتُبِ هٰذَا الْفَنِّ لٰكِنْ جَوَّزَ الزَّمَخْشَرِيُّ اَنْ يَكُوْنَ كَمْ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰی

کتاب د هغه چاچې لیکلي دافن د دې علم لکن جواز ورکړي امام زمخشري چې کم په دې قول د الله تعالی

سَلْ بَنِيْۤ اِسْرَآئِيْلَ كَمْ اٰتَيْنَاهُمْ مِنْ اٰيَةٍ بَيِّنَةٍ اِسْتِفْهَامِيَّةً وَ خَبَرِيَّةً وَ لَهَا اَیْ لِكَمْ اِسْتِفْهَامِيَّةً كَانَ اَوْ

کې سل بني اسرائیل کم اتیناهم من آیة بینة استفهامیه او خبریه کیدې شي کم که استفهامي وي او که

خَبَرِيَّةً صَدْرُ الْكَلَامِ لِاَنَّ الْاِسْتِفْهَامِيَّةَ يَتَضَمَّنُ الْاِسْتِفْهَامَ وَ

خبري وي لازم دي دې دپاره صدارت د کلام ځکه چې کم استفهامي متضمن دي استفهام لره او

هُوَ يَقْتَضِيْ صَدْرَ الْكَلَامِ لِيَعْلَمَ مِنْ اَوَّلِ الْاَمْرِ اَنَّهٗ مِنْ اَیِّ نَوْعٍ مِنْ اَنْوَاعِ الْكَلَامِ

استفهام تقاضا د صدارت د کلام کوي دې دپاره چې پته ولږي د اول نه چې دا د کومې نوعې د انواعو د کلام

وَ الْخَبَرِيَّةُ اَيْضًا تَدُلُّ عَلٰی اِنْشَاءِ التَّكْثِيْرِ وَ هُوَ اَيْضًا نَوْعٌ مِنْ اَنْوَاعِ الْكَلَامِ فَيَجِبُ التَّنْبِيْهُ

نه دي او کم خبریه هم دلالت کوي په تکثیر باندې او دا هم د انواعو د کلام نه یوه نوعه ده نو واجب ده تنبیه

| |
|---|
| عَلَيْهِ مِنْ اَوَّلِ الْاَمْرِ وَ كِلَاهُمَا لَوْ قَالَ كِلْتَاهُمَا لَكَانَ اَوْفَقَ لِتَانِيْثِ |
| په دې باندې داول الامرنه اودواړه كه مصنف دكلاهماپه ځاى كلتاهما ويلې وي نوموافق به وود تانيث |
| الْاِسْتِفْهَامِيَةِ وَ الْخَبَرِيَةِ فَهُوَ عَلٰى تَاْوِيْلِ كُلَّا هٰذَيْنِ النَّوْعَيْنِ وَ هُمَا كَمْ اَلْاِسْتِفْهَامِيَةُ وَ الْخَبَرِيَةُ اَىْ كُلٌّ وَاحِدٍ |
| داستفهام اوخبرسره نوداپه تاويل ددغه دواړو انواعو چې كم استفهامي دي اوخبري دي يعنې هر يو |
| مِنْهُمَا يَقَعُ مَرْفُوْعًا وَ مَنْصُوْبًا وَ مَجْرُوْرًا. |
| ددې دواړو نه واقع كيږي مرفوع اومنصوب اومجرور |

**اغراض دجامي :** وتدخل فيهما: دى وايي چې په دې دواړو كې من داخلېږي

اى في مميزى الخ: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين كول دي

تقول: غرض د شارح د دواړو دپاره مثالونه پيش كول دي.

قال الشارح: غرض د شارح د شارح رضي د عبارت په نقل كولو سره سوال ته تمهيد ايخودل دي.

فلم اعثر: په دې عبارت سره اشاره ده سوال ته.

ولكن جوز الخ: په دې عبارت سره اشاره ده جواب ته ، حاصل د خبرې دادى، چې رضي وايي چې په كم خبري كې د من دخول كثير دى، لكه كم من ملك كم من قرية.

وذلك: معنى يادوي. دخول د كلمه د من په دې باندې د وجې د موافقت ددې كم خبري نه د من سره په جر كې دپاره دتمييز داسې تميز. چې نسبت كړى شوى وي دې تمييز ته د كم (يعنې څنګه چې كم خبرې خپل مدخول لره جر وركوي، نو دا من هم جر وركوي ، ددې موافقت د وجې دا من هم په دې داخليږي، البته تمييز د كم استفهامي باندې زه نه يم خبر چې ددې تمييز په من سره مجرور شوى وي، نه په نظم كې او نه په نثر كلام كې ، دا هغه سوال طرف ته اشاره شوه؟

**جواب:** حاصل د جواب دا دى، چې عمده په دې فن كې صاحب مفصل دى او هغه وايي چې دا من په تمييز د كم استفهامي هم راتلى شي، او ددې دپاره په قرآن كريم كې هم مثال شته، سل بني اسرائيل كم اتيناهم من آية بينة دلته كم استفهامي او خبري دواړه صحيح كېږي.

ولهٗ صدر الكلام : كائن دې دپاره ددې كم صدر د كلام مطلب دادی، چې دې لره صدر د كلام واجب دی

ای لكم استفهامية الخ : په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : په كار وه، چې ماتن لهما ويلې وی. ځكه دا كم استفهامي او خبري دواړه راځي او ده خو لها ويلی دی ؟

**جواب**: شارح جواب وكړو، چې دا ضمير كم ته راجع دی. بيا هغه كه استفهامي وي او كه خبري بيا دې كم ته يې ضمير د مؤنث راجع كړو، ځكه ددې صفت مؤنث راځي، نو دا كم په تاويل د كلمة سره مؤنث دی.

لانها الخ : غرض د شارح ددې صدارت دپاره وجهٔ ذكر كول دي، حاصل د هغې دادی، چې كم استفهامي متضمن دی استفهام لره او كم خبري دلالت كوي په انشاء التكثير باندې. او دا دواړه تقاضا كوي د صدارت د كلام. وجه داده، چې د اول وهلت نه پته ولګېږي، چې دا كوم قسم كلام دی.

**سوال** : ددې استفهام او انشآء تكثير دپاره اول وهلت نه تنبيه وركول ولې واجب دي؟

**جواب**: كه د اول وهلت نه تنبيه واجب نه كړو، نو كله كله يو سړی د كلام تام كېدو نه مخكې په جواب شروع وكړي، اوس دی به د اول كلام نه جواب وركوي او د متكلم مقصد به جدا وي اوس دده جواب به هم غلط شي، او دی به بل جواب شروع كوي، نو تكليف كې به واقع شي

والخبرية ايضاً تدل على انشآء التكثير الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال** : سوال دادی، چې كم كله تا خبري كړو، نو بيا وروستو انشآء التكثير ځنګه وايې؟ د انشآء او خبر منځ كې خو منافات دي ؟

**جواب** : ددې دواړو جدا جدا اعتبارات دی، لكه كم رجال عندي في نفسه كلام خبري دی، خو په انشآء التكثير دلالت هم كوي، دغه وجه ده چې ددې جواب خلک داسې نه كوي، چې ما انشآءت التكثير، بلكې ما عندك رجالاً وايي «دا چې كله دغه سړي ته نسبت د دروغو كوي، نو وايي كذبت ما عندك رجالاً».

وكلاهما يقع مرفوعاً و منصوباً و مجروراً: غرض د ماتن ددې اعراب ذكر كول دي. نو دی وايي چې

دا دواړه واقع کېږي ، په محل د رفع، نصب او جر کې ، دې معنی سره مونږ يو سوال دفع وکړو:

**سوال**: رفع نصب او جر خو په معرب کې راځي او دا خو مبنيات دي؟

**جواب**: مونږ وايو چې په محل د رفع نصب او جر کې وي او په مبنياتو کې محلي اعراب راځي.

ولو قال كلتها الخ: غرض د شارح په ماتن سوال کول دي:

**سوال**: په کار دا وه، چې ماتن **کلتاهما** ويلي وي، ځکه د کم صفت مؤنث راځي، نو دا په تاويل د **کلمةٌ** سره مؤنث دی، نو ضمير د مؤنث راجع کول اوفق دي؟ بيا دې **اوفق** اسم تفصيل کې اشاره دې ته، چې ضمير د مذکر راجع کول هم صحيح دي، ځکه ددې تاويل کول څه لازم نه دي، البته مؤنث راوړل **اوفق** دي.

لتانيث الخ: دا هغه سند د تانيث ذکر کوي.

فهو على الخ: غرض د شارح جواب طرف ته اشاره کول دي، چې هغه دا چې ضمير نوع ته راجع دی او نوع مذکر دی نو ضمير د مذکر ورته راجع کول صحيح دي.

وهما كم الخ: غرض د شارح په **کلاهما** کې د **هما** ضمير مرجع متعيين کول دي.

اى كل واحد: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: **کلاهما يقع** مبتداء خبر دی او دې دواړو کې مطابقت په افراد تثنيه کې نشته ؟

**جواب**: دا ضمير په اعتبار د **کلّ واحدٍ** سره راجع دی، لهذا **يقع** ويل صحيح دي.

**سوال**: دا سوال د شارح په کلام دماتن صحيح نه دی، ځکه لفظ د **کلا** مفرد د مذکر دی، نو **يقع** خبر ترې صحيح کېږي؟

**جواب**: دا خبره صحيح ده، چې لفظ د **کلا** مفر مذکر دی، ليکن ددې اضافت چې کله **هُمَا** ته وشي، نو معنی يې مراد وي، او معنی ددې خو تثنيه ده، نو **يقع** خبرې ترې نه صحيح کېږي، لهذا سوال په خپل ځای صحيح دی.

چونکه په دې ما قبل غرض د شارح سوال راتلو، نو ځينې نوور شارحينو د دې غرض دا بيان کړی دی. چې غرض د شارح په دې عبارت سره دفع د وهم ده.

**وهم**: ماتن ویلي وو کلاهما یقع مرفوعاً الخ اوس چا به وهم کوو، چې که دا دو ه یو ځای نه وي، بلکې یواځې راشي. نو ګنې دا به بیا مرفوع منصوب مجرور نه راځي؟

**جواب**: شارح دا وهم دفع وکړو. چې هر واحد ددې ځان ځان لره هم مرفوع منصوب واقع کېږي.

**فکل ما الخ**: غرض د ماتن قاعده کلیه ذکر کول دي، حاصل د هغې دادی، چې هر هغه مقام چې پس د کم خبري یا استفهامي نه فعل یا شبه فعل وي او دغه فعل یا شبه فعل د دغه کم نه په ضمیر کې مشغول نه وي، نو دې مقام کې به دا کم په محل د نصب کې وي، بیا وجه د نصب به د خپل شان مناسب وي، لکه رجلا ضربت دلته پس د کم نه فعل واقع دی، او په ضمیر کې مشغول نه دی اوس دا کم به په محل د نصب کې وي، ځکه دا مفعول به د فعل دی.

| ثُمَّ بَيَّنَ مَوْقِعَ كُلٍّ مِنْهُمَا بِقَوْلِهٖ فَكُلُّ مَا اَیْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْ كَمِ الْاِسْتِفْهَامِيَّةِ وَ الْخَبَرِيَّةِ يَكُوْنُ |
|---|
| بیا یې بیان د هر واحد وکړو په دې قول خپل سره فکل ما یعني هر واحد د کم خبریه او استفهامیه نه چې وي |
| بَعْدَهٗ فِعْلٌ اَوْ شِبْهُهٗ لَفْظًا اَوْ تَقْدِيْرًا غَيْرُ مُشْتَغِلٍ عَنْهُ بِضَمِيْرِهٖ |
| وروستو د هغې نه فعل او یا شبه فعل لفظاً وي او که تقدیراً وي چې مشغول به نه وي د هغه نه په ضمیر |
| اَوْ مُتَعَلِّقُ ضَمِيْرِهٖ فَهُوَ مِنْ حَيْثُ هُوَ كَكَ كَانَ مَنْصُوْبًا مَعْمُوْلًا عَلٰى حَسَبِهٖ |
| خپل سره او یا په متعلق د ضمیر سره نو دا به په دغه وخت کې منصوب وي او معمول به وي په اعتبار د دې |
| اَیْ عَلٰى حَسَبِ عَمَلِ هٰذَا الْفِعْلِ وَ عَمَلِهٖ لَا يَكُوْنُ اِلَّا بِحَسَبِ الْمُمَيِّزِ وَ ذٰلِكَ اَنَّكَ تَقُوْلُ كَمْ يَوْمًا ضَرَبْتَ |
| یعني په اعتبار د عمل د دغه فعل سره او عمل د فعل نه وي مګر موافق د ممیز سره لکه کم یوماً ضربت نو |
| فَكَمْ مَنْصُوْبٌ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ مَعَ اِقْتِضَاءِ الْفِعْلِ لِلْمَفْعُوْلِ بِهٖ وَالْمَصْدَرِ وَالْمَفْعُوْلِ فِيْهِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ مِنَ الْمَنْصُوْبَاتِ فَتَعَيَّنَهٗ |
| کم منصوب بنابر ظرفیت دی سره د تقاضا د مفعول به او مصدر او مفعول فیه وغیره د منصوباتو نه نو تعین |
| لِاَحَدِ الْمَنْصُوْبَاتِ اِنَّمَا هُوَ بِحَسَبِ الْمُمَيِّزِ فَالْاِسْتِفْهَامِيَّةُ نَحْوُ كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ فِي الْمَفْعُوْلِ بِهٖ وَ كَمْ ضَرْبَةً ضَرَبْتَ |
| یې یو د منصوباتو بنا دې په اعتبار د ممیز سره او استفهامیه لکه کم رجلاً ضربت په مفعول کې و کم ضربة ضربت |
| فِي الْمَفْعُوْلِ الْمُطْلَقِ وَ كَمْ يَوْمًا سِرْتَ فِي الْمَفْعُوْلِ فِيْهِ وَ الْخَبَرِيَّةُ مِثْلُ كَمْ غُلَامٍ مَلَكْتُ وَ كَمْ ضَرْبَةٍ ضَرَبْتُ وَ كَمْ |
| په مفعول مطلق کې و کم یوماً سرت په مفعول فیه کې او خبریه لکه کم غلام ملکت و کم ضربة ضربت و کم |
| يَوْمٍ سِرْتُ وَ اِنَّمَا جَعَلْنَا الْفِعْلَ وَ شِبْهَهٗ اَعَمَّ مِنْ اَنْ يَكُوْنَ مَلْفُوْظًا اَوْ مُقَدَّرًا لِيَدْخُلَ |
| یوم سرت او مونږ وګرځوو فعل او شبه فعل عام ددې چې ملفوظ وي او که مقدر وي دی د پاره چې داخل |

| |
|---|
| فِيْ قَاعِدَةِ النَّصْبِ مِثْلُ قَوْلِكَ كَمْ رَجُلاً ضَرَبْتَهُ اِذَا جَعَلْتَهُ مِنْ قَبِيْلِ الْاِضْمَارِ عَلٰى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ |
| شي په قاعده د نصب کې دا قول كم رجلاً ضربته كله يې چې ته د قبيلې د اضمار على شريطة التفسير نه |
| وَ قَدَّرْتَ بَعْدَهُ فِعْلاً غَيْرَ مُشْتَغِلٍ عَنْهُ اَىْ كَمْ رَجُلاً ضَرَبْتَ ضَرَبْتَهُ |
| وګرځوې او ورستوترې داسې فعل مقدر کړې چې غير مشغول وي ددې نه يعنې كم رجلاً ضربت ضربته |
| فَهُوَ مِنْ حَيْثُ اَنَّ بَعْدَهُ فِعْلاً مُقَدَّرًا غَيْرَ مُشْتَغِلٍ عَنْهُ دَاخِلٌ فِيْ قَاعِدَةِ النَّصْبِ |
| نو دا ددې حيثيت نه چې وروستو ترې فعل مقدر غير مشغول عنه دې داخل دې په قاعده د نصب کې |
| وَ اِنْ لَمْ تَجْعَلْهُ مِنْ قَبِيْلِهٖ وَ لَمْ تُقَدِّرْ بَعْدَهُ فِعْلاً غَيْرَ مُشْتَغِلٍ عَنْهُ فَهُوَ مِنْ هٰذِهِ الْحَيْثِيَّةِ مَرْفُوْعٌ |
| او ددې حيثيت نه چې ته يې د قبيلې د فعل مقدر غير مشغل عنه ونه ګرځوې نو بيا ددې حيثيت نه مرفوع دې |
| دَاخِلٌ فِيْ قَاعِدَةِ الرَّفْعِ وَ كُلُّ مَا قَبْلَهُ اَىْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْ كَمْ الْاِسْتِفْهَامِيَّةِ وَ الْخَبَرِيَّةِ وَقَعَ قَبْلَهُ |
| او داخل دې په قاعده د رفع کې او هر واحد د كم خبريه او استفهاميه نه که چيرته واقع شي مخکې د هغې نه |
| حَرْفُ جَرٍّ نَحْوُ بِكَمْ دِرْهَمًا اِشْتَرَيْتَ اَوْ بِكَمْ رَجُلٍ مَرَرْتُ اَوْ مُضَافٌ نَحْوُ غُلَامَ كَمْ رَجُلاً ضَرَبْتَ وَعَبْدَ كَمْ رَجُلٍ اِشْتَرَيْتُ |
| حرف جر لکه بکم درهما اشتريت وبکم رجلٍ مررت او يا مضاف لکه غلام كم رجلاً ضربت وعبد كم رجل اشتريت |
| فَمَجْرُوْرٌ بِحَرْفِ الْجَرِّ اَوِ الْاِضَافَةِ وَ اِنَّمَا جَازَ تَقْدِيْمُ حَرْفِ الْجَرِّ اَوِ الْمُضَافِ عَلَيْهِمَا |
| نو بيا به مجرور وي په حرف جر او يا اضافت سره او تقديم د حرف جر او د مضاف په كم خبري او استفهامي |
| مَعَ اَنَّ لَهُمَا صَدْرَ الْكَلَامِ لِاَنَّ تَاْخِيْرَ الْجَارِ عَنِ الْمَجْرُوْرِ مُمْتَنِعٌ لِضُعْفِ |
| سره ددې چې دې دواړو د پاره صدارت د کلام دې ځکه تاخير د جار د مجرور نه ممتنع دې دوجې د ضعف |
| عَمَلِهٖ فَيَجُوْزُ تَقْدِيْمُ الْجَارِ عَلَيْهِمَا عَلٰى اَنْ يُجْعَلَ الْجَارُ اِسْمًا كَانَ اَوْ |
| د عمل ددې نه نو جائز دې تقديم د جار په دې باندې په داسې شان چې وګرځول شي جار که اسم وي او که |
| حَرْفًا مَعَ الْمَجْرُوْرِ كَكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ مُسْتَحِقَّةٍ لِلصَّدْرِ. |
| حرف سره د مجرور نه په منزله د يوې کلمې چې مستحقه وي د صدارت د کلام |

**اغراض د جامي : ثم بين الخ:** غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا فآء په کلام د ماتن کې تفصيليه ده.

**اى كل واحد الخ:** غرض د شارح تعيين د ما کول دي، چې دا موصوفه ده، ځکه قانون دا دی، چې د کل اضافت معرفې ته وشي، نو د هغې نه په اجزاء سره تعبير کولې شي او کله چې نکرې ته اضافت وشي، نو افرادو سره تعبير کيدې شي، او دلته افرادو سره تعبير شوې دی، نو نکره

مراد ده، او نکره ما موصوفه وي

**لفظاً او تقديراً**: ددې قيد فائده وروستو را روانه ده

**او متعلق ضميره**: ماتن دا قيد نه دی ذکر کړی په ما اضمر باندې يې اکتفاء کړې ده.

**فهو من حيث**: چونکه د مبتداء او خبر په مينځ کې بعد راغلو، نو اعاده د ضمير يې وکړه.

**معمولاً علی حسبه**: يعنې دلته به دا منصوب وي په اعتبار د عمل د فعل سره.

**معمولاً**: غرض د شارح د جار مجرور دپاره متعلق راويستل دي.

**ای علی حسب عمل الخ**: غرض د شارح د ضمير مرجع متعين کول دي، او بل غرض د شارح رد دی په بعض شارحينو، چې هغه ضمير اقتضاء د فعل يا شبه فعل ته ضمير راجع کړی دی.

دې پرې رد کوي سبب د رد هم دادی، چې مثلاً که يوماً سرت ته ووايي نو دلته مونږ کم منصوب وايو بنا بر ظرفيت اوس فعل خو اقتضاء مفعول به مفعول مطلق وغيره ټولو کوي، ليکن دلته مونږ دې ته صرف منصوب بنا بر ظرفيت وايو، نو د فعل د عمل د وجې وايو. ددې وجې نه شارح ضمير فعل ته راجع کړو، که ته وايې دا چېرته نه معلومېږي؟ نو مونږ وايو چې معمولاً نه معلومېږي، چې ضمير عمل ته راجع دی، اوس سوال نشته، چې تاسو دې ته منصوب په بله وجه ولې نه وايې؟ نو مونږ وايو چې دلته بل څه وجه نه شي کېدای، ځکه عمل د فعل دغه دی، چې دا منصوب بنا بر ظرفيت شي

**وعمله لا يکون الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ځنګه چې دا منصوب وي د فعل د وجې نو دامعموليت يې د تمييز د وجې نه هم راځي اوس هغه دې ولې ذکر نه کړو؟

**جواب**: چونکه دا عمل ددې په غير د تمييز نه، نه وي، نو د هغې ذکر ته ضرورت رانغلو.

**فتعينه الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ځنګه چې په اقتضاء کې عموم راځي، نو په عمل کې خو هم عموم دي نو هغه سوال خو دلته هم دی؟

**جواب**: د عمل تعيين ممکن دی، او د اقتضاء د هغ تعيين ممکن نه دی لهذا دا دغه سوال نشته

**سوال**: شارح درې مثالونه ذکر کړل. نو د مفعول له او باقي منصوباتو لره يې امثله ولې پيش نه کړه؟

**جواب**: په مفعول له کې اختلاف دی. ځينې وايي ددې تمييز راځي، او ځينې وايي نه راځي. او د باقي منصوباتو د تمييز سمع د عربو نه. نه ده شوې

**وانما جعلنا الخ**: غرض د شارح د ما قبل **لفظاً او تقديراً** قيد فائده ذکر کول دي. او دفع د يو سوال هم کوي

**سوال**: ستا د کلام نه معلومه شوه، چې که د کم نه وروستو فعل يا شبه فعل مشتغل بالضمير وي، نو دا قاعده د نصب کې نه داخليږي. حالانکه دې لره که مقدر فعل راوباسي، نو په قاعده د نصب کې داخليږي او ستا کلام خو ددې نفي کوي؟

**جواب**: مونږ وايو دا فعل عام دی، لفظاً وي او که تقديراً لهذا دغه صورت هم په قاعده د نصب کې په تقدير د فعل سره داخليږي.

**کم رجلاً ضربته**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال** :دا دی. چې مقدر فعل خو مخکې د کم نه راويستی شي او وروستو فعل يې تفسير دي او دلته خو وروستو واقع دی؟

**جواب**: دلته کم تقاضا د صدارت کوي، ددې وجې نه دا فعل به وروستو راوباسو.

**وکل ما قبله الخ**: کله چې فارغ شو ماتن د قاعدې د نصب نه، نو اوس قاعده د جَر ذکر کوي حاصل د هغې دادی، چې که په کم حرف جَر يا مضاف داخل وو، نو دا به مجرور وي.

**ای کل واحد الخ**: غرض د شارح اشاره کول دي، چې دا ما موصوفه ده، ځکه تعبير يې افرادو سره کړی دی او مخکې قاعده ذکر شوې ده، چې د **کل** اضافت نکرې ته وشي، نو د هغې نه تعبير په افرادو سره کيدې شي.

**وقع قبله**: ماتن قبله ويلي وو، او دا خو ظرف دی، متعلق غواړي، شارح ورلره متعلق راويستو.

**نحو بکم الخ**: دوه مثالونه يې ذکر کړي دي اول مثال د کم استفهامي دی او دوهم مثال د کم خبري دی.

نحو غلام کم الخ: دلته هم دوه مثالونه ذکر دي اول د کم استفهامي دي او دوهم مثال د کم خبري دی.

وانما جاز الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال**: مخکې تا ويل چې کم تقاضا د صدارت کوي، او دلته خو په مینځ کې واقع دی؟

**جواب**: صحيح ده چې کم تقاضا د صدارت کوي، ليکن جار هم تقاضا د صدارت کوي، اوس چې مونږ سوچ وکړو، نو دا جار خو ددې کم سره متصل وي او دی په عمل کې ضعيف دی، نو ددې ضعيف د وجې مونږ دې مقدم کړو او دا اتصال په وجه دا جار مجرور په منزله د يو کلمه حساب کېدای شي. نو تقديم د نسبت دواړو ته کېږي.

| |
|---|
| وَ اِلَّا اَیْ وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ بَعْدَهُ لَا لَفْظًا وَلَا تَقْدِيْرًا فَعَلَ وَلَا شِبْهُ فِعْلٍ غَيْرَ مُشْتَغِلٍ عَنْهُ وَ لَا قَبْلَهُ |
| اوکه چيرته نه وورورستو دکم نه فعل او نه شبه فعل غير مشتغل عنه نه لفظاًاونه تقديراًاونه مخکې |
| حَرْفُ جَرٍّ اَوْ مُضَافٌ بَلْ كَانَ مُجَرَّدًا عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ فَمَرْفُوْعٌ اَیْ فَهُوَ مَرْفُوْعٌ مُبْتَدَأٌ |
| ترې حرف جروواونه مضاف بلکه ووه مجرور دوچې دعواملو لفظيونه نوبيا مرفوع ده يعني بيا مرفوع مبتدا |
| اِنْ لَمْ يَكُنْ ظَرْفًا نَحْو مَنْ اَبُوْکَ وَ هٰذَا مَبْنِيٌّ عَلٰى مَذْهَبِ سِيْبَوَيْهِ فَاِنَّهُ يُخْبِرُ |
| وي که چيرته نه وو ظرف لکه من ابوک دا په مذهب دسيبويه مبني دي ځکه چې دلته خبرورکول کيږي په |
| عِنْدَهُ بِمَعْرِفَةٍ عَنْ نَكِرَةٍ مُتَضَمِّنَةٍ اِسْتِفْهَامًا وَ اَمَّا عِنْدَ غَيْرِ سِيْبَوَيْهِ فَهٰذَا خَبَرٌ مُقَدَّمٌ |
| معرفې سره دنکرې نه کومه چې متضمنه ده معنی داستفهام لره او په نزد دغير سيبويه دا خبر مقدم دي |
| عَلَى الْمُبْتَدَاِ لِكَوْنِهٖ نَكِرَةً وَ مَا بَعْدَهُ مَعْرِفَةٌ وَ خَبَرٌ اِنْ كَانَ ظَرْفًا نَحْو كَمْ يَوْمًا سَفَرُکَ |
| په مبتدا باندې ځکه چې دا نکره وروستو ترې معرفه ده او خبر دي که چيرته ظرف وي لکه کم يوماًسفرک |
| فَكَمْ هٰهُنَا مَنْصُوْبُ الْمَحَلِّ اَوَّلاً دَاخِلٌ تَحْتَ قَاعِدَةِ النَّصْبِ بِاِعْتِبَارِ اَعْمَالِ |
| نوکم دلته منصوب المحل دي اولاًدې داخل دي لاندې دقاعدې دنصب نه په اعتبار دهغه عمل کوم |
| الْكَائِنِ فِيْهِ وَ دَاخِلٌ فِيْ قَاعِدَةِ الرَّفْعِ ثَانِيًا لِقِيَامِهٖ مَقَامَ عَامِلِهِ الَّذِیْ |
| چې شته په دې کې اودوهم ځل دپاره داخل شوپه قاعده درفع کې ځکه چې قائم شوپه مقام دهغه عامل |
| هُــوَ خَبَرُ الْمُبْتَدَاِ. |
| کوم چې خبر دمبتدا دي |

**اغراض دجامي** : والا: کله چې د قاعدې د نصب او جر نه فارغ شو، نو په قاعده د رفع یې شروع وکړه او د هغې حاصل دادی، چې کوم ځای قاعده د نصب او جر نه چلیده، نو هلته به قاعده د دفع وي اوس مرفوع به په څه وي؟ نو که ظرف نه وو، نو مرفوع بنا بر ابتدائیت دی او که ظرف وو، نو بیا مرفوع بنا بر خبریت دی، وجه داده، چې ظرف متعلق غواړي، او هغه به فعل یا شبه فعل وي، دواړه صورتونو کې د هغې ابتدائیت نه صحیح کېږي، ځکه چې فعل او شبه فعل کې یو نسبت وي او دغه نسبت اباء کوي، چې دا دې مبتداء واقع شي.

فهو مرفوعٌ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** فمرفوعٌ جزاء د شرط ده، او جزاء خو جمله وي؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې مبتداء حذف ده.

نحو من ابوك: په دې عبارت سره غرض دشارح مثال پیش کول دي او بل پهٔ دې سره دفع د سوال هم کوي:

**سوال:** خبره د کم شروع ده. او مثال د من پیش کوې؟

**جواب:** مونږ وایو، چې دا مثال دی صرف د وضاحت دپاره راوړی شوی دی او هغه داسې، چې څنګه من استفهامي راځي او تقاضا د صدارت کوي. نو دغه شان کم هم دی.

**سوال:** مونږ خو ویلي دي، چې معرفه نکره جمع شي، نو معرفه به مبتداء کولی شي او دلته خو نکره مبتداء کړې شوې ده ؟

**جواب:** شارح جواب وکړو، چې په مذهب د سیبویه باندې کلام بناء دی، اوس دده په نزد دا من ولې مبتداء واقع کیدې شي؟ نو وجه داده، چې من مؤول دی په تاویل د هذا ام ذاك سره او دا اسماء اشاراة دي. د معرفې د اقسامو نه دي، نو ابتدائیت صحیح دی.

دوهمه وجه داده، چې متکلم استفهام کوي، نو ده ته به پته وي، چې مخاطب په دې عالم دی نو چې هغه پرې عالم شو نو معرفه شوه، لهذا ابتدائیت یې صحیح دی.

واما عند غیره الخ: د سیبویه نه علاوه د نورو په نزد د دا من خبر مقدم او ابوك مبتداء مؤخر ده.

اوس په دې سوال راځي:

**سوال:** چې اصل خو تقدیم د مبتداء دی، دلته ولې مؤخر شوې ده ؟

**جواب:** چونکه من صدارت في الكلام غواړي، نو د مجبورۍ د وجې مبتدا مؤخر شوې ده.

**وخبر ان كان ظرفاً:** يعني كه دا كم ظرف واقع وو، نو دا به مرفوع بنابر خبريت وي، لكه كم يوماً سفرك. په دې مثال كې شارح دوه تركيبه كړي دي اول تركيب كې دا منصوب دى په قاعده د نصب كې داخل دى او هغه په دې شان سره، چې دا كم ظرف متعلق غواړي او هغه متعلق به فعل يا شبه فعل وي، په دواړو صورتونو كې به دا كم هغې دپاره مفعول به وي، دې صورت كې دا كم محلاً منصوب دى، نو قاعده د نصب كې داخل دى او دا فعل يا شبه فعل به سره ددې متعلق نه خبر د مبتداء مؤخر شي، دوهم تركيب دادى. چې كله دا متعلق يعنې فعل يا شبه فعل ددې حذف شو او دا كم د هغې قائمقام شو، نو دا جمله يا شبه جمله خو په محل د رفع كې وه بنا بر خبريت، نو اوس به دا كم د هغې قائمقام شي، نو دا به مرفوع شي بنا بر خبريت او په دې صورت كې به دا په قاعده د رفع كې داخل شي.

## حكم دا اسماء استفهام :

| |
|---|
| وَ كَذٰلِكَ اَىْ مِثْلُ كَمْ فِيْ تَاَتِّي الْوُجُوْهُ الْاَرْبَعَةِ الْاِعْرَابِيَّةِ بِالشَّرَائِطِ الْمَذْكُوْرَةِ اَسْمَاءُ الْاِسْتِفْهَامِ |
| او همدارنګې په مثل د كم په راتلو دڅلورووجهو داعراب په دې سره دشرائطو مذكورو اسماء دا استفهام |
| وَ الشَّرْطِ بِمَعْنَى اَنَّهٗ تَتَاَتّٰى تِلْكَ الْوُجُوْهُ فِيْ جَمِيْعِ هٰذِهِ الْاَسْمَاءِ لَا فِيْ كُلِّ وَاحِدٍ |
| او شرط هم دي دا په دې معنى چې دا ټول وجوه په دې ټولو اسماو كې راتللې شي دانه چې په هر واحد |
| مِنْهَا وَ هِيَ مَنْ وَ مَا وَ اَىٌّ وَ اَيْنَ وَ اَنّٰى وَ مَتٰى مُشْتَرَكَةٌ بَيْنَ |
| ددې كې دا ټول وجوه راتللې شي او دا اسماء من وما واى واين وانى ومتى دي چې مشترك دي په مينځ د |
| الْاِسْتِفْهَامِ وَ الشَّرْطِ وَ اِذَا مُخْتَصَّةٌ بِالشَّرْطِ وَ كَيْفَ وَ اَيَّانَ مُخْتَصَّيْنِ بِالْاِسْتِفْهَامِ |
| استفهام او شرط كې او اذا خاص ده ترشرط پورې او كيف او ايان دواړه خاص دي تر استفهام پورې نو |
| فَمَنْ وَ مَا اِذَا كَانَتَا اِسْتِفْهَامِيَّتَيْنِ يَتَاَتّٰى فِيْهِمَا الْوُجُوْهُ الثَّلٰثَةُ اَلْاَوَّلُ نَحْوُ مَنْ ضَرَبْتَ وَ مَا |
| من او ماكله چې دواړه استفهامي وي په دې دواړو كې درې وجوه راتللې شي اول لكه من ضربت وما |
| صَنَعْتَ وَ بِمَنْ مَرَرْتَ وَ غُلَامَ مَنْ ضَرَبْتَ وَ مَنْ ضَرَبْتَهٗ وَ مَا صَنَعْتَهٗ وَلَا يَتَاَتّٰى فِيْهِمَا الرَّفْعُ عَلَى الْخَبَرِيَّةِ |
| صنعت وبمن مررت وغلام من ضربت ومن ضربته وما صنعته او په دې كې رفع بنابر خبريت نه راځي ځكه چې |
| لِامْتِنَاعِ ظَرْفِيَّتِهِمَا وَ اِذَا كَانَتَا شَرْطِيَّتَيْنِ فَكَكَ يَتَاَتّٰى فِيْهِمَا تِلْكَ الْوُجُوْهُ الثَّلٰثَةُ نَحْوُ |
| ظرفيت په دې كې جائز نه دي او كله چې دا دواړه شرطي وي نو هم دا درې وجوه په كې راتللې شي لكه |

| |
|---|
| مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ وَمَا تَصْنَعْ اَصْنَعْ وَبِمَنْ تَمْرُرْ اَمْرُرْ وَغُلَامُ مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ وَمَنْ يَأْتِنِيْ فَهُوَ مُكْرِمٌ وَمَا تُقَدِّمُوْا |
| من تضرب اضرب وماتصنع اصنع وبمن تمرر امرر وغلام من تضرب اضرب ومن يأتيني فهو مكرم وماتقدموا |
| لِاَنْفُسِكُمْ مِنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللهِ وَلَا يَتَاَتّٰى فِيْهِمَا بَلْ فِيْ جَمِيْعِ اَسْمَاءِ الشَّرْطِ الرَّفْعُ عَلٰى خَبَرِيَّةٍ |
| لانفسكم من خيرتجدوه عندالله اونه راځي په دې دواړوکې بلکه په ټولو اسماء الشرط رفع بنابرخبريت |
| فَاِنَّهُ لَا يَقَعُ بَعْدَهَا اِلَّا الْفِعْلُ وَ لَا يَصْلُحُ الْفِعْلُ لِلْاِبْتِدَاءِ وَ مَا هُوَ |
| ځکه چې دهغې وروستو نه واقع کيږي مګر فعل اوفعل صلاحيت نه لري دپاره دمبتدا اوکوم چې لازم |
| لَازِمُ الظَّرْفِيَّةِ مِنْ هٰذِهٖ كَمَتٰى وَ اَيْنَ وَ اَيَّانَ وَ كَيْفَ وَ اَنّٰى وَ اِذَا اِنْ لَمْ تَنْجُرْ بِجَارٍّ |
| دي دظرفيت سره ددغونه لکه متى اواين اوايان اوکيف او اني اواذا نوکه دوي مجرورنه ووپه جاره سره |
| نَحْوِ مِنْ اَيْنَ فَلَا بُدَّ مِنْ كَوْنِهَا مَنْصُوْبَةً عَلَى الظَّرْفِيَّةِ. |
| لکه من اين نوبيا به لازماً منصوب بنابرظرفيت وي. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره حکم داستفهام او په دې کې تفصيل بيانوي .

**اغراض دجامي** : وكذلك: د کم په مناسبت سره د اسمآء الاستفهام والشرط ذکر کوي، چې دې کې هم وجوه اربعه راځي او په معنى د استفهام سره راځي.

اى مثل كم غرض: په دې عبارت سره شارح د ذلک اسم اشاره مشار اليه متعين کول دي ، او د يو سوال دفع هم کوي :

**سوال** : دا دی چې كذلك مبتداء ا واسماء الاستفهام خبر دی او د كذلك ابتدائيت نه صحيح کيږي، ځکه دې جار مجرور دپاره به متعلق راوباسي هغه به فعل وي يا شبه فعل په دواړو صورتونو کې د هغې ابتدائيت نه صحيح کيږي؟

**جواب:** مونږ وايو كاف بمعنى مثل سره مضاف دی نو ابتدائيت يې صحيح دی.

في تاتي الوجوه: مخکې ك تشبيهي ذکر شو، په تشبيه کې څلور خبرې وه، مشبه، مشبه به، اداة تشبيه او وجه د تشبيه، اسمآء الاستفهام والشرط مشبه دي کم ورلره مشبه به دی كاف حرف تشبيه دی او وجه د شبه شارح په دې مذکور عبارت سره ذکر کوي.

اسمآء الاستفهام: مراد په اسمآء الاستفهام سره باقي د کم نه دي، په دې سره دفع د سوال وشوه :

**سوال**: اسمآء الاستفهام کې خو کم هم داخل دی، دا خو تشبیهه د شيء لنفسه لازم شوه؟

**جواب**: مونږ وایو مراد په دې سره باقي اسمآء استفهام دي.

**سوال**: دا باقي د څه نه معلومیږي؟

**جواب**: دا کم ترې مستثنی دی په استثناء عقلي سره، یعنې که دا کم مستثنی نه کړو، نو لازم به شي تشبیهه د شيء لنفسه او دا ناجائزده

**بمعنی انه تاتي**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: دا تشبیه د اسمآء الاستفهام والشرط د کم سره په وجوه اربعه کې صحیح نه ده. ځکه صرف په ای کې وجوه اربعه راځي، او باقي اسمآء کې مجموعه وجوه اربعه نه راځي؟

**جواب**: دا تشبیه په اتیان ددې څلورو په هر واحد کې نه ده، بلکې مطلب دا چې دې مجموعه اسمآو کې دا وجوه اربعه راځي، اوس په چا کې دوه او په چا کې درې او په چا کې څلور وجوه راځي

**وهي من الخ**: اسمآء الاستفهام والشرط في نفسه په درې قسمه دي: مشترك بين الاستفهام والشرط او هغه شپږ اسمآء دي مختص بالشرط او هغه اذا دی، مختص بالاستفهام دی او هغه دوه دي این، ایان، دوهم تقسیم دې کې په اعتبار د اعراب سره دی د اعراب په اعتبار سره دا نهه قسمه څلور برخو ته تقسیم دي. وجه حصر، دا اسمآء به خالي نه وي، دې سره به ظرفیت لازم وي یا نه که ظرفیت ورسره لازم وو. بیا به خالي نه وي په معنی د استفهام به وي یا په معنی د ربط که په معنی د استفهام وو، نو دا پنځه دي او دې کې وجوه ثلاثه راځي. نصب، جر، او رفع بنا بر خبریت، او که په معنی د شرط وو، نو هلته دوه وجې دي، نصب او جر رفع بنا بر ابتدائیت پکې نه راځي. ځکه ددې نه وروستو فعل راځي او فعل شرط صلاحیت د ابتداء نه لري او رفع بنابر خبریت هم نه صحیح کیږي. بلکې هغه دې تولو اسماء شرطیه کې نه صحیح کیږي، ځکه ددې نه ما بعد به ته مبتداء ګرځوې او هغه خو فعل دی او ابتدائیت د فعل نه صحیح کیږي او که د ظرفیت سره لازم نه وو، نو بیا به خالي نه وي لازم الاضافت به وي یا نه که لازم الاضافت وو هغې کې وجوه اربعه راځي او که لازم الاضافت نه وو، نو هغې کې بیا وجوه

ثلاثه نه راځي، نصب، جر. او رفع بنابر ابتدائيت. او رفع بنا بر خبريت نه صحيح کېږي، ځکه دې کې ظرفيت نه وي.

لامتناع ظرفيتهما: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا وجوه ثلاثه د مخکې په شان دي، هلته به دې يو ځای ذکر کړي وو، نو اختصار به راغلې وی؟

**جواب**: دې دواړو کې فرق دی، مخکې چې رفع بنا بر خبريت نه راتله، نو د هغې دپاره وجه امتناع د ظرفيت وه او دلته چې رفع بنابر خبريت نه راځي، نو وجه داده، چې **لايقع بعدها الافعل ولا يصلح الفعل للابتداء**.

**وما هو لازم الظرفية**: هغه شپږ دي، پنځه معناګاني يې په معنی داستفهام سره دي او يو بمعنی الشرط دی بيا دې اول قسم کې وجوه ثلاثه راځي، رفع بنابر خبريت، نصب او جر او ذا کې دوه وجوه دي.

| |
|---|
| وَ عَنْ بَعْضِهِمْ اَنَّ اِذَا قَدْ تَخْرُجُ عَنِ الظَّرْفِيَّةِ وَ تَقَعُ اِسْمًا صَرِيْحًا نَحو اِذَا يَقُوْمُ زَيْدٌ اِذَا يَقْعُدُ عَمْرٌو |
| دبعضونه نقل دي چې اذاکله دظرفيت نه خارج شي او اسم صريح واقع کيږي لکه اذا يقوم زيد اذا يقعد عمر |
| اَیْ وَقْتُ قِيَامِ زَيْدٍ وَقْتُ قُعُوْدُ عَمْرٍو فَهِيَ مَرْفُوْعَةٌ بِالْاِبْتِدَاءِ وَ قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيُّ وَ اَنَا لَمْ اَعْثُرْ |
| يعني وقت قيام زيد وقت قعود عمرو نو دلته اذامرفوع بنابرابتداده شارح درضي وايي چې مونږنه لرودي |
| لِهٰذَا عَلٰى شَاهِدٍ مِنْ كَلَامِ الْعَرَبِ وَ مَا هُوَ لَازِمُ الظَّرْفِيَّةِ يَرْتَفِعُ فِي الْاِسْتِفْهَامِ |
| دپاره کوم شاهد په کلام دعربو کې او کوم چې لازم دي د ظرفيت سره مرفوع کرځي په استفهام سره په |
| مَحَلًّا مَعَ اِنْتِصَابِهٖ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ اِذَا كَانَ خَبَرَ مُبْتَدَاٍ مُؤَخَّرٍ نَحو مَتٰى عَهْدُكَ بِفُلَانٍ |
| په اعتبار د محل سره، سره د نصب نه بنابرظرفيت کله چې وي خبر د مبتدا مؤخري لکه متی عهدک بفلان |
| اَیْ مَتٰى كَائِنٌ عَهْدُكَ بِهٖ وَ اَمَّا اَیٌّ فَيَتَاَتّٰى فِيْهِ الْوُجُوْهُ الْاَرْبَعَةُ كُلُّهَا فَاِنَّهٗ قَدْ يَقَعُ |
| يعني متی کائن عهدک به او هرچې ای ده نو په دې کې څلور وجوه راتللې شي ځکه چې داکله واقع کيږي |
| فِيْ مَحَلِّ الرَّفْعِ بِالْخَبَرِيَّةِ اَيْضًا عَلٰى تَقْدِيْرِ اِنْتِصَابِهٖ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ نَحو اَیُّ وَقْتٍ مَجِيْؤُكَ |
| په محل درفع کې بنابرخبريت او نصب يې په تقدير د ظرفيت دي لکه ای وقت مجيؤک علی ای وقت کائن مجيؤک |
| فَاَیُّ وَقْتٍ عَلٰى تَقْدِيْرِ اِنْتِصَابِهٖ بِالظَّرْفِيَّةِ مَرْفُوْعُ الْمَحَلِّ بِالْخَبَرِيَّةِ وَ الْوُجُوْهُ الْبَاقِيَةُ مِثْلُ |
| نو ای وقت په تقدير د نصب د دې بنابرظرفيت په محل د رفع کې دي بنابرخبريت او باتي نوري وجهې لکه |

| |
|---|
| اَيُّهُمْ ضَرَبْتَ بِأَيِّهِمْ مَرَرْتَ وَ اَيُّهُمْ قَائِمٌ. |
| لکه ایهم ضربت بایهم مررت وایهم قائم |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره د بعضو قول رانقل کوي.

**اغراض د جامي** : وعن بعضهم الخ: دا په مینځ کې د شارح رضي عبارت ته تمهید کیږدي، دې وایي چې اذا کله د ظرفیت نه وځي، نو بیا دې کې رفع بنا بر ابتدائیت راتلې شي، په دې صورت کې به اذا کې درې وجوه شي، لیکن شارح رضي وایي ما په دې شاهد نه دی لیدلی او کوم مثال چې پیش کولی شي نو دا مصنوعي دی ؟

ای شارح رضي! عدم علم ستا مستلزم نه دی عدم وجدان لره، او مثال چې موافق د قاعده وي، هغه صحیح دی اګر که مصنوعي وي.

وما هو لازم الظرفیة: دا د شارح رضي عبارت دی، او دې عبارت سره د اسمآءالاستفهام لازم الظرفیت دریمه وجه رفع بنابر خبریت ذکر کوي، مخکې حاصل کې مونږ ذکر کړې دی.

وما ای: دا هغه اسم دی، چې ظرفیت ورسره لازم نه دی، او لازم الاضافت دی، نو دې کې وجوه الاربعه راتلی شي، شارح ورلره امثله بیان کړې دی.

## بل قانون په کم کې :

| |
|---|
| وَ فِيْ مِثْلِ كَمْ عَمَّةٍ لَكَ يَا جَرِيْرُ وَ خَالَةٍ يَعْنِيْ فِيْمَا اِحْتَمَلَ الْاِسْتِفْهَامَ وَ الْخَبَرَ وَ ذِكْرَ الْمُمَيِّزِ وَ حَذْفَهُ |
| اوپه مثل د کم عمة لک یاجریر وخالة یعني هغه چې احتمال داستفهام اودخبر اوذکر دممیز اوحذف ددې |
| ثَلٰثَةُ اَوْجُهٍ هٰكَذَا فِيْ كَثِيْرٍ مِنَ النُّسَخِ وَ فِيْ بَعْضِهَا |
| لرې درې وجوه دې دا عبارت په ډیرو نسخو کې داسې دې او په بعضې نسخو کې عبارت داسې دې |
| وَ فِيْ مِثْلِ تَمْيِيْزِ كَمْ عَمَّةٍ اَيْ مَا هُوَ تَمْيِيْزٌ بِاِعْتِبَارِ بَعْضِ الْوُجُوْهِ فَعَلَى النُّسْخَةِ الْاُوْلٰى يَحْتَمِلُ |
| مثل تمیز کم عجمة یعني هغه چې تمیز وي په اعتبار د بعضو وجوهو نو بناء په نسخه اولی احتمال لرې |
| اَنْ تُعْتَبَرَ الْاَوْجُهُ الثَّلٰثَةُ فِيْ كَمْ اَحَدُهَا رَفْعُهُ بِالْاِبْتِدَاءِ وَ الْآخَرَانِ نَصْبُهُ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ وَ |
| چې په کم کې درې واړه وجوه معتبرشي یویې رفع بالابتداء ده دوهم یې نصب علی الظرفیة اودریم یې |
| عَلَى الْمَصْدَرِيَّةِ فَاِنَّهُ اَشَارَ فِيْمَا سَبَقَ بِقَوْلِهِ مَنْصُوْبًا مَعْمُوْلًا عَلٰى حَسْبِهِ |
| نصب علی المصدریة دې خکه مصنف اشاره مخکې وکړه په دې قول خپل سره منصوباً معمولاً علی حسبه |

إِلٰى كَثْرَةِ وُجُوْهِ النَّصْبِ وَلَا يَخْفٰى اَنَّ هٰذَا اَلصَقُ بِمَا سَبَقَ مِنْ وُجُوْهِ اِعْرَابِ كَمْ وَ

سره كثرت دوجوهود نصب نه پټه نه ده چې دا ښه پيوست دي دماسبق سره دوجوهود اعراب دكم نه او

يَحْتَمِلُ اَنْ تُعْتَبَرَ فِيْ مُمَيِّزِهَا اَعْنِيْ عَمَّةً فَاَحَدُهَا الرَّفْعُ بِالْاِبْتِدَاءِ

دااحتمال هم شته چې وجوه داعراب معتبرشي په مميزكې چې هغه عمةٍ وه نويويې رفع بنابرابتدائيت

اِسْتِفْهَامِيَّةً كَانَتْ اَوْ خَبَرِيَّةً وَ الْاٰخَرُ اَنَّ النَّصْبَ عَلٰى تَقْدِيْرِ كَوْنِهَا اِسْتِفْهَامِيَّةً وَ الْجَرُّ عَلٰى

ده كه استفهامي وي اوكه خبري باقي دو... ...ي په تقديردكيدلو ددې استفهامي او جرپه تقدير د

كَوْنِهَا خَبَرِيَّةً وَ لَا يَخْفٰى اَنَّ هٰذَا الْوَجْهَ مَبْنِيٌّ عَلٰى اِعْتِبَارِ جَوَازِ حَذْفِ مُمَيِّزِهَا وَ هُوَ غَيْرُ

كيدلو ددې خبري پټه نه ده چې داوجه مبني ده په اعتبار دجائزكيدلو دحذف دمميزدهغې اوهغه غير

مَذْكُوْرٍ فِيْمَا سَبَقَ فَكَانَ الْاَلْيَقُ تَاخِيْرَ هٰذَا عَنْ قَوْلِهٖ وَ قَدْ يُحْذَفُ فِيْ مِثْلِ كَمْ مَالُكَ وَ اَمَّا

مذكوردي مخكې نولائق دادې چې دامؤخرشي دقول ده نه چې قديحذف دي په مثل دكم مالك كې اوهر

النُّسْخَةُ الْاُخْرٰى فَلَا تَحْتَمِلُ اِلَّا الْوَجْهَ الْخَيْرَ وَ الْبَيْتَ اَلْفَرَزْدَقُ يَهْجُوْ جَرِيْرًا وَ تَمَامُهٗ فَدْعَا

چې بله نسخه ده نواحتمال نه لري مګرداخرې وجې لكه فرزدق هجوه دجريركوي ټول شعردادې فدعا

قَدْ حَلَبَتْ عَلَيَّ عِشَارِيْ اَلْفَدْعَاءُ الْمِعْوَجَّةُ الرُّسْغِ مِنَ الْيَدِ

قدحلبت على عشاري كورلاسي مونږته اوښې ولوشلې پس فياشفيني فدعاهغه چې لاس يې په مړوندكې كوږ

اَوِ الرِّجْلُ فَتَكُوْنُ مُنْقَلِبَةَ الْكَفِّ اَوِ الْقَدَمِ بِمَعْنٰى اَنَّهَا لِكَثْرَةِ الْخِدْمَةِ صَارَتْ كَذٰلِكَ اَوْ

شوې وي ياخپه نوبدل شومړوندا وياخپه په دې معنى چې دادزيات خدمت نه داسې شوې ده اوياداچې

هٰذَا خِلْقَةٌ لَهَا نَسَبُهَا اِلٰى سُوْءِ الْخِلْقَةِ وَ اِنَّمَا عُدِّيَ حَلَبَتْ بِعَلٰى

داپيدائشي خلقت دهغې دي نسبت كړي دي ته چې په بدشكل پيداشوې اوتقديرد حلبت په على سره

لِتَضَمُّنِهٖ مَعْنٰى ثَقُلَتْ اَيْ كُنْتُ كَارِهًا لِخِدْمَتِهَا مُسْتَنْكِفًا

خكه وشوه چې دامتضمنه ده معنى دثقل لره يعني داچې ته بدګنړونكې وي ددغه خدمت اوتنګ شوې

مِنْهَا فَخَدَمَتْنِيْ عَلٰى كُرْهٍ مِّنِّيْ وَ اخْتَارَ مِنْ اَنْوَاعِ خِدْمَتِهَا

وي دهغې نه نوزماخدمت دې ي- هغه وخت كې كړې چې زمانه خوښ نه وي اودنوروخدمتونويه

الْحَلَبَ لِاَنَّهٗ خِدْمَةُ الْمَوَاشِيْ وَ هِيَ اَبْلَغُ فِي الذَّمِّ مِنْ خِدْمَةِ الْاَنَاسِيِّ

نسبت داوښې لوشل غوره كړل شوځكه دحيواناتوخدمت دي اوداپه ذم كې مبالغه ده دخدمت دخلكونه

الْعِشَارِ جَمْعُ عُشَرَاءِ وَ هِيَ الَّتِيْ اَتٰى عَلٰى حَمْلِهَا عَشَرَةُ اَشْهُرٍ وَاخْتَارَهَا لِاَنَّهَا

او عشار جمع د عشراء ده او داهغه اوښې ته وايي چې حمل يې د لسو مياشتو وي او داغوره شوه ځکه چې

تَتَاَذّٰى مِنَ الْحَلْبِ وَ تَطِيْعُ بِسُهُوْلَةٍ فَفِيْ حَلْبِهَا زِيَادَةُ مُشَقَّةٍ وَ فِيْ

دغه په لوشولو سره تکليفيږي او په آساني سره نه ودريږي نو دهغې په لوشلو کې ډير مشقت وي او په

ذِكْرِ عَمَّةٍ وَ خَالَةٍ اِشَارَةٌ اِلٰى رَذَالَةِ طَرَفَيْهِ اَبِيْهِ وَ اُمِّهٖ فَالْاِسْتِفْهَامُ عَلٰى تَقْدِيْرِ النَّصْبِ

او په ذکر د عمة او خالة کې اشاره ده ذلالت د طرف د مور او پلار ته نو استفهام دلته په تقدير د نصب سره دي

عَلٰى سَبِيْلِ التَّهَكُّمِ كَاَنَّهٗ ذَهَلَ عَنْ كَمِّيَّةِ عَدَدِ عَمَّاتِهٖ وَ خَالَاتِهٖ فَسَأَلَ عَنْهَا وَ

نه په سبيل د تحکم سره ګويا که فرزدق غافل شو د شمار د عمو او د خالو د هغه نه نو سوال يې وکړو او که

كَوْنِهَا خَبَرِيَّةً عَلٰى تَقْدِيْرِ الْجَرِّ عَلٰى سَبِيْلِ التَّحْقِيْقِ اَيْ كَثِيْرٌ مِّنْ عَمَّاتِكَ وَ

شي خبريه نو بيا به بنابر تقدير د جروي نه په طريقې د تحقيق سره نو معنی دا شوه چې کثير من عماتک و

خَالَاتِكَ حَلَبَتْ عَلَى عِشَارِيْ وَ اِذَا حَذَفْتَ الْمُمَيِّزَ اَيْ كَمْ مَرَّةً اَوْ كَمْ حَلْبَةً عَلَى التَّهَكُّمِ

خالاتک صبت علي عشاري او چې کله ته حذف کړې مميز يعني کم مرة او کم حلبة په طريقې د تحکم سره

اَوْ كَمْ مَرَّةٍ اَوْ حَلْبَةٍ عَلَى التَّكْثِيْرِ فَارْتِفَاعُ عَمَّةٍ عَلَى الْاِبْتِدَاءِ وَ مُصَحِّحُهٗ تَوْصِيْفُهٗ

او يا کم مرة او حلبة په طريقې د تکثير سره نو رفع د عمة بنابر ابتدائيت ده او مصحح د هغې توصيف د

بِقَوْلِهٖ لَكَ وَ خَبَرُهٗ قَدْ حَلَبَتْ وَ كَمْ اِسْتِفْهَامِيَّةً كَانَتْ اَوْ خَبَرِيَّةً عَلٰى تَقْدِيْرِ

هغې دي په دې قول سره چې لک او خبر يې حلبت شو او کم که استفهامي شي او که خبري په تقدير د

اِرْتِفَاعِ عَمَّةٍ فِيْ مَوْضِعِ النَّصْبِ لِاَنَّ الْفِعْلَ الْوَاقِعَ بَعْدَهَا مُسَلَّطٌ عَلَيْهَا تَسَلُّطَ الظَّرْفِيَّةِ

رفع د عمة کې په ځای د نصب کې شو ځکه وروستني فعل مسلط دي په دې باندې په تسلط ظرفي

اَوِ الْمَصْدَرِيَّةِ وَ اِذَا رَفَعْتَ عَمَّةً رَفَعْتَ خَالَةً وَ فَدْعَاءُ وَ اِذَا نَصَبْتَهَا

يا مصدري سره او کله چې عمې ته رفع ورکړې نو خالة او فدعاء ته هم ورکول کيږي او که عمة ته نصب

نَصَبْتَهُمَا وَ اِذَا خَفَضْتَهَا خَفَضْتَهُمَا وَ ذٰلِكَ وَاضِحٌ.

ورکړې دوي ته هم ورکول کيږي او که هغې ته جر ورکړې دوي ته هم ورکول کيږي او دا واضحه ده

**اغراض د جامي :** وفي مثل کم عمة لك الخ: په دې عبارت سره غرض د شارح اجراء کول دي د

کم د وجوه ثلاثه د اعراب په يو مثال کې

هكذا الخ: په دې عبارت سره شارح اختلاف د نسخو بيانوي چې دلته دوه نسخې دي، يو كثيره ده هغه دا چې اوجه ثلاثه دې كم كې جارې شوې دي، او په بله نسخه كې في مثل تمييز الخ عبارت دی.

قوله اي ما هو الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: تمييز د كم كې دغه وجوه ثلاثه نه شي جاري كيدې، ځكه چې تمييز مرفوع نه وي؟

**جواب**: مونږ وايو، چې بعضې وجوه مراد دي، چې نصب او جر دي.

فعلي النسخة الخ: كله چې نسخه اولى مراد شي، نو دغه ځاى په كم كې د وجوه ثلاثه احتمال شته، يو دا چې كم مرفوع شي، بنا بر ابتدائيت دوه ځايه منصوب شي، بنا برظرفيت و مصدريت.

ولا يخفى الخ: غرض د شارح ترجيح وركول دي نسخه اولى ته، وجه دترجيح داده، چې مخكې هم اعراب كم كې جاري كيدل او دا هم احتمال لري، چې وجوه ثلاثه په تمييز د كم كې جاري شي، نو مرفوع به وي بنا بر ابتدائيت عام ددې نه كه كم استفهامي وي او كه خبري، او منصوب به وي كله چې كم استفهامي وي، او مجرور به وي چې كله كم خبري شي.

ولا يخفى الخ: چې تمييز د كم كې به دغه وجوه ثلاثه هغه وخت جاري كيږي، چې مميز ددې د حذف كيدو د جواز اعتبار وشي ، ليكن دا قسم خبره مخكې ذكر نه وه، نو په كار ده چې د كم مالك د تركيب نه مونږ دا وروستو راوړى وى.

واما النسخة: يعنې كله چې دغه وجوه ثلاثه په تمييز د كم كې واقع شي.

والبيت الخ: تعيين د شاعر كوي، بيا دلته به د شاعر غرض، اتمام د شعر، تفصيل د اجزاو شارح وكړي او تشريح ددې شعر هم شارح په خپله كړ ده .

بيا حال د وجوهو په كم كې دادى، كله چې دا مرفوع نه شي بنا بر ابتدائيت او تمييز يې مذكور وي، نو دا به استفهامي وي يا به خبر وي، مثال د استفهامي كم عمة لك يا جرير و خالة د خبري مثال كم عمة لك يا جرير و خالةٍ.

الفدعاء: په دې عبارت سره د فدعاء معنى ذكر كوي چې فدعاء هغه ځاته وايي چې لاس يې په مړوند كې كوږ وي اويا يې خپه كږه وي .

**واختار**: په دې عبارت سره شارح د حلب د اختیارولو وجه بیانوي چې حلب یې ځکه اختیار کړو چې دا په نسبت سره د انسان د خدمت نه سخت وي.

**والعشار**: په دې عبارت سره شارح د عشار معنی ذکر کوي چې عشار هغه اوښې ته وایي چې حمل یې د لسو میاشتو وي

## حذف د ممیز د کم:

| |
|---|
| وَ قَدْ يُحْذَفُ مُمَيِّزُ كَمْ اِسْتِفْهَامِيَّةً كَانَتْ اَوْ خَبَرِيَّةً فِيْ مِثْلِ كَمْ مَالُكَ وَ كَمْ ضَرَبْتَ اَىْ فِيْ كُلِّ مِثَالٍ |
| او کله حذفیږي ممیز د کم استفهامي وي او که خبري په مثل د کم مالک وکم ضربت یعني په هر هغه مثال |
| قَامَتْ قَرِيْنَةٌ دَالَّةٌ عَلَى الْمَحْذُوْفِ فَاِنَّهُ اِذَا سُئِلَ عَنْ كَمِيَّةِ مَالِكَ اَوْ اَخْبَرَ |
| کې چې قرینه قائمه وي په محذوف باندې ځکه چې کله سوال وکړې شي د کمیت د مال ستانه یا خبر |
| عَنْ كَثْرَتِهِ فَظَاهِرُ الْحَالِ قَرِيْنَةٌ عَلَى اَنَّهُ سُؤَالٌ عَنْ كَمِيَّةِ دَرَاهِمِكَ اَوْ دَنَانِيْرِكَ اَوْ |
| ورکول کیږي د کثرت د هغې نه نو ظاهري مال قرینه ده چې دا سوال دې د ستا د درهمو یا دنانیرو او یا |
| اَخْبَارٌ عَنْ كَثْرَتِهَا فَمَعْنَاهُ كَمْ دِرْهَمًا اَوْ دِيْنَارًا اَوْ كَمْ دِرْهَمٍ اَوْ دِيْنَارٍ مَالُكَ فَكَمْ |
| اخبار دې د کثرت د هغوي نه نو معنی یې دا شوه چې کم درهما او دینارا او کم درهما او دینار مالک نو کم په |
| فِيْ هٰذَا الْمِثَالِ مَرْفُوْعٌ عَلَى الْاِبْتِدَاءِ وَ مَالُكَ خَبَرُهُ. |
| دې مثال کې مرفوع بنابر ابتدائیت دې او مالک یې خبر دې. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره تمیز د کم د حذف کولو بیان کوي.

**اغراض د جامي**: **وقد یحذف**: غرض د ماتن حکم د تمییز د کم ذکر کول دي، مخکې یو حکم ذکر شوی دی، چې د دې په تمییز کله من جاره داخلیږي، دوهم حکم دادی، چې د دې تمییز کله کله حذف کولی شي

**ممیز کم**: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

**استفهامیة کانت الخ**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: په یحذف کې ضمیر د مفرد دی، او کم خو په دوه قسمه دی، نو مطابقت نشته په مینځ د ضمیر او مرجع کې؟

**جواب**: دا ضمیر موصوف ته راجع دی، چې کم دی او هغه مفرد دی.

كم مالك: په دې عبارت سره شارح د يو سوالاتو جوابات وركوي:
**سوال**: دا مالك دې تمييز شي كنه؟
**جواب**: دا مرفوع دى او تمييز منصوب وي.
**سوال**: دا منصوب ووايه كنه؟
**جواب**: دا خبر دى او خبر مرفوع وي.
**سوال**: دا تمييز وګرځوه خبر يې مه ګرځوه كنه؟
**جواب**: بيا لازمېږي وجود د مبتداء په غير د خبر نه.
**سوال**: خبر ورلره محذوف كړه كنه؟
**جواب**: كه خبر ورلره محذوف كړو، نو حذف خلاف الاصل دى، خلاف الاصل كار لازمېږي
**سوال**: ته چې تمييز حذف كوې نو دا خلاف الاصل نه دى؟
**جواب**: دا تمييز فضله دى او حذف د فضله جائزدى، په خلاف د خبر چې هغه عمده دى او حذف د عمده ناجائزدى.
**دوهم جواب**: د اصل سوال نه دادى، چې مالك كې صلاحيت د تمييز نشته، ځكه تمييز نكره وي، او دا معرفه دى.
اى في كل مثالٍ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:
**سوال**: دا مثال مضاف او ما بعد مضاف اليه دى او قانون دادى، چې مضاف اليه د نسبت د حكم نه خارج وي، نو مطلب دا، چې په مثل ددې كې نه دى، كولى شي ليكن دې مالك، كم ضربت كې به نشي حذف كولى، حالانكه قاعده خو دې كې هم داده؟
**جواب**: دا قاعده په هغه مقام كې ده، چې مضاف كې قانون طرف ته اشاره نه وي او كوم مقام كې چې قانون طرف ته اشاره وي، هلته بيا دواړه په نسبت د حكم كې داخل وي، دلته هم قانون ته اشاره ده، او هغه دا چې هر هغه مقام چې قرينه داله په تعيين د محذوف قايم وي. هلته به تمييز د كم حذف كولى شي
فانه اذا سئل الخ غرض: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي.

**سوال**: دلته يوه قرينه ده په نفس حذفيت د تمييز۔او دوهم قرينه داله ده په تعيين د محذوف، نو په نفس حذفيت څه قرينه ده؟ او په تعين د محذوف څه قرينه ده؟

**جواب**: د اول سوال جواب خو ظاهر دی. چې دا کم په اعتبار د جنس سره مهم دی او مهم دفع غواړي او دفع په تمييز سره راځي. او هغه لفظاً ذکر نه وو، نو عقل معلوم کړه چې هغه حذف دی او د دوهم سوال جواب شارح کوي، چې په تعيين د محذوف باندې دا لفظ د مالك قرينه ده. او هغه داسې چې کله مال مطلق ذکر شي نو رجع يې کېږي فرد کامل ته او فرد کامل د مال ،ذهب او فضه دی، دوهمه وجه داده، چې اموال دوه قسمه دي، اموال ظاهره لکه غواء بيزې، جائيدادونه شو، دې کې تپوس ته ضرورت نشته، ځکه دا ښکاره دي، اموال باطنه، چې ذهب او فضه دي، ځکه خلق يې پټ ساتي او تپوس هم د پټ شي کېږي، ځکه مونږ وايو چې هغه محذوف تمييز به دينار او درهم وي.

**فكم في هذا الخ**: غرض د شارح اعراب د کم ذکر کول دي، دې صورت کې به کم مرفوع بنا بر ابتدائيت وي او مالك به خبر وي.

| وَ اِذَا سُئِلَ عَنْ كَمِيَّةِ ضَرْبِکَ بَعْدَ الْعِلْمِ بِوُقُوعِهٖ اَوْ اَخْبَرَ عَنْ |
|---|
| اوکله چې سوال کيدې شي د کميت د ضرب نه وروستو د علم نه په وقوع د هغې او يا خبر ورکول کيږي د |
| كَثْرَتِهٖ فَظَاهِرٌ اَنَّ السُّؤَالَ اَوِ الْاَخْبَارَ اَنَّمَا هُوَ بِالنِّسْبَةِ اِلٰى مَرَّاتِ ضَرْبِکَ اَیْ كَمْ مَرَّةً اَوْ |
| کثرت د ضرب نه نو ظاهره ده چې سوال او خبرورکول دا په نسبت سره تکرار د ضرب ته دي لکه کم مرة او |
| مَرَّةٍ ضَرَبْتَ اَوْ اِلٰى ضَرَبَاتِکَ اَیْ كَمْ ضَرْبَةً اَوْ ضَرْبَةٍ ضَرَبْتَ فَكَمْ فِيْ هٰذَا الْمِثَالِ اِمَّا مَنْصُوْبٌ عَلَى الظَّرْفِيَّةِ |
| مرة ضربت او يا ضرباتو نه لکه کم ضربة او ضربة ضربت نو کم په دې مثال کې منصوب دي بنا بر ظرفيت |
| اَوِ الْمَصْدَرِيَّةِ وَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْمَعْنَيَيْنِ اِذَا كَانَ الْمَصْدَرُ لِلنَّوْعِ فَظَاهِرٌ وَ اِذَا كَانَ لِلْعَدَدِ |
| يا مصدريت او فرق په دواړو معنو کې دا دې چې کله مصدر د نوعې د پاره وي نو ظاهر دي او چې کله د عدد |
| فَالْمَلْحُوْظُ فِي الظَّرْفِيَّةِ اَوْ لِاَنَّ الزَّمَانَ الدَّالَّ عَلَيْهِ الْاَلْفَاظُ الْمَوْضُوْعَةُ |
| د پاره وي نو ملحوظ په ظرفيت کې اول زمان دي په کوم باندې چې دلالت کوي هغه الفاظ کوم چې وضع |
| لِلزَّمَانِ وَ فِي الْمَصْدَرِيَّةِ اَوْ لِاَنَّ الْحَدَثَ الدَّالَّ عَلَيْهِ لَفْظُ الْمَصْدَرِ وَ يَحْتَمِلُ |
| شوې د پاره د زمان او په مصدري کې اول حدوث دي چې دلالت کوي په دې باندې لفظ د مصدر احتمال |

| اَنْ يَكُوْنَ الْمِثَالُ الثَّانِيْ بِتَقْدِيْرِ كَمْ رَجُلًا اَوْ رَجُلٍ ضَرَبْتَ فَعَلَى هٰذَا التَّقْدِيْرِ يَكُوْنُ كَمْ مَنْصُوْبًا عَلَى |
| --- |
| شته چې دوهم مثال په تقدير سره وي لکه کم رجل او رجلاً ضربت نو په دې تقدير کم منصوب دي بناء |
| الْمَفْعُوْلِيَّةِ. |
| برمفعوليت. |

**اغراض د جامي : واذاسئل الخ:** هر کله چې فارغ شو دبيانولو د قرينه نه په تعيين د محذوف په کم مالك کې نو شروع يې کړه، چې په بيانولو د قرينه په تعيين د محذوف په کم ضربت کې. نو دی وايي، چې دلته به مرة يا ضربة راويستی شي، وجه داده چې دا کلام کله ويلی شي، نو سمدستي ذهن ته راځي، چې دا تمييز به د مرّاتو يا ضرباتو يا مضروب نه وي اوس ستا خوښه ده چې کوم راوباسې.

**فکم في هذا الخ:** غرض د شارح اعراب ذکر کول دي، وايي چې دې صورت کې به دا منصوب بنا بر ظرفيت (مرة) يا بنا بر مصدرية (ضربة) وي.

**سوال :** ترکيب ته څه ضرورت دی؟

**جواب:** مخکې ده د هغه اول مثال ترکيب وکړو، چا به وهم کولو، چې دا به هم مرفوع وي، نو ده فرق ذکر کړو، دې سره بل سوال هم دفع شو.

**سوال :** دوه مثالونه يې ولې ذکر کړو؟

**جواب:** مخکې مثال د مرفوع او دلته مثال د منصوب دی.

**والفرق الخ:** په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** ته وايې چې د فعل په دې صورت کې ضربة او مرة دواړه راويستی شي، نو سوال دادی، چې ضربة به کله ذکر شي نو دا خو په مرة هم دلالت کوي، نو فرق څه شو؟

**جواب:** شارح دوه جوابونه کوي: کله چې مصدر دپاره د نوعې وي نو بيا خو فرق ظاهر دی. يو به د نوعې او دوهم به د مرة دپاره وي. کله چ مصدر هم د مرة شي، نو بيا فرق دادی، چې د ظرفيت صورت کې به معنی کوو، الزمان الدال عليه الحدث او د مصدريت په صورت کې الحدث الدال عليه اللفظ.

**ويحتمل الخ**: دا هغه دريم ترکيب د حالت نصبي ذکر کوي، هغه دا چې دې لره تمييز مضروب يعنې رجل راويستی شي، دې صورت کې به دا منصوب بنا بر مفعول به شي، بيا دې نه يې تعبير په **يحتمل** سره وکړو، چې اصل دادې چې دا تمييز حتی الوسع من جنس المذکور په کار وي.

| |
|---|
| الظُّرُوْفِ اَيِ الظُّرُوْفُ الْمَعْدُوْدَةُ مِنَ الْمَبْنِيَّاتِ الْمُعَبَّرِ عَنْهَا عِنْدَ تَعْدَادِهَا بِبَعْضِ الظُّرُوْفِ |
| ظروف هغه ظروف چې دمبنياتونه دي چې په وخت دتعداد کې دهغوي نه تعبير په بعضو ظروفو کيدلي |
| فَلَا حَاجَةَ اِلٰى ذِكْرِ الْبَعْضِ هٰهُنَا مِنْهَا مِنْ تِلْكَ الظُّرُوْفُ مَا اَيْ ظَرْفٌ قُطِعَ عَنِ الْاِضَافَةِ |
| شي نو حاجت نشته ذکر د بعضو ته دلته نو بعض د ظروفو هغه دي چې منقطع شوې وي د اضافت نه په |
| بِحَذْفِ الْمُضَافِ اِلَيْهِ عَنِ اللَّفْظِ دُوْنَ النِّيَّةِ عِنْدَ نِسْيَانِهٖ اُعْرِبَ مَعَ |
| حذف د مضاف اليه د لفظ نه. نه د نيت نه په وخت د هيرې د هغې کې اعراب به ورکول کيږي سره د |
| التَّنْوِيْنِ نَحْوَ رُبَّ بَعْدٍ كَانَ خَيْرًا مِنْ قَبْلٍ وَ سُمِّيَتِ الظُّرُوْفُ الْمَقْطُوْعَةُ عَنِ الْاِضَافَةِ غَايَاتٍ |
| تنوين نه لکه رب بعد کان خيرا من قبل او ظروف مقطوع عن الاضافة ته نوم د غايات ورکړل شو ځکه |
| غَايَةَ الْكَلَامِ كَانَتْ مَا اُضِيفَتْ هِيَ اِلَيْهِ فَلَمَّا حُذِفَ صَارَتْ غَايَةً |
| غايه د کلام هاوه چې اضافت يې وکړې شو دې ته نو چې کله هغه ها حذف شوه نو دا آخري وګرځيدل |
| يَنْتَهِيْ بِهَا الْكَلَامُ وَ اِنَّمَا بُنِيَتْ لِتَضَمُّنِ مَعْنٰى حَرْفِ الْاِضَافَةِ وَ شِبْهِهَا |
| چې ختم شو په دوي سره کلام او مبني ځکه شو چې متضمن دي معنی د حرف اضافت لره او يا مشابه دي |
| بِالْحُرُوْفِ فِي الْاِحْتِيَاجِ اِلَى الْمُضَافِ اِلَيْهِ وَ اُخْتِيْرَ الضَّمُّ لِجَبْرِ النُّقْصَانِ كَقَبْلُ وَ |
| د حرف سره په احتياج کې مضاف اليه ته او ضمه ورته غوره شوه د پاره د جبيرې د نقصان لکه قبل او |
| بَعْدُ وَ مَا اَشْبَهَهُمَا مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَسْمُوْعِ قَطْعُهَا عَنِ الْاِضَافَةِ |
| بعد او کوم چې د دوي سره مشابه وي د هغه ظروفو نه چې د عربو نه د هغوي انقطاع عن الاضافة اوريدل |
| مِثْلُ تَحْتٍ وَ فَوْقٍ وَ قُدَّامٍ وَ خَلْفٍ وَ وَرَاءَ وَ لَا يُقَاسُ عَلَيْهَا مَا بِمَعْنَاهَا |
| شوې وي لکه تحت. فوق. قدام. خلف او وراء او په دوي نه شي قياس کولې هغه چې هغه په معنې د دې کې |
| وَ يَجُوْزُ فِي الظُّرُوْفِ عَلٰى قِلَّةٍ اَنْ يُعَوَّضَ التَّنْوِيْنَ مِنَ الْمُضَافِ اِلَيْهِ |
| دي او جائز دي په دې ظروفو کې سره د کموالي نه چې په عوض کې را وړل شي تنوين د مضاف اليه نه |

| |
|---|
| فَتَعْرِبَ قَالَ الشَّاعِرُ: شِعْر فَسَاغَ لِيَ الشَّرَابُ وَ كُنْتُ قَبْلًا اَكَادُ غَصُّ بِالْمَاءِ الْفُرَاتِ فَلَا فَرْقَ بَيْنَ |
| نو بيا به معرب شي شاعر وايي فساغ لي الشراب وكنت قبلا اكاد اغص بالماء الفرات نو نه وو فرق ما ته په مينځ د |
| مَا اَعْرَبَ مِنْ هٰذِهِ الظُّرُوْفِ الْمَقْطُوْعَةِ وَ بَيْنَ مَا بُنِيَ مِنْهَا وَ قَالَ بَعْضُهُمْ |
| هغه کې چې اعراب ورکړل شوي دې ظروفو مقطوعو ته او په مينځ د هغې کې چې مبني شي بعضو ويلي |
| بَلْ اِنَّمَا اُعْرِبَتْ لِعَدَمِ تَضَمُّنِهَا مَعْنَى الْاِضَافَةِ فَمَعْنٰى كُنْتُ قَبْلًا اَيْ قَدِيْمًا وَ قَالَ الشَّارِحُ الرَّضِيْ |
| اعراب ځکه ورکړل شوچې دا متضمن نه وو معنى د اضافت لره نو معنى د كنت قبلا قديما ده شارح رضي وايي |
| وَ الْاَوَّلُ هُوَ الْحَقُّ وَ اُجْرِيَ مَجْرَاهُ اَيْ مَجْرَى الظَّرْفِ الْمَقْطُوْعِ عَنِ الْاِضَافَةِ لَا غَيْرُ وَ لَيْسَ غَيْرُ فِيْ حَذْفِ |
| اول مذهب حق دې اوجاري وي په مجرى د حروفو مقطوعة عن الاضافت کې نه غير او نه ده غير په حذف |
| الْمُضَافِ اِلَيْهِ وَ الْبِنَاءُ عَلَى الضَّمِّ وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ غَيْرُ مِنَ الظُّرُوْفِ لِشِبْهِهٖ |
| د مضاف اليه او په مبني کيدو د هغې په ضمه اګر که نه ده غير د ظروفو نه ځکه چې دا مشابهت لري د |
| بِالْغَايَاتِ لِشِدَّةِ الْاِبْهَامِ الَّذِيْ فِيْهِ كَمَا فِيْهَا وَلَا يُحْذَفُ |
| غاياتو سره د وجې د شدت ابهام نه کوم چې په دې کې دې لکه څنګه چې په غاياتو کې دې او نه حذف کيږي |
| مِنْهُ الْمُضَافُ اِلَيْهِ اِلَّا بَعْدَ لَا وَ لَيْسَ نَحْوُ اِفْعَلْ هٰذَا لَا غَيْرُ وَ جَاءَنِيْ زَيْدٌ لَيْسَ غَيْرُ لِكَثْرَةِ اِسْتِعْمَالِ غَيْرُ |
| د دې نه مضاف مګر وروستو د لا او ليس نه لکه افعل هذا لا غير وجاءني زيد ليس غير د وجې د زيات استعمال د |
| بَعْدَهُمَا وَ كَذٰلِكَ اُجْرِيَ مَجْرَى الظَّرْفِ حَسْبُ لِشِبْهِهَا بِغَيْرِ |
| غير نه وروستو د دوي نه او همدا رنګې جاري کيږي په مجرى د ظرف حسب ځکه چې دا مشابه ده د غير سره |
| فِيْ كَثْرَةِ الْاِسْتِعْمَالِ وَ عَدَمِ تَعَرُّفِهَا بِالْاِضَافَةِ. |
| په کثرت استعمال سره او په عدم کثرت د دې سره په اضافت سره او محذوف منويه. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره د ظروفو تعريف او تفصيل بيانوي .

**اغراض دجامي** : الظروف: کله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د اووه قسمونو د اسم مبني نه،

نو شروع يې وکړه په تفصيل د اتم قسم د اسم مبني کې چې بعضې ظروف دي .

دوه سوالات رامخې ته شو.

**اول سوال** : نفس تفصيل ولې کوي؟

**جواب** : نفس تفصيل ځکه کوي چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

**دوهم سوال** :تفصيل په دې مقام کې ولې کوي؟

**جواب** : دا چې ظروف تفصیل ته محتاج دي او تفصیل یې نه دی شوی. تفصیل په دې مقام کې ځکه کوي، چې اجمال کې په دې مقام کې ذکر وو او اجمال کې ځکه وروستو ذکر وو، چې دا بعضې ظروف په منزله د مرکب او هغه نور په منزله د مفرد دي، او عین مفرد په طبع کې په عین مرکب مقدم وي، نو کوم چې په منزله د مفرد وي، هغه مو هم مقدم کړو او په منزله د مرکب مو وروستو کړو، تفصیل داسې کوي چې اول به هغه ظروف ذکر کړي، چې بنآء په کې واجب ده، بیا هغه چې بنآء په کې جائزده.

<u>اى الظروف المعدودة</u>: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : دا ظروف به غیر د هغه نه وي، چې اجمال کې ذکر دي، دا خو خلاف د تفصیل راغا د اجمال نه؟

**جواب**: دا الف لام عهدي دي مراد په دې ظروفو سره عین د اجمال هغه مراد دی، نو خلاف نشته.

<u>المعبرعنها الخ</u>: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : دا تفصیل دې د اجمال نه خلاف دی کنه، ځکه اجمال کې لفظ د بعض الظروف دی او دلته الظروف ذکر دي؟

**جواب**: چونکه د دې نه تعبیر د مباحث مذکوره په دې برخه کې، اول به پنځلس، قسمه د مبني ذکر کړي، او بیا به هغه ظروف ذکر کړي، چې بنآء په کې جائزده.

<u>اى من تلك الظروف</u>: غرض د شاح د هاء ضمیر مرجع تعیین کول دي او چونکه د دې مرجع هغه بعید بعض الظروف د اجمال والاوه، نو اسم اشاره د بعید یې راوړه.

<u>ما قطع عن الاضافة</u>: د دې قسم نوم یې ذکر کړو، چې اسمآء مقطوع عن الاضافة دي، دا یې اول نوم دی.

<u>اى ظرف</u>: غرض شارح یو خو د ما ابهام دفع کوي، او دوهم اشاره کول دي. ما موصوله نه ده، بلکې موصوفه ده.

**سوال** : په کار وه چې ظرف سره مصنف تعیین نه وی کړی، نو دا ما به په عموم پاتې شوې وه، نو هغه ملحقاتو ته به هم شامل شوې وه، ځکه هغه خو ظروف نه دي؟

**جواب**: دا منها ضمير ظروفو ته راجع دی او من د تبعيض دی.

بحذف المضاف اليه: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: اضافت خو نسبت دی، په مينځ د مضاف او مضاف اليه کې او ددې قطع خو وسع د متکلم کې نه ده، نو د قطع نسبت ورته څنګه کېږي؟

**جواب**: بالذات ددې قطع مقدور نه ده، ليکن بالواسطه ددې قطع مقدوره ده او هغه دا چې مضاف اليه قطع کړې، نو دا نسبت به خپله قطع شي.

عن اللفظ الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: حذف خو عبارت دی د اسقاط د لفظ او نيت دواړو نه، او دلته خو مضاف اليه په نيت کې وي؟

**جواب**: مونږ وايو، چې د لفظ نه به حذف وي نه که د نيت نه، عن المراد من الحذف منها هو التقدير.

فان عند نسيانه: د عن اللفظ دون النية قيد فائده ذکر کوي، مقصد دا دی، چې د ظروف مقطوع عن الاضافة دپاره څلور احوال دي. مضاف اليه ذکر کوي، مضاف اليه حذف وي نسياً منسياً، مضاف اليه حذف وي او په عوض کې تنوين راوړې شوی وي، مضاف اليه حذف وي په حذف منوي سره. اول درې قسمه معرب او څلورم مبني دی، چونکه دا نور قسمونه معرب وو، ځکه مونږ دا قيد ولګوو، چې عن اللفظ دون النية، بيا شارح دې عبارت سره ددې د هغه معرب احوالو ته صرف دريم حالت به طور مثال ذکر کړی دی.

بيا ددې په دې مثال باندې يو سوال دی:

**سوال**: ته وايې چې د دريم قسم مضاف اليه نسياً منسياً حذف کېږي، او بل طرف ته نه وايې چې دا لازم الاضافة دی دا خو تناقض راغلو؟

**جواب**: کله چې ددې مضاف اليه نسياً منسياً حذف شي دې صورت کې دا د ظرفيت نه خارج شي محض اسمآء شو، لکه مثال مذکور اصل داسې دی، رب متاخرٍ کان خيراً من متقدمٍ

بيا ددې عبارت نه وجه تسميه د اول نوم هم ښکاره شوه، چې دې ته مقطوع عن الاضافة ځکه وايي، چې ددې مضاف اليه په لفظ کې کټ شوی وي، او په نيت کې وي.

وسیت الخ: غرض د شارح ددې قسم ظروفو دوهم نوم ذکر کول دي، چې دې ته غایات هم وايي.

**سوال**: دا چې مونږ خو اورېدلي دي، چې اول قسم ددې ظروفو خو غایات دی؟

**جواب**: دا دواړه یو شی دي.

لان غایة الکلام الخ: یعني دې ته غایات ځکه وايي، چې انتها د کلام په دې کېږي.

**سوال**: انتها د کلام خو په مضاف الیه کېږي؟

**جواب**: دې ته کلام په اعتبار د قصد د متکلم سره وایو. متکلم چې کلام د مضاف او مضاف الیه ذکر کړي، نو دې لره به مسند ګرځوي او یا مسندالیه، دا کلام دې ته په لغوي معنی ما یتکلم به سره وویلی شوی دی.

وانما بنیت الخ: غرض د شارح وجه د بناء ذکر کول دي، یعنې دا ظروف مقطوع عن الاضافة متضمن دي. هغه مضاف الیه لره چې هغه مضاف الیه متضمن دي، معنی د حرف اضافت لره چې من، فی لام دی.

**سوال**: کله چې دا حرف لره متضمن شو، نو متضمن او تقدیر خو یو شی دي، نو په غلام زید کې هم لا مقدر دی، هغې زید ته ولې مبني نه وايي؟

**جواب**: تقدیر او تضمن کې فرق دی، هلته حرف جر مقدر دی، او دلته د فحوای د کلام نه معلومېږي.

وشبیها بالحرف: غرض د شارح دوهم دلیل د بناء ذکر کړل دي، او هغه دا چې دا اسماء مضاف الیه ته محتاج دي، نو د حروفو سره یې په احتیاج کې مسبهت راغلو.

**سوال**: په کار داده، چې ټول اسماء مضافه دې مبني شي، ځکه مضاف الیه ته محتاج دی؟

**جواب**: ټول اسماء مضافه مضاف الیه ته محتاج دي، لیکن دلته یو بل دلیل د اعراب معارض واقع شوې دی، چې اضافت دي او قانون دادی، چې اذا تعارضا الدلیلان تساقطا، بیا مونږ اصل ته لاړو، او اصل په اسماوو کې اعراب دی، نو ددې وجې نه دغه اسماء مضافه معرب شو، دوهمه وجه داده، چې په امساء مضافه کې یو طریقې سره احتیاج دی، چې نفس

احتياج الى المضاف اليه دى، او په ظروفو کې دوه احتياجه دي، يو نفس احتياج مضافه اليه ته او دوهم ذکر د مضاف اليه ته.

واختير الضمة الخ: دلته دوه سوالات راغلل

**اول سوال**: مبني په حرکت ولې دي؟

**جواب**: چې معلوم شي چې دابناء عارضي دى.

**دوهم سوال**: حرکت د ضمه ولې دي؟

**جواب**: چې په حذف د مضاف اليه سره دې ته نقصان رسېدلى دى، نو چې د هغه نقصان جبيره وشي، څکه جبيره قويه ضمه ده.

كقبل وبعد: غرض د ماتن تعيين د هغه ظروف کول دي، چې مقطوع عن الاضافة وي، او هغه قبل بعد او همدارنګې نور هغه اسمآء دي، چې د هغې سمع د عربو نه په دې شان سره شوې وي، چې مقطوع عن الاضافة وي، لکه تحت، فوق، قدام، خلف، ورآء شو.

ولا يقاس الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: هغه اسمآء ددې مذکور په معنى دي، لکه اسفل، اول، امام وغيره، نو دا پرې هم قياس کړه کنه، حالانکه هغې ته خو خلك مبني نه وايي؟

**جواب**: حاصل دادى، چې کوم حکم چې خلاف القياس وارد شي، هغه د خپل مورد پورې خاص وي، نور په هغې نشي قياس کولى.

ويجوز في هذه الظروف: غرض د شارح حال ددې ظروفو ذکر کول دي په دې ظروفو کې دا هم جائزده، چې مضاف اليه حذف کړى شي او د هغې عوض کې تنوين راوړى شي.

على قلة: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا قسم خو مونږ نه دي اورېدلي؟

**جواب**: چونکه دا قليل الاستعمال دى، څکه به تا نه وي اورېدلي.

فتعرب: حکم ددې ذکر کوي، چې دا به معرب وي.

قال الشاعر: په دې عبارت سره مثال ذکر کوي چې هغه داشعر د شاعر دي:

فساغ لي الشراب وكنت قبلاً اكاد اغص بالمآء الفرات

په دې مثال کې د قبلا مضاف الیه حذف دی او عوض کې تنوین راوړی شوی دی.

**فلا فرق**: فرق د دې قسم د ما قبل سره ذکر کوي، او هغه دا چې د معنی په اعتبار سره دې دواړو کې څه فرق نشته، ځکه دې صورت کې هم د دې مضاف الیه محذوف منوي وي.

**وقال بعضهم**: یعنې ځینې خلکو دې صورت کې وجه د اعراب دا ذکر کړې ده، چې دا معنی د اضافت لره متضمن نه دی. نو چې هغه تضمن ختم شو. نو دا معرب شو :

**لعلی کنت**: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: مخکې خو مونږ وویل، چې دا ظروف لازم الاضافة دي، نو د دې مضاف الیه څنګه حذف کولی شي؟

**جواب**: دې صورت کې به دا په معنی د قديماً سره وي او قديم اسم خو لازم الاضافت نه دی.

**وقال الشارح**: غرض د شارح په نقل د عبارت د شارح رضي سره دفع د دوهم سوال ده :

**سوال**: کله چې د دې په اعراب کې دوه قوله وو، نو دا دوهم قول دې په بعضهم سره ولې ذکر کړو، او وروستو دې ولې ذکر کړو؟

**جواب**: شارح رضي فرمايي چې اول قول حق دی، د دې وجې نه هغه مونږ مخکې ذکر کړو.

**واجری مجراه**: غرض د ماتن ملحقات د ظروفو ذکر کول دي.

**ای مجری الظرف الخ**: غرض د شارح په خپل عبارت سره د ضمير مرجع متعين کول دي.

**لا غير و ليس غير**: غرض د ماتن خو د ملحقاتو د ظروفو تعين کول دي .

**سوال**: حکم د دې څه دی؟

**جواب**: په فی هذه المضاف سره حکم ذکر کوي، حکم يې دا دی، چې د دې مضاف اليه به حذف وي او دا به مبني په ضمه سره وي.

**سوال**: دې ته عين ظروف ولې نه راځي؟

**جواب**: عين ظروف ورته ځکه نه وايو چې دا په هغې کې نشته.

**سوال**: مشابه د ظروفو ورته ولې وايي؟

**جواب**: مشابه د ظروفو ورته ځکه وايو ، چې دا په ابهام کې د ظروفو سره مشابه دي او هغه

داسې چې مونږ ويلي دي. چې د يو اسم په طرف د معرفې باندې اضافت وشي، نو دا تعريف کسب کوي او غير د وجې د توغل في الابهام نه تعريف نه کسب کوي، او ظروفو کې ابهام داسې دی، چې قبل ما يواجهك الى ما لانهاية الخ ته وايي او بعد ما يباعلك الى ما لا نهاية له ته وايي.

**سوال**: د لا او ليس سره ولې خاص شو؟

**جواب**: ددې غير د لا او ليس سره تخصيص خکه وشو، چې ددې دواړو نه وروستو ددې استعمال کثير دی او کثرت استعمال تقاضا د خفت کوي، او خفت دې کې دی چې ددې مضاف اليه حذف شي.

**سوال**: مثال يې څه دی؟

**جواب**: جاءني زيدٌ ليس غير سره مثال ددې ذکر کوي.

<u>لشبهها الخ</u>: غرض د شارح ددې حسب دپاره وجه د بناء ذکر کول دي، چې دا د غير سره مشابه دی يو خو په کثرت استعمال کې او دوهم چې دې کې هم دومره ابهام دی، چې که معرفې ته اضافت وشي، بيا هم تعريف نه قبلوي، اوس لا غير خو مبني برضمه وو، نو دا به هم مبني بر ضمه وي.

## بيان د حيث او حکم ددې:

| |
|---|
| وَ مِنْهَا اَیْ مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَبْنِيَّةِ حَيْثُ لِلْمَكَانِ وَ قَالَ الْاَخْفَشُ قَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلزَّمَانِ وَلَا |
| اوبعضې ددې نه يعنې دظروفومبنيونه حيث دې دپاره دمکان اخفش وايي دزمان دپاره هم راځي اونه |
| تُضَافُ اِلَّا اِلٰى جُمْلَةٍ اِسْمِيَّةٍ كَانَتْ اَوْ فِعْلِيَّةٍ فِي الْاَكْثَرِ اَیْ فِيْ اَكْثَرِ الْاِسْتِعْمَالَات وَ قَدْ جَاءَ ع اَمَا |
| مضاف کيږي مګرجملې ته اسميه وي اوکه فعليه په اکثرواستعمالاتو کې اوکله داسې راځي لکه شعرآيا |
| تَرٰى حَيْثُ سُهَيْلٌ طَالِعًا فَحَيْثُ فِيْهِ مُضَافًا اِلٰى مُفْرَدٍ وَ هُوَ سُهَيْلٌ |
| ته نه ګورې هغه ځای ته دکوم ځای نه چې سهيل راخيژي نو حيث په دې کې مضاف ده مفرد ته چې هغه سهيل |
| مَفْعُوْلُ تَرٰى اَیْ اَمَا تَرٰى مَكَانَ سُهَيْلٍ طَالِعًا آخِرَهُ ع نَجْمٌ يُضِيْئُ |
| مفعول دترى دي معنى داچې اماترى مکان سهيل طالعاآخرد شعر دادې ستورې دې چې پرقيږي په شان د |
| كَالشِّهَابِ سَاطِعًا وَ اِنَّمَا بُنِيَتْ عَلَى الضَّمِّ كَالْغَايَاتِ لِاَنَّهَا غَالِبَةُ الْاِضَافَةِ اِلَى الْجُمْلَةِ |
| شغلې چې کله روښانه شي اومبني په ضمې شوه په شان دغاياتو ځکه چې داغالبا اضافت يې جملې ته کيږي |

| |
|---|
| وَ الْمُضَافِ إِلَى الْجُمْلَةِ فِي الْحَقِيْقَةِ مُضَافٌ إِلَى الْمَصْدَرِ الَّذِيْ تَضَمَّنَهُ الْجُمْلَةُ فَهِيَ وَ إِنْ كَانَتْ فِي |
| او مضاف جملې ته په حقیقت کې مضاف وي مصدر ته هغه مصدر چې متضمن وي جملې لره نو دا اګر که په |
| الظَّاهِرِ مُضَافَةً إِلَى الْجُمْلَةِ فَأَضَافَتُهَا إِلَيْهَا كَلاَ إِضَافَةٍ فَشَابَهَتِ الْغَايَاتُ |
| ظاهر کې مضاف دي جملې ته نو اضافت یې جملې ته دواړه اضافته شول نو مشابهت یې دغایاتو سره |
| الْمَحْذُوْفُ مَا أُضِيْفَ إِلَيْهِ فَبُنِيَتْ عَلَى الضَّمِّ مِثْلَهَا وَ مَعَ الإِضَافَةِ إِلَى الْمُفْرَدِ |
| راغلو کوم چې محذوف مضاف الیه دي نو دهغوي غوندې مبني بر ضمه شول او سره د اضافت نه مفرد ته |
| يُعْرِبُهَا بَعْضُهُمْ لِزَوَالِ عِلَّةِ الْبِنَاءِ أَيْ الإِضَافَةِ الَّتِيْ إِلَى الْجُمْلَةِ وَ الأَشْهَرُ بَقَاؤُهَا |
| اعراب ورکړې بعض دوجې د زائل کیدو دعل ابنا چې هغه اضافت دي جملې ته او مشهوره یې بقاء ده |
| عَلَى بِنَائِهَا لِشُذُوْذِ الإِضَافَةِ إِلَى الْمُفْرَدِ. |
| په مبني والي باندې دوجې د شاذ کیدو د اضافت نه مفرد ته. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره بیان د حيث او حکم د حيث بیانوي.

**اغراض د جامي**: **ومنها**: کله چې فارغ شو ماتن د اول قسم د ظروف مبنیه نه، نو شروع یې وکړه په تفصیل د دوهم قسم د دې کې.

نفس تفصیل ښکه کوي، چې تفصیل بعد الاجمال اوقې فى الذهن وي.

تفصیل په دې مقام کې ښکه کوي، چې د اسم په ذهن د ماتن کې په نسبت سره ما قبل ته قلیل او په نسبت سره ما بعد ته کثیر الاستعمال دی.

تفصیل داسې کوي، چې تعیین د دې قسم به وکړي او طریقه د استعمال به ذکر کړي.

**منها حیث**: شارح وایي.

**اى من الظروف**: غرض د شارح د ضمیر مرجع متعین کول دي.

**للمکان**: دا دپاره د مکان راځي، ځینو ویلي دي، چې د زمان دپاره هم مستعملیږي، لکه اجلس حیث زید جالس کله چې حیث په معنی د زمانې شي، لیکن قد په فعل مضارع مجهوله داخل شوی دی. اشاره ده، چې دا معنی قلیل مستعملیږي.

**ولا تضاف الخ**: یعنې ددې اضافت په اکثر استعمالاتو کې جملې ته کیږي، هغه که جمله اسمیه وي لکه اجلس حیث زیدٌ جالسٌ او که جمله فعلیه وي. لکه فاقتلوا المشرکین حیث وجدتموهم.

**فى اکثر الاستعمال**: غرض د شارح دفع د وهم ده:

**وهم**: چا به ويل چې د اکثر نه به مراد دا وي، چې په مذهب د اکثرو باندې حالانکه دې کې خو اختلاف نشته؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې اکثر استعمالات مراد دي.

وقد جآء الخ: غرض د شارح د اکثر قيد فائده ذکر کول دي، او هغه دا چې کلمه دا په اضافت سره مفرد ته هم مستعمل شوی دی، لکه شاعر وايي:

اما ترئ حيث سهيلٍ طالعًا نجم يضئ کالشهاب ثاقبًا

مقصد د شعر دادی: چې شاعر وايي، ته ګورې نه چې سهيل ستوری په حال کې راختی دی، چې رڼا کوي په شان د هغه شعله چې پرق وهونکې وي، ددې ستورې متعلق د عربو دا عقيده وه، چې په دې کې دا اثر دی، چې دې سره دا کيړې مکوړې او ګندونه ختمېږي.

او متنبي هم ددې استعمال کړی دی ، هغه دخپل مقابل ذم کوي، نو داسې وايي:

اتنکر موتهم وانا سهيلٌ طلعت بموت اولاد الزوانی

يعنې زه سهيل ستاره يم او د زنايانو په اولاد باندې د مرګ دپاره راختی يم، نو آيا ته د دوی د مرګ نه انکار کوې.

په هر حال په دې مثال کې د حيث اضافت سهيل ته شوی دی او هغه مفرد دی.

وانما بنيت الخ: دلته هم درې سوالات واردېږي:

**سوال**: چې دا حيث نفس مبني ولې دی؟

**جواب**: نفس مبني خو ځکه شو چې په غالب اوقاتو کې ددې اضافت جملې ته کيږي او جمله من حيث الجملة مضاف اليه نه واقع کېږي، بلکې مضمون د جملې مضاف اليه واقع کېږي او هغه مضمون د جملې مصدر محذوف وي، چې ته يې راوکاږې اوس چې کله دې کې مصدر محذوفه راويستو ته احتياج راغلو، نو ددې وجې نه دا مبني شو.

**سوال**: مبني په حرکت ولې دی؟

**جواب**: مبني په حرکت ځکه شو، چې معلوم شي چې بنآء ددې عارضي ده.

**سوال**: په حرکت د ضمه سره ولې دی؟

**جواب**: حرکت د ضمې ځکه ورکړی شو، چې دا جبيره قويه ده.

**مع الاضافة الخ**: دا يوه بله مسئله ذکر کوي، هغه دا چې کله دديٰ اضافت مفرد ته وشي. نو دا به مبني وي او که معرب؟ نو خينو ويلي دي، چې دا به معرب وي خکه هغه علت د بناء ختم شو او خينو ويلي دي. چې دا به مبني طرداً للباب، خکه اضافت دديٰ مفرد ته هغه قليل دی او قليل په منزله د عدم وي، نو دا به هم مبني کړو، چې حکم د باب مختلف نه شي.

## بيان د اذا او حکم دديٰ:

| |
|---|
| وَ مِنْهَا اَىْ مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَبْنِيَّةِ اِذَا زَمَانِيَّةً كَانَتْ اَوْ مَكَانِيَّةً وَ اِنَّمَا بُنِيَتْ لِمَا ذَكَرْنَا فِيْ |
| اوظروفومبنيونه اذاهم دي زماني وي اوکه مکاني اووجه دبنايي هغه ده کومه چې مونږذکرکړه په |
| حَيْثُ وَ هِيَ اِذَا كَانَتْ زَمَانِيَّةً لِلْمُسْتَقْبَلِ اَىْ لِلزَّمَانِ الْمُسْتَقْبَلِ وَ اِنْ كَانَتْ دَاخِلَةً |
| بحث د حيث کې اوداچې کله زماني وي راخي دپاره د مستقبل يعني دزماني مستقبلې دپاره اگرکه داخله |
| عَلَى الْمَاضِيْ وَ ذٰلِكَ لِاَنَّ الْاَصْلَ فِيْ اِسْتِعْمَالِهَا اَنْ تَكُوْنَ لِزَمَانٍ مِنَ الْاَزْمِنَةِ |
| وي په ماضي باندې اوداخکه چې اصل په استعمال دديٰ کې دادې چې وي به دزماني دپاره دزمانود |
| الْمُسْتَقْبَلِ مُخْتَصٍّ مِنْ بَيْنِهَا بِوُقُوْعِ حَدَثٍ فِيْهِ مَقْطُوْعٍ |
| مستقبل نه چې خاص شوې وي دمينځ دهغې نه په وقوع دحدث سره په هغې کې اومقطوع به وي په |
| بِوُقُوْعِهِ فِيْ اِعْتِقَادِ الْمُتَكَلِّمِ وَ الدَّلِيْلُ عَلَيْهِ اِسْتِعْمَالُهَا فِي الْاَغْلَبِ الْاَكْثَرِ فِيْ هٰذَا |
| واقع کيدو دهغې په اعتقاد دمتکلم کې اودليل په دې استعمال دازادې په اغلب اواکثرکې په دې |
| الْمَعْنٰى نَحْوُ اِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَ قَوْلُهُ تَعَالٰى اِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ وَ لِهٰذَا كَثُرَ فِي الْكِتَابِ الْعَزِيْزِ |
| معنى لکه اذاطلعت الشمس اوداقول دالله تعالى اذالشمس کورت اوددې وجې زيات دي په کتاب الله کې |
| اِسْتِعْمَالُهَا لِقَطْعِ عَلَّامِ الْغُيُوْبِ بِالْاُمُوْرِ الْمُتَوَقَّعَةِ وَ قَدِ اسْتُعْمِلَتْ فِي الْمَاضِيْ |
| استعمال دديٰ خکه چې علم دالله تعالى په امورمتوقعه قطعي دي اوکله استعماليږي په ماضي کې |
| كَمَا فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى حَتّٰى اِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَ حَتّٰى اِذَا سَاوٰى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ وَ حَتّٰى اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا وَ فِيْهَا |
| لکه په دې قول دالله تعالى کې حتى اذا بلغ بين السدين وحتى اذا ساوى بين الصدفين وحتى اذا جعله نارا اوبه |
| اَىْ فِيْ اِذَا مَعْنَى الشَّرْطِ وَ هُوَ تَرَتُّبُ مَضْمُوْنِ جُمْلَةٍ اُخْرٰى فَتَضَمَّنَتْ |
| دې يعني په اذاکې معنى دشرط ده اوداشرط ترتب دمضمون ديوې جملې دي پربلې باندې نومتضمنه |
| حَرْفَ الشَّرْطِ فَهٰذَا عِلَّةٌ اُخْرٰى لِبِنَائِهَا وَ لِذٰلِكَ اَىْ لِكَوْنِ مَعْنَى الشَّرْطِ فِيْهَا |
| شوه حرف شرط لره نو دا يې بل علت شو د پاره د مبني والي اودوجې د کيدو معنى د شرط په دې کې |

| اُخْتِيْرَ اَیْ جُعِلَ مُخْتَارًا بَعْدَهَا الْفِعْلُ لِمُنَاسَبَةِ الْفِعْلِ الشَّرْطِ وَ جُوِّزَ |
|---|
| غوره شوه يعني وګرځولې شو غوره پس ددې نه فعل دمناسپت دفعل نه دشرط سره اوجوازورکړل شو |
| الْاِسْمُ اَیْضًا عَلَی الْوَجْهِ الْغَیْرِ الْمُخْتَارِ لِعَدَمِ تَاَصُّلِهَا فِي الشَّرْطِ مِثْلُ اِنْ وَ لَوْ. |
| اسم ته هم په وجه غيرمختاره باندې دوجې دنشتوالي دمواصلت يې دشرط سره په شان دان او لو. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره شارح دظروفو مبنيو د دريم قسم بيان کوي چې هغه اذا دي.

**اغراض دجامي** : ومنها: کله چې فارغ شو د دوه اقسامو د ظروف مبنيه نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د دريم قسم ددې کې.

نفس تفصيل څکه کوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل په دې مقام کې څکه کوي، چې دا قسم په ذهن د مصنف کې په نسبت سره ما قبل ته قليل او په نسبت سره ما بعد ته کثير وو.

او تفصيل داسې کوي، چې ددې قسم تعيين به وکړي، دوهم ددې اقسام به ذکر کړي، او دريم طريقه د استعمال به ذکر کړي.

ومنها اذا: يعني ددې ظروف مبنيه نه اذا هم دی.

اى من الظروف المبنية: غرض د شارح د هآء ضمير مرجع متعين کول دي.

زمانية الخ: اقسام ددې اذا درې دي: اذا ظرفي هم راځي، چې د زمان او مکان دواړو د دپاره راځي. اذا شرطي هم راځي. اذا مفاجاتي هم راځي.

وهي المستقبل: غرض د ماتن ددې اذا معنی ذکر کول دي، نو وايي چې دا دپاره د مستقبل راځي. د ايې اوله معنی ده.

اذا كانت زمانية: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال** : ستا کلام کې مخکې معلوم شو، چې اذا زماني او مکاني دواړه راځي، او اوس وايې چې صرف مستقبل دپاره راځي؟

**جواب**: مونږ وايو دا هغه صورت دی، چې اذا زماني وي، نو بيا دا دپاره د مستقبل راځي.

للزمان المستقبل: چونکه المستقبل صفت وو، نو د هغې دپاره يې موصوف محذوف راويستو.

وان كانت: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ته وايې چې دا د مستقبل دپاره راځي، حالانکه دا خو په ماضي هم داخلېږي؟

**جواب**: که په ماضي هم داخله شي، بيا هم معنی د مستقبل ورکوي.

وذلک لان الاصل الخ: غرض د شارح د اذا د ان سره فرق ذکر کول دي او معنی کلی ددې ذکر کوي، حاصل د هغې دادی، چې اصل په اذا کې داده، چې دا دپاره د زمانې مستقبلې راځي د يو داسې کار دپاره چې د هغې وقوع په اعتقاد د متکلم کې قطعي وي، اګر که په نفس الامر کې داسې نه وي. په خلاف د ان کې چې دا د مستقبل د کار دپاره راځي، خو په طريقه د تردد سره.

والدليل الخ: غرض د شارح ددغه معنی کلی دپاره نقلي دليل پيش کول دي، لکه يو سړی ووايي. انا آتيك اذا طلعت الشمس اوس دا طلوع شمس د مستقبل سره تعلق ساتي، او په اعتقاد د متکلم کې ددې طلوع قطعي ده، اګر که په نفس الامر کې په ده باندې طلوع د شمس ونه شي، دغه شان په قرآنکريم کې راځي: اذاالشمس کورت، نو دلته هم د استقابل معنی ده او وقوع ددغه حدث قطعي ده.

**سوال**: ستا په کلام کې دور دی، ځکه مخکې دعوی کې هم استعمالها دی، او دليل کې هم استعمالها دی؟

**جواب**: دې دواړو کې فرق دی اول استعمال د واضعينو مراد دی، او دوهم د اهل لغت استعمال مراد دی.

و قد استعملت الخ: غرض د شارح ددې اغلب اکثر قيد فايده ذکر کول دي، چې کله کله په ماضي داخل شي او معنی هم د ماضي ورکوي. لکه اذا بلغ مغرب الشمس.

و فيها معنی الشرط: غرض د ماتن د اذا دوهم قسم ذکر کول دي، چې کله اذا شرطي هم راځي.

ای في اذا: غرض د شارح په دې عبارت سره د هاء ضمير مرجع متعين کول دي.

و هو ترتيب الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: چا به ويل چې شرط خو په معنی د علامه سره راځي، لکه ان من اشراط الساعة الخ په دې صورت کې وروستو تفريع د لذلك نه صحيح کېږي؟

**جواب**: دلته د شرط معنى ده ترتيب د مضمون د جملې جزائيه په جمله شرطيه باندې لهذا وروستو تفريع صحيح ده.

**فتضمنت الخ**: په دې صورت کې به دا معنى د حرف شرط لره متضمن شي، دادې دپاره بله وجه دبناء شوه، او کوم صورتونو کې چې معنى د شرط لره متضمن نه وي، نو هغه صورتونه حمل دي په دې باندې طرداً للباب، چې حکم د باب مختلف نه شي.

**ولذلك اختير الخ**: غرض د ماتن طريقه د استعمال ذکر کول دي، چې ددې نه وروستو د فعل راتلل مختاره دي.

**لکون معنى الشرط فيها**: غرض د شارح د اسم اشاره مشارٌ اليه متعين کول دي، بيا صرف لمعنى الشرط هم کافي کېدو، ليکن کون مصدر راويستو کې د فيها جار مجرور دپاره متعلق هم ذکر شو.

**اى جعل مختاره**: غرض د شارح دفع د وهم ده:

**وهم**: چا به ويل چې اختير به په معنى د اريد سره وي، په دې صورت کې به فعل راوړل لازم شي، حالانکه خبره خو داسې نه ده؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا په معنى د مختار سره دى.

وَ قَدْ تَكُوْنُ اَیْ اِذَا لِلْمُفَاجَاةِ مُجَرَّدَةٍ عَنْ مَعْنَى الشَّرْطِ يُقَالُ فَاَجَاءَ الْاَمْرُ مُفَاجَاةً مِنْ قَوْلِهِمْ

اوکله وي اذادپاره دمناجات چې خالي وي دمعنى دشرط نه ويل کيږي فجاء الامر مفاجاة ددې قول نه

فَجِئْتُهُ فُجَاءَةً بِالضَّمِّ وَ الْمَدِّ اِذَا لَقِيْتَهُ وَ اَنْتَ لَا تَشْعُرُ بِهٖ فَيَلْزَمُ

فجئة فجاءة په ضمې سره اومدسره کله چې ته ورسره ملاقي شي اوورباندې پوه نه شي نودغه وخت لازم

الْمُبْتَدَاُ بَعْدَهَا فَرْقًا بَيْنَ اِذَا هٰذِهٖ وَ بَيْنَ اِذَا الشَّرْطِيَّةِ وَ الْمُرَادُ بِلُزُوْمِ الْمُبْتَدَاِ

ده مبتداوروسته ددې نه دپاره دفرق په مينځ دااذا اوپه مينځ دااذشرطيه کې اومرادپه لزوم دمبتدا سره

غَلَبَةُ وُقُوْعِهٖ بَعْدَهَا فَلَا يُنَافِيْ مَا سَبَقَ مِنْ عَدَمِ وُجُوْبِ الرَّفْعِ بَعْدَهَا

غالباًواقع کيدل دمبتدادي وروستوددې نه نومنافي نه شودماسبق سره عدم وجوب درفع پس ددې نه

فِیْ بَابِ الْاِضْمَارِ عَلٰى شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ نَحْو خَرَجْتُ فَاِذَا السَّبُعُ حَاضِرٌ اَوْ وَاقِفٌ عَلٰى حَذْفِ الْخَبَرِ وَ

په باب داضمارعلى شريطة التفسير کې لکه خرجت فاذاالسبع اى فاذاالسبع حاضر اوواقف بناء برحذفيت خبراو

الْعَامِلُ فِيْ إِذَا هٰذِهٖ مَعْنَى الْمُفَاجَأَةِ وَ هُوَ عَامِلٌ لَا يَظْهَرُ قَدِ اسْتَغْنَوْا
عامل په دغه اذا کې معنی د مفاجات ده او دا دا سې عامل دي چې نه ښکاره کېږي نحویانو استغنا ښکاره کړې
عَنْ إِظْهَارِهٖ لِقُوَّةِ مَا فِيْهِ مِنَ الدَّلَالَةِ عَلَيْهِ وَ أَمَّا الْفَاءُ
دا ظهار د هغې نه ځکه چې هغه څه په کې ډېر قوي دي کوم چې دلالت کوي په دې باندې او هرچې فاء ده نو
لِهِيَ لِلسَّبَبِيَّةِ فَإِنَّ مُفَاجَأَةَ السَّبُعِ مُسَبَّبَةٌ عَنِ الْخُرُوْجِ قِيْلَ وَ الْأَقْرَبُ إِلَى التَّحْقِيْقِ أَنَّهَا
دا د پاره د سببیت ده ځکه چې ناڅاپه سبع راوتل مسبب دي د وتلو نه ویل شوي چې نږدې تحقیق ته دا ده
لِلْعَطْفِ مِنْ جِهَةِ الْمَعْنَى أَيْ خَرَجْتُ فَفَاجَأْتُ وَ حَاصِلُ الْمَعْنَى خَرَجْتُ فَفَاجَأْتُ
چې دا ماده پاره د عطف ده د طرف د هغې نه معنی دا شوه خرجت مفاجات حاصل د هغې دا شو خرجت مفاجات
زَمَانَ وُقُوْفِ السَّبُعِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُ الزُّجَاجِ أَنَّ إِذَا هٰذِهٖ زَمَانِيَّةٌ أَوْ مَكَانَ وُقُوْفِ السَّبُعِ كَمَا
زمان وقوف السبع لکه څنګه چې دا مذهب د زجاج دي چې دا اذا زماني ده او یا مکان وقوف السبع لکه څنګه
ذَهَبَ إِلَيْهِ الْمُبَرِّدُ فَإِنَّهَا عِنْدَهٗ مَكَانِيَّةٌ وَ قَوْلُنَا زَمَانَ وُقُوْفِ السَّبُعِ أَوْ مَكَانِهٖ مَفْعُوْلٌ فِيْهِ
چې ذهاب کړي دې ته مبرد ځکه چې دا ده په نزد دا مکاني ده او دا اقول زمونږ وقوف السبع او مکانه مفعول فیه
لِفَاجَأْتُ لَا مَفْعُوْلٌ بِهٖ وَ إِلَّا لَمْ تَبْقَ إِذَا ظَرْفِيَّةً بَلْ تَصِيْرُ إِسْمِيَّةً بَلِ الْمَفْعُوْلُ بِهٖ مَحْذُوْفٌ
ده د پاره د فجات نه مفعول به ده ورنه اذا به ظرفي پاتې نه شي بلکه ګرځي اسمي بلکې مفعول به محذوف
أَيْ فَاجَأْتُ فِيْ زَمَانِ وُقُوْفِ السَّبُعِ أَوْ مَكَانِهٖ إِيَّاهُ أَيِ السَّبُعَ وَ قَدْ تَكُوْنُ الْمُجَرَّدُ الزَّمَانُ نَحْوُ آتِيْكَ إِذَا
دي یعني فاجات في زمان وقوف السبع او مکان ایاه یعني السبع او کله وي د پاره د مجرد زمان لکه آتیک اذا
أَحْمَرَ الْبُسْرَى وَقْتَ أَحْمَرَا الْبُسْرِ وَ قَدْ تُسْتَعْمَلُ إِسْمًا مُجَرَّدًا عَنْ مَعْنَى الظَّرْفِيَّةِ فِيْ نَحْوِ إِذَا
احمر البسری یعني وقت احمرار البسر او کله استعمالیږي اسم چې خالي وي د معنی د ظرفیت نه لکه اذا
يَقُوْمُ زَيْدٌ إِذَا يَقْعُدُ عَمْرٌو وَ قَدْ سَبَقَتْ إِلَيْهِ إِشَارَةٌ.
یقوم زید اذا یقعد عمرو دې ته مخکې اشاره کړل شوې وه.

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره شارح دا بیانوي چې اذا کله کله مفاجاتي هم راځي نو د دې تفصیل بیانوي.

**اغراض د جامي**: وقد تکون ای اذا للمفاجاة: غرض د ماتن دریم قسم دا ذکر کول دي، چې کله کله اذا مفاجاتي هم راځي.

مجردة الخ: غرض د شارح د اذا مفاجاتي د اذا شرطي سره تقابل ذکر کول دي.

**يقال فاجاء الامر**: غرض د شارح اشاره كول دي، چې **مفاجاة** مصدر د باب مفاعله دی.

**من قولهم فجئة الخ**: غرض د شارح ددې مجرد ذكر كول دي، ځكه د مجرد په تبع كې مزيد راځي.

**فجاءة الخ**: غرض د شارح ددې مجرد ذكر كول دي، ځكه مجرد په تبع كې مزيد راځي.

**بالضم والمد الخ**: غرض د شارح ددې معنى ذكر كول دي، كله چې دا په ضمه او مد سره وي. نو معنى ده د يو شي د بل شي سره ملاقي كېدل، بغتةً كه په كسره يا فتحه سره وه، او په مد سره نه وو، نو بيا معنى غلطه راځي.

**فيلزم المبتداء**: غرض د ماتن طريقه د استعمال ددې قسم ذكر كول دي، نو دی وايي چې دې اذا مفاجاتي نه وروستو د مبتداء راتلل لازم دي.

**فرقاً الخ**: غرض د شارح وجه د اتيان د لزوم المبتداء ذكر كول دي، يعنې دې سره به د اذا شرطي سره فرق راشي، ځكه هلته وروستو فعل راوړل مختاره دي.

**والمراد بلزوم المبتداء**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:

**سوال**: مخكې په معرب كې په بحث د ما اضمر عامله على شريطة التفسير كې ماتن په دې صورت كې حكم د اختيار الرفع كړی دی، او دلته اوس حكم په لزوم ددفع سره كوي. دا خو تعارض دی؟

**جواب**: شارح جواب وكړو، چې مراد په لزوم سره غالب وقوع د دفع ده.

**نحو خرجت الخ**: غرض د شارح مثال ذكر كول دي، بيا په دې مقام كې ددې مثال په تركيب كې درې مذاهب دي:

**زجاج** وايي: چې اذا زماني خبر مقدم دی، او السبع مبتداء مؤخر ده، دا جمله اسميه شوه.

**مبرد** وايي: چې اذا مكاني خبر مقدم دی او السبع مبتداء مؤخر ده. دا جمله اسميه شوه.

ليكن دا دواړه مذاهب مخدوش دي. اول مذهب خو ځكه مردود دی، چې ظرف زمان د جثى نه خبر نه واقع كېږي، او دوهم مذهب هم مردود دی، ځكه د اذا اګر چې مكاني دی، ليكن خبر ځكه نه دی، چې كله كله ددې خبرې ذكر وي.

شارح په دې دواړو رد وكړو. ليكن خبر ځكه نه دی چې كله كله ددې خبر ذكر وي، شارح په

دې دواړو رد وکړو، او خپل مذهب یې ذکر کړو، چې اذا ظرف مکان مضاف دی، او ما بعد جمله مضاف الیه دی، او جز خذف دی، چې حاضرٌ یا واقفٌ دی.
بیا شارح په زجاج رد وکړو، په دې شان سره چې دا زماني نه دی، او په مبرد یې رد وکړو، په دې شان سره چې مکاني دی لیکن خبر د مبتداء نه دی، بلکې خبر ددې حذف دی.
والعامل الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: د اذا ظرف مضاف دی او حاضرٌ دې کې عامل دی نو دا خو لازم شو عمل د مضاف الیه خبر په مضاف کې او مضاف خو مضاف الیه کې عمل کوي، لیکن مضاف الیه خو چېرته مضاف کې عمل نه کوي؟
**جواب**: عامل ددې معنوي دی، چې هغه د فحوای د کلام نه معلومېږي، چې معنی د مفاجاة دی.
ولا یظهر الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: هغه عامل ذکر کوي ولې نه؟
**جواب**: دا اذا په معنی د هغې باندې قوي طریقې سره دلالت کوي، نو ذکر ته یې ضرورت نشته.
و اما الفاء الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:
**سوال**: ظاهره داده چې فآء عاطفه ده، نو دا خو لازم شو عطف د جمله اسمیه په جمله فعلیه باندې؟
**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا فآء عاطفه نه ده، بلکې سببیه ده، دا خروج سبب دی او ما بعد وَرله مسبب دی.
قیل: سره دوهم جواب کوي، حاصل د هغې دادی، چې دا فآء عاطفه وایم لیکن عطف د معنی د جملې دی په ما قبل باندې او هغه معنی ددې مفاجات ده او دا جمله فعلیه ده، نو عطف د جمله فعلیه په فعلیه راغلو.
و حاصل المعنی الخ: غرض د شارح د هر مذهب په بنآء باندې حاصل د معنی ذکر کول دي:
حاصل د معنی په مذهب د زجاج دادی. چې خرجت مفاجات زمان وقوف السبع، وقوف سره

مضمون د جملې ته اشاره وکړه او زمان سره اشاره وکړه، چې اذا زماني دی
او په مذهب د مبرد به حاصل د معنی داسې وي **خرجت مفاجات مكان وقوف السبع**

**سوال**: مبرد خو دا مکان خبر وايي نو وقوف مصدر ول راوکاړي؟

**جواب**: دا مونږ **طردا للباب** راويستو.

**وقولنا الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ته چې زمان او مكان معنی واخلې، نو دا به منصوب بنا بر مفعول به وايې، حالانکه دا خو ظروف دي او ظروف مفعول به نه واقع کېږي؟

**جواب**: دا مونږ مفعول به نه وايو، بلکې مفعول فيه وايو **في** جار حذف دی.

**بل المفعول الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا **مفاجاة** فعل متعدي دی، نو د دې مفعول به څه شی دی؟

**جواب**: هغه حذف ده چې **اياه** دی.

**وتكون الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: حصر د اقسامو د **اذا** په دريو کې صحيح نه دی د وجې د وجود د قسم رابع نه، چې خالص ظرفي واقع کېږي لکه **انا اتيك اذا احمر البسرى**؟

**جواب**: کله کله دغه قسم هم راځي، خو **قد** په مضارع داخل دی تقليل طرف ته اشاره ده، يعنې دا قسم قليل وو، ځکه ماتن ذکر نه کړو.

**وقد تستعمل الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: حصر د **اذا** په څلورو اقسامو کې هم صحيح نه دی، د وجې د وجود د قسم خامس نه، چې کله **اذا** خالص ابتدايي راځي لکه **اذا يقوم زيدٌ**؟

**جواب**: چونکه دا قسم هم قليل الاستعمال وو، نو ماتن ځکه ذکر نه کړو، او دې قسم طرف ته مخکې اشاره هم شوې ده، او بيا علامه رضي صاحب په دې سوال هم کړی وو، چې دا مصنوعي مثال دی او هلته بيا د دې جواب هم شوی دی.

| |
|---|
| وَ مِنْهَا اَیْ مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَبْنِيَّةِ اِذْ اَلْكَائِنَةُ لِلْمَاضِيْ وَ بِنَاؤُهَا لِمَا مَرَّ فِيْ حَيْثُ اَوْ لِكَوْنِ |
| او د ظروف مبنيو نه اذا دې کوم چې وي دپاره د ماضي او وجه د بناء يې تيره شوې په حيث کې او يا د کيدو |
| وَضْعِهَا وَضْعَ الْحَرْفِ وَ قَدْ يَجِيْئُ لِلْمُسْتَقْبِلِ كَقَوْلِهِ تَعَالٰى فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ اِذِ الْاَغْلَالُ |
| د وضع د دې په شان د حرف او کله راځي دپاره د مستقبل لکه د اقول د الله تعالى فسوف يعلمون اذا الاغلال |
| فِيْ اَعْنَاقِهِمْ وَ يَقَعُ بَعْدَهَا الْجُمْلَتَانِ الْاِسْمِيَّةِ وَ الْفِعْلِيَّةِ لِعَدَمِ اِشْتِمَالِهَا عَلٰى مَعْنَى الشَّرْطِ |
| في اعناقهم او واقع کيږي وروسته ترې دوه جملې اسميه او فعليه ځکه چې دا مشتمله نه ده په معنى د شرط |
| الْمُقْتَضِيْ اِخْتِصَاصَهَا بِالْفِعْلِيَّةِ مِثْلُ كَانَ ذٰلِكَ اِذْ زَيْدٌ قَائِمٌ وَ اِذْ قَامَ زَيْدٌ وَ قَدْ تَجِيْئُ |
| کومه چې تقاضا د اختصاص کوي په فعل پورې لکه کان ذلک اذ زيد قائم او اذ قام زيد او کله راځي دپاره د |
| لِلْمُفَاجَأَةِ نَحْوُ خَرَجْتُ فَاِذَا زَيْدٌ قَائِمٌ وَ لِقِلَّةِ مَجِيْئِهَا لَمْ يَذْكُرِ الْمُصَنِّفُ. |
| مفاجات لکه خرجت فاذا زيد قائم او د اکم راتلو نو ځکه مصنف ذکر نه کړو. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره د ظروفو مبنيو د څلورم قسم چې هغه اذ دې چې وي دپاره د ماضي د دې بيان او تفصيل ذکر کوي.

**اغراض د جامي**: **ومنها**: کله چې فارغ شو ماتن د درې اقسامو د ظروف مبنيه نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د څلورم قسم د هغې کې.

نو نفس تفصيل يې ځکه کوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل يې په دې مقام کې ځکه ذکر کړو، چې په ذهن د مصنف کې دا قسم په نسبت سره ما قبل ته قليل او په نسبت سره ما بعد ته کثير وو. بله وجه داده. چې د اذا د اذا سره لفظاً معنى مناسب دی. لفظاً ظاهر دی او معنى کې نسبت د ضديت دی، اذا د مستقبل دپاره او اذا د ماضي دپاره راځي.

او تفصيل داسې کوي، چې تعيين د دې قسم به وکړي. دوهم معنى د دې به وکړي او دريم طريقه د استعمال به يې ذکر کړي.

**ومنها اذ**: يعني د دې ظروف مبنيه نه اذ هم دی.

**اى من الظروف**: غرض د شارح د هاء ضمير مرجع متعين کول دي.

**للماضي**: دا دپاره د ماضي راځي. شارح وايي

الكائنة: غرض د شارح د جار مجرور دپاره متعلق ذكر كول دي.
بيا الكائنة معرفه يې راويسته، ځكه موصوف صفت كې موافقت په كار وي او اذ نوم ددې قسم دی، معرفه ده، نو صفت يې هم معرفه راويسته.
**سوال:** كائنةً حال ورلره ولې نه راوباسي ؟
**جواب:** كه دې دپاره متعلق حال راوباسو، نو په معنى كې غتوالى نه راځي، ځكه حال قيد وي دپاره دعامل د ذوالحال او قيد سره هغه اطلاق ختمېږي او چې صفت وګرځوو، نو صفت اكثر كاشفه وي نو هغه اطلاق په خپل ځاى پاتې وي، نو معنى كې غتوالى راځي، بيا ددې نه وروستو ماضي راتلل عام دي لفظاً وي او كه حكماً او وروستو ترې جمله هم راتلى شي، حاصل دادی، چې د اذ نه وروستو درې قسمه كلمات راځي، فعل ماضي لفظاً فعل ماضي حكماً، جمله اسميه وي او كه فعليه. قرآن كې يو آيت كې درې واړه جمع دي. قال تعالى: اذ اخرجه الذين كفروا .. اذ هما في الغار . اذ يقول لصاحبه ....
وبناءها لما مرّ الخ: وجه د بناء خو يو مخكې په حيث كې ذكر شوه او دوهمه وجه داده، چې وضع ددې د حرف ده، ځكه ددې وضع په اقل سره د درې حروفو نه شوې ده.
وقد تجئ الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:
**سوال:** اذ خو كله كله د مستقل دپاره هم راځي، نو هغه معنى يې ولې ذكر نه كړه؟
**جواب:** شارح جواب وكړو، چې دغه استعمال ددې قليل وو، ځكه قد چې په مضارع داخل شي، نو تقليل طرف ته اشاره وي ددې وجې نه يې دغه معنى ذكر نه كړه.
ويقع بعدها الخ: يعني ددې نه وروستو جمله اسميه او فعليه دواړه راځي.
لعدم اشتمالها: شارح وجه ذكر كوي، وجه داده چې اذ په معنى د شرط نه دی مشتمل، نو د دې نه وروسته د فعل راتلل ضروري نه دي، نو دواړه جملې ددې نه وروستو راتلى شي.
كان ذلك اذ زيدٌ قائم: مثال د هغه اذ دی، چې وروسته ترې جمله اسميه واقع وي.
اذ قام زيدٌ: مثال د هغه اذ دی، چې وروسته ترې جمله فعليه واقع وي.
وتجئ الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي:
**سوال:** اذ خو مفاجاتي هم راځي، نو هغه قسم يې ولې ذكر نه كړو؟

الکائنة: غرض د شارح د جار مجرور دپاره متعلق ذکر کول دي.
بیا الکائنة معرفه یې راویسته، ځکه موصوف صفت کې موافقت په کار وي او اذ نوم ددې قسم دی، معرفه ده، نو صفت یې هم معرفه راویسته.
**سوال:** کائنةً حال ورلره ولې نه راوباسي؟
**جواب:** که دې دپاره متعلق حال راوباسو، نو په معنی کې غتوالی نه راځي، ځکه حال قید وي دپاره دعامل د ذوالحال او قید سره هغه اطلاق ختمېږي او چې صفت وګرځوو، نو صفت اکثر کاشفه وي. نو هغه اطلاق په خپل ځای پاتې وي، نو معنی کې غتوالی راځي، بیا ددې نه وروستو ماضي راتلل عام دي لفظاً وي او که حکماً او وروستو ترې جمله هم راتلی شي، حاصل دادی، چې د اذ نه وروستو درې قسمه کلمات راځي، فعل ماضي لفظاً فعل ماضي حکماً، جمله اسمیه وي او که فعلیه. قرآن کې یو آیت کې درې واړه جمع دي. قال تعالی: اذ اخرجه الذین کفروا... اذ هما فی الغار ... اذ یقول لصاحبه .....
**وبناءها لما مرّ الخ:** وجه د بناء خو یو مخکې په حیث کې ذکر شوه او دوهمه وجه داده، چې وضع ددې د حرف ده، ځکه ددې وضع په اقل سره د درې حروفو نه شوې ده.
**وقد تجیئ الخ:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:
**سوال:** اذ خو کله کله د مستقل دپاره هم راځي، نو هغه معنی یې ولې ذکر نه کړه؟
**جواب:** شارح جواب وکړو، چې دغه استعمال ددې قلیل وو، ځکه قد چې په مضارع داخل شي، نو تقلیل طرف ته اشاره وي ددې وجې نه یې دغه معنی ذکر نه کړه.
**ویقع بعدها الخ:** یعنې ددې نه وروستو جمله اسمیه او فعلیه دواړه راځي.
**لعدم اشتمالها:** شارح وجه ذکر کوي، وجه داده چې اذ په معنی د شرط نه دی مشتمل، نو د دې نه وروسته د فعل راتلل ضروري نه دي، نو دواړه جملې ددې نه وروستو راتلی شي.
**کان ذلك اذ زیدٌ قائم:** مثال د هغه اذ دی، چې وروسته ترې جمله اسمیه واقع وي.
**اذ قام زیدٌ:** مثال د هغه اذ دی، چې وروسته ترې جمله فعلیه واقع وي.
**وتجیئ الخ:** په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:
**سوال:** اذ خو مفاجاتي هم راځي، نو هغه قسم یې ولې ذکر نه کړو؟

**جواب**: چونکه دغه معنی قلیل مستعملېږي. نو ځکه یې هغه ذکر نه کړه.

## بیان د این او انی او حکم دده:

| |
|---|
| وَ مِنْهَا اَيْنَ وَ اَنّٰى فَهُمَا لِلْمَكَانِ ،سْتِفْهَامًا وَ شَرْطًا اَىْ حَالَ كَوْنِهِمَا لِلْاِسْتِفْهَامِ وَ الشَّرْطِ وَ |
| اوبعضې د ظروفو نه این او انی دي نو دا دواړه د مکان د پاره راځي او دواړه د پاره د استفهام او شرطیت راځي |
| بِنَاؤُهُمَا لِتَضَمُّنِهِمَا حَرْفَ الْاِسْتِفْهَامِ اَوِ الشَّرْطِ نَحْو اَيْنَ زَيْدٌ وَ اَيْنَ تَكُنْ اَكُنْ وَ اَنّٰى زَيْدٌ |
| او مبني ځکه دي چې دواړه متضمن دي حرف استفهام او یا شرط لره لکه این زید او این تکن اکن او انی زید |
| وَ اَنّٰى تَجْلِسْ اَجْلِسْ وَ قَدْ جَاءَ اَنّٰى زَيْدٌ بِمَعْنٰى كَيْفَ وَ اَنّٰى الْقِتَالُ بِمَعْنٰى مَتٰى. |
| او انی تجلس اجلس او انی په معنی د کیف هم راغلی او اني القتال په معنی د متی دی. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره د ظروفو مبنیو پنځم او شپږم قسم چې هغه این او انی دي او بل حکم دده بیانوي.

**اغراض د جامي**: ومنها: کله چې فارغ شو ماتن د څلورو اقسامو د ظروف مبنیه نه، نو شروع یې وکړه په تفصیل د پنځم او شپږم قسم کې.

نفس تفصیل ځکه کوي، چې تفصیل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصیل په دې مقام کې ځکه کوي، چې په ذهن د مصنف کې دا اقسام په نسبت سره ما قبل ته قلیل او په نسبت سره ما بعد ته کثیر وو.

ومنها این و انی: او دده ظروف مبنیه نه پنځم قسم این او شپږم قسم انی دی.

للمکان: یعنې دا دواړه د پاره د مکان راځي. بیا شارح **فهما** را ویسته اشاره دې ته، چې دا دواړه په دغه معنی سره راځي.

استفهاماً و شرطاً: یعنې دا دواړه قسمه استفهامي هم راځي او شرطي هم راځي، بیا دا دواړه الفاظ منصوب وو. نو شارح وجه د نصب ذکر کوي، چې **ای حال کونهما** یعنې دا منصوب بنا بر حالیت دي.

**سوال**: حال خو حمل وي په ذوالحال بآندې او دلته حمل نه صحیح کېږي، ځکه این انی ذوات دي او استفهاماً و شرطاً خو وصف دی؟

**جواب**: نو شارح جواب وکړو، چې دا مونږ په تقدیر د لام سره وایو.

**وبناء هما الخ**: وجه د بناء داده، چې دا دواړه متضمن دي معنى د حرف شرط او استفهام لره

**این زید**: مثال د استفهامي دی

**این تکن اکن**: مثال د شرطي دی وروسته دوه مثالونه هم په دغه فرق بناء دي. يو د انى استفهامي او دوهم د شرطي دی

**وقد جاء الخ**: غرض د شارح د انى نورې معاني ذکر کول دي.

| |
|---|
| وَ مِنْهَا مَتٰى لِلزَّمَانِ فِيْهِمَا اَىْ فِي الْاِسْتِفْهَامِ وَ الشَّرْطِ نَحْوُ مَتَى الْقِتَالُ وَ مَتٰى تَخْرُجْ |
| اوظروفونه متى هم دي چې دزمان دپاره راځي په استفهام اوشرط دواړوکې لکه متى القتال ومتى تخرج |
| اَخْرُجْ وَ مِنْهَا اَيَّانَ لِلزَّمَانِ اِسْتِفْهَامًا مِثْلُ مَتٰى نَحْوُ اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ وَ |
| اخرج اودهغې نه ايان هم دي چې دزماني دپاره راځي په استفهام کې په شان د متى لکه ايان يوم الدين او |
| الْفَرْقُ بَيْنَهُمَا اِنَّ اَيَّانَ مُخْتَصٌّ بِالْاُمُوْرِ الْعِظَامِ وَ بِالْمُسْتَقْبِلِ فَلَا يُقَالُ اَيَّانَ يَوْمُ |
| فرق په کې دادې چې ايان خاص دي ترغټوکارونوپورې اوپه مستقبل پورې نونه ويل کيږي ايان يوم |
| قِيَامِ زَيْدٍ وَ اَيَّانَ قَدِمَ الْحَاجُّ بِخِلَافِ مَتٰى فَاِنَّهٗ غَيْرُ مُخْتَصٍّ بِهِمَا وَ الْمَشْهُوْرُ فَتْحُ الْهَمْزَةِ |
| قيام زيداوايان قدم الحاج په خلاف د متى سره ځکه هغه په دې پورې خاص نه ده اومشهورفتحه د همزې |
| وَ النُّوْنِ وَ قَدْ جَاءَ كَسْرُهُمَا اَيْضًا. |
| اونون ده په ايان کې اوکسره يې هم راغلې ده. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره د ظروفو مبنيو نه اووم او اتم قسم چې هغه متى او ايان دي ددې بيان کوي او بل فرق يې بيانوي په مينځ د متى او ايان کې.

**اغراض د جامي**: **ومتى**: کله چې فارغ شو ماتن د پنځم او شپږم قسم د ظروف مبنيه نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د اووم او اتم قسم ددې کې

نفس تفصيل ځکه کوي، چې تفصيل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي

تفصيل يې په دې مقام کې ځکه کوي، چې دا قسم په ذهن د مصنف کې په نسبت سره ما قبل ته قليل او په نسبت سره ما بعد ته کثير وو

او تفصيل يې داسې کوي، چې تعيين به وکړي ددې قسم . معنى به يې ذکر کړي او اقسام به يې ذکر کړي.

ومتى: شارح ورسره منها راويستو، اشاره دې ته چې دا عطف دی په اين اني باندې، او ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي، په ما قبل د معطوف کې نو منها يې راويستو.

للزمان: دا ده دپاره د زماني راځي.

فيهما: يعني استفهامي او شرطي دواړه راځي.

اى في الاستفهام والشرط: په دې عبارت سره شارح د ضمير مرجع متعيين کوي.

متى القتال: مثال د استفهامي دی.

متى تخرج اخرج: مثال د شرطي دی.

وايان: چې کله فارغ شو ماتن د اووم قسم د ظروف مبنيه نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د اتم قسم ددې، چې ايان دی

نفس تفصيل ځکه کوي، چې تفصيل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل يې په دې مقام کې کوي. ځکه په ذهن د مصنف کې دا قسم په نسبت سره ما قبل ته قليل او په نسبت سره ما بعد ته کثير دی

تفصيل داسې کوي. چې تعيين ددې قسم به وکړي، ددې معنی به ذکر کړي اوددې اقسام به ذکر کړي.

وايان: يعني د ظروف مبنيه نه ايان هم دی، بيا شارح ورسره منها راويستو، اشاره دې ته چې دا عطف دی په هغه اين اني باندې، او ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي. په ما قبل د معطوف کې نو منها يې راويستو.

للزمان: يعني دا هم د زماني دپاره راځي

استفهاماً: يعني دا صرف استفهام دپاره راځي.

نحو ايان يوم الدين: دلته ايان د استفهام دپاره راغلې دی.

والفرق بينهما الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: مخکې اين اني په يوه معنی راتلل، نو هغه ماتن يو ځای ذکر کړه، نو د متى ايان خو هم يوه معنی ده دا يې ولې جدا جدا ذکر کړو؟

**جواب**: ددې دواړو په مينځ کې فرق دی يو فرق خو مخکې ښکاره شو، چې متى استفهامي

و شرطي دواړه راځي او ايان صرف استفهامي ر ځي. او دوهم فرق شارح دا ذکر کړی دی چې په ايان کې دوه خبرې دي يو خو دی د امور عظام دپاره راځي، او دوهم مستقبل پورې خاص دی او په متی کې دا تخصيص نشته لهذا ايان يوم قيام زيد به نه شي ويلی. ځکه قيام د زيد امر عظيم نه دی او ايان قدم الحاج به هم نه شي ويلی. ځکه قدوم د حاجيانو اګر چې امر عظيم دی. ليکن دلته صيغه د ماضي راغلې ده او ايان د مستقبل دپاره راځي.

**وقدجاء کسرها**: غرض د شارح دې کې نور لغات ذکر کول دي، يو لغت دادی، چې همزه مکسور او نون مفتوح شي. او دوهم دا چې همزه مفتوح او نون مکسور شي، دغه مقصد د کسرها دی

| |
|---|
| وَ مِنۡهَا كَيۡفَ الۡكَائِنَةُ لِلۡحَالِ اِسۡتِفۡهَامًا اَیۡ حَالَ فِیۡهِ وَ صِفَتِهِ فَالۡمُرَادُ بِالۡحَالِ |
| او د اسماء ظروفو نه کيف دي کوم چې د حال دپاره دي په استفهام کې يعنې حال د هغې نو مراد په حال سره |
| صِفَةُ الشَّيۡءِ لَا زَمَانَ الۡحَالِ كَمَا تَوَهَّمَهُ بَعۡضُ الشَّارِحِيۡنَ قَالَ صَاحِبُ الۡمُفَصَّلِ |
| صفت د شئ دي نه زمانه د حال لکه څنګه چې بعضې شارحينو ته داوهم شوی صاحب د مفصل وايي |
| وَ كَيۡفَ جَارٍ مَجۡرَی الظُّرُوۡفِ وَ مَعۡنَاهَا السُّوَالُ عَنِ الۡحَالِ تَقُوۡلُ كَيۡفَ زَيۡدٌ اَیۡ عَلٰی اَیِّ حَالٍ |
| چې کيف قائمقام د ظروفو دي او معنی د دې سوال کول دي د حال نه لکه ته وايي کيف زيد يعنی علی ای حال |
| هُوَ وَ تَسۡتَعۡمِلُ لِلشَّرۡطِ مَعَ مَا عَلٰی ضُعۡفٍ عِنۡدَ الۡبَصۡرِيِّيۡنَ نَحۡوَ كَيۡفَمَا تَجۡلِسۡ اَجۡلِسۡ |
| هو او استعماليږي دپاره د شرط سره د مانه په قول ضعيف سره په نزد د بصرينو لکه کيفما تجلس اجلس |
| اَیۡ عَلٰی اَیِّ هَيۡأَةٍ تَجۡلِسۡ اَجۡلِسۡ وَ مُطۡلَقًا عِنۡدَ الۡكُوۡفِيِّيۡنَ نَحۡوَ كَيۡفَ تَجۡلِسۡ اَجۡلِسۡ |
| يعنې علی ای هيئة تجلس اجلس او مطلقا د شرط دپاره استعماليږي په نزد د کوفينو لکه کيف تجلس اجلس |
| فَاِنۡ كَانَ بَعۡدَهُ اِسۡمٌ فَهُوَ مَحَلُّ الرَّفۡعِ بِالۡخَبَرِيَّةِ عَنۡهُ وَ اِنۡ كَانَ بَعۡدَهُ فِعۡلٌ مِثۡلُ |
| او س که وروستو د دې اسم وي نو دا په محل د رفع کې ده بنابر خبريت او که وروستو ترې فعل وي لکه |
| كَيۡفَ جِئۡتَ فَهُوَ فِیۡ مَحَلِّ النَّصۡبِ عَلَی الۡحَالِيَّةِ اَیۡ عَلٰی اَیِّ حَالٍ جِئۡتَ رَاكِبًا اَوۡ مَاشِيًا. |
| کيف جئت نو دا په محل د نصب کې ده بنابر حاليت يعنې علی ای حال جئت راکبا او ماشيا. |

**خلاصه د متن**: په دې عبارت سره د ظروفو مبنيو د نهم قسم چې کيف دي د دې تفصيل بيانوي.

**اغراض د جامي** : **وكيف**: كله چې فارغ شو ماتن د تفصيل د اته اقسامو نه، نو شروع يې وكړه په تفصيل د نهم قسم د ظروف مبنيو کې.

نفس تفصيل يې ځکه کوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل يې په دې مقام ځکه کوي، چې په ذهن د مصنف کې دا قسم په نسبت سره ما قبل ته قليل او ما بعد ته كثير واقع كيدو.

او تفصيل يې داسې کوي. چې تعيين ددې قسم به وکړي. معنی ددې به ذکر کړي او اقسام به يې ذكر كړي

**وكيف**: يعنې د ظروف مبنيه نه كيف هم دی. شارح منها راويستو اشاره ده، چې دا په هغه ما قبل الى اين الى باندې عطف دی او ما قبل د معطوف عليه نه معاد وي په ما قبل د معطوف کې نو منها يې راويستو

**للحال**: دا د مزاج د معلومولو دپاره راغي. شارح وايي الكائنة يو خو د جار مجرور متعلق راوباسي او دوهم اشاره كوي. چې دا للحال په اعتبار د متعلق سره صفت د كيف دی وجه د بناء هم معلوم شوه. چې دا متضمن دی معنی د استفهام لره.

**استفهاماً**: يعنې دا صرف استفهام دپاره راغي.

**اى حال شئ**: غرض د شارح دفع د وهم ده

**وهم**: چا به ويل چې حال نه به هغه زمانه مراد وي، چې د ماضي او مستقبل مينځ کې وي؟

**جواب**: شارح دغه هم دفع كړو؟ چې زمانه ترې مراد نه ده.

**وصفته**: په دې عبارت سره شارح دفع د وهم کوي

**وهم**: چا به ويل چې حال خو ما يبين هيئة الفاعل او المفعول ته وايي. نو دغه به مراد وي؟

**جواب**: شارح دغه وهم دفع كړو. چې مراد د حال نه مزاج او طبيعيت دی

**فالمراد الخ**: غرض د شارح رد كول دي په هغه شارحينو چې دې حال نه يې زمانه حال مراد اخيستي ده

**قال صاحب المفصل الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب وركوي

**سوال**: كله چې دا حال په معنى د حال الشئ وصفة الشئ شو. نو دا خو د ظروفو نه. نه شو. نو

دلته يې ولې ذکر کوي؟

**جواب**: شارح د صاحب المفصل په خوله باندې جواب وکړو. چې چونکه دا قائمقام د ظروفو دی. لکه څنګه چې ظرف متعلق غواړي. نو دا هم متعلق غواړي. څکه حال د شئ او صفت د شئ به د چا پورې متعلق وي. دوهمه وجه داده. چې دا کيف په معنی د على اى حال سره راځي او جار مجرور ظرف وي. نو دلته ذکر کول صحيح شو.

**وتستعمل الخ**: دلته نه شارح مسئله مبتداء ذکر کوي د ما قبل سره يې تعلق نشته. په دې سره کې اختلاف دی. چې کيف د شرط دپاره راځي او که نه.

بصريان وايي چې کيف په غير د ما نه د شرط دپاره نه راځي. او چې ما ورسره وي. نو سره د ضعف نه شرط دپاره راځي

و کوفيان وايي چې ما ورسره وي او که نه. په غير د ضعف نه دا د شرط دپاره راځي.

**فان كان بعده**: غرض د شارح ددې اعراب ذکر کول دي. حاصل دا دی که ددې نه ما بعد اسم وو نو دا به مرفوع وي بنا بر خبريت او اصل خبر کې تاخير دی. ليکن دې کې معنی د استفهام ده د هغه صدارت غواړي. او که ددې نه وروستو فعل وو. نو دا به منصوب بنا برحاليت وي

## بيان د مذ او منذ:

وَ مِنْهَا اَىْ مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَبْنِيَّةِ مُذْ وَ مُنْذُ بُنِيَا لِمُوَافَقَتِهِمَا مُذْ وَ مُنْذُ حَرْفَيْنِ وَ

او د ظروف مبنيو نه مذ او منذ دي مبني څکه دي چې موافقت د مذ او منذ سره لري کوم چې حروف دي او کله

يَكُوْنَانِ تَارَةً بِمَعْنَى اَوَّلِ الْمُدَّةِ اَىْ اَوَّلُ مُدَّةِ زَمَانِ الْفِعْلِ الْمُتَقَدِّمِ عَلَيْهِمَا نَحْو مَا رَأَيْتُهُ

دواړه په معنی د اول المدة سره يعني په اول وخت د زماني د فعل متقدم سره په دوي باندې لکه ما رأيته

مذ اَوْ مُنْذُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَىْ اَوَّلُ مُدَّةِ زَمَانِ عَدَمِ رُؤْيَتِي يَوْمُ الْجُمُعَةِ فَيَلِيهِمَا اَىْ يَقَعُ بَعْدَهُمَا اَىْ بَعْدَ مُذْ وَ مُنْذُ

مذ او منذ يوم الجمعة يعني اول وخت د نه ليدو زماده لره ورځ د جمع ده نو بيا واقع کيږي وروستو د مذ او منذ

الْمُفْرَدُ اَيِ الْاِسْمُ الْمُفْرَدُ لَا الْمُثَنَّى وَ الْمَجْمُوْعُ حَقِيْقَةً كَالْمِثَالِ الْمُتَقَدِّمِ.

[illegible] اونه تثنيه او جمع په حقيقي عبارت کې [illegible]

**خلاصه د متن**: په دې عبارت کې د ظروفو مبنيو لسم او يولسم قسم چې هغه مذ او منذ دي بيانوي

**اغراض دجامي** : **ومنها**: كله چې فارغ شو ماتن د نهه اقسامو د ظروف مبنيه نه، نو شروع يې وكړه په تفصيل د لسم او يولسم قسم ددې كې.

نفس تفصيل يې ځكه كوي، چې تفصيل بعد الاجمال **اوقع في الذهن** وي.

تفصيل يې په دې مقام كې ځكه كوي، چې دا اقسام په ذهن د مصنف كې په نسبت سره ما قبل ته قليل او په نسبت سره ما بعد ته كثير وو.

تفصيل يې داسې كوي، چې ددې قسم تعيين به وكړي ، ددې معنى به ذكر كړي، طريقه د استعمال به يې ذكر كړي، تركيب ددې به ذكر كړي او دې تركيب كې به اختلاف ته اشاره وكړي

**ومنها مذومنذ**: يعني ددې ظروف مبنيه نه لسم قسم مذ او يولسم قسم منذ دي. بيا دا مذ يې په منذ مقدم كړو اګر چې اصل منذ دى، ځكه ددې تصغير د دواړو منيذ راځي، ليكن د مذ حروف كم دي، نو دا په منزله د مفرد شو او د منذ حروف زيات وو، نو هغه په منزله د مركب شو او عين مفرد په طبع كې په عين مركب مقدم وي، نو كوم چې په منزلـه د مفرد وو هغه هم مونږ په هغه اسم چې په منزله د مركب وو، په هغې مقدم كړو، چې وضع د طبع سره موافق شي.

**اى من الظروف**: غرض د شارح په دې عبارت سره د ضمير مرجع متعين كول دي.

**وانما بينهما الخ** :حاصل دادى، چې دا منذ مذ اسمي د مذمنذ حرفي سره موافق دى هم **لفظاً** او هم **معنىً** ، **لفظاً** داسې چې دواړه يو شان دي، او **معنىً** داسې چې دواړه قسمه په معنى د اول المدة يا جميع المدة سره راځي. دوهمه وجه د بناء داده، چې د مذ مشابهت دى د حرف سره په وضع كې، ځكه د حروفو وضع په اقل د درې حروفو سره شوې ده. او مذ كې دوه حروف دي او منذ پرې حمل دى، دريمه وجه داده چې دا **مذ منذ اذا، حيث** سره مشابهت ساتي په دې خبره كې چې دا لازم الاضافت دى نو دې كې هم معنى د لام مقدره شوه. نو چې معنى د حرف لره متضمن شو، نو دا مبني شو.

اوس دا خبره چې د مذ منذ اسمي او حرفي په منځ كې فرق څه دى؟

نو دې دواړو قسمونو كې **لفظاً** او **معنىً** فرق دى : **لفظاً** داسې چې ددې نه ما بعد مرفوع او ددې حرفي نه ما بعد مجرور وي، او **معنىً** فرق دادى، چې مذ منذ اسمي په معنى د اول المدة او جميع المدة كُلي سره راځي او مذ منذ حرفي په معنى د اول المدة او جميع المدة خاص سره راځي. يعني

کوم چې د من او فی په تقدیر سره وي.

بمعنی اول المدة: یعني دا په معنی د اول المدة سره راځي بیا دا جار مجرور متعلق غواړي، نو شارح ورلره متعلق یکونان راویستو.

**سوال**: چې ته وایې دا په معنی د اول المدة او جمیع المدة سره راځي، نو دا خو اجتماع د متنافیینو ده؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې تارة یعني کله به دغه اول معنی وي او کله به دا دوهمه معنی وي.

ای اول مدة الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره اشاره کول دي، چې الف لام په المدة کې عهدي دی او معهود په دې سره مده د زمانې د فعل متقدم ده.

نحو الخ: غرض د شارح مثال ذکر کول دي

فیلیهما المفرد المعرفة: یعني ددې نه وروسته به مفرد معرفه وي.

ای یقع بعدهما الخ: غرض د شارح په دې عبارت سره یو خو د اولې معنی تعیین کول دي، ځکه د اولې اتصال د ابتداء او آخر دواړو ته ویلی شي، نو شارح تعیین وکړو، چې اتصال د آخر مراد دی، دوهم غرض د شارح د بعدهما ظرف دپاره متعلق راویستل دي. او دریم غرض د شارح د هما ضمیر مرجع متعین کول دي، ګویا که درې اغراض د شارح په دې شرح سره وو.

الاسم المفرد: غرض د شارح په دې عبارت سره د مفرد صفت دپاره موصوف راویستل دي.

لا المثنی: چونکه مفرد په ګنو معانیو سره راځي، نو شارح د معنی مرادې تعیین وکړو، چې هغه مفرد مراد دی، چې مقابل د تثنیه او جمع کې راځي.

حقیقتاً الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: زه به درته وښائم چې د مذ نه به وروستو مفرد نه وي، بلکې تثنیه به وي، لکه ما رأیته مذ الیوما اللذان صاحبنا فیهما؟

**جواب**: دلته دا یوما مؤول دی په تاویل د زمان المصاحبة سره، نو حکماً دا مفرد شو.

لان اول المدة: غرض د شارح د المفرد دپاره وجه ذکر کول دي، وجه داده، چې اول المدة خو یو شئ دی دوه او ډېر اشیاء نه دي. نو ځکه مونږ وایو، چې ما بعد ددې به مفرد وي.

حقيقتاً: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي

**سوال:** زه به درته ونښائم چې د مذ نه وروسته به يو اسم مفرد واقع وي او معرفه به نه وي، بيا هم خلك دغه مد ته ظرفي وايي لکه ما رايته مذ يومِ لقيتُ زيدا فيه؟

**جواب:** مونږ وايو دا معرفه عامه ده. حقيقتاً وي او که حکماً. حکماً مطلب دا دی، چې معينه قدرې وي، دلته په ذکر شوي مثال کې يوم اګر چې نکره دی. ليکن په توصيف سره يې تعيين شوی دی، نو په حکم د معرفې کې ده ځکه معرفه کې هم مقصود تعيين وي.

| |
|---|
| اَوْ حُكْمًا نَحْوَ مَا رَأَيْتُهُ مُذِ الْيَوْمَانِ اللَّذَانِ صَاحَبْنَا فِيهِمَا اَىْ اَوَّلُ مُدَّةِ عَدَمِ رُؤْيَتِهِ هَذَانِ الْيَوْمَانِ فَمَادَامَ |
| او يا حکماً لکه ما رأيته مذ اليومان اللذان صاحبنا فيهما يعني د نه ليدو اولې ورځې دغه اوه وي نو ترڅو چې |
| لَا يُلَاحِظُ هَذَانِ الْيَوْمَانِ اَمْرًا وَاحِدًا لَا يَحْكُمُ عَلَيْهِمَا بِاَوَّلِيَّةِ الْمُدَّةِ لِاَنَّ اَوَّلَ |
| دا دواړه ورځې امر واحد شمار نه کړل شي حکم ورباندې په اوليت دوخت نه شي کيدې ځکه چې اول |
| الْمُدَّةِ اِنَّمَا يَكُوْنُ اَمْرًا وَاحِدًا لَا شَيْئَيْنِ اَوْ اَشْيَاءَ فَالْمُثَنّٰى وَ الْمَجْمُوْعُ اِذَا وَقَعَا اَوَّلَ الْمُدَّةِ يَكُوْنَانِ فِىْ حُكْمِ |
| وخت دا امر واحد دې نه دوه او نه ډير نو مثنى او مجموع چې کله اول وخت واقع شي نو وي به په حکم د |
| الْمُفْرَدِ الْمَعْرِفَةُ حَقِيْقَةً كَالْمِثَالِ الْمُتَقَدِّمِ اَوْ حُكْمًا نَحْوَ مَا رَأَيْتُهُ مُذْ يَوْمَ |
| مفرد کې او يا به ورسره نږدې معرفه وي حقيقتاً لکه په مخکې مثال کې او يا حکماً لکه ما رأيته مذ يوم |
| لَقِيْتَنِيْ فِيْهِ لِحُصُوْلِ التَّعْيِيْنِ الْمَقْصُوْدِ مِنْ كَوْنِهِ مَعْرِفَةً وَ اِنَّمَا كَانَ التَّعْيِيْنُ مَقْصُوْدًا لِاَنَّهُ |
| لقيتني فيه د پاره د حصول د هغه تعين کوم چې مقصود وو د کيدو د معرفې نه او تعين ځکه مقصود شو چې |
| لَا فَائِدَةَ فِىْ جَعْلِ الْوَقْتِ الْمَجْهُوْلِ اَوَّلَ مُدَّةِ فِعْلٍ لِاَنَّ اَوَّلِيَّةَ وَقْتٍ مَا |
| فائده نشته په ګرځولو د وخت مجهوله کې اول وخت د پاره د فعل ځکه چې اوليت د وخت ما د پاره د |
| لِزَمَانِ مُدَّةِ الْفِعْلِ مَعْلُوْمٌ بِالضَّرُوْرَةِ وَ تَارَةً يَكُوْنَانِ بِمَعْنٰى جَمِيْعِ الْمُدَّةِ اَىْ جَمِيْعُ مُدَّةِ زَمَانِ الْفِعْلِ |
| زمانې د فعل معلوم وي خامخا او کله راځي دواړه د پاره د ټولې زمانې يعنې د ټولې مودې د زمانې د فعل |
| فَيَلِيْهِمَا اَىْ مُذْ وَ مُنْذُ الْمَقْصُوْدُ اَىِ الزَّمَانُ الَّذِىْ قَصَدَ بَيَانَهُ |
| نو بيا دواړه مقصود دې يعنې مذ او منذ مقصود دې يعنې هغه زمانه چې قصد شوې وي په بيان د هغې سره |
| حَالَ كَوْنِهِ مُتَلَبِّسًا بِالْعَدَدِ اَىْ بِعَدَدِ الْمُسْتَغْرِقِ جَمِيْعَ اَجْزَائِهِ |
| په حال کون د هغې کې چې متلبسه وي په عدد سره هغه عدد چې مصروف کړې يې وي ټول اجزاء په |

| بِحَيْثُ لَا يَشُذُّ مِنْهُ شَئٌ نَحو مَا رَأَيْتُهُ مُذْ يَوْمَانِ اَىْ جَمِيْعَ اَجْزاءِ مُدَّةِ زَمَانِ عَدَمِ رُؤْيَتِهٖ يَوْمَانِ |
|---|
| داسې شان چې خارج ترینه نه وي هیڅ شئ لکه مارأیته مذیومان یعني اجزاء د زماني د نه لیدو د هغه دوه |
| لَا اَزِيْدُ وَ لَا اَنْقُصُ وَ قَدْ يَقَعُ بَعْدَهُمَا الْمَصْدَرُ نَحو مَا خَرَجْتُ مُذْ ذِهَابُکَ اَوِ الْفِعْلُ |
| ورځې دي نه زیاتې اوه کمې او کله واقع کیږي ترې وروستو مصدر لکه ماخرجت مذذهابک او یا فعل |
| نَحو مَا خَرَجْتُ مُذْ ذَهَبْتَ. |
| ترې وروستو راځي لکه ماخرجت مذذهبت. |

**اغراض دجامي** : **لان اولیة**: غرض د شارح د معرفه کیدو دپاره وجه ذکر کول دي، چې معرفه به څکه وي، چې د مجهول وقت فعل لره اول مده ګرځولو کې څه فائده نشته، فائده خو هله ده، چې وقت معلوم وي او بیا ورلره ته اولیت ثابت کړي.

**وبمعنی جمیع المدة**: کله چې فارغ شو ماتن مصنف د یو معنی د مذمنذ نه، نو شروع یې وکړه په دوهمه معنی ددې کې، بیا شارح **تارةً** راویستو، چې دا عدیل د ما قبل **تارة** دی بیا جار مجرور متعلق غواړي، نو شارح ورلره **یکونان** فعل متعلق را ویستو، مقصد دادی، چې دا مذمنذ کله په معنی د **جمیع المدة** سره راځي.

**ای جمیع مدة زمان الفعل**: اشاره ده دې خبره ته، چې الف لام عوض د مضاف الیه دي، چې هغه مده د زمان د فعل ده.

**فیلیهما**: غرض د ماتن طریقه د استعمال ذکر کول دي، نو دی وایي چې ددې دواړو نه به وروستو متصل هغه زمانه واقع کېږي، چې قصد کړی شوي وي بیان ددغه زمانې په داسې حال کې چې متلبس وي د عدد سره یعنې معلوم زمانه به واقع وي.

**ای مذ و منذ**: غرض د شارح د **هما** ضمیر مرجع متعین کول دي.

**ای الزمان الذی الخ**: غرض د شارح په دې عبارت سره یو خو هغه مشهور قاعدې طرف ته اشاره کول دي، چې په اسم فاعل او اسم مفعول کوم الف لام داخل شي، نو هغه اسمي وي او ددې نه تعبیر په **الذي التي** سره کیدې شي، او د مابعد نه چې کله اسم فاعل وي، نو به ماضي او مضارع معلوم سره تعبیر کیږي، او چې ما بعد اسم مفعول وي، نو په ماضي او مضارع مجهول سره تعبیر کیدې شي بل غرض د شارح د **المقصود** صفت د پاره موصوف راویستل

دي.

**سوال**: ظاهره داده چې المقصود دپاره نائب فاعل زمان دی او زمان خو مقدور د متکلم نه دی، نو څنګه ته وايې، چې د زمانه قصد کړی شوې وي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې ددې نائب فاعل حذف دی، چې هغه بيان دی او زمان مقدور د متکلم نه ده، ليکن بيان د زمانې مقدور د متکلم دی.

بيا په دې عبارت کې بل اشکال دا راتلو، چې ظاهر د عبارت نه معلومېږي، چې بيان د زمانې به په عدد سره قصد کړی شوی وي، حالانکه خبره خو عکس ده، دا عدد په بيان د زمانې سره قصد شوی وي؟

**جواب**: نو شارح جواب وکړو، چې دا باء د تلبس ده، يعني دا بيان د زمانې به قصد شوی په داسې حال چې متلبس وي د عدد سره بيا متلبساً منصوب وو، نو شارح وجه د نصب بيان کړه، چې دا منصوب بنا برحاليت دی.

وقد يقع الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: مخکې تا د مذ منذ دوه معانې ذکر کړې او طريقه د استعمال دې ذکر کړه، او هغې کې تا دا خبره ذکر کړه، چې که ما بعد د مذ منذ صلاحيت د جواب د متى لرلو، نو دا به په معنى د اول المدة سره وي او وروسته به ترې مفرد معرفه وي او که ما بعد ددې صلاحيت د جواب د کم لرلو دا به په معنى د جميع المدة وي او ددې نه وروستو به مقصود بالعدد راخي، حالانکه زه به درته وښائم چې د دې نه وروستو په مصدر واقع وي کله به فعل واقع وي او يا به ان واقع وي؟

**جواب**: ماتن جواب وکړو، چې دا قليل طرف ته اشاره وي او شارح هم دغه جواب ته په لقلته سره اشاره کړې ده.

| اَوْ اَنَّ اَىْ مَا كُتِبَ عَلٰى هٰذِهِ الصُّوْرَةِ مُثَقَّلَةً كَانَتْ اَوْ مُخَفَّفَةً نَحْوُ مَا خَرَجْتُ مُذْ اَنَّكَ ذَاهِبٌ اَوْ |
|---|
| اوأنَّ يعني هغه چې ليکل کيږي په دغه شکل مثقله وي اوکه مخففه وي لکه ماخرجت مذانک ذاهب او |
| مَا خَرَجْتُ مُذْ اَنْ ذَهَبْتَ اَوِ الْجُمْلَةُ الْاِسْمِيَّةُ نَحْوُ مَا خَرَجْتُ مُذْ زَيْدٌ مُسَافِرٌ وَ لَمْ يَذْكُرْهُ |
| ياماخرجت مذان ذهبت اويا جمله اسميه ترې وروستو راخي لکه ماخرجت مذزيد مسافراو مصنف دا ذکر |

| |
|---|
| لِقِلَّتِهٖ فَيُقَدَّرَ بَعْدَهُمَا زَمَانٌ مُضَافٌ اِلٰى اَحَدِ هٰذِهٖ |
| نه کړودوچې دکم راتلو ددې نومقدرکولې به شي وروستودهغې نه زمان کوم چې مضاف دي يودډې |
| الْاُمُوْرِ لِيَصِحَّ حَمْلُ مَا بَعْدَهُمَا عَلَيْهِمَا فَكَانَ التَّقْدِيْرُ فِيْ مَا خَرَجْتُ مُذْ |
| امورونه دې دپاره چې صحيح شي حمل دمابعددې دواړوپه دوي باندې نوکيږي تقديرپه ماخرجت مذ |
| ذِهَابِكَ مُذْ زَمَانُ ذِهَابِكَ وَ عَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ فِيْمَا بَقِيَ وَ هُوَ اَيْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْ مُذْ وَ مُنْذُ اِسْمَيْنِ |
| ذهابک کې ماخرجت مذزمان ذهابک اوپه همدې قياس په نوروکې اوهرواحد دمذاومنذنه چې اسمين |
| مُبْتَدَأٌ وَ هُمَا مَعْرِفَتَانِ لِكَوْنِهِمَا فِيْ تَاْوِيْلِ الْاِضَافَةِ لِاَنَّهُمَا اِمَّا بِمَعْنٰى |
| وي مبتدا به وي اومعرفه به وي دواړه ځکه چې دواړه په تاويل داضافت کې دي ځکه چې يابه په معني |
| اَوَّلِ الْمُدَّةِ اَوْ جَمِيْعِ الْمُدَّةِ وَ خَبَرُهُ مَا بَعْدَهُ اَيْ خَبَرَ كُلٌّ مِنْهُمَا مَا يَقَعُ بَعْدَهُ خِلَافًا |
| داول المدة سره وي اويابه په معنى دجميع المدة سره وخبربه يې واقع کيږي مابعددې خلاف ثابت دي |
| لِلزَّجَاجِ فَاِنَّهُمَا عِنْدَهُ خَبَرُ الْمُبْتَدَاِ وَ الْمُبْتَدَاُ مَا بَعْدَهُمَا وَ يَرِدُ عَلَيْهِ |
| زجاج لره ځکه دده په نزددادواړه خبردمبتدادي اومبتدامابعددې دواړو ده ده باندې دا سوال راځي |
| اَنَّهٗ يَلْزِمُ اَنْ يَّكُوْنَ الْمُبْتَدَاُ فِيْ مِثْلِ قَوْلِكَ مُذْ يَوْمَانِ نَكِرَةً وَ الْخَبَرُ مَعْرِفَةً |
| چې ستاپه مذهب لازميږي تنکيردمبتداپه مثل ددې قول کې چې مذيومان اوخبرمعرفه شوحالانکه |
| |
| وَ ذٰلِكَ غَيْرُ جَائِزٍ. |
| داجائزنه دي. |

**اغراض دجامي** : <u>اي ما كتب على هذه الصورة الخ</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: ددې ان نه کوم مراد اخلې؟ که مشدد اخلې نو مخفف ترې وځي، او که مخفف واخلې نو مشدد ترې خارج کيږي؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې صورة ددغه مکتوب مراد دی، نو دواړو ته شامل دی.

<u>فيقدر الخ</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کله چې ددې نه وروستو فعل يا مصدر وغيره راغلو، نو وروستو ته وايې چې دا مذ منذ به مبتداء وي او ما بعد به خبر وي، او حالانکه دلته خو ما بعد حمل په مبتداء نه صحيح کيږي، ځکه مصدر خو وصف وي، او مبتداء ذات وي؟ همدارنګې حمل د فعل هم په مبتداء

نه صحیح کبری ؟

**جواب**: ماتن جواب وکړو، چې ددې مذ منذ نه به وروستو زمانه مقدر راویستی شي او زمان خو ظرف دی او ظرف خبر واقع کیدې شي، نو حمل د ما بعد به په دې **مذمنذ** صحیح شي.

اي كل واحد الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا مذ منذ خو دوه اسمونه دي او هو ضمیر د مفرد دی، نو مطابقت نشته؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا ضمیر په اعتبار د **كل واحد** سره راجع دی بیا ماتن **مذمنذ** ویلي وو او شارح ورسره **اسمين** راویستو اشاره دې ته چې دې صورت کې به دا اسمي وي، بیا سوال راتلو چې مبتداء خو معرفه وي او مذمنذ خو معرفه نه ده؟

**جواب**: نو شارح جواب وکړو، چې دا دواړه معرفې دي، ځکه دا مؤول دي په تاویل د اول المدة او جميع المدة سره، بیا ماتن ویل چې خبره ما بعده نو شارح خو په ضمیر کې تعمیم کوي چې په اعتبار د کل واحد سره راجع دی او د ظرف دپاره یې **يقع** متعلق راویستو.

خلافاً للزجاج: په دې عبارت سره شارح اختلاف بیانوي: ځکه چې زجاج وایي چې دا **مذمنذ** خبر مقدم او ما بعد مبتداء مؤخر ده.

ويرد الخ: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي

**سوال**: ماتن مذهب د زجاج ولې صراحت سره ذکر نه کړو؟

**جواب**: چونکه په مذهب د زجاج باندې سوال راتلو، نو ځکه یې ذکر نه کړو

سوال: چې دا **مذمنذ** معرفه او ما بعد ددې نه کله نکره وي، نو لازمېږي تنکیر د مبتداء او تعریف د خبر، حالانکه قانون مونږ دا ویلي دی چې په یو کلام کې معرفه نکره جمع شي نو معرفه به مبتداء کولې شي او نکره به خبر کولې شي او دلته بیا ددې قانون خلاف راځي.

**جواب**: دا ما بعد اګر چې نکره به خبر کولې شي او دلته بیا ددې قانون خلاف راځي.

**سوال**: دا ما بعد اګر چې نکره ده. لیکن په تقدیم د خبر سره په دې کې تخصیص راغلی دی او نکره مخصصه خو مبتداء واقع کېدای شي؟

**جواب**: دې صورت کې دا مذ منذ ظرفي نه دی، بلکې اسمي دی. نو سوال په ځای دی.

**سوال** : زجاج دې مذمنذ ته هم نکره وايي. نو بيا خبره د زجاج صحيح ده؟

**جواب**: دا تنکير د ما بعد اتفاقي دی او په دې مذمنذ کې د ځينو په نزد تعريف شته، يعنې جمهور ورته معرفه وايي او کوم شی چې معرفه وي، نو هغه مبتداء کول په کار وي، لهذا سوال په ځای دی.

| |
|---|
| وَاعْلَمْ اَنَّهُمَا اِذَا كَانَا مُبْتَدَأً اَوْ خَبَرًا فَهُمَا اِسْمَانِ صَرِيْحَانِ لَا ظَرْفَانِ فَلَا يَصِحُّ |
| پوهه شه چې کله دادواړه مبتدا اوي ياخبروي نورودې دواړه صريح اسماء نه ظروف نونه دي صحيح |
| عَدُّهُمَا مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَبْنِيَّةِ اِلَّا اَنْ يُّرَادَ بِظَرْفِيَّتِهِمَا كَوْنُهُمَا مِنْ اَسْمَاءِ الزَّمَانِ |
| شمارل يې د ظروفو نه مګر که چيرته مرادوي د ظرفيت د دې دواړو نه کيدل د دې دواړو د اسماء زمان نه |
| |
| لَا اَنَّهُمَا يَقَعَانِ ظَرْفًا فِيْ تَرَاكِيْبِهِمْ. |
| |
| نه داچې واقع کيږي ظرف په ترکيب د نحويانو کې. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره يو تمهيد بيانوي.

**اغراض د جامي** : واعلم : غرض د شارح سوال ته تمهيد ايښودل دي او هغه دا چې کله دا مذمنذ مبتداء خبر واقع شي، نو دا به ظرف نه وي، بلکې دا به اسم صريحي وي.

فلا يصح الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :

**سوال**: کله چې دا دواړه اسم صريحي شو، نو ظروفو کې شمار کول صحيح نه دي؟

الا ان يراد الخ: سره جواب ته اشاره کوي حاصل دادی، چې د دې صورت کې به دا اسماء زمان شي نو بيا هم ظروفو کې داخل شو.

## بيان د لدی او حکم د دې :

| |
|---|
| وَ مِنْهَا اَیْ مِنَ الظُّرُوْفِ الْمَبْنِيَّةِ لَدٰی بِالْاَلِفِ الْمَقْصُوْرَةِ وَ لَدُنْ بِفَتْحِ اللَّامِ وَ |
| اوبعضې د دې نه يعنې د ظروف مبنيونه لدی دي په الف مقصوره سره اولدن دي په فتحې دلام او |
| ضَمِّ الدَّالِ وَ سُكُوْنُ النُّوْنِ وَ قَدْ جَاءَ لَدْنِ بِفَتْحِ اللَّامِ وَ سُكُوْنِ الدَّالِ وَ كَسْرِ النُّوْنِ |
| ضمې د دال اوپه سکون د نون سره اولدن هم راغلی په فتحې دلام اوپه سکون دلام اوپه کسرې د نون سره |
| وَ لَدَنْ بِفَتْحِ اللَّامِ وَ الدَّالِ وَ سُكُوْنِ النُّوْنِ وَ لُدْنِ بِضَمِّ اللَّامِ وَ سُكُوْنِ الدَّالِ وَ كَسْرِ |
| اولدن په فتحې دلام اود دال اوپه سکون د نون سره اولدن په ضمې دلام اوسکون د دال اوپه کسرې د |

النُّوْنِ وَ لَدْ بِفَتْحِ اللَّامِ وَ سُكُوْنِ الدَّالِ وَ لُدْ بِضَمِّ اللَّامِ وَ سُكُوْنِ الدَّالِ وَ لَدُ بِفَتْحِ

نون سره اولدپه فتحې د لام اوسکون د دال سره اولدپه ضمې دلام اوسکون د دال سره اولدپه فتحې د

اللَّامِ وَ ضَمِّ الدَّالِ وَ بِنَاؤُهَا لِوَضْعِ بَعْضِهَا وَضْعَ الْحُرُوْفِ وَ حَمْلَ

لام اوضمې د دال سره وجه دبناءيې داده چې بعضې په کې وضع کيږي په ځاى دحرف سره اوحمل شوي

الْبَقِيَّةَ عَلَيْهِ وَ كُلُّهَا بِمَعْنَى عِنْدَ وَ الْفَرْقُ اَنَّهُ يُقَالُ الْمَالُ عِنْدَ زَيْدٍ فِيْمَا

باقي په دې نوروټول په معنى دعندسره راځي لکن فرق دومره دې چې ويل کيږي المال عند زيدکله

يَحْضُرُ عِنْدَهُ وَ فِيْمَا فِيْ خَزَائِنِهِ وَ اِنْ كَانَ غَائِبًا عَنْهُ وَ لَا يُقَالُ

چې مال حاضر وي دزيدسره او که د هغه په خزانه کې وي اوکه غائب وي دده نه اوداسې نه ويل کيږي

الْمَالُ لَدٰى زَيْدٍ اَوْ لَدُنْ زَيْدٍ اِلَّا فِيْمَا يَحْضُرُ عِنْدَهُ وَ حُكْمُهَا اَنْ تَجُرَّ بِهَا

المال لدى زيديالدن زيدمګر په هغه صورت کې چې کله حاضروي حکم يې دادې چې جرورکول کيږي

عَلَى الْاِضَافَةِ نَحْوُ اَلْمَالُ لَدٰى زَيْدٍ وَ قَدْ يُنْصَبُ بَعْضُ لُغَاتِ الْعَرَبِ بِلَدُنْ

ورته بناء براضافت لکه المال لدى زيد اوکله نصب ورکول کيږي په بعضې لغاتودعربو کې په لدن سره

خَاصَّةً غُدْوَةً خَاصَّةً سَمَاعًا تَشْبِيْهًا لِنُوْنِهَا بِنُوْنِ التَّنْوِيْنِ

خاص په سرکې خاص چې سمع يې راغلې دعربونه دوجې دمشابهت د نون ددې نه نون د تنوين سره

فِيْ مِثْلِ رِطْلٌ زَيْتًا وَ لِذٰلِكَ تُحْذَفُ عَنْهَا وَ تُثْبَتُ وَ لِكَوْنِ غُدْوَةٍ اَكْثَرُ اِسْتِعْمَالًا

په مثل د رطل زيتاکې ددې وجې نه کله ترې حذفيږي اوکله نه اوددې وجې چې غدوة زيات استعماليږي

مِنْ سُحْرَةٍ وَ غَيْرِهَا.

. دسحرة وغيره نه

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره د ظروفو مبنيو دبل قسم چې هغه لدى او لدن دي ذکر کوي

**اغراض دجامي** : ومنها: کله چې فارغ شو مصنف د تفصيل د يولس اقسامو د ظروف مبنيو نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د بل قسم ددې کې.

نفس تفصيل يې ځکه کوي، چې تفصيل بعد الاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل په دې مقام کې ځکه کوي، چې دا قسم په ذهن د ماتن کې په نسبت سره ما قبل ته قليل او ما بعد ته کثير مستعمل دى.

...فصيل يې داسې کوي، چې ددې قسم تعيين به وکړي او په هغې کې به لغات ذکر کړي
...منها لدیٰ ولدن: او ددې ظروف مبنيه نه لدی او لدن هم دي بيا لدی يې مخکې کړو اشاره
...ه، چې دا اصل دی.
**سوال**: په صحاح کتاب کې ذکر دي چې لدن اصل دی؟
**جواب**: داجدا جدا اعتبارات دي په صحاح کې لدن ته په اعتبار د لغت سره اصل ويلې شوي دي اوشارح لدی ته په اعتبار دوجهې دبنآء سره اصل ويلي دي چې اصل په لدی کې بنآء دی.
من الظروف المبنية: غرض د شارح په دې عبارت سره د ها ضمير مرجع متعيين کول دي.
بالالف المقصورة: غرض د شارح د لدی تعريف کول دي.
بفتح اللام: غرض د شارح په دې عبارت سره د لدن تعريف کول دي.
وقد جآء لدن الخ: ماتن په لدن کې شپږ لغات ذکر کړي دي او يو لدن شو، او يو لدی کلمه براسها شوه، دا ټول اته لغات شو.
**سوال**: شارح چې کوم حرکات سکنات په شکل د عبارت سره متعين کړي دي، نو سوال دادی صورت خو د ټولو يو شان دی، نو شارح ته دا خبره څنګه معلومه شوه؟
**جواب**: شارح د ټولو نه اخف حرکت مخکې ذکر کړی دی، او بيا يې وريسې او بيا وريسې دغه شان ترتيب سره تعيين کړ ی دی او اخف حرکت سکون دی او بيا فتحه ده او بيا ضمه ده.
وبنآء ها الخ: وجه د بنآء داده، چې د ځينې لغاتو ددې وضع په شان د حرف شوې ده، او باقي پرې حمل دی.
وكلها بمعنى الخ: غرض د شارح ددې معنی ذکر کول دي، دا دواړه په معنی د عند سره راځي البته لدی سره په استعمال کې من نه راځي، او د لدن سره من راځي، بيا ددې د عند سره فرق دادی، چې په عند کې عموم دی، دا په هغه وخت کې ويلې شي، چې مال وغيره ددغه کس څخه په جيب کې وي او که په کور کې وي، او لدی لدن هغه وخت ويلی شي. چې مال وغيره ددغه کس څخه جيب کې وي.
وحكمها ان تجر الخ: عمل ددې دادی، چې په دې سره مضاف اليه ته جر ورکولی شي، خو په بعضو لغاتو کې خاص په لدن سره صرف غدوة لره نصب ورکولی شي، دا ولې؟ چونکه ددې

لدن د رطلٌ سره نون تنوين کې مشابهت دی او ما بعد د رِطلٌ نه هميشه منصوب وي، نو د لدن مابعد به هم دغه غدوة منصوب وي، بيا دې لدن کې دا نون د تنوين ځکه دی، چې لذلك تحذف ځينې اوقاتو کې دا حذف کولې شي، بيا خاص دې غدوة لره نصب ورکوي، نه که سحرة وغيره لره، وجه داده، چې لکون غدوة اکثرالاستعمالا دا غدوة د لدن نه وروستو کثيرالاستعمال دی.

## بيان د قط او حکم ددې :

| |
|---|
| وَ مِنهَا قَطُّ مَفتُوحُ القَافِ مَضمُومُ الطَّاءِ المُشَدَّدَةِ وَ هٰذَا اَشهَرُ لُغَاتِهِ وَ قَد |
| اوبعضې ددې نه قط دی په فتحې دکاف اوپه ضمې دطامشددې سره اودايې مشهور لغت دی اوکله طا |
| تَخفَفُ الطَّاءِ المَضمُومَةِ وَ قَد تُضَمُّ القَافُ اِتبَاعًا لِضَمَّةِ الطَّا المُشَدَّدَةِ اَوِ المُخَفَّفَةِ وَ جَاءَ قَطُّ سَاكِنَةُ الطَّاءِ |
| مخففه هم راځي اوکله کاف ته ضمه هم ورکول کيږي دوجې دتابعيت دضمې د طالره او قط ساکن هم راغلې |
| مِثلُ قَطُّ الَّذِيْ هُوَ اِسمُ فِعلٍ فَهٰذِهٖ خَمسُ لُغَاتٍ كُلُّهَا لِلمَاضِيِّ المَنفِيِّ اَیْ |
| په شان دقط هغه چې هغه اسم فعل دی داپنځه لغات دی ټول راځي دپاره دماضي منفي يعنې دپاره د |
| لِاَجلِ الفِعلِ المَاضِيِّ المَنفِيِّ اَوِ الزَّمَانِ المَاضِيِّ المَنفِيِّ وُقُوعُ شَيءٍ فِيهِ لِيَستَغرِقَ |
| فعل ماضي منفي اويادپاره دزمان دماضي منفي په واقع کيدلو ديوڅيزپه دې کې دی دپاره چې مصروفه |
| النَّفيُ جَمِيعَ الاَزمِنَةِ المَاضِيَةِ نَحوُ مَا رَاَيتُهُ قَطُّ وَ بِنَاءِ المُخَفَّفَةِ لِوَضعِهَا |
| کړي نفي ټوله زمانه ماضيه لکه مارأيته قط اومبني والې دمخففې دې ددې وجې نه چې دا وضع کيږي |
| وَضعَ الحُرُوفِ وَ بِنَاءَ المُشَدَّدَةِ لِمُشَابَهَتِهَا لِاُختِهَا المُخَفَّفَةِ وَ قِيلَ حُمِلَت عَلٰى |
| په ځاى دحرف اومشدده ځکه مبني ده چې مشابهت دمخففې سره لري چاويلي چې حمل يې په خپل |
| اُختِهَا عَوضٌ. |
| اخت باندې شوې چې عوض دي. |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره دظروفو مبنيو نه بل قسم چې قط دی ددې تفصيل بيانوي.

**اغراض دجامي** : وقط: کله چې فارغ شو د اقسامو د ظروف مبنيو نه، نو شروع يې وکړه په تفصيل د بل قسم کې.

نفس يې تفصيل ځکه کوي، چې تفصيل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل يې په دې مقام کې ځکه کوي، چې دا قسم د مصنف په ذهن کې په نسبت سره ما قبل

نه قليل او ما بعد ته کثيرالاستعمال دی
تفصيل يې داسې کوي، چې تعيين دديې قسم به وکړي او معنی به ذکر کړي.

وقط: يعنې د ظروف مبنيه نه قط هم دی.
په دې کې پنځه لغات شارح ذکر کړي دي. قُطُ، قَطُ، قُطْ، قُطُّ، قَطْ دا پنځم لغت په شان د قط اسم فعل دی.

للماضي المنفي: دا د ماضي منفي دپاره راځي.

اي لاجل الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا منفي صفت د فعل وايي او که د ماضي که د فعل صفت وايې، نو بيا خو په کار ده چې دې ته اسم فعل وويلی شي او که دا صفت د ماضي شي، نو دخادمې والا وايي چې کوم شی تېر شي نو هغه خو موجود وي، نو منفي څنګه شو؟ او باسولي والا وايي چې کوم شی تېر شي، هغه خو هسې منفي او ختم شي، نو دا قيد منفي مستدرك دی؟

**جواب**: دا زه صفت د فعل وايم، ليکن اسم فعل ورته ځکه نه وايو چې اسم فعل کې قيد د نفي او اثبات نه وي، او دې سره قيد د منفي دی يا دا زه صفت د ماضي وايم، ليکن په زمانه ماضي کې د وقوع د شي نفي مراد اخلم، نو نه خو دا قيد مستدرك دی او نه د خادمه والا سوال راځي.

ليستغرق الخ: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: د نفي دپاره خو نور حروف هم شته، نو دا قط ولې راوړې؟

**جواب**: هغه نور الفاظ د مطلق نفي دپاره راځي او دا قط د زمانه ماضي جزء جزء نفي کوي.

نحو ما رايته قط: يعنې تېره شوې زمانه کې په هېڅ يو جزء کې ماده لره نه دې ليدلی.

وبناء المخففة: کوم چې مخفف وي، نو د هغې د حروفو سره په وضع کې مشابهت دی او کوم چې مشدد دي هغه په دغه اخواتو حمل دي .او دوهمه وجه داده، چې دا په عوض حمل دي او عوض خو مبني دی، وروستو وجه د بنآء راځي، نو دا د هغې ضد وو، او دې ته حمل د احد الضدين په ضد آخر راځي.

| |
|---|
| وَ مِنْهَا عَوْضُ بِفَتْحِ الْعَيْنِ وَ ضَمِّ الضَّادِ وَ قَدْ جَاءَ بِفَتْحِ الضَّادِ وَ كَسْرِهَا |
| بعضې دظروفونه عوض دي په فتحې دعين اوضمې دضادسره اوپه فتحې اوكسرې دضادسره هم راغلې |
| لِلْمُسْتَقْبِلِ أَيْ لِأَجَلِ الْفِعْلِ الْمُسْتَقْبَلِ الْمَنْفِيِّ أَوِ الزَّمَانِ الْمُسْتَقْبَلِ الْمَنْفِيِّ |
| داراځي دپاره دمستقبل يعنې دپاره دفعل مستقبل كوم چې منفي وي يادپاره دزمان مستقبل چې |
| فِيْهِ وُقُوْعُ شَيْءٍ لِيَسْتَغْرِقَ النَّفْيُ جَمِيْعَ الْأَزْمِنَةِ الْمُسْتَقْبَلَةِ نَحْوُ لَا أَرَاهُ عَوْضُ |
| منفي وي په هغې كې وقوع دڅيزددې دپاره چې مصروفه كړي نفي ټوله زمانه مستقبله لكه لااراه عوض |
| وَ بِنَاءُ عَوْضُ عَلَى الضَّمِّ لِكَوْنِهِ مَقْطُوْعًا عَنِ الْإِضَافَةِ كَقَبْلُ وَ بَعْدُ |
| اومبني والې دعوض په ضمې سره دوجې ددې دي چې دامقطوعة عن الاضافت ده په شان دقبل اوبعد |
| بِدَلِيْلِ إِعْرَابِهِ مَعَ الْمُضَافِ إِلَيْهِ نَحْوُ عَوْضُ الْعَائِضِيْنَ أَيْ دَهْرُ الدَّاهِرِيْنَ |
| په دليل ددې چې كله ددې سره مضاف اليه راشي نوبيامعرفه وي لكه عوض العائضين يعنې دهرالداهرين |
| وَ مَعْنَى الدَّاهِرِ وَ الْعَائِضِ الَّذِيْ يَبْقَى عَلَى وَجْهِ الدَّهْرِ. |
| اومعنى دعائض اوداهر هغه چې ياقي وي په مخ دزمانې. |

**خلاصه د متن** : په دې عبارت سره دظروفومبنيوبل قسم چې عوض دي ددې تفصيل بيانوي.

**اغراض د جامي** : وعوض: كله چې فارغ شو ماتن د اقسامو د ظروف مبنيو نه، نو شروع يې وكړه په تفصيل د بل قسم كې.

نفس تفصيل يې ځكه كوي چې تفصيل بعدالاجمال اوقع في الذهن وي.

تفصيل يې په دې مقام كې ذكر كړو، ځكه دا په نسبت سره ما قبل ته اقل استعمالاً وو.

تفصيل يې داسې كوي، چې تعيين ددې قسم به وكړي او معنى ددې به ذكر كړي.

وعوض: يعنې د ظروف مبنيه نه عوض هم دى.

بفتح العين الخ: غرض د شارح د عوض تعريف كول دي او ورسره په دې كې دوه نور لغات ذكر كوي، او قد سره اشاره كوي چې دا قليل الاستعمال دى، ځكه ماتن نه دى ذكر كړى.

للسمتقبل المنفي: دا د قط په ضد كې د مستقبل منفي دپاره راځي بيا دلته يو سوال راځي:

**سوال** : دا منفي صفت د فعل وايې كه مستقبل؟ كه د فعل صفت يې كړې نو دې ته اسم فعل ويل په كار دي او كه صفت د مستقبل ګرځوي، نو نفي د مستقبل خو مقدور د متكلم نه ده؟

**جواب** : دا زه صفت د فعل وايم او اسم فعل ورته ځکه نه وايم، چې اسم فعل کې قيد د نفي او اثبات نه وي، او دې سره قيد د منفي دی .
دوهم جواب دا دی، چې دا زه صفت د مستقبل وايم ليکن زما مراد نفي د هغه زماني ده، چې دا فعل په کې واقع وي .
**ليستغرق الخ**: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي :
**سوال** : د نفي دپاره خو نور الفاظ هم په استقبال کې شته ؟
**جواب**: هغه نور الفاظ مطلق نفي د پاره راځي، او عوض په مستقبل کې د جزء جزء نفي کوي.
**لااراه عوض**: يعنې زه به فلان سره مخ هم ونه لرووم.
**وبنآء عوض**: يعنې وجه د بنآء داده، چې دا اسمآء مقطوع عن الاضافة دي، نو يو خو ددې مضاف اليه ته احتياج راغلو، او دوهم د هغې راويستو ته احتياج راغلو، ځکه دا مبني ده او مقطوع عن الاضافة ځکه ده، چې د معرب حالت ددې داسې راځي.
**عوض العائضين**: دې صورت کې معرب دی، ځکه اضافت د خواص معظمه مکبره د اسم معرب نه دی، او مضاف اليه نه لس اشياء کسب کوي يو په کې اعراب دی.
**اي دهر الداهرين**: غرض د شارح د غير مشهور لفظ تشريح په مشهور لفظ سره کول دي.
**ومعنى الداهر** : چونکه ځيني خلك په دغه معنى هم نه پوهيږي، نو ده ښه وضاحت وکړو، چې دا هر هغه چاته وايي چې په مخ د ځمکه پاتې وي، بيا دې مستقبل زمانه عوض ځکه وايي، چې د هر تير شوي ساعت دپاره را روان وخت عوض ګرځي.

## بيان دوجې د بناء دظروفو :

| وَ الظُّرُوْفُ الْمُضَافَةُ اِلَى الْجُمْلَةِ وَ اِلٰى كَلِمَةِ اِذْ الْمُضَافَةِ اِلَى الْجُمْلَةِ يَجُوْزُ بِنَاؤُهَا |
|---|
| اوهغه ظروف کوم چې مضاف وي جملې ته اوکلمې داذ ته چې مضاف وي جملې ته جائزدي بناء ددې |
| عَلَى الْفَتْحِ لِاكْتِسَابِهَا الْبِنَاءُ مِنَ الْمُضَافِ اِلَيْهِ وَ لَوْ بِوَاسِطَةٍ |
| ځکه چې مبني والې يې کسب کړو دمضاف اليه نه اګرکه په واسطه دفتحې سره وي بنايې جائزده په |
| الْفَتْحِ لِلْخِفَّةِ نَحْو قَوْلِهٖ تَعَالٰى يَوْمَ يَنْفَعُ الصَّادِقِيْنَ وَ قَوْلُهٗ تَعَالٰى وَ مِنْ خِزْيِ يَوْمَئِذٍ |
| فتحې سره دپاره دخفت لکه داقول دالله تعالى يوم ينفع الصادقين اوداقول دالله تعالى ومن خزي يومئذ |

| |
|---|
| فِيْمَنْ قَرَأَ بِالْفَتْحِ وَ يَجُوْزُ اِعْرَابُهَا اَيْضًا لِكَوْنِهَا اَسْمَاءً |
| په لغت دهغه چاکې چې لوستلې يې دي په فتحې سره اومعرب کيدل يې هم جائزدي ځکه چې دااسم |
| مُسْتَحِقَّةً لِلْاِعْرَابِ وَ لَا يَجِبُ اِكْتِسَابُ الْمُضَافِ اِلَيْهِ اِلَى الْمَبْنِيِّ الْبِنَاءِ |
| دي مستحق دي داعراب دپاره اوواجب نه دي اکتساب دمضاف مبني ته دکوم بناء چې دمضاف د |
| مِنْهُ وَ كَذٰلِكَ اَيْ كَالْمَذْكُوْرِ مِنَ الظُّرُوْفِ فِيْ جَوَازِ الْبِنَاءِ عَلَى الْفَتْحِ وَ الْاِعْرَابِ مِثْلُ وَ |
| وجې وي اوهمدارنګې په شان دمخکينيوظروفوپه جوازدبناءپه فتحې سره اومعرب کيدوسره مثل او |
| غَيْرُ مَذْكُوْرَيْنِ مَعَ مَا وَ اَنْ مُخَفَّفَةً اَوْ مُشَدَّدَةً مِثْلُ قِيَامِيْ مِثْلُ مَا قَامَ زَيْدٌ وَ |
| غيرهغه چې ذکر شوې وي سره دما اودان چې که مخففه وي اوکه مشدده لکه قيامي مثل ما قام زيد و |
| قِيَامِيْ مِثْلَ اَنْ تَقُوْمَ اَوْ مِثْلَ اَنَّكَ تَقُوْمُ لِمُشَابَهَتِهِمَا الظُّرُوْفَ الْمُضَافَةَ اِلَى الْجُمْلَةِ |
| قيامي مثل ان تقوم اومثل انک تقوم دوجې دمشابهت ددې دظروفوسره کوم چې مضاف وي جملې ته |
| نَحْوُ اِذْ وَ حَيْثُ وَ بِهٰذِهِ الْمُشَابَهَةِ ذَكَرَهُمَا فِيْ بَحْثِ الظُّرُوْفِ وَ يَجُوْزُ اِعْرَابُهُمَا |
| لکه اذ اوحيث اوددې مشابهت دوجې ذکرکړل مصنف هغه په بحث دظروفوکې اوجائزدي معرب کيدل |
| لِكَوْنِهِمَا اِسْمَيْنِ مُسْتَحِقَّيْنِ لِلْاِعْرَابِ. |
| يې ځکه چې دواړه اسمين دي چې حق داعراب لري . |

**خلاصه دمتن** : په دې عبارت سره وجه دبناء دظروفو ذکر کوي .

**اغراض دجامي** : والظروف المضاف الخ: کله چې فارغ شو ماتن د يو قسم ظروفو نه کوم کې چې بنآء واجب وه، نو شروع يې وکړه په دوهم قسم ددې ظروفو کې کوم کې چې بنآء جائزده، نو دی وايي چې هغه ظروف چې جملې ته مضاف وي بلاواسطه يا بالواسطه نو هغې کې بنآء جائز ده .

دوالی کلمة: غرض د شارح په دې عبارت سره اشاره دې ته چې دا اذ عطف دی په الجملة باندې او ماقبل د معطوف عليه نه معاد وي په ما قبل د معطوف کې نو دلته يې هم الی راويستو . بيا کلمة يې راويستو دې سره يې دفع د وهم وکړه، چې چا به ويل چې کنې معنی د اذ مراد وي، حالانکه معنی ته خو نسبت نه کيږي؟ نو شارح دغه وهم دفع کړو، چې کلمه د اذ مراد ده.

المضافة: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي .

**سوال**: دا ظروف مضافه به مبني هله وي، چې د مضافه الیه نه بنآء کسب کړي اوس چې مضاف الیه ددې اذ شو، نو هغه نه خو بنآء نه شي کسب کولی؟

**جواب**: چې د غه اذ جملې ته مضاف وي او جمله خو مبني ده، نو د اذ په واسطه به دا ظروف مضافه د د غه اذ نه بنآء کسب کړي.

يجوز بنآؤها: دلته یو څو سوالات مخې ته راغلل:

**سوال**: دا ظروف مبنیه نفس مبني ولې دي؟

**جواب**: چې نفس مبني ځکه دی، چې دا د مضاف الیه نه بالواسطه یا بلا واسطه بنآء کسب کوي.

**سوال**: مبني په حرکت سره ولې دي.

**جواب**: مبني په حرکت سره ځکه دی، چې معلوم شي چې بنآء ددې عارضي ده.

**سوال**: حرکت د فتحې ولې دي.

**جواب**: حرکت د فتحه ځکه دی، چې دا فتحه اخف حرکت دی.

ای کالمذکور: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کاف تشبیهي دی، او ما قبل ددې نه خو ډیر اشیاء ذکر دي او ذلك اسم اشاره د مفرد ده؟

**جواب**: شارح جواب وکړو، چې دا اسم اشاره د مفرد په اعتبار د مذکور سره راجع ده.

من الظروف: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: مذکور خو ټول کتاب دی او هغې سره خو تشبیه صحیح نه ده؟

**جواب**: ما قبل مذکور ظروف مراد دي، تشبیه صحیح ده.

في جواز البنآء: په دې عبارت سره شارح د یو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: کاف د تشبیه ده، نو وجه د بنآء څه ده؟

**جواب**: دا تشبیه په جواز د بنآء علی الفتح او اعراب کې ده.

<u>مذکورین</u>: چونکه مع ظرف متلق غوښتو نو شارح مذکورين راويستو، چې د فحوای د کلام نه معلوميږي او هغه دا چې ذلك اسم اشاره مذکورته راجع وه او د هغې نه دا مذکورين معلوم شو.

<u>لمشابهتهما الظروف</u>: په دې عبارت سره شارح د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال**: د غير او مثل سره د مع او ما راتلل ولې ضروري دي؟

**جواب**: ددې دواړو د ظروفو سره د مشابهت د وجې نه حکم د بنآء دی اوس حيث او اذا خو جملې ته مضاف وي او جمله من حيث الجملة مضاف اليه نه واقع کيږي، نو د هغې دپاره مونږ مضمون د جملې راوباسو. نو هغې کې دوه احتياجه راغلل، يو مضاف اليه ته او دوهم ددې راويستو ته، او ددې احتياجينو د وجې نه دا دواړه مبني وو. اوس دا غير او مثل کې خو هم بنآء جائزوه. او د هغې اضافت خو جملې ته نه کيږي، بلکې دا اسمآء صريحي دي ددې اضافت مفرد ته کيږي، نو مونږ چل وکړو، مونږ ددې نه پس د ما او ان مصدريه راوړل لازم کړو، نو ددې مثال او غير اضافت چې ورته وشي، نو لفظاً به يې جملې ته اضافت وشي، نو بنآء به ترې کسب کړي، او معنیً به جملې ته اضافت وشي، نو د هغه قاعدې خلاف به راشي، چې د اسم صريحي اضافت خو مفرد ته کيږي، البته اعراب ددې مثل او غير هم جائزدی، ځکه د مضاف اليه نه د بنآء کسب کول څه وجب نه دي.

فرغتُ من ترتيب هذا الكتب:

يوم الاربعاء إثنين التاسع وعشرون من رجب المرجب سنة ١٤٣٥ بفضله وكرمه تعالى

تقبل الله منا بقبول حسن وجعله الله مفيداً لكافة الناس

وجعله من الباقيات الصالحات وذريعة الفوز

يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ

لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وآله وأصحابه أجمعين

محمد فيض الهادي "حقاني"

كان الله له ولوالديه ولمن أحسن إليهما وإليه

